وَمَا يَنْطِقُ عَنِ الْهَوىٰ إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْيٌ يُوحىٰ

# الورد الشذي

بشرح

## جامع الترمذي

### الجزء السادس

من _٢٥٢٣_ الى _ ٣١٤٨_

**جمع وترتيب**: خادم العلماء المفتقر الي الله ابوهلال: **عبد الخالق بن خان محمد**

خريج الجامعة امداد العلوم الاسلامية بشاور_ وفاضل وفاق المدارس العالمية (ايم اى اسلاميات)

**از افادات**

شيخ الاسلام فقيه العصر محمد حسن جان (المدني) شهيد (رحمه الله)

**ناشر**: مكتبه رحمانيه پشاور

بسم الله الرحمن الرحيم

# فهرس العناوين والمحتويات

سُبْحَانَ رَبِّكَ رَبِّ الْعِزَّةِ عَمَّا يَصِفُونَ ، وَسَلَامٌ عَلَى الْمُرْسَلِينَ ، وَالْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ.

(سورة الصافات:۱۸۲)

***************

# كتاب صفة الجنة (عن رسول الله صلى الله عليه وسلم)

## ١. باب مَا جَاءَ فِي صِفَةِ شَجَرِ الْجَنَّةِ

٢٥٢٣_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ: "إِنَّ فِي الْجَنَّةِ لَشَجَرَةً يَسِيرُ الرَّاكِبُ فِي ظِلِّهَا مِائَةَ سَنَةٍ". وفي الباب عن أَنَسٍ وَأَبِي سَعِيدٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** . دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي په جنت کې يوه ونه ده چې په ښه ساتلي شوي تيز رفتار اس سور سړی به يې لاندې سل کاله مزل کوي،

امام ترمذي وايي: داحديث صحيح دي او په دي باب کي دانس او ابوسعيد خدري رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي.

**لغات** . راکب؛ سور دماشي ضد دي جمع يي رکاب راځي، ظل: معني سوري جمع يي ظلال راځي

**تشريح** : ددي وني سوری به دومره وي چې تيزرفتار اس يي په سلو کالو کې ختمولی نشي علماء وائي دوني نه مراد خاښونه دي سوری مراد نه دی ځکه چې په جنت کې به نمر نه وي نو چې نمر نه وي نو سوری څنګه کيدی شي په پورتني حديث کې دجنت دونو اوږدوالی او پلنوالی وسعت بيان شوی دی چې وني به يي دومره دومره وي.

په پورتني حديث کې چې دکومي وني ذکر راغلی دی ديته "شجرة طوبي" ونيلی شي لکه چې په يو اوږد حديث کې ديو اعرابي واقعه راغلي ده او هغه دادی چې کله ده دجنت دوني او عهد په باره کې سوال لوکړو نو رسول الله ورته اوفرمائيل په جنت کې ديوي وني نوم طوبي دی او هغه يي ددنيا په ونو کې د جوزه سره مشابه اوګرځولو اعرابي بيا سوال اوکړو چې ددي وني وګي به څومره وي ورته يي اوفرمائيل ددومره مصافي په مقدار به وي چې مسلسل به ديوي مياشتي پوري الوزولی شي اعرابي بيا تپوس اوکړو چې ددي جرړي به څومره وي ورته يي اوفرمائيل ستا دکور په اوښانو کې چې کوم خوان اوښ زوان وي نو ددي دجرړو احاطه نشي کولی تردي چې دا اوښ به بوډا شي غرض دا چې دي اعرابي بيا دانګور په باره کې هم سوال اوکړو.

---

[1] ــ صحيح مسلم/الجنة ١(٢٨٢٦) (تحفة الأشراف: ١٢٢١٣)

*****************

٢٥٢٤_حَدَّثَنَا عَبَّاسٌ الدُّورِيُّ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُوسَى، عَنْ شَيْبَانَ، عَنْ فِرَاسٍ، عَنْ عَطِيَّةَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الخُدْرِيِّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " فِي الجَنَّةِ شَجَرَةٌ يَسِيرُ الرَّاكِبُ فِي ظِلِّهَا مِائَةَ عَامٍ لَا يَقْطَعُهَا، وَقَالَ: ذَلِكَ الظِّلُّ المَمْدُودُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ حَدِيثِ أَبِي سَعِيدٍ. [1]

**ترجمه** : دابوسعيد خدري رضي الله عنه بيان دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په جنت كي يوه داسي ونه ده چې په اس سور بنده ددي لاندي سلو كالو پوري مزل اوكړي نو بيا به هم ددي سوري ختم نكړي او دا يي هم اوفرمائيل همدا ظل ممدود دي (دكوم ذكر چې په قران كي راغلي دي.

امام ترمذي وايي دابوسعيد خدري دا حديث حسن غريب دي.

*****************

٢٥٢٥_حَدَّثَنَا أَبُو سَعِيدٍ الأَشَجُّ، حَدَّثَنَا زِيَادُ بْنُ الحَسَنِ بْنِ الفُرَاتِ القَزَّازُ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، عَنْ أَبِي حَازِمٍ ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَا فِي الجَنَّةِ شَجَرَةٌ إِلَّا وَسَاقُهَا مِنْ ذَهَبٍ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ حَدِيثِ أَبِي سَعِيدٍ. [2]

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په جنت كي هيڅ يوه ونه داسي نشته چې تنه يي دسرو زرو نه وي.

امام ترمذي وايي: دا حديث حسن غريب دي.

*****************

## ٢_باب مَا جَاءَ فِي صِفَةِ الجَنَّةِ وَنَعِيمِهَا

### دجنت وصف اوددي د نعمتونو بيان

٢٥٢٦_حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُضَيْلٍ، عَنْ حَمْزَةَ الزَّيَّاتِ، عَنْ زِيَادٍ الطَّائِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قُلْنَا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، مَا لَنَا إِذَا كُنَّا عِنْدَكَ رَقَّتْ قُلُوبُنَا وَزَهِدْنَا فِي الدُّنْيَا وَكُنَّا مِنْ أَهْلِ

---

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٤٢٢١)

[2] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٣٤١٨)

الآخِرَةِ. فَإِذَا خَرَجْنَا مِنْ عِنْدِكَ فَآنَسْنَا أَهَالِينَا وَشَمَمْنَا أَوْلَادَنَا أَنْكَرْنَا أَنْفُسَنَا ! فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " لَوْ أَنَّكُمْ تَكُونُونَ إِذَا خَرَجْتُمْ مِنْ عِنْدِي كُنْتُمْ عَلَى حَالِكُمْ ذَلِكَ لَزَارَتْكُمُ الْمَلَائِكَةُ فِي بُيُوتِكُمْ، وَلَوْ لَمْ تُذْنِبُوا لَجَاءَ اللَّهُ بِخَلْقٍ جَدِيدٍ كَيْ يُذْنِبُوا فَيَغْفِرَ لَهُمْ ". قَالَ: قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، مِمَّ خُلِقَ الْخَلْقُ؟ قَالَ: " مِنَ الْمَاءِ ". قُلْنَا: الْجَنَّةُ مَا بِنَاؤُهَا؟ قَالَ: " لَبِنَةٌ مِنْ فِضَّةٍ وَلَبِنَةٌ مِنْ ذَهَبٍ وَمِلَاطُهَا الْمِسْكُ الْأَذْفَرُ وَحَصْبَاؤُهَا اللُّؤْلُؤُ وَالْيَاقُوتُ وَتُرْبَتُهَا الزَّعْفَرَانُ. مَنْ دَخَلَهَا يَنْعَمُ وَلَا يَبْأَسُ، وَيَخْلُدُ وَلَا يَمُوتُ. لَا تَبْلَى ثِيَابُهُمْ، وَلَا يَفْنَى شَبَابُهُمْ ". ثُمَّ قَالَ: " ثَلَاثَةٌ لَا تُرَدُّ دَعْوَتُهُمْ. الْإِمَامُ الْعَادِلُ، وَالصَّائِمُ حِينَ يُفْطِرُ، وَدَعْوَةُ الْمَظْلُومِ يَرْفَعُهَا فَوْقَ الْغَمَامِ. وَتُفَتَّحُ لَهَا أَبْوَابُ السَّمَاءِ، وَيَقُولُ الرَّبُّ عَزَّ وَجَلَّ: وَعِزَّتِي لَأَنْصُرَنَّكِ وَلَوْ بَعْدَ حِينٍ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ لَيْسَ إِسْنَادُهُ بِذَاكَ الْقَوِيِّ وَلَيْسَ هُوَ عِنْدِي بِمُتَّصِلٍ. وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ بِإِسْنَادٍ آخَرَ. عَنْ أَبِي مُدِلَّةَ. عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. (١)

**ترجمه** . دابوهریره رضي الله عنه بیان دي فرمائي چې مونږ عرض اوکړو اې دالله رسوله ددي څه وجه ده چې کله مونږ تاسره موجود یو نو زمونږ په زړونو رقت او نرمي راخوره وي او دغه وخت کي مونږ ددنیا نه بیزاره یو او داخرت باره کي فکر مند یو لیکن کله چې مونږ ستا نه جدا شو او خپل بال بچ ته لاړ شو اوددوئ سره یوځاي شو نو مونږ خپلو زړونو لره بدل شوي وینو رسول الله صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل که تاسو همیشه په دغه کیفیت پاتي شئ په کوم کیفیت چې تاسو زما دخوا نه وتلي یئ نو فرشتي به تاسو سره ستاسو په کورونو کي ملاقاتونه کوي، او که چري تاسو ګناهونه اونکړئ نو الله تعالي به نور داسي مخلوق پیدا کړي چې ګناهونه به کوي او بیا به یي الله تعالي ګناهونه معاف کوي، ما عرض اوکړو اې دالله رسوله دا مخلوق دڅه څیز نه پیدا کړي شوي دي؟ رسول الله اوفرمائیل داوبو نه مونږ عرض اوکړو جنت دڅه څیز نه جوړ دي نو ویي فرمائیل یوه خښته یي دسپینو زرو ده او بله خښته یي دسرو زرو ده او خټه یي دمشکو او اذفر نه ده او کاڼړي ددي دملغرو او یاقوتو نه دي او خاوره یي دزعفرانو ده څوك چې دیته داخل شي هغه به عیش او ارام کوي او هیڅ کله به په تکلیف کي مبتلا نشي او په دي کي به همیشه اوسیږي اومرګ به ورته هیڅ کله نه راځي نه به یي جامي زړیږي او نه به یي ځواني تیریږي، بیا رسول الله صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل دري قسمه کسان داسي دي چې دعا یي نه رد کیږي اول عادل بادشاه دي دویم هغه روژه دار دي چې کله افطار کوي او دریم دهغه مظلوم دعا ده چې کله خیري اوکړي الله تعالي دده خیري دوریځو سره

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ١٢٩٠٥) وانظر مسند احمد (٢/٣٠٤، ٣٠٥)

خيژوي او دده دپاره داسمان دروازي پرانيزي او الله تعالي وائي زما دي پخپل عزت قسم وي زه به ضرور ستا مدد كوم اگر كه لږ وروسته وي
امام ترمذي وايي ددي حديث سند قوي نه دي او زما په نزد متصل هم نه دي داحديث په بل سند دابو مدله په واسطه هم مروي دي كوم چې دابوهريره رضي الله عنه نه او ابوهريره يې دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه نقل كوي.

***************

## ٣_باب مَا جَاءَ فِي صِفَةِ غُرَفِ الْجَنَّةِ

### دجنت دكمرو دحالت او وصف بيان

٢٥٢٧_حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ. حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ. عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ عَلِيٍّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِنَّ فِي الْجَنَّةِ لَغُرَفًا يُرَى ظُهُورُهَا مِنْ بُطُونِهَا، وَبُطُونُهَا مِنْ ظُهُورِهَا، فَقَامَ إِلَيْهِ أَعْرَابِيٌّ فَقَالَ: لِمَنْ هِيَ يَا رَسُولَ اللَّهِ ؟ قَالَ: " هِيَ لِمَنْ أَطَابَ الْكَلَامَ، وَأَطْعَمَ الطَّعَامَ، وَأَدَامَ الصِّيَامَ، وَصَلَّى لِلَّهِ بِاللَّيْلِ وَالنَّاسُ نِيَامٌ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، وَقَدْ تَكَلَّمَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ فِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ إِسْحَاقَ هَذَا مِنْ قِبَلِ حِفْظِهِ وَهُوَ كُوفِيٌّ، وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ إِسْحَاقَ الْقُرَشِيُّ مَدَنِيٌّ وَهُوَ أَثْبَتُ مِنْ هَذَا. [1]

**ترجمه** . دعلي رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په جنت كي داسي كوټي دي چې دننه حصه به يي دبهر نه او بهرنۍ حصه به يي د دننه نه ښكاري. دي وخت كي يو باندچي اودريدو او عرض يي اوكړو اي دالله رسوله دا دچا دپاره دي رسول الله اوفرمائيل دا به دهغه چا دپاره وي څوك چې ښانسته او نيكې خبري كوي او خلقو ته خوراكونه وركوي او په پابندۍ سره روژي نيسي او چې خلق كله اوده وي نو دي دالله تعالي درضا دپاره دغه وخت كي دشپې مونځونه كوي
امام ترمذي وايي داحديث غريب دي بعضي اهل علمو په عبدالرحمن بن اسحاق باندي دحفظ په اعتبار سره كلام كړي دي او عبدالرحمن دكوفي اوسيدونكي دي او كوم عبدالرحمن بن اسحاق چې قريشي دي هغه دمديني اوسيدونكي دي او كوفي والا عبدالرحمن زيات اثبت دي

***************

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ١٢٩٠٥) وانظر مسند احمد (٢/٣٠٢، ٣٠٥)

٢٥٢٨_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ. حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ الصَّمَدِ أَبُو عَبْدِ الصَّمَدِ الْعَمِّيُّ، عَنْ أَبِي عِمْرَانَ الْجَوْنِيِّ، عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ قَيْسٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " إِنَّ فِي الْجَنَّةِ جَنَّتَيْنِ آنِيَتُهُمَا وَمَا فِيهِمَا مِنْ فِضَّةٍ، وَجَنَّتَيْنِ آنِيَتُهُمَا وَمَا فِيهِمَا مِنْ ذَهَبٍ، وَمَا بَيْنَ الْقَوْمِ وَبَيْنَ أَنْ يَنْظُرُوا إِلَى رَبِّهِمْ إِلَّا رِدَاءُ الْكِبْرِيَاءِ عَلَى وَجْهِهِ فِي جَنَّةِ عَدْنٍ ". وَبِهَذَا الإِسْنَادِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " إِنَّ فِي الْجَنَّةِ لَخَيْمَةً مِنْ دُرَّةٍ مُجَوَّفَةٍ عَرْضُهَا سِتُّونَ مِيلًا فِي كُلِّ زَاوِيَةٍ مِنْهَا أَهْلٌ مَا يَرَوْنَ الآخَرِينَ يَطُوفُ عَلَيْهِمُ الْمُؤْمِنُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَأَبُو عِمْرَانَ الْجَوْنِيُّ اسْمُهُ: عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ حَبِيبٍ. وَأَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي مُوسَى، قَالَ أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ: لَا يُعْرَفُ اسْمُهُ. وَأَبُو مُوسَى الأَشْعَرِيُّ اسْمُهُ: عَبْدُ اللهِ بْنُ قَيْسٍ. وَأَبُو مَالِكٍ الأَشْعَرِيُّ اسْمُهُ: سَعْدُ بْنُ طَارِقِ بْنِ أَشْيَمَ. [1]

**ترجمه** دابوموسي اشعري عبدالله بن قيس رضي الله عنه بيان دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په جنت كي دوه داسي باغونه دي چي ددي لوښي او تمام سامانونه يي دسپينو زرو وي او دوه يكي داسي باغونه دي چي لوښي او تمام سامانونه يي دسرو زرو دي. په جنت عدن كي به دخلقو او ددوئ دپروردګار د ديدار په مينځ كي صرف څادر كبريايي حائل وي كوم چي دهغه په مخ باندي وي

او په همدي سند منقول دي چي په جنت كي به يوه داسي خيمه وي چي د شپيته ميله پلني ملغلري نه به جوړه شوي وي . چي د يو ګوټ والا به يي بل ګوټ والا لره نه ويني او دي ته به اهل ايمان خي راخي

امام ترمذي وايي دا حديث صحيح دى اود ابو عمران جوني نوم عبد الملك بن حبيب دى. د ابو بكر بن موسي باره كي امام احمد بن حنبل وايي دده نوم مشهورنه دى . اود ابو موسي اشعري نوم عبد الله بن قيس دى

***************

## ٤_باب مَا جَاءَ فِي صِفَةِ دَرَجَاتِ الْجَنَّةِ

### د جنت د اوصافو او درجو بيان

---

[1] _ اورده البخاري في الجامع الصحيح تفسير سورة الرحمن ١(٤٨٠٩) و ٢(٤٨٨٠) . والتوحيد ٢٤(٧٤٤٤) صحيح مسلم /الإيمان ٨٠(١٨٠) . سنن ابن ماجه/المقدمة ١٣(١٨٦) (تحفة الأشراف : ٩١٣٥) و مسند احمد (٤١١/٤، ٤١٦) . وسنن الدارمي/الرقاق ١٠١(٢٨٦٣)

٢٥٢٩ـ حَدَّثَنَا عَبَّاسٌ الْعَنْبَرِيُّ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا شَرِيكٌ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جُحَادَةَ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "فِي الْجَنَّةِ مِائَةُ دَرَجَةٍ مَا بَيْنَ كُلِّ دَرَجَتَيْنِ مِائَةُ عَامٍ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (1)

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په جنت کي سل درجي دي او دهري يوي درجي نه تر بلي درجي پوري په مينځ کي دسلو کالو دمزل په مقدار فاصله ده

امام ترمذي وايي داحديث حسن غريب دي.

****************

٢٥٣٠ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، وَأَحْمَدُ بْنُ عَبْدَةَ الضَّبِّيُّ البصري، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "مَنْ صَامَ رَمَضَانَ وَصَلَّى الصَّلَوَاتِ وَحَجَّ الْبَيْتَ لَا أَدْرِي أَذَكَرَ الزَّكَاةَ أَمْ لَا إِلَّا كَانَ حَقًّا عَلَى اللَّهِ أَنْ يَغْفِرَ لَهُ إِنْ هَاجَرَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَوْ مَكَثَ بِأَرْضِهِ الَّتِي وُلِدَ بِهَا". قَالَ مُعَاذٌ: أَلَا أُخْبِرُ بِهَذَا النَّاسَ؟ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "ذَرِ النَّاسَ يَعْمَلُونَ، فَإِنَّ فِي الْجَنَّةِ مِائَةَ دَرَجَةٍ مَا بَيْنَ كُلِّ دَرَجَتَيْنِ كَمَا بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ، وَالْفِرْدَوْسُ أَعْلَى الْجَنَّةِ وَأَوْسَطُهَا، وَفَوْقَ ذَلِكَ عَرْشُ الرَّحْمَنِ، وَمِنْهَا تُفَجَّرُ أَنْهَارُ الْجَنَّةِ فَإِذَا سَأَلْتُمُ اللَّهَ فَسَلُوهُ الْفِرْدَوْسَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَكَذَا رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ عَنْ هِشَامِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ. وَهَذَا عِنْدِي أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ هَمَّامٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ، وَعَطَاءٌ لَمْ يُدْرِكْ مُعَاذَ بْنَ جَبَلٍ، وَمُعَاذٌ قَدِيمُ الْمَوْتِ مَاتَ فِي خِلَافَةِ عُمَرَ. (2)

**ترجمه** دمعاذ بن جبل رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچې درمضان روژې اونيولي او مونځونه يي اوکړل او حج يي اوکړو ،عطاء بن يسار وائي ماته معلومه نه ده چې معاذ زکوة ذکر کړو او کنه، نو په الله تعالي باندي دا حقه ده چې ده لره اوبخي اګر که دي دالله په لاره کي هجرت اوکړي او يا پخپل پيدائشي وطن کي پاتي شي معاذ اووئيل ايا زه خلقو ته ددي خبر ورنکړم؟ رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل خلق پريږده

---

1 ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٤٢٠١)

2 ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٤٢٠١)

چې عمل کوي څکه چې په جنت کې سل درجې دي او دهر دوه درجو په مینځ کې دومره فاصله ده څومره چې دزمکې او اسمان مینځ کې ده او فردوس دجنت اعلي او دټولو نه اوچته درجه ده او ددې دپاسه عرش درحمان دي او هم ددینه دجنت نهرونه بهیږي لهذا کله چې تاسو دالله نه جنت غواړئ نو جنت الفردوس ورنه اوغواړئ
امام ترمذي وايي دارنګې دا حديث عن هشام بن سعد عن زيد بن اسلم عن عطاء بن يسار عن معاذ بن جبل سند سره هم مروي دي او دا زما په نزد دهمام دهغه حديث نه زيات صحيح دي کوم چې هغه عن زيد بن اسلم عن عطاء بن يسار عن عبادة بن الصامت سند سره نقل کړي دي کوم چې روسته راروان دي څکه چې عطاء دمعاذ بن جبل سره ملاقات نه دي شوي يعني ملاقات يې ورسره ثابت نه دي او معاذ بن جبل دعباده بن صامت نه مخکې دعمر رضي الله عنه دخلافت په دور کې وفات شوي دي

****************

٢٥٣١_حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، أَخْبَرَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا هَمَّامٌ، حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ أَسْلَمَ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " فِي الْجَنَّةِ مِائَةُ دَرَجَةٍ مَا بَيْنَ كُلِّ دَرَجَتَيْنِ كَمَا بَيْنَ الْأَرْضِ وَالسَّمَاءِ، وَالْفِرْدَوْسُ أَعْلَاهَا دَرَجَةً وَمِنْهَا تُفَجَّرُ أَنْهَارُ الْجَنَّةِ الْأَرْبَعَةُ، وَمِنْ فَوْقِهَا يَكُونُ الْعَرْشُ، فَإِذَا سَأَلْتُمُ اللَّهَ فَسَلُوهُ الْفِرْدَوْسَ ".
حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ نَحْوَهُ.[1]

**ترجمه** . دعباده بن الصامت رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په جنت کې سل درجې دي او دهر دوه درجو مينځ کې دومره فاصله ده څومره چې دزمکې او اسمان مينځ کې ده او د درجې په اعتبار فردوس اعلي جنت دي او هم ددينه دجنت نهرونه بهيږي او ددې دپاسه عرش واقع دي لهذا کله چې تاسو دالله نه جنت غواړئ نو جنت الفردوس ورنه اوغواړئ

****************

٢٥٣٢_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا ابْنُ لَهِيعَةَ، عَنْ دَرَّاجٍ أَبِي السَّمْحِ، عَنْ أَبِي الْهَيْثَمِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " إِنَّ فِي الْجَنَّةِ مِائَةَ دَرَجَةٍ لَوْ أَنَّ الْعَالَمِينَ اجْتَمَعُوا فِي إِحْدَاهُنَّ

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ٥١٠٢)

لَوَسِعَتْهُمْ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ. (1)

**ترجمه** دابوسعيد خدري رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په جنت کي سل درجي دي که چري دتمام جهان ټول خلق په يوه درجه کي راجمع شي نو همدا به ددوئ ټولو دپاره کافي وي
امام ترمذي وايي داحديث غريب دي

****************

## ٥_باب فِي صِفَةِ نِسَاءِ أَهْلِ الْجَنَّةِ
### دجنت دښځو بيان

٢٥٣٣_حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، حَدَّثَنَا فَرْوَةُ بْنُ أَبِي الْمَغْرَاءِ، أَخْبَرَنَا عَبِيدَةُ بْنُ حُمَيْدٍ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ السَّائِبِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مَيْمُونٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " إِنَّ الْمَرْأَةَ مِنْ نِسَاءِ أَهْلِ الْجَنَّةِ لَيُرَى بَيَاضُ سَاقِهَا مِنْ وَرَاءِ سَبْعِينَ حُلَّةً حَتَّى يُرَى مُخُّهَا، وَذَلِكَ بِأَنَّ اللَّهَ يَقُولُ: كَأَنَّهُنَّ الْيَاقُوتُ وَالْمَرْجَانُ (الرحمن : ٥٨) فَأَمَّا الْيَاقُوتُ فَإِنَّهُ حَجَرٌ لَوْ أَدْخَلْتَ فِيهِ سِلْكًا ثُمَّ اسْتَصْفَيْتَهُ لَأُرِيتَهُ مِنْ وَرَائِهِ ". (2)

**ترجمه** دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دجنت په ښځو کي دهري ښځي دپنډۍ سپين والي به داويا جوړو نه بهر ښکاري تردي پوري چې ماذغه به يي هم ښکاري همدا وجه ده چې الله تعالي فرمائيلي دي "كانهن الياقوت والمرجان" يعني ته به واني ګويا کي دوئ ياقوت او ملغلري دي ياقوت يو داسي کانړي دي که تاسو په دي کي تار واچوئ او بيا يي پاك کړئ نو تار به تاسو ته دبهر نه ښکاري
او په همدي سند عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه هم ددي هم معني روايت مروي دي

****************

٢٥٣٤_حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا عَبِيدَةُ بْنُ حُمَيْدٍ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ السَّائِبِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مَيْمُونٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ. (3)

1 _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف ٤٠٥٣)

2 _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ٩٣٨٨)

3 _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ٩٣٨٨)

**ترجمه** او په همدي سند هم دعبدالله بن مسعود په واسطه د نبي کريم صلي الله عليه وسلم نه دماقبل هم معني روايت مروي دي
د امام ترمذي قول دی او دا روايت ابوالاحوص مرفوع نه دي بيان کړي او دا روايت دعبيده بن حميد د روايت نه زيات صحيح دي همدا رنګي جرير او نورو راويانو دا حديث دعطاء بن سائب نه غير مرفوع نقل کړي دي

***************

حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو الأَحْوَصِ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ السَّائِبِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مَيْمُونٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، نَحْوَهُ بِمَعْنَاهُ وَلَمْ يَرْفَعْهُ، وَهَذَا أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ عَبِيدَةَ بْنِ حُمَيْدٍ، وَهَكَذَا رَوَى جَرِيرٌ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ السَّائِبِ وَلَمْ يَرْفَعُوهُ. حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ السَّائِبِ نَحْوَ حَدِيثِ أَبِي الأَحْوَصِ، وَلَمْ يَرْفَعْهُ أَصْحَابُ عَطَاءٍ وَهَذَا أَصَحُّ. ([1])

**ترجمه** عمرو بن ميمون هم دعبدالله بن مسعود نه ددي هم معني روايت نقل کړي دي او مرفوع يې نه دي بيان کړي مګر دا روايت د عبيده بن حميد دروايت نه زيات صحيح دي جرير او نورو راويانو هم دا حديث دعطاء بن سائب نه نقل کړي دي او مرفوع يې نه دي ذکر کړي جرير دعطاء بن سائب نه دابوالاحوص پشان روايت نقل کړي دي او مرفوع يې نه دي بيان کړي او دا زيات صحيح دي

***************

٢٥٣٥ـ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ وَكِيعٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنْ فُضَيْلِ بْنِ مَرْزُوقٍ، عَنْ عَطِيَّةَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " إِنَّ أَوَّلَ زُمْرَةٍ يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ضَوْءُ وُجُوهِهِمْ عَلَى مِثْلِ ضَوْءِ الْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ، وَالزُّمْرَةُ الثَّانِيَةُ عَلَى مِثْلِ أَحْسَنِ كَوْكَبٍ دُرِّيٍّ فِي السَّمَاءِ، لِكُلِّ رَجُلٍ مِنْهُمْ زَوْجَتَانِ عَلَى كُلِّ زَوْجَةٍ سَبْعُونَ حُلَّةً يُرَى مُخُّ سَاقِهَا مِنْ وَرَائِهَا ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([2])

**ترجمه** دابو سعيد خدري رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي اولنۍ ډله چې به جنت ته ننوزي دهغوئ مخونه به د قيامت په ورځ لکه

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ٩٢٨٨)

[2] ـ انظر حديث رقم ٢٥٢٢

دخوارلسمی سپوږمۍ رڼا کوي. وربسی به دډیر پرقیدونکي ستوري په شان وي. دهر یو جنتي به دوه بیبیانی وي او هري بي بي به اویا جوړي اغوستلي وي. دومره ښایسته او صفا بدن والاچې دپنډۍ اډوکي کې به یې دبهر نه مازغه ښکاري
امام ترمذي وايي دا حدیث حسن صحیح دی.
**لغات** الذهب مصدر دي معني سره زر جمع يي اذهاب اوذهوب او ذهبان راځي
**تشریح**: دا جنتیان به نه واړه بول کوي نه لوی نه به توکانړی توکي او نه به پوزه سونړي دهغوی ګومنزی به دسروزرو وي خوله به يې دمشکو په شان خوشبويه وي دعودو خوشبويه لوګی به ورته کيږي دغټو سترګو والاښايسته حوری به یې بيبياني وي دجنتيانو ټولو ځواني به يو شان وي دخپل پلار ادم عليه السلام په شان به شپيته ذراعه څنګلی دنګ وي.
"اول زمرة يدخلون الجنة" دلته ددي خبري بيان دی چې جنت ته دداخليدو په وخت کې به دجنتي شکل او صورت څنګه وي ددي جواب دادی چې داعمالو په مناسبت سره به ددوی خکلا وي چې بعضي به دستورو پان وي او بعضي به دسپوږمۍ پشان وي خو ددي په خلاف ددوزخيانو مخونه به تور وي.
مجامرهم الالوة عود الطيب : ددوی په نغرو کې به دسوزولو دپاره خوشبودار لرګي وي ددنيا دنغرو خشاك لرګي او کويله وغيره وي مګر دجنت خشاك به داسي لرګي وي چې خوشبودار او قيمتي به وي.
اواجهم الحورالعين:حور جمع دحوراء ده او حوره هغه ښائسته ښځي ته وئيلی شي چې دسترګو سپين والی يي زيات وي او توروالی يي کم وي او سترګي يي غټي وي.
سوال مخکې د دوه اويا حورو ذکر شوی دی چې جنتي ته به ملاويږي او دلته د دوو ذکر راغی.
جواب په پورتني حديث کې دجنتيانو دحورو تعداد نه دی بيان شوی دلته صرف دومره بيان شوي دي چې دجنتانو په حورو کې به دوه صفات وي يعني که هغوی زمکي ته راکوزي شي نو دزمکي نه تراسمانه پوري به يو برق اوشي او دهغوی صرف يوه لوپټه ددنيا او مافيها نه قيمتي ده.

***************

٢٥٣٥_حَدَّثَنَا العَبَّاسُ بْنُ مُحَمَّدٍ الدُّورِيُّ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُوسَى، أَخْبَرَنَا شَيْبَانُ، عَنْ فِرَاسٍ، عَنْ عَطِيَّةَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الخُدْرِيِّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "أَوَّلُ زُمْرَةٍ تَدْخُلُ الجَنَّةَ عَلَى صُورَةِ القَمَرِ لَيْلَةَ البَدْرِ، وَالثَّانِيَةُ عَلَى لَوْنِ أَحْسَنِ كَوْكَبٍ دُرِّيٍّ فِي السَّمَاءِ، لِكُلِّ

رَجُلٍ مِنْهُمْ زَوْجَتَانِ عَلَى كُلِّ زَوْجَةٍ سَبْعُونَ حُلَّةً يَبْدُو مُخُّ سَاقِهَا مِنْ وَرَائِهَا ". قَالَ ابو عيسى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([1])

**ترجمه** دابو سعيد خدري رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي اولنۍ ډله چې به جنت ته ننوزي دهغوئ مخونه به د قيامت په ورځ لکه دځوارلسمی سپوږمۍ رڼا کوي، ورپسی به دډير پرقيدونکي ستوري په شان وي، دهر يو جنتي به دوه بيبيانی وي او هري بي بي به اويا جوړي اغوستلي وي، دومره ښايسته او صفا بدن واله چې دپنډۍ اډوکي کې به يې د ورانديي نه مازغه ښکاري.

امام ترمذي وايي: دا حديث حسن صحيح دی

**تشريح**: سابقه باب کي تشريح تيره شوه.

***************

## ٦ـ باب مَا جَاءَ فِي صِفَةِ جِمَاعِ أَهْلِ الْجَنَّةِ

### دجنتيانو د جماع د حالت او کيفيت بيان

٢٥٣٦ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، وَمَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ الطَّيَالِسِيُّ، عَنْ عِمْرَانَ الْقَطَّانِ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " يُعْطَى الْمُؤْمِنُ فِي الْجَنَّةِ قُوَّةَ كَذَا وَكَذَا مِنَ الْجِمَاعِ "، قِيلَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ أَوَ يُطِيقُ ذَلِكَ؟ قَالَ: " يُعْطَى قُوَّةَ مِائَةٍ ". وَفِي الْبَابِ عَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ. لَا نَعْرِفُهُ مِنْ حَدِيثِ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ عِمْرَانَ الْقَطَّانِ. ([2])

**ترجمه** انس رضي الله عنه د نبي کريم صلي الله عليه وسلم نه روايت نقل کوي فرماني چي هر مومن ته به په جنت د جماع دومره دومره طاقت ورکړی شي، چا عرض وکړو اي رسول الله دوئ به دومره طاقتور وي ، رسول الله اوفرمائيل يو يو کس ته به د سلو کسانو طاقت ورکړی شي،

امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح غريبب دی او مونږ يي صرف دقتاده په سند د انس په واسطه د عمران القطان په روايت پيژنو.

[1] ـ انظر حديث رقم ٢٥٢٢

[2] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ١٣٢٢)

***************

## ٧_باب مَا جَاءَ فِي صِفَةِ أَهْلِ الْجَنَّةِ

### دجنتيانوداوصافوبيان

٢٥٣٧_حَدَّثَنَا سُوَيْدُ بْنُ نَصْرٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ هَمَّامِ بْنِ مُنَبِّهٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " أَوَّلُ زُمْرَةٍ تَلِجُ الْجَنَّةَ صُورَتُهُمْ عَلَى صُورَةِ الْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ لَا يَبْصُقُونَ فِيهَا وَلَا يَمْتَخِطُونَ، وَلَا يَتَغَوَّطُونَ. آنِيَتُهُمْ فِيهَا الذَّهَبُ، وَأَمْشَاطُهُمْ مِنَ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ، وَمَجَامِرُهُمْ مِنَ الْأَلُوَّةِ، وَرَشْحُهُمُ الْمِسْكُ، وَلِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمْ زَوْجَتَانِ يُرَى مُخُّ سُوقِهِمَا مِنْ وَرَاءِ اللَّحْمِ مِنَ الْحُسْنِ، لَا اخْتِلَافَ بَيْنَهُمْ وَلَا تَبَاغُضَ، قُلُوبُهُمْ قَلْبُ رَجُلٍ وَاحِدٍ يُسَبِّحُونَ اللهَ بُكْرَةً وَعَشِيًّا ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ. وَالْأَلُوَّةُ هُوَ الْعُودُ.[1]

**ترجمه** - دابوهريره رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي اولني دله چې جنت ته داخل شي ددوئ مخونه به دڅوارلسمي شپي دسپوږمۍ پشان وي نه به جنتيان به دوئ كي لاړي توكي او نه به پوزه پاكوي او نه به دوئ په جنت كي اودس ماتوي په جنت كي به ددوئ لوښي دسرو زرو وي او ددوئ بنګړي به دسرو زرو او سپينو زرو وي او ددوئ نغري به دعود لرګي وي او خوله به يي دمشكو وي په دوئ كي به دهر بنده دپاره ،كم از كم، دود دوه بيبياني وي دښانست په وجه به ددوئ په پنډو كي ماذغه دغوښي نه بهر ښكاري ددوئ په مينځ كي به هيڅ اختلاف نه وي او نه به ددوئ په مينځ كي عداوت او دوشمني وي ددوئ زړونه به ديو كس دزړه پشان وي سحر او مابنام به دالله تسبيح وائي
امام ترمذي وايي داحديث صحيح دي او "الالوة" دعود لرګي ته ونيلي شي

***************

٢٥٣٨_حَدَّثَنَا سُوَيْدُ بْنُ نَصْرٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، أَخْبَرَنَا ابْنُ لَهِيعَةَ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ دَاوُدَ بْنِ عَامِرِ بْنِ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " لَوْ أَنَّ مَا يُقِلُّ ظُفُرٌ مِمَّا فِي الْجَنَّةِ بَدَا لَتَزَخْرَفَتْ لَهُ مَا بَيْنَ خَوَافِقِ السَّمَوَاتِ وَالْأَرْضِ،

[1] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /بدء الخلق ٨ (٣٢٤٥، ٣٢٤٦، ٣٢٥٤) و أحاديث الأنبياء ١ (٣٣٢٧) . صحيح مسلم /الجنة ٦ و ٤ (٢٨٣٤/١٤، ١٧) . سنن ابن ماجه/الزهد ٣٩ (٤٣٣٣) (تحفة الأشراف : ١٤٦٨٧)

وَلَوْ أَنَّ رَجُلًا مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ اطَّلَعَ فَبَدَا أَسَاوِرُهُ لَطَمَسَ ضَوْءَ الشَّمْسِ كَمَا تَطْمِسُ الشَّمْسُ ضَوْءَ النُّجُومِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ بِهَذَا الْإِسْنَادِ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ ابْنِ لَهِيعَةَ. وَقَدْ رَوَى يَحْيَى بْنُ أَيُّوبَ هَذَا الْحَدِيثَ عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، وَقَالَ: عَنْ عُمَرَ بْنِ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. (1)

**ترجمه** دسعد بن ابي وقاص رضي الله عنه نه روايت دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي كه چري دنوك په مقدار په دنيا كي دجنت كوم څيز ظاهر شي نو هغه به دزمكي او اسمان كناري اوبرقوي او كه دجنت كوم بنده راشي او دهغه يو بنگړي ظاهر شي نو هغه به د نمر رڼا داسي ختمه كړي څنگه چي نمر دستورو رڼا ختموي

امام ترمذي وايي. داحديث غريب دي مونږ دا صرف دابن لهيعه په سند پيژنو. يحي بن ايوب دا حديث ديزيد بن ابي حبيب په روايت نقل كړي دي او سند يي داسي بيان كړي دي عن عمر بن سعد بن ابي وقاص عن النبي صلي الله عليه وسلم

***************

## ٨_باب مَا جَاءَ فِي صِفَةِ ثِيَابِ أَهْلِ الْجَنَّةِ

### دجنتيانو دجامو بيان

٢٥٣٩_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، وَأَبُو هِشَامٍ الرِّفَاعِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ هِشَامٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَامِرٍ الْأَحْوَلِ، عَنْ شَهْرِ بْنِ حَوْشَبٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " أَهْلُ الْجَنَّةِ جُرْدٌ مُرْدٌ كُحْلٌ لَا يَفْنَى شَبَابُهُمْ وَلَا تَبْلَى ثِيَابُهُمْ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. (2)

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي جنتيان به بغير دويختو امرد او تورو سترگو والا وي نه به يي خواني ختميږي او نه به يي جامي زړيږي

امام ترمذي وايي داحديث حسن غريب دي

***************

---

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٣٨٤٨)

[2] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٣٤٩٩)

٢٥٤٠_حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا رِشْدِينُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ الحَارِثِ، عَنْ دَرَّاجٍ أَبِي السَّمْحِ، عَنْ أَبِي الْهَيْثَمِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي قَوْلِهِ: وَفُرُشٍ مَرْفُوعَةٍ سورة الواقعة :٣٤، قَالَ: "ارْتِفَاعُهَا لَكَمَا بَيْنَ السَّمَاءِ وَالأَرْضِ مَسِيرَةَ خَمْسِ مِائَةِ سَنَةٍ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ رِشْدِينَ بْنِ سَعْدٍ، وَقَالَ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ فِي تَفْسِيرِ هَذَا الحَدِيثِ: إِنَّ مَعْنَاهُ الفُرُشَ فِي الدَّرَجَاتِ وَبَيْنَ الدَّرَجَاتِ كَمَا بَيْنَ السَّمَاءِ وَالأَرْضِ. (١)

**ترجمه** دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چې نبي كريم صلي الله عليه وسلم دالله تعالي دقول "وفرش مرفوعة" داسي تفسير بيان كړو دجنت دفرشونو لوړوالي به دومره وي څومره چې دزمكي او اسمان په مينځ كي فاصله ده يعني دپنځه سوه كالو په مصافه.

امام ترمذي وايي: داحديث غريب دي او مونږ دا صرف د رشدين بن سعد په روايت پيژنو بعضي اهل علمو ددي حديث دتفسير باره كي ونيلي دي ددي مفهوم دادي چې دجنت په فرشونو كي به درجي وي او ددي درجو مينځ كي به دومره فاصله وي څومره چې دزمكي او اسمان مينځ كي ده.

***************

## ٩_باب مَا جَاءَ فِي صِفَةِ ثِمَارِ أَهْلِ الْجَنَّةِ

### دجنت دميوو بيان

٢٥٤١_حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا يُونُسُ بْنُ بُكَيْرٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ يَحْيَى بْنِ عَبَّادِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ، قَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "وَذُكِرَ لَهُ سِدْرَةُ الْمُنْتَهَى، قَالَ: يَسِيرُ الرَّاكِبُ فِي ظِلِّ الفَنَنِ مِنْهَا مِائَةَ سَنَةٍ أَوْ يَسْتَظِلُّ بِظِلِّهَا مِائَةُ رَاكِبٍ شَكَّ يَحْيَى فِيهَا فِرَاشُ الذَّهَبِ كَأَنَّ ثَمَرَهَا القِلَالُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ. (٢)

**ترجمه** . داسماء بنت ابي بكر رضي الله عنهما بيان دي فرمائي چې مادرسول الله صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي دي او هغه وخت كي ورته دسدرة المنتهي ذكر شوي دي رسول الله

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٤٠٥٤)

[2] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٥٧١٦)

اوونيل ددي دخابنونو په سورې کي به په اس سور بنده سلو کالو پورې مزل کوي، او يا به ددې په سورې کي اس سور بنده دسلو کالو پورې وي ،دحديث دراوي ديحي دطرفه شك دى. په دې کي داوده کيدو دپاره بستري دي او ميوي يې دمنګو پشان ،لوي، دي.
امام ترمذي وايي داحديث صحيح غريب دى

*****************

## ١٠ـ بَابُ مَا جَاءَ فِي صِفَةِ طَيْرِ الْجَنَّةِ

### دجنت دمرغوداوصافو بيان

٢٥٤٢ـ حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُسْلِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: سُئِلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا الْكَوْثَرُ قَالَ: "ذَاكَ نَهْرٌ أَعْطَانِيهِ اللَّهُ، يَعْنِي فِي الْجَنَّةِ، أَشَدُّ بَيَاضًا مِنَ اللَّبَنِ، وَأَحْلَى مِنَ الْعَسَلِ، فِيهَا طَيْرٌ أَعْنَاقُهَا كَأَعْنَاقِ الْجُزُرِ، قَالَ عُمَرُ: إِنَّ هَذِهِ لَنَاعِمَةٌ، قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَكَلَتُهَا أَحْسَنُ مِنْهَا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَمُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بنِ مُسْلِمٍ هُوَ ابْنُ أَخِي ابْنِ شِهَابٍ الزُّهْرِيِّ، وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُسْلِمٍ قَدْ رَوَى عَنِ ابْنِ عُمَرَ، وَأَنَسِ بْنِ مَالِكٍ. [1]

**ترجمه** دانس بن مالك رضي الله عنه بيان دى فرمائي چې درسول الله صلي الله عليه وسلم نه مې تپوس اوکړو چې کوثر څه څيز دى؟ رسول الله اوفرمائيل دا يو نهر دى چې الله تعالي مونږ ته په جنت کي راکړى دى، ددې اوبه دشودو نه زياتي سپيني او دشهدو نه زياتي خوږي دي په دې کي داسي مرغئ دي چې غړئ به يې داوښانو دغړو پشان وي، عمر رضي الله عنه اوونيل دا خو واقعي دنعمت دجملي نه دي رسول الله اوفرمائيل ددې خوړونکي به ددوئ نه په زيات نعمت کي وي.
امام ترمذي وايي داحديث حسن غريب دى، محمد بن عبدالله بن مسلم دابن شهاب زهري وراره دى. عبدالله بن مسلم دابن عمر او انس بن مالك رضي الله عنهم نه احاديث نقل کړي دي.

*****************

## ١١ـ بَابُ مَا جَاءَ فِي صِفَةِ خَيْلِ الْجَنَّةِ

---

[1] ــ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٩٤٥)

## دجنت داسونو داوصافو بيان

٢٥٤٣_حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، قَالَ: أَخْبَرَنَا عَاصِمُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا الْمَسْعُودِيُّ، عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ مَرْثَدٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ رَجُلًا سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ، هَلْ فِي الْجَنَّةِ مِنْ خَيْلٍ ؟ قَالَ: " إِنِ اللهُ أَدْخَلَكَ الْجَنَّةَ فَلَا تَشَاءُ أَنْ تُحْمَلَ فِيهَا عَلَى فَرَسٍ مِنْ يَاقُوتَةٍ حَمْرَاءَ يَطِيرُ بِكَ فِي الْجَنَّةِ حَيْثُ شِئْتَ إِلا فَعَلْتَ ". قَالَ: وَسَأَلَهُ رَجُلٌ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ، هَلْ فِي الْجَنَّةِ مِنْ إِبِلٍ ؟ قَالَ: فَلَمْ يَقُلْ لَهُ مِثْلَ مَا قَالَ لِصَاحِبِهِ، قَالَ: إِنْ يُدْخِلْكَ اللهُ الْجَنَّةَ يَكُنْ لَكَ فِيهَا مَا اشْتَهَتْ نَفْسُكَ وَلَذَّتْ عَيْنُكَ ".[1]

**ترجمه** دبريده رضي الله عنه نه مروي دي چې يو کس دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه دتپوس کولو په حال کي عرض اوکړو اي دالله رسوله ايا په جنت کي به اسونه وي؟ رسول الله اوفرمائيل که الله تعالي تاسو جنت ته داخل کړئ نو ستاسو دخواهش مطابق به تاسو دسرو ياقوتو په اسونو سورلي کوئ او تاسو چې هر چرته تلل غواړئ دوئ به مو هلته په هوا رسوي. يو کس تپوس اوکړو اي دالله رسوله ايا په جنت کي به اوبنان وي؟ بريده وائي چې رسول الله دي کس ته دمخکني کس پشان جواب ورنکړو او بيا يي اوفرمائيل که الله تعالي تاسو جنت ته داخل کړئ په دي کي به ستاسو دپاره هر هغه څيز موجود وي دکوم چې تاسوخواهش لرئ او په کوم چې ستاسو سترګي يخيږي.

****************

حَدَّثَنَا سُوَيْدُ بْنُ نَصْرٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ مَرْثَدٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ سَابِطٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ بِمَعْنَاهُ، وَهَذَا أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ الْمَسْعُودِيِّ.[2]

**ترجمه** علقمه بن مرثد دعبدالرحمن بن ثابت په واسطه دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه دماقبل هم معني روايت نقل کړي دي او دا روايت دمسعودي درروايت نه زيات صحيح دي

****************

٢٥٤٤_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيل بْنِ سَمُرَةَ الأَحْمَسِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنْ وَاصِلٍ هُوَ ابْنُ

[1] تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٩٣٩)

[2] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٩٣٩)

السَّائِبِ، عَنْ أَبِي سَوْرَةَ، عَنْ أَبِي أَيُّوبَ، قَالَ: أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَعْرَابِيٌّ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنِّي أُحِبُّ الْخَيْلَ أَفِي الْجَنَّةِ خَيْلٌ؟ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنْ أُدْخِلْتَ الْجَنَّةَ أُتِيتَ بِفَرَسٍ مِنْ يَاقُوتَةٍ لَهُ جَنَاحَانِ فَحُمِلْتَ عَلَيْهِ ثُمَّ طَارَ بِكَ حَيْثُ شِئْتَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ لَيْسَ إِسْنَادُهُ بِالْقَوِيِّ، وَلَا نَعْرِفُهُ مِنْ حَدِيثِ أَبِي أَيُّوبَ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَأَبُو سَوْرَةَ هُوَ ابْنُ أَخِي أَبِي أَيُّوبَ يُضَعَّفُ فِي الْحَدِيثِ، ضَعَّفَهُ يَحْيَى بْنُ مَعِينٍ جِدًّا، قَالَ: وَسَمِعْت مُحَمَّدَ بْنَ إِسْمَاعِيلَ يَقُولُ: أَبُو سَوْرَةَ هَذَا مُنْكَرُ الْحَدِيثِ يَرْوِي مَنَاكِيرَ عَنْ أَبِي أَيُّوبَ لَا يُتَابَعُ عَلَيْهَا. (1)

**ترجمه** دابو ايوب انصاري رضي الله عنه بيان دي فرمائي چې دنبي كريم صلي الله عليه وسلم په وړاندي يو بانډچي دراتلو نه پس عرض اوكړو اي دالله رسوله زما خو اسونه ډير خوښ دي ايا په جنت كي به اسونه وي؟ رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل كه ته جنت ته داخل كړي شوي نو تاته به دياقوت نه جوړ اس دركولي شي ددي به دوه وزري وي او ته به ورباندي سورلي كوي او بياچې ته چرته تلل غواړي دا به دي په هوا رسوي.

امام ترمذي وايي ددي حديث سند څه خاص دقوت حامل نه دي، مونږ دابو ايوب روايت صرف په همدي سند پيژنو، او ابو سوره د ابو ايوب وراره دي او په باب دحديث كي ضعيف دي يحي بن معين دده ډير زيات تضعيف كړي دي ما دامام بخاري نه اوريدلي دي چې ابو سوره منكرالحديث دي او دي دابوايوب رضي الله عنه نه ډير منكر احاديث نقل كوي چې هيچا يي متابعت نه دي كړي.

*****************

## ١٢_ باب مَا جَاءَ فِي سِنِّ أَهْلِ الْجَنَّةِ

### دجنتيا نو دعمرونو بيان

٢٥٤٥_ حَدَّثَنَا أَبُو هُرَيْرَةَ مُحَمَّدُ بْنُ فِرَاسٍ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، حَدَّثَنَا عِمْرَانُ أَبُو الْعَوَّامِ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ شَهْرِ بْنِ حَوْشَبٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ غَنْمٍ، عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "يَدْخُلُ أَهْلُ الْجَنَّةِ الْجَنَّةَ جُرْدًا مُرْدًا مُكَحَّلِينَ أَبْنَاءَ ثَلَاثِينَ أَوْ ثَلَاثٍ وَثَلَاثِينَ سَنَةً". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ وَبَعْضُ أَصْحَابِ قَتَادَةَ رَوَوْا هَذَا عَنْ قَتَادَةَ مُرْسَلًا

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٣٤٩٦)

وَلَمْ يُسْنِدُوهُ. [1]

**ترجمه** دمعاذ بن جبل رضي الله عنه نه مروي دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي جنتيان به جنت ته په داسي حال كي داخليږي چې په بدن به يي ويخته نه وي امرد به وي او تور كړي شوو ستركو والابه وي او د ديرشتو يا د دري ديرشتو كالو په عمر كي به وي

امام ترمذي وايي داحديث حسن غريب دي، دقتاده بعضي شاګردانو دا روايت دقتاده نه مرسل نقل كړي دي او مسند يي نه دي بيان كړي .

*****************

## ١٣_باب مَا جَاءَ فِي صَفِّ أَهْلِ الْجَنَّةِ

### دجنتيانو داوصافو بيان

٢٥٤٦_حَدَّثَنَا حُسَيْنُ بْنُ يَزِيدَ الطَّحَّانُ الْكُوفِيُّ. حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُضَيْلٍ، عَنْ ضِرَارِ بْنِ مُرَّةَ، عَنْ مُحَارِبِ بْنِ دِثَارٍ، عَنِ ابْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " " أَهْلُ الْجَنَّةِ عِشْرُونَ وَمِائَةُ صَفٍّ، ثَمَانُونَ مِنْهَا مِنْ هَذِهِ الأُمَّةِ وَأَرْبَعُونَ مِنْ سَائِرِ الأُمَمِ " ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ مَرْثَدٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ بُرَيْدَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرْسَلًا، وَمِنْهُمْ مَنْ قَالَ: عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، وَحَدِيثُ أَبِي سِنَانٍ، عَنْ مُحَارِبِ بْنِ دِثَارٍ حَسَنٌ، وَأَبُو سِنَانٍ اسْمُهُ: ضِرَارُ بْنُ مُرَّةَ، وَأَبُو سِنَانٍ الشَّيْبَانِيُّ اسْمُهُ: سَعِيدُ بْنُ سِنَانٍ، وَهُوَ بَصْرِيٌّ، وَأَبُو سِنَانٍ الشَّامِيُّ اسْمُهُ: عِيسَى بْنُ سِنَانٍ هُوَ الْقَسْمَلِيُّ. [2]

**ترجمه** دبريده رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دجنتيانو به يو سل او شل صفونه وي په دي كي به اتيا صفونه ددي امت وي او څلويښت صفونه به دنورولمتونو وي.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن دي دا حديث عن علقمه بن مرثد عن سليمان بن بريده عن النبي صلي الله عليه وسلم سند سره مرسل مروي دي بعضي راويانو ددي سند داسي بيان كړي دي عن سليمان بن بريده عن ابيه، او دابوسنان كوم حديث چې دمحارب بن دثار په واسطه

---

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١١٣٢٦) . و مسند احمد (٢٣٢/٥، ٢٤٠، ٢٤٣) . و حديث رقم ٢٥٢٩

[2] _ سنن ابن ماجه/الزهد ٣٤ (٤٢٨٩) (تحفة الأشراف: ١٩٢٨)

مروي دي حسن دي، او دابوسنان نوم ضرار بن مره دي، او دابوسنان شيباني نوم سعيد بن سنان دي او دبصري اوسيدونكي دي او دشام والا ابو سنان نوم عيسي بن سنان دي او دا قسملي دي.

***************

٢٥٤٧ــ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، أَنْبَأَنَا شُعْبَةُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، قَالَ: سَمِعْتُ عَمْرَو بْنَ مَيْمُونٍ يُحَدِّثُ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي قُبَّةٍ نَحْوًا مِنْ أَرْبَعِينَ، فَقَالَ لَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَتَرْضَوْنَ أَنْ تَكُونُوا رُبُعَ أَهْلِ الْجَنَّةِ؟ قَالُوا: نَعَمْ، قَالَ: أَتَرْضَوْنَ أَنْ تَكُونُوا ثُلُثَ أَهْلِ الْجَنَّةِ؟ قَالُوا: نَعَمْ، قَالَ: أَتَرْضَوْنَ أَنْ تَكُونُوا شَطْرَ أَهْلِ الْجَنَّةِ؟ إِنَّ الْجَنَّةَ لَا يَدْخُلُهَا إِلَّا نَفْسٌ مُسْلِمَةٌ مَا أَنْتُمْ فِي الشِّرْكِ إِلَّا كَالشَّعْرَةِ الْبَيْضَاءِ فِي جِلْدِ الثَّوْرِ الْأَسْوَدِ، أَوْ كَالشَّعْرَةِ السَّوْدَاءِ فِي جِلْدِ الثَّوْرِ الْأَحْمَرِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وفِي الباب عن عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، وَأَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ. [1]

**ترجمه** : دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه بيان دي فرمائي چې په يوه خيمه كي تقريبا څلويښت كسان دنبي كريم صلي الله عليه وسلم سره موجود وو چې موږ ته يي اوفرمائيل ايا تاسو په دي خبره خوشحاله يئ چې تاسو دجنت څلورمه حصه شئ خلقو اووئيل هو په دي باندي خوشحاله يو، رسول الله بيا اوفرمائيل ايا تاسو په دي باندي خوشحاله يئ چې تاسو دجنتيانو دريمه حصه شئ خلقو اووئيل هو رسول الله اوفرمائيل ايا تاسو په دي خوشحاله يئ چې تاسو دجنتيانو نصف شئ چې په دي كي به صرف مسلمانان خي او دمشركانو په مقابل كي ستاسو مثال داسي دي لكه دتور غويي په چمړه چې سپين ويخته وي او يا دسور غويي په چمړه چې تور ويخته وي

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي ، او په دي باب كي دعمران بن حصين او ابوسعيد خدري رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي .

***************

## ١٤ــ بَاب مَا جَاءَ فِي صِفَةِ أَبْوَابِ الْجَنَّةِ

### دجنت د دروازو بيان

---

[1] ــ اورده البخاري في الجامع الصحيح /الرقاق ٤٥ (٦٥٢٨) ، والأيمان والنذور ٣ (٦٦٤٢) ، صحيح مسلم/الإيمان ٩٥ (٢٢١) ، سنن ابن ماجه/الزهد ٣٤ (٤٢٨٣) (تحفة الأشراف : ٩٤٨٣)

٢٥٤٨_حَدَّثَنَا الفَضْلُ بْنُ الصَّبَّاحِ البَغْدَادِيُّ، حَدَّثَنَا مَعْنُ بْنُ عِيسَى القَزَّازُ، عَنْ خَالِدِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ، عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "بَابُ أُمَّتِي الَّذِي يَدْخُلُونَ مِنْهُ الجَنَّةَ عَرْضُهُ مَسِيرَةُ الرَّاكِبِ الجَوَادَ ثَلاثًا، ثُمَّ إِنَّهُمْ لَيُضْغَطُونَ عَلَيْهِ حَتَّى تَكَادُ مَنَاكِبُهُمْ تَزُولُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ. قَالَ: سَأَلْتُ مُحَمَّدًا عَنْ هَذَا الحَدِيثِ فَلَمْ يَعْرِفْهُ، وَقَالَ لِخَالِدِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ مَنَاكِيرُ عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ.[1]

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په كومه دروازه چې زما امت جنت ته داخليږي ددې دروازې پلن والي به تيز رفتار اس ددرې ورځو دمزل سره برابر وي مګر بيا به هم په دروازه کې دومره جم جوش وي چې دخلقو اوږې به وتلو ته نږدې شوي وي.

امام ترمذي وايي: داحديث غريب دي، ما دامام بخاري نه دې حديث باره کې تپوس اوکړو نو هغه ته دا نه وومعلوم او وئيل يې دسالم بن عبدالله په واسطه دخالد بن ابي بكر نه ډير منكر احاديث جوړ شوي دي.

***************

## ١٥_باب مَا جَاءَ فِي سُوقِ الجَنَّةِ

### دجنت دبازار بيان

٢٥٤٩_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيل، حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عَمَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الحَمِيدِ بْنُ حَبِيبِ بْنِ أَبِي العِشْرِينَ، حَدَّثَنَا الأَوْزَاعِيُّ، حَدَّثَنَا حَسَّانُ بْنُ عَطِيَّةَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ المُسَيَّبِ، أَنَّهُ لَقِيَ أَبَا هُرَيْرَةَ، فَقَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ: أَسْأَلُ اللَّهَ أَنْ يَجْمَعَ بَيْنِي وَبَيْنَكَ فِي سُوقِ الجَنَّةِ. فَقَالَ سَعِيدٌ: أَفِيهَا سُوقٌ؟ قَالَ: نَعَمْ. أَخْبَرَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَنَّ أَهْلَ الجَنَّةِ إِذَا دَخَلُوهَا نَزَلُوا فِيهَا بِفَضْلِ أَعْمَالِهِمْ ثُمَّ يُؤْذَنُ فِي مِقْدَارِ يَوْمِ الجُمُعَةِ مِنْ أَيَّامِ الدُّنْيَا فَيَزُورُونَ رَبَّهُمْ وَيُبْرِزُ لَهُمْ عَرْشَهُ وَيَتَبَدَّى لَهُمْ فِي رَوْضَةٍ مِنْ رِيَاضِ الجَنَّةِ، فَتُوضَعُ لَهُمْ مَنَابِرُ مِنْ نُورٍ وَمَنَابِرُ مِنْ لُؤْلُؤٍ وَمَنَابِرُ مِنْ يَاقُوتٍ وَمَنَابِرُ مِنْ زَبَرْجَدٍ وَمَنَابِرُ مِنْ ذَهَبٍ وَمَنَابِرُ مِنْ فِضَّةٍ، وَيَجْلِسُ أَدْنَاهُمْ وَمَا فِيهِمْ مِنْ دَنِيٍّ عَلَى كُثْبَانِ المِسْكِ وَالكَافُورِ، وَمَا يُرَوْنَ أَنَّ أَصْحَابَ الكَرَاسِيِّ بِأَفْضَلَ مِنْهُمْ مَجْلِسًا". قَالَ أَبُو

---

[1]_ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٦٧٦٠)

هُرَيْرَةَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ ؟ وَهَلْ نَرَى رَبَّنَا ؟ قَالَ: " نَعَمْ. قَالَ: هَلْ تَتَمَارَوْنَ فِي رُؤْيَةِ الشَّمْسِ وَالْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ ؟ " قُلْنَا: لَا. قَالَ: " كَذَلِكَ لَا تَتَمَارَوْنَ فِي رُؤْيَةِ رَبِّكُمْ وَلَا يَبْقَى فِي ذَلِكَ الْمَجْلِسِ رَجُلٌ إِلَّا حَاضَرَهُ اللَّهُ مُحَاضَرَةً حَتَّى يَقُولَ لِلرَّجُلِ مِنْهُمْ: يَا فُلَانُ بْنَ فُلَانٍ أَتَذْكُرُ يَوْمَ قُلْتَ: كَذَا وَكَذَا ؟ فَيُذَكِّرُهُ بِبَعْضِ غَدَرَاتِهِ فِي الدُّنْيَا. فَيَقُولُ: يَا رَبِّ أَفَلَمْ تَغْفِرْ لِي ؟ فَيَقُولُ: بَلَى فَبِسَعَةِ مَغْفِرَتِي بَلَغَتْ بِكَ مَنْزِلَتَكَ هَذِهِ. فَبَيْنَمَا هُمْ عَلَى ذَلِكَ غَشِيَتْهُمْ سَحَابَةٌ مِنْ فَوْقِهِمْ فَأَمْطَرَتْ عَلَيْهِمْ طِيبًا لَمْ يَجِدُوا مِثْلَ رِيحِهِ شَيْئًا قَطُّ. وَيَقُولُ رَبُّنَا تَبَارَكَ وَتَعَالَى: قُومُوا إِلَى مَا أَعْدَدْتُ لَكُمْ مِنَ الْكَرَامَةِ فَخُذُوا مَا اشْتَهَيْتُمْ. فَنَأْتِي سُوقًا قَدْ حَفَّتْ بِهِ الْمَلَائِكَةُ فِيهِ مَا لَمْ تَنْظُرِ الْعُيُونُ إِلَى مِثْلِهِ وَلَمْ تَسْمَعِ الْآذَانُ، وَلَمْ يَخْطُرْ عَلَى الْقُلُوبِ. فَيُحْمَلُ لَنَا مَا اشْتَهَيْنَا لَيْسَ يُبَاعُ فِيهَا وَلَا يُشْتَرَى. وَفِي ذَلِكَ السُّوقِ يَلْقَى أَهْلُ الْجَنَّةِ بَعْضُهُمْ بَعْضًا. قَالَ: فَيُقْبِلُ الرَّجُلُ ذُو الْمَنْزِلَةِ الْمُرْتَفِعَةِ فَيَلْقَى مَنْ هُوَ دُونَهُ وَمَا فِيهِمْ دَنِيٌّ فَيَرُوعُهُ مَا يَرَى عَلَيْهِ مِنَ اللِّبَاسِ فَمَا يَنْقَضِي آخِرُ حَدِيثِهِ حَتَّى يَتَخَيَّلَ إِلَيْهِ مَا هُوَ أَحْسَنُ مِنْهُ، وَذَلِكَ أَنَّهُ لَا يَنْبَغِي لِأَحَدٍ أَنْ يَحْزَنَ فِيهَا. ثُمَّ نَنْصَرِفُ إِلَى مَنَازِلِنَا. فَتَتَلَقَّانَا أَزْوَاجُنَا فَيَقُلْنَ: مَرْحَبًا وَأَهْلًا لَقَدْ جِئْتَ وَإِنَّ بِكَ مِنَ الْجَمَالِ أَفْضَلَ مِمَّا فَارَقْتَنَا عَلَيْهِ. فَيَقُولُ: إِنَّا جَالَسْنَا الْيَوْمَ رَبَّنَا الْجَبَّارَ، وَيَحِقُّنَا أَنْ نَنْقَلِبَ بِمِثْلِ مَا انْقَلَبْنَا ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ. لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. وَقَدْ رَوَى سُوَيْدُ بْنُ عَمْرٍو، عَنِ الْأَوْزَاعِيِّ شَيْئًا مِنْ هَذَا الْحَدِيثِ. ([1])

**ترجمه** : دسعيد بن مسيب نه مروي دي فرمائي چې زه دابوهريره رضي الله عنه سره ملاؤ شوم نو ماته يې اووئيل زه دالله تعالي نه دعا غوارم چې ما او تا دجنت په بازار کې يوځاي کړي سعيد وائي ما اووئيل ايا په جنت کې بازار هم شته؟ ابوهريره اووئيل هو ماته رسول الله صلي الله عليه وسلم خبر راکړي دي چې جنتيان کله جنت ته داخل شي نو دوئ به دي بازار ته دخپلو اعمالو مطابق ورځي، بيا به ورته ددنيا په ورځو کې دجمعې دورځې په مقدار اجازت ورکړي شي او دوئ به دخپل رب ملاقات اوزيارت اوکړي او عرش به دوئ ته ښکاره کړي شي او دجنت په يو باغ کې به ورته ښکاره شي او بيا به ددوئ دپاره دنور منبر، دجواهراتو منبر، دياقوت منبر، زمرود منبر، دسرو زرو منبر، او دسپينو زرو منبر کيخودلي شي او ددوئ ادني درجې والا او حال دادي چې په دوئ کې به ادني درجې والا هيڅوک نه وي دمشک او کافور په ډيرکئ باندې کيني او دنور منبرونو والا باره کې به دوئ دا خيال نه کوي چې هغوئ به ددينه په

[1] ـ سنن ابن ماجه/الزهد ٣٩ (٤٣٣٦) (تحفة الأشراف: ١٣٠٩١)

بهتر خاي کي ناست وي، ابوهريره وائي ما عرض اوکړو اي دالله رسوله ايا مونږ به خپل رب وينو رسول الله اوفرمائيل هو، ايا تاسو ته ... يا دخوارلسمي شپې دسپوږمۍ په ليدو کي څه مشکل او تکليف وي؟ مونږ اووئيل نه رسول الله اوفرمائيل داسي به تاسو خپل رب وينئ او په ليدو کي به درته کوم تردد نه وي، بلکه په دي مجلس کي به داسي يو کس نه وي چې بالمشافه به دالله تعالي سره خبري نشي کولي تردي پوري چې الله تعالي به په دوئ کي هر يو کس ته وائي اي فلان بن فلان ايا تاته ياده ده چې تا په فلانئ ورځ داسي وئيلي وو او ده ته به دده بعضي ګناه رايادہ کړي، دي به عرض اوکړي اي الله ايا تا زه معاف کړي نه يم الله تعالي به اوفرمائي ولي نه زما دمغفرت دوسعت په وجه خو ته دي منبر ته رارسيدلي يې، او په دي دوران کي به جنتيان يوه داسي وريځ پټ کړي او دداسي خوشبو باران به ورباندي اوکړي کومه چې به دوئ هيڅ کله نه وي بوي کړي بيا به ورته الله تعالي اوفرمائي پاڅئ او زما دنعمتونو طرف ته ورشئ کوم چې ما ستاسو دپاره تيار کړي دي او چې کوم موخوښ وي هغه واخلئ بيا به مونږ دي بازار طرف ته روان شو او فرشتي به ورنه چاپير وي او په دي کي به داسي څيزونه وي کوم چې به هيچرته هيڅ يوي سترګي نه وي ليدلي او نه به کوم غوږ اوريدلي وي او نه به په کوم زړه کي ددي خيال تير شوي وي چنانچې مونږ ته به هر هغه شي راکړي شي دکوم چې به مونږ خواهش کوو او هلته به اخستل او خرڅول نه وي، بيا به هلته جنتيان يو دبل سره ملاقات کوي، ددينه پس نبي کريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل بيا به په جنتيانو کي داعلي مرتبي والا جنتي دخپل ځان نه کمي درجي والا جنتي سره ملاقات اوکړي او حال دادي چې په دوئ کي به هيڅوك کمي درجي والانه وي نو دده به دهغوئ لباس خوښ شي تردي وخته پوري به لا دده خبره پوره شوي نه وي چې ددوئ په بدن به ددينه بهتر لباس موجود شي دا به ددي دپاره وي چې هلته دچا غمژن کيدل دجنت دشان خلاف دي ، او بيا به مونږ ددي بازار نه دخپلو کورونو طرف ته روان شو هلته چې کله زمونږ دخپلو بيبيانو سره ملاقات اوشي نو هغوئ به وائي "مرحبا واهلا" تاسو خو دمخکي نه زيات ښائسته حالت کي راواپس شوئ، مونږ به وايو نن مونږ دخپل جبار رب دمجلس نه راغلي يو لهذا هم ددي حسن او جمال مستحق يو

امام ترمذي وايي داحديث غريب دي او مونږ يي صرف په همدي سند پيژنو او ددي حديث بعضي حصه سويد بن عمرو داوزاعي نه هم نقل کړي ده.

***************

۲۵۵۰_حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، وَهَنَّادٌ، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ إِسْحَاق، عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ عَلِيٍّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ فِي الْجَنَّةِ لَسُوقًا مَا فِيهَا شِرَاءٌ وَلَا بَيْعٌ إِلَّا الصُّوَرَ مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ فَإِذَا اشْتَهَى الرَّجُلُ صُورَةً دَخَلَ فِيهَا". قَالَ أَبُو

عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ. (1)

**ترجمه** د علي رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمانيل په جنت كي به داسي بازار وي په كوم كي چي به اخستل او خرڅول نه وي البته په دي كي به دښځو او سړو تصويرونه وي د چا چي كوم خوښ شي نو دی به هم هغه شان شي
امام ترمذي وايي: دا حديث حسن غريب دی.

***************

## ١٦_باب مَا جَاءَ فِي رُؤْيَةِ الرَّبِّ تَبَارَكَ وَتَعَالَى

### د الله تعالي د ليدلو بيان

٢٥٥١_حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ أَبِي خَالِدٍ، عَنْ قَيْسِ بْنِ أَبِي حَازِمٍ، عَنْ جَرِيرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ الْبَجَلِيِّ، قَالَ: "كُنَّا جُلُوسًا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَنَظَرَ إِلَى الْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ، فَقَالَ: " إِنَّكُمْ سَتُعْرَضُونَ عَلَى رَبِّكُمْ فَتَرَوْنَهُ كَمَا تَرَوْنَ هَذَا الْقَمَرَ، لَا تُضَامُونَ فِي رُؤْيَتِهِ فَإِنِ اسْتَطَعْتُمْ أَنْ لَا تُغْلَبُوا عَلَى صَلَاةٍ قَبْلَ طُلُوعِ الشَّمْسِ وَصَلَاةٍ قَبْلَ غُرُوبِهَا فَافْعَلُوا ثُمَّ قَرَأَ: وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ قَبْلَ طُلُوعِ الشَّمْسِ وَقَبْلَ الْغُرُوبِ (ق : ٣٩) ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (2)

**ترجمه**: جرير بن عبدالله بجلي رضي الله عنه وايي چي مونږ د رسول الله صلي الله عليه وسلم په خدمت كي حاضر وو او هغه دپوره سپوږمۍ والا شپه وه نو رسول الله صلي الله عليه وسلم سپوږمۍ طرف ته اوكتل او وېی فرمانيل چي تاسو به عنقريب خپل رب ته پيش شئ او په داسي داشان سره به يي اووينئ څنګه چي سپوږمۍ وينئ او دالله په ليدلو كي به هيڅ مشكل حائل نه وي، كه چرې تاسو دا كولی شئ نو ضروريی اوكړئ چي ستاسونه (دسحر اومازيګر) دنمر ختلو نه مخكي او دنمر پريوتلو نه مخكي مونځونه قضانه شي، او په يو روايت كي دادي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دڅوارلسمی شپي سپوږمۍ طرف ته اوكتل ، او بيا يي دا ايت تلاوت كړو" وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ قَبْلَ طُلُوعِ الشَّمْسِ وَقَبْلَ الْغُرُوبِ " يعني دخپل رب تسبيح او تحميد دنمر ختلو او نمر پريوتلو نه وړاندی كوه

---

[1] _ تفرد به المؤلف

[2] _ اورده البخاري في الجامع الصحيح /المواقيت ١٦ (٥٥٤) ، والتوحيد ٢٤ (٧٤٣٥) ، صحيح مسلم/المساجد ٣٧ (٦٣٣) ، سنن ابي داود/ السنة ٢٠ (٤٧٢٩) ، سنن ابن ماجه/المقدمة ١٣ (١٧٧) (تحفة الأشراف : ٣٢٢٣) ، و مسند احمد (٤/٣٦٠)

**لغات** لاتضامون دالفظ دضيم نه مشتق دي په معني دتكليف او مشقت سره

**تشريح** دمياشتي په څوارلسمه شپه سپوږمۍ مكمل وي او رڼا يي پوره وي درروايت مطلب دادی لکه څرنګه چې په سوارلسمه شپه سپوږمۍ سرکنده ښکاري نو دا رنګي به مومنان په قيامت کې خپل رب لره اوويني داهل سنت والجماعت دا عقيده ده چې مومنان به په قيامت کې الله تعالي ويني دا خبره دقران مجيد نه هم ثابته ده او احاديث هم په دي باره کې وارد دي لکه چې په پورتني روايت کې تير شول چې دقيامت په ورځ به مسلمانان دالله ملاقات کوي همدا رنګي ددي خبري وضاحت هم اوشو چې دمازيګر او دسحر دمونځ اهتمام ضروري دی او ددي دپابندۍ په برکت سره دالله تعالي ديدار نصيب کيږي کوم چې دټولو نعمتونو نه بالاتر عظيم نعمت دی

د ايت کريمه " وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ قَبْلَ طُلُوعِ الشَّمْسِ " پس منظر دادی مکي والا رسول پاك صلي الله عليه وسلم ته قسم قسم تکليفونه رسول او په بدو الفاظو به يي يادولو کله به يي ورته کاذب ونيل او کله ساحر او کله نورخه نوقران کريم ددي دا علاج اوخودلو چې تاسو ديته التفات مه کوئ او نه به انتقام اخلئ او خپل ځان به په عبادت کې مشغول ساتئ کله چې الله تعالي ته دانسان توجه جوړه شي او دا يقين يي راشي چې په دنيا کې هيڅ يو کار دالله دمشيت نه بغير کيدی نشي او دهغه په کارونو کې حکمت وي نو پداسي وخت کې دمخالف نه درسيدونکو ضررونو غصه او غضب پخپله ختميږي بعضي مفسرين وائي په دې ايت کې دي خبري ته اشاره ده چې چاته دالله ديادولو توفيق ورکړی شي نو هغه دي په دي باندي فخر او ناز نه کوي بلکه دالله حمد او شکر دي خپله وظيفه جوړه کړي چې دالله دا ذکر يا عبادت ددي توفيق ثمره ده

امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح دی

****************

٢٥٥٢ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ ثَابِتٍ الْبُنَانِيِّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ صُهَيْبٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي قَوْلِهِ: لِلَّذِينَ أَحْسَنُوا الْحُسْنَى وَزِيَادَةٌ (يونس : ٢٦) قَالَ: " إِذَا دَخَلَ أَهْلُ الْجَنَّةِ الْجَنَّةَ نَادَى مُنَادٍ إِنَّ لَكُمْ عِنْدَ اللَّهِ مَوْعِدًا. قَالُوا: أَلَمْ يُبَيِّضْ وُجُوهَنَا وَيُنَجِّنَا مِنَ النَّارِ، وَيُدْخِلْنَا الْجَنَّةَ ؟ قَالُوا: بَلَى. قَالَ: فَيَنْكَشِفُ الْحِجَابُ. قَالَ: فَوَاللَّهِ مَا أَعْطَاهُمْ شَيْئًا أَحَبَّ إِلَيْهِمْ مِنَ النَّظَرِ إِلَيْهِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ إِنَّمَا أَسْنَدَهُ حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ وَرَفَعَهُ. وَرَوَى سُلَيْمَانُ بْنُ الْمُغِيرَةِ، وَحَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ هَذَا الْحَدِيثَ.

عَنْ ثَابِتٍ الْبُنَانِيِّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى قَوْلَهُ. (1)

**ترجمه**. دصهيب رضي الله عنه بيان دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم دايت كريمه "للذين احسنوا الحسني وزيادة" باره كي اوفرمائيل كله چې جنتيان جنت ته داخل شي نو يو اواز كونكي به اواز اوكړي چې دالله تعالي دطرف نه يو بل څيز تاسو ته دركړي كيدونكي دي دوئ به اووائي ايا الله تعالي زمونږ مخونه روښانه كړي نه دي، او ايا مونږ ته يي دجهنم نه نجات راكړي نه دي او ايا مونږ يي جنت ته داخل كړي نه يو؟ اواز كونكي به اووائي ولي نه، بيابه حجاب پورته كړي شي رسول الله اوفرمائيل په الله قسم الله تعالي دوئ ته داسي كوم څيز نه دي وركړي كوم چې ددوئ په نزد دالله تعالي ددیدارنه زيات محبوب وي؟

امام ترمذي وايي. داحديث حماد بن سلمه نه مسند او مرفوع مروي دي، سليمان بن مغيره او حماد بن زيد دا حديث دثابت بناني په واسطه دعبدالرحمن بن ابي ليلي نه دده دذاتي قول په حيثيت نقل كړي دي.

****************

## ١٧ـ باب مِنْهُ

### درونيت الهي متعلق يو بل باب

٢٥٥٣ـ حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، أَخْبَرَنِي شَبَابَةُ، عَنْ إِسْرَائِيلَ، عَنْ ثُوَيْرٍ، قَالَ: سَمِعْتُ ابْنَ عُمَرَ، يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِنَّ أَدْنَى أَهْلِ الجَنَّةِ مَنْزِلَةً لَمَنْ يَنْظُرُ إِلَى جِنَانِهِ وَأَزْوَاجِهِ وَنَعِيمِهِ وَخَدَمِهِ وَسُرُرِهِ مَسِيرَةَ أَلْفِ سَنَةٍ، وَأَكْرَمَهُمْ عَلَى اللَّهِ مَنْ يَنْظُرُ إِلَى وَجْهِهِ غَدْوَةً وَعَشِيَّةً ثُمَّ قَرَأَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ نَاضِرَةٌ . إِلَى رَبِّهَا نَاظِرَةٌ . (القيامة) " قَالَ أَبُو عِيسَى: وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الحَدِيثُ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ عَنْ إِسْرَائِيلَ، عَنْ ثُوَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ مَرْفُوعٌ، وَرَوَاهُ عَبْدُ المَلِكِ بْنُ أَبْجَرَ، عَنْ ثُوَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ مَوْقُوفٌ، وَرَوَى عُبَيْدُ اللَّهِ الأَشْجَعِيُّ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ ثُوَيْرٍ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَوْلَهُ وَلَمْ يَرْفَعْهُ حَدَّثَنَا بِذَلِكَ أَبُو كُرَيْبٍ مُحَمَّدُ بْنُ العَلَاءِ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ الأَشْجَعِيُّ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ ثُوَيْرٍ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ نَحْوَهُ

---

[1] ـ صحيح مسلم/الإيمان ٨٠ (١٨١) . سنن ابن ماجه/المقدمة ١٣ (١٨٦) . (تحفة الأشراف : ٤٩٦٨) . و مسند احمد (٣٣٢/٤، ٣٣٣) . ويأتي برقم: ٣١٠٥

وَلَمْ يَرْفَعْهُ. (١)

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دېولو نه کم تر درجي والاجنتي به هغه وي څوك چې به خپل باغونه او بيابياني او نعمتونه او خادمان او تختونه اووېني چې دزرو کالو دمصافي په مقدار به مشتمل وي او دالله تعالي په نزد په ټولو کي مکرم هغه څوك دي څوك چې دهغه مخ ته سحر او مابنام ګوري بيا رسول الله صلي الله عليه وسلم دا ايت تلاوت کړو " وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ نَاضِرَةٌ . إِلَى رَبِّهَا نَاظِرَةٌ "يعني په دغه ورځ به ډير مخونه تر او تازه وي او الله تعالي ته به کتونکي وي.

امام ترمذي وايي داحديث په ډيرو سندونو داسرائيل په واسطه کوم چې هغه د ثوير نه اوثوير دابن عمر نه نقل کوي مرفوعا وارد دي مګر عبدالملك بن جبير دثوير په واسطه دابن عمر نه موقوفا نقل کوي او عبيدالله بن اشجعي دسفيان نه او هغه د ثوير نه او هغه دمجاهد نه دابن عمر قول نقل کړي دي او مرفوع يې نه دي کړي.

****************

٢٥٥٤_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ طَرِيفٍ الْكُوفِيُّ، حَدَّثَنَا جَابِرُ بْنُ نُوحٍ الْحِمَّانِيُّ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "تُضَامُونَ فِي رُؤْيَةِ الْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ وَتُضَامُونَ فِي رُؤْيَةِ الشَّمْسِ؟ قَالُوا: لاَ، قَالَ: فَإِنَّكُمْ سَتَرَوْنَ رَبَّكُمْ كَمَا تَرَوْنَ الْقَمَرَ لَيْلَةَ الْبَدْرِ، لاَ تُضَامُونَ فِي رُؤْيَتِهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ. وَهَكَذَا رَوَى يَحْيَى بْنُ عِيسَى الرَّمْلِيُّ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَرَوَى عَبْدُ اللَّهِ بْنُ إِدْرِيسَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَحَدِيثُ ابْنِ إِدْرِيسَ، عَنِ الأَعْمَشِ غَيْرُ مَحْفُوظٍ. وَحَدِيثُ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَصَحُّ، وَهَكَذَا رَوَاهُ سُهَيْلُ بْنُ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَقَدْ رُوِيَ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

[1] _ تفرد به المؤلف. وأعاده في تفسير القيامة (٣٣٣٠) (تحفة الأشراف: ٦٦٦٦). وانظر حم (١٣/٢، ٦٣)

مِنْ غَيْرِ هَذَا الْوَجْهِ مِثْلُ هَذَا الْحَدِيثِ، وَهُوَ حَدِيثٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي ايا دڅوارلسمي شپي سپوږمۍ ته په کتلو کي تاسو ته څه مشکل او مذاحمت وي؟ او ايا نمر ته په کتلو کي تاسو ته څه مذاحمت وي؟ خلقو اووئيل نه. رسول الله اوفرمائيل تاسوبه په دغه ورځ خپل رب لره دڅوارلسمي شپي سپوږمۍ پشان ښکاره وينی چې په ليدو کي به يې هيڅ مشکل اومذاحمت نه وي.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح غريب دي، يحي بن عيسي رملي او نورو راويانو عن الاعمش عن ابي صالح عن ابي هريرة عن النبي صلي الله عليه وسلم سند سره نقل کړي دي او عبدالله بن ادريس عن الاعمش عن ابي صالح عن ابي سعيد عن النبي صلي الله عليه وسلم سند سره نقل کړي دي دابن ادريس کوم حديث چې داعمش په واسطه مروي دي غير محفوظ دي او دابو صالح حديث کوم چې دابوهريره په واسطه مروي دي زيات صحيح دي، او سهيل بن ابي صالح دخپل پلار نه او هغه دابوهريره نه او هغه دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه نقل کړي دي، دا حديث دابوسعيد خدري په واسطه درسول الله صلي الله عليه وسلم نه په نورو سندونو هم ددي هم معني مروي دي او هغه زيات صحيح دي.

**تشريح** : په پورتني حديث کې دالله تعالي ددیدار ذکر دی چې مومنانو ته به دقيامت په ورځ دالله تعالي ديدار نصيب شي په دي باندي داهل حق اجماع ده، دا به دومره لوي نعمت وي چې ددي په مقابله کې به دتمامو نعمتونو هيڅ حيثيت نه وي دا خبره په قران او احاديث متواتره ثابته ده، په رساله فقه اکبر کې داسي دي:

يراه المومنون وهم في الجنة بأعين رؤسهم بلاتشبيه ولا كيفيت ولا كمية ولايكون بينه وبين خلقه مسافة: (شرح فقه اكبر: ١٠٠).

مومنان به په جنت کې دسر په سترګو دخپل رب زيارت کوي خو بغير دتشبيه او کيفيت او کميت نه دالله تعالي او دهغه دمخلوق په مينځ کې به مسافه نه وي.

مولانا محمد ادريس کاندهلوي په شرح دمشکوة کې دابن قيم نه نقل کوي چې درسول الله صلي الله عليه وسلم نه او صحابه کرامو نه په دي موضوع احاديث متواتره منقول دي چې په جنت کي به مومنان دالله تعالي ديدار کوي دا خبره دمتعددو صحابه کرامو نه منقول ده لکه

[1] _ اورده البخاري في الجامع الصحيح /الأذان ١٢٩ (٨٠٦) . والرقاق ٥٢ (٦٥٤٣) . والتوحيد (٤٣٣٤) . صحيح مسلم/الإيمان ٨١ (١٨٢) . والزهد ١ (٢٩٦٨) . سنن ابي داود/ السنة ٢٠ (٤٣٠٠) (تحفة الأشراف : ١٢٣٣٦) . وسنن الدارمي/الرقاق ٨١ (٢٨٤٣)

ابوبكر صديق ، ابوهريره، ابو سعيد خدري، جرير بن عبدالله، صهيب بن سنان رومي، عبدالله بن مسعود ، علي بن ابي طالب، ابو موسي اشعري، عدي بن حاتم انس بن مالك، بريده بن حصيب، ابورزين العقيلي، جابر بن عبدالله، ابوامامه، زيد بن ثابت، عمار بن ياسر. ام المومنين عائشه، عبدالله بن عمر عماره بن زيبه، سلمان فارسي، حذيفه بن يمان ، عبدالله بن عباس، عبدالله بن عمر، ابيْ بن كعب، كعب بن عمير، فضاله بن عبيد رضي الله عنهم او يو نامعلوم صحابي نه هم ددي باره کې يو روايت منقول دی.

******************

## ١٨_باب مِنْهُ

### دسابقه باب متعلق يوبل باب

٢٥٥٥_حَدَّثَنَا سُوَيْدُ بْنُ نَصْرٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، أَخْبَرَنَا مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِنَّ اللَّهَ يَقُولُ لِأَهْلِ الْجَنَّةِ: يَا أَهْلَ الْجَنَّةِ، فَيَقُولُونَ: لَبَّيْكَ رَبَّنَا وَسَعْدَيْكَ، فَيَقُولُ: هَلْ رَضِيتُمْ؟ فَيَقُولُونَ: مَا لَنَا لَا نَرْضَى وَقَدْ أَعْطَيْتَنَا مَا لَمْ تُعْطِ أَحَدًا مِنْ خَلْقِكَ، فَيَقُولُ: أَنَا أُعْطِيكُمْ أَفْضَلَ مِنْ ذَلِكَ، قَالُوا: أَيُّ وَأَيُّ شَيْءٍ أَفْضَلُ مِنْ ذَلِكَ؟ قَالَ: أُحِلُّ عَلَيْكُمْ رِضْوَانِي فَلَا أَسْخَطُ عَلَيْكُمْ أَبَدًا".
قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** ابوسعيد خدري رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي بيشکه الله تعالي به جتيانو ته اواز وركړي ای جنتيانو هغوئ به اووائي لبيك ربنا وسعديك ، ای زمونږ ربه مونږ حاضريو ،الله تعالي به ورته اوفرمائي ايا تاسو راضي شوئ، هغوئ به عرض اوكړي يا الله مونږ به ولی نه راضي کيږو تا مونږ ته داسې نعمتونه راکړل چې بل يو مخلوق ته دی نه دي وركړي الله تعالي به اوفرمائي ايا ددی ټولو نعمتونونه زيات بل نعمت دركړم هغوئ به عرض اوكړي يا الله ددی نه به زيات نعمت بل څه وي الله تعالي به اوفرمائي زه به درباندی خپله رضا نازله كړم بيا به درنه هيچری نه خفه کيږم (يعنی دا نعمتونه مودائمي شو چری نه به ختميږي)
امام ترمذي وايي: دا حديث حسن صحيح دی.

---

[1] _ اورده البخاري في الجامع الصحيح /الرقاق ٥١ (٦٥٤٩) ، والتوحيد ٣٨ (٧٥١٨) ، صحيح مسلم /الجنة ٣ (٢٨٢١) (تحفة الأشراف : ٤١٦٢)

**لغات** : خير اسم تفضيل دي داخير نه مخفف دي ، مونث يې خيرة راځي اوجمع يې خيور ده
**تشريح** "فلا اسخط عليكم بعده ابدا" يعني ددينه پس به زه ستاسو نه ناراضه نه شم. دالله جل جلاله رضامندي خو دتمامو نعمتونو او سعادتونو نه ډير لوي نعمت دی او دالله تعالي ناراضتيا دتمامو بدبختيانو نه ډيره لويه ده دجنتيانو دټولو نه لوي نعمت به دا وي چې دالله تعالي دطرفه به دوئ ته زيرى وركړى شي چې اوس به زه هميشه دپاره ستاسو نه راضي او خوشحال يم ددي نعمت په مقابله كې دجنت نعمتونه هيڅ نه دي مومنان چې دجنت كوم طلب كوي نو دا ددي دپاره كوي چې هلته په كامل طور سره دالله رضامندي حاصليږي او الله دهغه بندګانو نه راضي كيږي ځوك چې په هر حال كې دخپل رب نه راضي وي يعني په دنيا كې چې بنده خپل ژوند دالله په رضا كې ختم كړي.
بهرحال دالله رضامندي دلوي كاميابئ علامه ده چې په جنت كې به هرجنتي ته نصيب كيږي لكه چې ارشاد الهي دی "ورضوان من الله اكبر" يعني دالله رضامندي دټولو نه لوي نعمت دی

***************

## ١٩_باب مَا جَاءَ فِي تَرَائِي أَهْلِ الْجَنَّةِ فِي الْغُرَفِ

### دجنت په كورونواو كوټوكې دجنتيانو يو بل لره ليدل

٢٥٥٦_حَدَّثَنَا سُوَيْدُ بْنُ نَصْرٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، أَخْبَرَنَا فُلَيْحُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ هِلَالِ بْنِ عَلِيٍّ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "إِنَّ أَهْلَ الْجَنَّةِ لَيَتَرَاءَوْنَ فِي الْغُرْفَةِ كَمَا تَتَرَاءَوْنَ الْكَوْكَبَ الشَّرْقِيَّ أَوِ الْكَوْكَبَ الْغَرْبِيَّ الْغَارِبَ فِي الْأُفُقِ وَالطَّالِعَ فِي تَفَاضُلِ الدَّرَجَاتِ". فَقَالُوا: يَا رَسُولَ اللهِ أُولَئِكَ النَّبِيُّونَ. قَالَ: "بَلَى وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ وَأَقْوَامٌ آمَنُوا بِاللهِ وَرَسُولِهِ وَصَدَّقُوا الْمُرْسَلِينَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه بيان دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دمراتبو دفرق باوجود به يو جنتي بل جنتي لره داسي وينې لكه څنګه چې مشرقي يا مغربي ستوري په نظر راځي چې په افق كې راختونكي او پريوتونكي وي، صحابه كرامو عرض اوكړو اي دالله رسوله ايا دوئ به انبياء وي؟ رسول الله اوفرمائيل هو. زما دي په هغه ذات قسم وي دچا په لاس كې چې زما روح دي او هغه كسان به هم وي چاچې په الله او دهغه په رسول ايمان راوړي وي او درسولانو تصديق يې كړي وي.

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ١٣٣٢٠) ، وانظر مسند احمد (٢/٣٣٥، ٣٣٩)

امام ترمذي وايي. داحديث حسن صحيح دي

***************

## ٢٠_باب مَا جَاءَ فِي خُلُودِ أَهْلِ الجَنَّةِ وَأَهْلِ النَّارِ

**په جنت کي دجنتيانو او په دوزخ کي د دوزخيانو دهميش والي بيان**

٢٥٥٧_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ العَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنِ العَلَاءِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "يَجْمَعُ اللَّهُ النَّاسَ يَوْمَ القِيَامَةِ فِي صَعِيدٍ وَاحِدٍ ثُمَّ يَطَّلِعُ عَلَيْهِمْ رَبُّ العَالَمِينَ فَيَقُولُ: أَلَا يَتْبَعُ كُلُّ إِنْسَانٍ مَا كَانُوا يَعْبُدُونَهُ. فَيُمَثَّلُ لِصَاحِبِ الصَّلِيبِ صَلِيبُهُ، وَلِصَاحِبِ التَّصَاوِيرِ تَصَاوِيرُهُ، وَلِصَاحِبِ النَّارِ نَارُهُ، فَيَتْبَعُونَ مَا كَانُوا يَعْبُدُونَ، وَيَبْقَى المُسْلِمُونَ فَيَطَّلِعُ عَلَيْهِمْ رَبُّ العَالَمِينَ فَيَقُولُ: أَلَا تَتَّبِعُونَ النَّاسَ؟ فَيَقُولُونَ: نَعُوذُ بِاللَّهِ مِنْكَ نَعُوذُ بِاللَّهِ مِنْكَ اللَّهُ رَبُّنَا هَذَا مَكَانُنَا حَتَّى نَرَى رَبَّنَا، وَهُوَ يَأْمُرُهُمْ وَيُثَبِّتُهُمْ، ثُمَّ يَتَوَارَى، ثُمَّ يَطَّلِعُ فَيَقُولُ: أَلَا تَتَّبِعُونَ النَّاسَ؟ فَيَقُولُونَ: نَعُوذُ بِاللَّهِ مِنْكَ نَعُوذُ بِاللَّهِ مِنْكَ اللَّهُ رَبُّنَا وَهَذَا مَكَانُنَا حَتَّى نَرَى رَبَّنَا وَهُوَ يَأْمُرُهُمْ وَيُثَبِّتُهُمْ، قَالُوا: وَهَلْ نَرَاهُ يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ قَالَ: وَهَلْ تُضَارُّونَ فِي رُؤْيَةِ القَمَرِ لَيْلَةَ البَدْرِ؟ قَالُوا: لَا يَا رَسُولَ اللَّهِ، قَالَ: فَإِنَّكُمْ لَا تُضَارُّونَ فِي رُؤْيَتِهِ تِلْكَ السَّاعَةَ، ثُمَّ يَتَوَارَى، ثُمَّ يَطَّلِعُ فَيُعَرِّفُهُمْ نَفْسَهُ ثُمَّ يَقُولُ: أَنَا رَبُّكُمْ فَاتَّبِعُونِي، فَيَقُومُ المُسْلِمُونَ وَيُوضَعُ الصِّرَاطُ فَيَمُرُّونَ عَلَيْهِ مِثْلَ جِيَادِ الخَيْلِ وَالرِّكَابِ وَقَوْلُهُمْ عَلَيْهِ سَلِّمْ سَلِّمْ، وَيَبْقَى أَهْلُ النَّارِ فَيُطْرَحُ مِنْهُمْ فِيهَا فَوْجٌ، ثُمَّ يُقَالُ: هَلِ امْتَلَأْتِ؟ فَتَقُولُ: هَلْ مِنْ مَزِيدٍ؟ ثُمَّ يُطْرَحُ فِيهَا فَوْجٌ فَيُقَالُ: هَلِ امْتَلَأْتِ؟ فَتَقُولُ: هَلْ مِنْ مَزِيدٍ؟ حَتَّى إِذَا أُوعِبُوا فِيهَا وَضَعَ الرَّحْمَنُ قَدَمَهُ فِيهَا وَأَزْوَى بَعْضَهَا إِلَى بَعْضٍ، ثُمَّ قَالَ: قَطْ، قَالَتْ: قَطْ قَطْ، فَإِذَا أَدْخَلَ اللَّهُ أَهْلَ الجَنَّةِ الجَنَّةَ، وَأَهْلَ النَّارِ النَّارَ، قَالَ: أُتِيَ بِالمَوْتِ مُلَبَّبًا فَيُوقَفُ عَلَى السُّورِ بَيْنَ أَهْلِ الجَنَّةِ وَأَهْلِ النَّارِ، ثُمَّ يُقَالُ: يَا أَهْلَ الجَنَّةِ، فَيَطَّلِعُونَ خَائِفِينَ، ثُمَّ يُقَالُ: يَا أَهْلَ النَّارِ، فَيَطَّلِعُونَ مُسْتَبْشِرِينَ يَرْجُونَ الشَّفَاعَةَ، فَيُقَالُ لِأَهْلِ الجَنَّةِ وَأَهْلِ النَّارِ: هَلْ تَعْرِفُونَ هَذَا؟ فَيَقُولُونَ هَؤُلَاءِ وَهَؤُلَاءِ: قَدْ عَرَفْنَاهُ هُوَ المَوْتُ الَّذِي وُكِّلَ بِنَا، فَيُضْجَعُ فَيُذْبَحُ ذَبْحًا عَلَى السُّورِ الَّذِي بَيْنَ الجَنَّةِ وَالنَّارِ، ثُمَّ يُقَالُ: يَا أَهْلَ الجَنَّةِ خُلُودٌ لَا مَوْتَ، وَيَا أَهْلَ النَّارِ خُلُودٌ لَا مَوْتَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رِوَايَاتٌ كَثِيرَةٌ مِثْلُ هَذَا مَا يُذْكَرُ فِيهِ أَمْرُ الرُّؤْيَةِ أَنَّ النَّاسَ يَرَوْنَ

رَبُّهُمْ، وَذِكْرُ الْقَدَمِ وَمَا أَشْبَهَ هَذِهِ الْأَشْيَاءَ وَالْمَذْهَبُ فِي هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنَ الْأَئِمَّةِ، مِثْلِ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَمَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، وَابْنِ الْمُبَارَكِ، وَابْنِ عُيَيْنَةَ، وَوَكِيعٍ، وَغَيْرِهِمْ أَنَّهُمْ رَوَوْا هَذِهِ الْأَشْيَاءَ، ثُمَّ قَالُوا: تُرْوَى هَذِهِ الْأَحَادِيثُ وَنُؤْمِنُ بِهَا، وَلَا يُقَالُ: كَيْفَ؟ وَهَذَا الَّذِي اخْتَارَهُ أَهْلُ الْحَدِيثِ أَنْ تُرْوَى هَذِهِ الْأَشْيَاءُ كَمَا جَاءَتْ، وَيُؤْمَنُ بِهَا وَلَا تُفَسَّرُ وَلَا تُتَوَهَّمُ وَلَا يُقَالُ كَيْفَ، وَهَذَا أَمْرُ أَهْلِ الْعِلْمِ الَّذِي اخْتَارُوهُ وَذَهَبُوا إِلَيْهِ، وَمَعْنَى قَوْلِهِ فِي الْحَدِيثِ فَيُعَرِّفُهُمْ نَفْسَهُ يَعْنِي يَتَجَلَّى لَهُمْ.[1]

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي الله تعالي به دقيامت په ورځ تمام خلق په يو وسيع ميدان كي راجمع كړي او بيا به الله تعالي دمخلوقاتو مخي ته ناځاپه راشي او ولي به نه راځي هر انسان به په هغه چا پسي روان وي دچاچې هغه عبادت كولو چنانچې دصليب بندګي كونكو په وړاندي به دصليب شكل جوړ شي او دبوت بندګي كونكو په وړاندي به دبوت شكل جوړ شي او د اور بندګي كونكو په وړاندي به د اور شكل جوړ شي او بيا به خلق پخپلو معبودانو پسي وربسي شي او مسلمانان به پاتي شي چې الله تعالي رب العالمين به ورته راشي دوئ ته به اووائي تاسو هم دنورو خلقو سره ولي نه يئ تلي دوئ به اووائي مونږ په تا باندي پناه غواړو زمونږ رب خو الله تعالي دي او مونږ به هم دلته پاتي يو چې تر څو پوري به خپل رب سره مخامخ شوي نه يو او ليدلي مو نه وي الله تعالي به حكم اوكړي او دوئ به ثابت قدم كړي او غائب به شي، بيا به راظاهر شي او مخلوقاتو ته به اووائي تاسو دنورو خلقو سره ولي نه يئ تلي دوئ به اووائي مونږ په الله پناه غواړو او مونږ په تا باندي دالله پناه غواړو او زمونږ رب الله دي او زمونږ مقام همدا دي تردي پوري چې مونږ خپل رب اووينو نو الله تعالي به حكم اوكړي او دوئ به ثابت قدم شي صحابه كرامو عرض اوكړو اي دالله رسوله ايا مونږ به الله تعالي وينو؟ رسول الله اوفرمائيل ايا دخوارلسمي شپې په ليدو كي څه مشكل وي صحابه كرامو عرض اوكړو نه وي اي دالله رسوله رسول الله اوفرمائيل داسي به تاسو ته دالله تعالي په ليدو كي هيڅ مشكل او مذاحمت نه وي او بيا به الله تعالي غائب شي او يو دم به ظاهر شي او دوئ سره به تعارف اوكړي او بيا به اووائي زه ستاسو رب يم په ما پسي راځئ چنانچې مسلمانان به اودريږي او پل صراط به قائم كړي شي او مسلمانان به په دي باندي دتيز رفتاره اسونو او سورو پشان تيريږي او تيريدو وخت كي به دا كلمات وائي "سلم سلم"، او جهنميان به باقي پاتي شي په دوئ كي به يوه ډله

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٣٠٥٥)، وانظر مسند احمد (٢/٣٦٨)

جهنم ته اوغورځولي شي او بيا به ورنه تپوس اوشي ايا ته ډك شوي جهنم به اوواني "هل من مزيد" نو بيا به ديته يوه بله ډله وروغورځولي شي او دجهنم نه به تپوس اوکړي شي ايا ته ډك شوي نو جهنم به اوواني هل من مزيد تردي پورې چې کله ديته تمام خلق اوغورځولي شي نو رحمان ذات به ديته خپله خپه کوزه کړي او دجهنم يوه حصه به په بله حصه کي داخله کړي شي بيا به الله تعالي اوواني بس نو جهنم به دا کلمات اووائي قط قط يعني بس بس کله چې الله تعالي جنتيان جنت ته او جهنميان جهنم ته داخل کړي نو مرګ به هغه ديوال ته په رابنکلو راوستلي شي کوم چې دجنت او جهنم په مينځ کي دي او بيا به اواز اوشي اي جنتيانو نو هغوئ به دويرې په حال کي راتوپ کړي او بيا به اوا ز اوکړي شي اي دوزخيانو نو هغوئ به دشفاعت په اميد راټوپ کړي بيا به ټولو ته اووئيلي شي ايا تاسو دا پيژنئ؟ نو دواړه ډلي به اووائي او هغه به پخپله هم اووائي چې مونږ اوپيژندلو دا هغه مرګ دي کوم چې په مونږ مقرر کړي شوي دي بيا به دجهنم او جنت په مينځ کي ديوال ته زوړند کړي شي او په يو ځل به ذبح کړي شي بيا به جنتيانو ته اووئيلي شي اوس په جنت کي هميشه اوسيدل دي او مرګ به نه راځي او جهنميانو ته به اووئيلي شي اوس په جهنم کي هميشه اوسيدل دي تاسو لره او مرګ به نه راځي.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه ددي هم مضمون ډير احاديث مروئ دي په کومو کي چې د ديدار الهي ذکر دي چې خلق به خپل رب ويني او په دي کي دقدم او دامثالو ذکر هم دي، په دي سلسله کي بعضي اهل علمو لکه سفيان ثوري، مالك بن انس، ابن مبارك، ابن عيينه، او وکيع رحمهم الله مسلك دادي چې دوئ دا څيزونه نقل کوي او وائي چې دا په احاديثو کي وارد دي او مونږ په دوئ باندي ايمان لرو ليکن دباري تعالي دصفاتو دکيفيت بازه کي هيڅ وئيل پکار نه دي دمحدثينو هم دا مسلك دي چې دا څيزونه به همداسي نقل کولي شي څنګه چې وارد دي نه به ددي باطل تفسير کولي شي او نه به په دي کي څه وهم کولئ شي او نه به ددي دکيفيت او حقيقت باره کي تپوس کولي شي اهل علمو همدا مسلك اختيار کړي دي او اکثر اهل علم دي طرف ته تلي دي، په حديث کي د "فيعرفهم نفسه" مطلب دادي چې الله تعالي به دوئ ته تجلي اوکړي.

****************

۲۵۵۸ـ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ وَكِيعٍ. حَدَّثَنَا أَبِي. عَنْ فُضَيْلِ بْنِ مَرْزُوقٍ. عَنْ عَطِيَّةَ. عَنْ أَبِي سَعِيدٍ يَرْفَعُهُ. قَالَ: " إِذَا كَانَ يَوْمُ الْقِيَامَةِ أُتِيَ بِالْمَوْتِ كَالْكَبْشِ الأَمْلَحِ فَيُوقَفُ بَيْنَ الْجَنَّةِ وَالنَّارِ فَيُذْبَحُ وَهُمْ يَنْظُرُونَ. فَلَوْ أَنَّ أَحَدًا مَاتَ فَرَحًا لَمَاتَ أَهْلُ الْجَنَّةِ. وَلَوْ أَنَّ أَحَدًا مَاتَ حَزَنًا لَمَاتَ أَهْلُ النَّارِ ".

قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه** . دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دقيامت په ورځ به مرګ دخورب ګډ په شکل کي راوستلي شي او دجهنم او جنت په مينځ کي به اودرولي شي او بيا به ذبح کړي شي چې جنتيان او جهنميان به ورته ګوري نو که څوك دخوشحالئ نه مړ کيدلي نو جنتيان به مړه شوي وو او که دډير غم په وجه مرګ وي نو جهنميان به مړه شوي وو

امام ترمذي وايي. داحديث حسن صحيح دي

****************

## ٢١ـ باب مَا جَاءَ حُفَّتِ الجَنَّةُ بِالْمَكَارِهِ وَحُفَّتِ النَّارُ بِالشَّهَوَاتِ

### جنت په تكليفونو او جهنم په خواهشاتو كي ګير كړي شوي دي

٢٥٥٩ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، أَخْبَرَنَا عَمْرُو بْنُ عَاصِمٍ، أَخْبَرَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ حُمَيْدٍ، وَثَابِتٍ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " حُفَّتِ الجَنَّةُ بِالْمَكَارِهِ، وَحُفَّتِ النَّارُ بِالشَّهَوَاتِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ صَحِيحٌ مِنْ هَذَا الوَجْهِ.[2]

**ترجمه** . دانس رضي الله عنه بيان دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي الله تعالي جنت په دنيا كي د تكليفونو په سوري كي مرتب كړي دي او جنتم يي په دنيا كي به نفساني خواهشاتو كي مرتب كړي دي.

امام ترمذي وايي: داحديث په دي سند حسن غريب صحيح دي.

****************

٢٥٦٠ـ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا عَبْدَةُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، حَدَّثَنَا أَبُو سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " لَمَّا خَلَقَ اللَّهُ الجَنَّةَ وَالنَّارَ أَرْسَلَ جِبْرِيلَ إِلَى الجَنَّةِ، فَقَالَ: انْظُرْ إِلَيْهَا وَإِلَى مَا أَعْدَدْتُ لِأَهْلِهَا فِيهَا. قَالَ: فَجَاءَهَا وَنَظَرَ إِلَيْهَا وَإِلَى مَا أَعَدَّ اللَّهُ لِأَهْلِهَا فِيهَا. قَالَ: فَرَجَعَ إِلَيْهِ قَالَ: فَوَعِزَّتِكَ لَا يَسْمَعُ بِهَا أَحَدٌ إِلَّا دَخَلَهَا. فَأَمَرَ بِهَا فَحُفَّتْ بِالْمَكَارِهِ، فَقَالَ: ارْجِعْ إِلَيْهَا فَانْظُرْ إِلَى مَا أَعْدَدْتُ لِأَهْلِهَا فِيهَا. قَالَ: فَرَجَعَ إِلَيْهَا فَإِذَا هِيَ قَدْ حُفَّتْ بِالْمَكَارِهِ،

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٤٣٣٠)

[2] ـ صحيح مسلم/الجنة ١ (٢٨٢٢) (تحفة الأشراف: ٣٢٩، و ٦١٥) ، و مسند احمد (٣/١٥٣، ٢٥٤، ٢٨٤)

فَرَجَعَ إِلَيْهِ فَقَالَ: وَعِزَّتِكَ لَقَدْ خِفْتُ أَنْ لَا يَدْخُلَهَا أَحَدٌ. قَالَ: اذْهَبْ إِلَى النَّارِ، فَانْظُرْ إِلَيْهَا وَإِلَى مَا أَعْدَدْتُ لِأَهْلِهَا فِيهَا، فَإِذَا هِيَ يَرْكَبُ بَعْضُهَا بَعْضًا، فَرَجَعَ إِلَيْهِ، فَقَالَ: وَعِزَّتِكَ لَا يَسْمَعُ بِهَا أَحَدٌ فَيَدْخُلَهَا، فَأَمَرَ بِهَا فَحُفَّتْ بِالشَّهَوَاتِ، فَقَالَ: ارْجِعْ إِلَيْهَا، فَرَجَعَ إِلَيْهَا فَقَالَ: وَعِزَّتِكَ لَقَدْ خَشِيتُ أَنْ لَا يَنْجُوَ مِنْهَا أَحَدٌ إِلَّا دَخَلَهَا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي كله چې الله تعالي جنت او جهنم يې پيدا كړو نو جبرائيل يې جنت ته اوليږلو او ورته يې اوونيل جنت او په جنت كي چې دجنتيانو دپاره الله تعالي څه تيار كړي دي ورشه او ويې ګوره رسول الله اوفرمائيل جبرائيل ورغلو او په جنت كي دجنتيانو دپاره تيار شوي څيزونه يې اوليدل رسول الله اوفرمائيل دهغي نه پس الله تعالي ته واپس ورغلو او عرض يې اوكړو ستا په عزت مي دي قسم وي هر څوك چې ددي په باره كي واوري هغه به ديته ضرور داخليږي، بيا الله تعالي حكم اوكړو دا خو په تكليفونو كي ګير كړي شوي دي، الله تعالي بيا اوونيل دوباره ورته ورشه او په دي كي چې مونږ دجنتيانو دپاره څه تيار كړي دي هغي ته اوګوره رسول الله اوفرمائيل جبرائيل عليه السلام دوباره جنت ته ورغلو نو جنت په تكليف وركونكو څيزونو كي ګير وو چنانچې جبرائيل الله تعالي ته واپس راغلو او عرض يې اوكړو ماسره خو دا ويره پيدا شوه چې ديته به هيڅوك هم داخل نشي الله تعالي اوفرمائيل اوس جهنم طرف ته ورشه جهنم او په جهنم كي چې څه دجهنميانو دپاره تيار كړي شوي دي اوګوره نو جبرائيل اوكتل چې يوه حصه يې په بله حصه باندي ورخيژي نو جبرائيل الله تعالي ته راغلو او عرض يې اوكړو ستا په عزت مي دي قسم وي دجهنم باره كي چې څوك هم خبر شي نو ديته به داخل نشي بيا الله تعالي حكم اوكړو نو جهنم دشهواتو نه ډك شو الله تعالي اوفرمائيل دوباره ورته ورشه نو جبرائيل عليه السلام دوباره ورغلو او چې كله واپس راغلو عرض يې اوكړو ستا په عزت مي دي قسم وي زما سره خو دا ويره پيدا شوه چې ددينه به هيڅوك هم بچ پاتي نشي بلكه په دي كي به داخليږي.

امام ترمذي وايي. داحديث حسن صحيح دي.

***************

## ٢٢ـباب مَا جَاءَ فِي احْتِجَاجِ الْجَنَّةِ وَالنَّارِ

[1] ــ سنن ابي داود/ السنة ٢٥ (٤٧٤٤). سنن النسائي/الأيمان والنذور ٣ (٣٧٩٤) (تحفة الأشراف: ١٥٠٦٣). ومسند احمد (٢/٣٣٣، ٣٥٤، ٣٧٣)

**دجنت او جهنم مينځ کي دمناظري کولو بيان**

٢٥٦١_حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا عَبْدَةُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " احْتَجَّتِ الْجَنَّةُ وَالنَّارُ، فَقَالَتِ الْجَنَّةُ: يَدْخُلُنِي الضُّعَفَاءُ وَالْمَسَاكِينُ، وَقَالَتِ النَّارُ: يَدْخُلُنِي الْجَبَّارُونَ وَالْمُتَكَبِّرُونَ، فَقَالَ لِلنَّارِ: أَنْتِ عَذَابِي أَنْتَقِمُ بِكِ مِمَّنْ شِئْتُ، وَقَالَ لِلْجَنَّةِ: أَنْتِ رَحْمَتِي أَرْحَمُ بِكِ مَنْ شِئْتُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دجنت او جهنم مينځ کي تکرار اوشو جنت اووئيل ماته به مسکينان او کمزوري خلق داخليږي، جهنم اووئيل ماته به ظالمان او تکبرکونکي داخليږي الله تعالي دفيصلي کولو وخت کي جهنم ته اوفرمائيل ته زما عذاب يي او زه ستا په ذريعه چې دچا نه بدل اخستل اوغواړم بدل ورنه اخلم او جنت ته يي اووئيل ته زما رحمت يي زه ستا په ذريعه چې په چا باندي رحم کول اوغواړم رحم وربانديي کوم.

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي.

***************

## ٢٣_باب مَا جَاءَ مَا لأَدْنَى أَهْلِ الْجَنَّةِ مِنَ الْكَرَامَةِ

**دادني درجي جنتي دپاره به څومره اعزاز او اکرام وي**

٢٥٦٢_حَدَّثَنَا سُوَيْدٌ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ، أَخْبَرَنَا رِشْدِينُ بْنُ سَعْدٍ، حَدَّثَنِي عَمْرُو بْنُ الْحَارِثِ، عَنْ دَرَّاجٍ، عَنْ أَبِي الْهَيْثَمِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " أَدْنَى أَهْلِ الْجَنَّةِ الَّذِي لَهُ ثَمَانُونَ أَلْفَ خَادِمٍ، وَاثْنَتَانِ وَسَبْعُونَ زَوْجَةً، وَتُنْصَبُ لَهُ قُبَّةٌ مِنْ لُؤْلُؤٍ وَزَبَرْجَدٍ وَيَاقُوتٍ كَمَا بَيْنَ الْجَابِيَةِ إِلَى صَنْعَاءَ ". [2]

**ترجمه** دابوسعيد خدري رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل دکمي درجي والاجنتي به هغه څوك وي دچا دپاره چې به اتيازره خادمان او دوه اويا بيبياني

---

[1] _ اورده البخاري في الجامع الصحيح /تفسير سورة ق ا (٤٨٥٠)، صحيح مسلم الجنة ١٣ (٢٨٤٦) (تحفة الأشراف ١٥٠٦٣) . و مسند احمد (٢/٢٧٦، ٣١٤، ٣٥٠)

[2] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ٤٠٥٩)

وي دده دپاره به دملغلرو او زمرود او ياقوت نه جوړه شوي خيمه اودرولي شي.چې دجابيه مقام نه واخله صنعاء (يمن) پورې به ددې لوي والي وي

****************

وَبِهَذَا الإِسْنَادِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " مَنْ مَاتَ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ مِنْ صَغِيرٍ أَوْ كَبِيرٍ يُرَدُّونَ أَبْنَاءَ ثَلاَثِينَ فِي الْجَنَّةِ، لاَ يَزِيدُونَ عَلَيْهَا أَبَدًا، وَكَذَلِكَ أَهْلُ النَّارِ ".(1)

**ترجمه** په مذكوره سند باندې هم دنبي كريم صلي الله عليه وسلم دا فرمان مروي دی چې فرمائيل يې دجنتيانو نه چې هر څوك مړ شي ماشوم وي او كه لوی وي ددوئ عمر به په جنت كې ديرش كاله وي چې هيڅ كله به په دې باندې زيات نشي او همدا رنګې حال دجهنميانو هم دی.

****************

وَبِهَذَا الإِسْنَادِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "إِنَّ عَلَيْهِمُ التِّيجَانَ إِنَّ أَدْنَى لُؤْلُؤَةٍ مِنْهَا لَتُضِيءُ مَا بَيْنَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ لاَ نَعْرِفُهُ إِلاَّ مِنْ حَدِيثِ رِشْدِينَ بنِ سَعدٍ. (2)

**ترجمه** : په مذكوره سند باندې هم دنبي كريم صلي الله عليه وسلم دا فرمان مروي دی چې فرمائيل يې يقينا دجنتيانو په سرونو به تاجونه وي چې ادنی ملغلره به يې دمشرق نه تر مغرب پورې علاقه روښانه كوي.

امام ترمذي وايي. داحديث غريب دی او درشدين بن سعد دسند نه علاوه په بل سند مونږ ته معلوم نه دی

****************

٢٥٦٣_حَدَّثَنَا بُنْدَارٌ، حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ هِشَامٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنْ عَامِرٍ الأَحْوَلِ، عَنْ أَبِي الصِّدِّيقِ النَّاجِيِّ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " الْمُؤْمِنُ إِذَا اشْتَهَى الْوَلَدَ فِي الْجَنَّةِ كَانَ حَمْلُهُ وَوَضْعُهُ وَسِنُّهُ فِي سَاعَةٍ كَمَا يَشْتَهِي ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَقَدِ اخْتَلَفَ أَهْلُ الْعِلْمِ فِي هَذَا، فَقَالَ بَعْضُهُمْ: فِي الْجَنَّةِ جِمَاعٌ وَلاَ يَكُونُ وَلَدٌ، هَكَذَا رُوِيَ

---

1 _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٥٩٠٣)

2 _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٥٩٠٣)

عَنْ طَاوُسٍ، وَمُجَاهِدٍ، وَإِبْرَاهِيمَ النَّخَعِيِّ، وَقَالَ مُحَمَّدٌ: قَالَ إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ فِي حَدِيثِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا اشْتَهَى الْمُؤْمِنُ الْوَلَدَ فِي الْجَنَّةِ كَانَ فِي سَاعَةٍ وَاحِدَةٍ كَمَا يَشْتَهِي وَلَكِنْ لَا يَشْتَهِي". قَالَ مُحَمَّدٌ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ أَبِي رَزِينٍ الْعُقَيْلِيِّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "إِنَّ أَهْلَ الْجَنَّةِ لَا يَكُونُ لَهُمْ فِيهَا وَلَدٌ". وَأَبُو الصِّدِّيقِ النَّاجِيُّ اسْمُهُ: بَكْرُ بْنُ عَمْرٍو وَيُقَالُ: بَكْرُ بْنُ قَيْسٍ أَيْضًا. (1)

**ترجمه** دابوسعيد خدري رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كله چې يو جنتي په جنت كي دخوي خواهش اوكړي نو دده حمل كيدل او ولادت كيدل او دده عمر زياتيدل دا ټول كارونه به دده دخواهش مطابق په يو ساعت كي سرته ورسيږي.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن غريب دي ، دي باره كي داهل علمو اختلاف دي بعضي علماء وائي په جنت كي به جماع وي مګر بچي به نه پيدا كيږي، دطاوس، مجاهد، او ابراهيم نخعي نه هم داسي مروي دي، امام بخاري وائي دنبي كريم صلي الله عليه وسلم ددي حديث متعلق داسحاق بن ابراهيم بن راهويه دا قول دي كله چې په جنت كي مومن دبچي خواهش اوكړي نو په يو ساعت كي به اوشي څنګه چې هغه خواهش په يو ساعت كي كړي وي ليكن جنتيان به ددي څيز خواهش نه كوي، امام بخاري وائي دابو رزين عقيلي رضي الله عنه نه روايت دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دجنتي به په جنت كي بچي نه پيدا كيږي، او دابوصديق ناجي نوم بكر بن عمرو دي چې بكر بن قيس ورته هم وئيلي شي.

***************

## ٢٤_باب مَا جَاءَ فِي كَلَامِ الْحُورِ الْعِينِ

### په جنت كي دجنت دحورو دترانو بيان

٢٥٦٤_حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، وَأَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، قَالَ: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ إِسْحَاقَ، عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ عَلِيٍّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ فِي الْجَنَّةِ لَمُجْتَمَعًا لِلْحُورِ الْعِينِ يُرَفِّعْنَ بِأَصْوَاتٍ لَمْ يَسْمَعِ الْخَلَائِقُ مِثْلَهَا". قَالَ: يَقُلْنَ: نَحْنُ الْخَالِدَاتُ فَلَا نَبِيدُ، وَنَحْنُ النَّاعِمَاتُ فَلَا نَبْأَسُ، وَنَحْنُ الرَّاضِيَاتُ فَلَا نَسْخَطُ، طُوبَى لِمَنْ كَانَ لَنَا وَكُنَّا لَهُ". وَفِي

---

1_ سنن ابن ماجه/الزهد ٣٩ (٤٣٢٨) (تحفة الأشراف: ٣٩٧٤)

الباب عن أَبِي هُرَيْرَةَ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَأَنَسٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَلِيٍّ حَدِيثٌ غَرِيبٌ.[1]

**ترجمه** دعلي رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي په جنت كي به دحور عين يو محفل وي په دي كي به دوئ خپلي نغمي كوي چې په مخلوقاتو كي به هيڅا ددوئ پشان اواز نه وي اوريدلي رسول الله اوفرمائيل دوئ به داسي وائي هميشه اوسيدل دي او هيڅ كله پناه كيدل نشته دي مونږ ناز او نعمت والايو او هيڅ كله محتاجه كيږو نه مونږه خوشحالي كونكي يو هيڅ كله خفګان كونكي نه يو. پس دهغه چا دپاره دي زيري او مباركي وي څوك چې زمونږ وي او مونږ دهغه يو

امام ترمذي وايي: دعلي رضي الله عنه حديث غريب دي، او په دي باب كي دابوهريره، ابوسعيد. انس رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي

****************

٢٥٦٥_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا رَوْحُ بْنُ عُبَادَةَ، عَنِ الأَوْزَاعِيِّ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، فِي قَوْلِهِ عَزَّ وَجَلَّ: فَهُمْ فِي رَوْضَةٍ يُحْبَرُونَ (الروم :١٥، قَالَ السَّمَاعُ: وَمَعْنَى السَّمَاعِ: مثل ما ورد في الحديث "أَنَّ الْحُورَ الْعِينَ يُرَفِّعْنَ بِأَصْوَاتِهِنَّ".[2]

**ترجمه** يحي بن ابي كثير دارشاد الهي "فهم في روضة يحبرون" يعني دوئ به دجنت په باغونو كي خوشحالي كونكي وي په باره كي وائي چې ددينه مراد سماع ده، او دسماع مفهوم هغه دي كوم چې په حديث كي راغلي دي چې حورعين به پخپلو نغمو اوازونه پورته كوي

****************

## ٢٥_باب مِنْهُ

### دسابقه باب متعلق يو بل باب

٢٥٦٦_حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ أَبِي الْيَقْظَانِ، عَنْ زَاذَانَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "ثَلاَثَةٌ عَلَى كُثْبَانِ الْمِسْكِ أُرَاهُ قَالَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ يَغْبِطُهُمُ الأَوَّلُونَ وَالآخِرُونَ: رَجُلٌ يُنَادِي بِالصَّلَوَاتِ الْخَمْسِ فِي كُلِّ يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ، وَرَجُلٌ يَؤُمُّ قَوْمًا وَهُمْ بِهِ رَاضُونَ، وَعَبْدٌ أَدَّى حَقَّ اللَّهِ وَحَقَّ مَوَالِيهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، لاَ

---

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف ١٠٢٩١)

[2] _ تفرد به المؤلف

نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَأَبُو الْيَقْظَانِ اسْمُهُ: عُثْمَانُ بْنُ عُمَيْرٍ وَيُقَالُ: ابْنُ قَيْسٍ. (١)

**ترجمه** . دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دري قسمه كسان داسي دي چې دمشكو په ډيركو به ناست وي راوي وائي زما خيال دي رسول الله اوفرمائيل چې دقيامت په ورځ او مخكني او روستني به ددوئ سره په دي باندي كينه كوي يو خو هغه كس دي څوك چې دشپي او ورځي دمونځونو دپاره اذان كوي، دويم هغه كس دي څوك چې يو قوم ته امامت وركوي او هغوئ دده نه راضي وي او دريم هغه غلام دي څوك چې دالله تعالي او دخپلو مالكانو حق اداء كوي

امام ترمذي وايي: داحديث حسن غريب دي دا موږ ته صرف دسفيان ثوري په سند معلوم دي

***************

٢٥٦٧ـ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ آدَمَ، عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ عَيَّاشٍ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ رِبْعِيِّ بْنِ حِرَاشٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ يَرْفَعُهُ، قَالَ: "ثَلَاثَةٌ يُحِبُّهُمُ اللَّهُ: رَجُلٌ قَامَ مِنَ اللَّيْلِ يَتْلُو كِتَابَ اللَّهِ، وَرَجُلٌ تَصَدَّقَ صَدَقَةً بِيَمِينِهِ يُخْفِيهَا"، أُرَاهُ قَالَ: "مِنْ شِمَالِهِ، وَرَجُلٌ كَانَ فِي سَرِيَّةٍ فَانْهَزَمَ أَصْحَابُهُ فَاسْتَقْبَلَ الْعَدُوَّ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَهُوَ غَيْرُ مَحْفُوظٍ، وَالصَّحِيحُ مَا رَوَى شُعْبَةُ وَغَيْرُهُ عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ رِبْعِيِّ بْنِ حِرَاشٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ ظَبْيَانَ، عَنْ أَبِي ذَرٍّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَأَبُو بَكْرِ بْنُ عَيَّاشٍ كَثِيرُ الْغَلَطِ. (٢)

**ترجمه** . دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دري قسمه كسان دي چې الله تعالي ورسره محبت كوي يو هغه كس دي څوك چې دشپي پاڅي او د الله دكتاب تلاوت كوي، دويم هغه كس دي چې پخپل ښي لاس صدقه وركړي او پټه يي اوساتي، او دريم هغه كس دي چې په كومه سريه كي تلي وي او دده دشكست خوړلو نه پس دوباره د دشمن مقابلي ته تيار شي

امام ترمذي وايي: داحديث په دي سند غريب دي او محفوظ نه دي صحيح روايت هغه دي كوم چې شعبه وغيره عن منصور عن ربعي بن حراش عن زيد بن ضبيان عن ابي ذر عن النبي صلي الله عليه وسلم سند سره نقل كړي دي، او ابوبكر بن عياش يو كثير الغلط راوي دي

***************

[1] ـ انظر حديث رقم ١٩٨٦

[2] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٩١٩٩)

٢٥٦٨ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، وَمُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، قَالاَ: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ مَنْصُورِ بْنِ الْمُعْتَمِرِ، قَالَ: سَمِعْتُ رِبْعِيَّ بْنَ حِرَاشٍ يُحَدِّثُ، عَنْ زَيْدِ بْنِ ظَبْيَانَ، يَرْفَعُهُ إِلَى أَبِي ذَرٍّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " ثَلاَثَةٌ يُحِبُّهُمُ اللَّهُ، وَثَلاَثَةٌ يُبْغِضُهُمُ اللَّهُ، فَأَمَّا الَّذِينَ يُحِبُّهُمُ اللَّهُ: فَرَجُلٌ أَتَى قَوْمًا فَسَأَلَهُمْ بِاللَّهِ وَلَمْ يَسْأَلْهُمْ بِقَرَابَةٍ بَيْنَهُ وَبَيْنَهُمْ فَمَنَعُوهُ فَتَخَلَّفَ رَجُلٌ بِأَعْقَابِهِمْ فَأَعْطَاهُ سِرًّا لاَ يَعْلَمُ بِعَطِيَّتِهِ إِلاَّ اللَّهُ وَالَّذِي أَعْطَاهُ، وَقَوْمٌ سَارُوا لَيْلَتَهُمْ حَتَّى إِذَا كَانَ النَّوْمُ أَحَبَّ إِلَيْهِمْ مِمَّا يُعْدَلُ بِهِ نَزَلُوا فَوَضَعُوا رُءُوسَهُمْ فَقَامَ أَحَدُهُمْ يَتَمَلَّقُنِي وَيَتْلُو آيَاتِي، وَرَجُلٌ كَانَ فِي سَرِيَّةٍ فَلَقِيَ الْعَدُوَّ فَهُزِمُوا وَأَقْبَلَ بِصَدْرِهِ حَتَّى يُقْتَلَ أَوْ يُفْتَحَ لَهُ، وَالثَّلاَثَةُ الَّذِينَ يُبْغِضُهُمُ اللَّهُ: الشَّيْخُ الزَّانِي، وَالْفَقِيرُ الْمُخْتَالُ، وَالْغَنِيُّ الظَّلُومُ ".(1)

**ترجمه** : دابوذر رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دري قسمه خلق داسي دي چې الله تعالي ورسره محبت کوي او دري قسمه نور خلق داسي دي چې الله تعالي ورنه نفرت کوي دکومو خلقو سره چې الله تعالي محبت کوي هغوئ دادي يو خو هغه کس دي څوك چې يو قوم ته ورشي او دالله تعالي په خاطر ورنه سوال اوکړي او ددوئ سره چې دده کومه رشته داري ده دهغي په خاطر ورنه سوال اونکړي او خلق ورته انکار اوکړي او بيا په دي کسانو کي يو کس يواخي لاړ شي او په پټه دي غوښتونکي ته څه ورکړي او ددي ورکړي نه دالله تعالي او ددي کس نه علاوه بل څوك خبر نشي (دويم هغه کس دي چې کوم کسان دشپې سفر کوي او خوب دوئ ته دهر څيز نه محبوب شي او دي سر کيږدي او اوده شي، نو الله تعالي فرمائي دي وخت کي دا کس اودريږي او زما په دربار کي ژړاګاني کوي او زما دايتونو تلاوت کوي (او دريم کس هغه دي) څوك چې په يو جنګ کي شريك وي او دشمن ورته مخامخ شي نو نور خلق په شا لاړ شي ليکن ده ورته خپله سينه مخامخ نيولي وي تردي پوري چې قتل کړي شي او يا ميدان اوګټي (کومه حده پوري چې ددي خلقو تعلق دي کومو لره چې الله تعالي نه خوښوي نو په هغوئ کي يو بودازناکار دي او يو متکبر فقير دي او يو ظلم کونکي بادشاه دي

* * * * * * * * * * * * * * * *

حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلاَنَ، حَدَّثَنَا النَّضْرُ بْنُ شُمَيْلٍ، عَنْ شُعْبَةَ، نَحْوَهُ، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ

1 تخ: ن/قيام الليل ٥ (١٦١٦)، والزكاة ٧٥ (٢٥٧١) (تحفة الأشراف: ١١٩١٣)، ومسند احمد (٥/١٥٣)

صَحِيحٌ. وَهَكَذَا رَوَى شَيْبَانُ، عَنْ مَنْصُورٍ نَحْوَ هَذَا، وَهَذَا أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ أَبِي بَكْرِ بْنِ عَيَّاشٍ. [1]

**ترجمه** نضر بن شميل دشعبه نه ددي هم معني روايت نقل کړي دي

امام ترمذي وايي داحديث صحيح دي دا رنګي روايت شيبان هم دمنصور نه نقل کړي دي او دا روايت دابوبکر بن عياش درروايت نه زيات صحيح دي.

****************

## ۴۶_بَاب مِنْهُ

### سابقه باب متعلق يوبل باب

۲۵۶۹_حَدَّثَنَا أَبُو سَعِيدٍ الأَشَجُّ، حَدَّثَنَا عُقْبَةُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ، عَنْ خُبَيْبِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ جَدِّهِ حَفْصِ بْنِ عَاصِمٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يُوشِكُ الفُرَاتُ يَحْسِرُ عَنْ كَنْزٍ مِنْ ذَهَبٍ فَمَنْ حَضَرَهُ فَلَا يَأْخُذْ مِنْهُ شَيْئًا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [2]

**ترجمه** : د ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي يقينا دفرات په درياب کې به دسروزرو يوه خزانه څرګنديږي خو څوك مسلمان چې هلته حاضروي دی خزانی نه دی هيڅ شی نه اخلي.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي.

**لغات** : الفرات: داد يو لوي او مشهور درياب نوم دي کوم چې بحر فارس ته رسيدلي دي ، فرات خوګو اوبوته ويلي شي.

**تشريح**: "يحسر الفرات" مطلب دادی چې دفرات اوبه به اوچې شي او ددينه به دسرو زرو هغه خزانه راوخي کومه چې به دغرونو په شان وي. په يو بل روايت کې راغلي دي "فمن حضره فلاياخذ منه شيئا" يعني څوك چې په دغه وخت کې موجود وي نو هغه دي ددي خزاني نه هيڅ څيز نه اخلي مګر دپورتني حديث نه معلوميږي چې خلق به ددي مال لالچ او حرص کوي تردي چې په هرو سلو کې به نهه نوي کسان قتل کړی شي څکه چې دا خزانه به دمکروه مال په حکم کې وي.

---

[1] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /الفتن ۲۲ (۷۱۱۹) . صحيح مسلم /الفتن ۸ (۲۸۹۴) . سنن ابن ماجه/الفتن ۲۵ (۴۰۴۵) (تحفة الأشراف : ۱۲۲۶۳) . و مسند احمد (۲۶۱/۲ ، ۳۳۲ ، ۳۶۰)

[2] ـ تفرد به المؤلف رحمه الله تعالى في سننه الجامع.

* * * * * * * * * * * * * * * *

٢٥٧٠_حَدَّثَنَا أَبُو سَعِيدٍ الأَشَجُّ، حَدَّثَنَا عُقْبَةُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنِ الأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهُ، إِلَّا أَنَّهُ قَالَ: "يَحْسِرُ عَنْ جَبَلٍ مِنْ ذَهَبٍ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (١)

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه په همدي سند دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه ددي هم معني روايت مروي دي مگر دواړو كي فرق دادي چې په دي حديث كي رسول الله فرمائيلي دي دسرو زرو غر به راښكاره شي.
امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي

* * * * * * * * * * * * * * * *

## ٢٧_باب مَا جَاءَ فِي صِفَةِ أَنْهَارِ الْجَنَّةِ

### دجنت دنهرونو بيان

٢٥٧١_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا الْجُرَيْرِيُّ، عَنْ حَكِيمِ بْنِ مُعَاوِيَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "إِنَّ فِي الْجَنَّةِ بَحْرَ الْمَاءِ وَبَحْرَ الْعَسَلِ وَبَحْرَ اللَّبَنِ وَبَحْرَ الْخَمْرِ، ثُمَّ تُشَقَّقُ الأَنْهَارُ بَعْدُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَحَكِيمُ بْنُ مُعَاوِيَةَ هُوَ وَالِدُ بَهْزِ بْنِ حَكِيمٍ، وَالْجُرَيْرِيُّ يُكْنَى: أَبَا مَسْعُودٍ وَاسْمُهُ: سَعِيدُ بْنُ إِيَاسٍ. (٢)

**ترجمه** دمعاويه بن حيده قشيري نه مروي دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په جنت كي داوبو يو سمندر دي او يو سمندر دشهدو دي او يو سمندر دشودو دي او يو سمندر دشرابو دي بيا ددينه واړه واړه نهرونه وتلي دي
امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي

* * * * * * * * * * * * * * * *

٢٥٧٢_حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو الأَحْوَصِ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ بُرَيْدِ بْنِ أَبِي مَرْيَمَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ

---

[1] _ انظر ماقبله (تحفة الأشراف: ١٣٦٩٥)

[2] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١١٣٩٤)

مَالِكٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ سَأَلَ اللَّهَ الْجَنَّةَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ، قَالَتِ الْجَنَّةُ: اللَّهُمَّ أَدْخِلْهُ الْجَنَّةَ، وَمَنِ اسْتَجَارَ مِنَ النَّارِ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ، قَالَتِ النَّارُ: اللَّهُمَّ أَجِرْهُ مِنَ النَّارِ". قَالَ: هَكَذَا رَوَى يُونُسُ بْنُ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ بُرَيْدِ بْنِ أَبِي مَرْيَمَ، عَنْ أَنَسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ بُرَيْدِ بْنِ أَبِي مَرْيَمَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ مَوْقُوفًا أَيْضًا. (١)

**ترجمه** : دانس بن مالك رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوك چې دالله تعالي نه دري پيري جنت غواړي نو جنت وائي اي الله ده لره جنت ته داخل کړي او څوك چې دري پيري دجهنم نه پناه غواړي نو جهنم وائي اي الله ده ته دجهنم نه نجات ورکړي

امام ترمذي وايي: داحديث په همدي مضمون يونس بن ابي اسحاق عن ابي اسحاق عن بريد بن ابي مريم عن انس عن النبي صلي الله عليه وسلم سند سره مروي دي، داحديث عن ابي اسحاق عن بريد بن ابي مريم عن انس بن مالك سند سره موقوفا هم مروي دي.

*****************

# كتاب صفة جهنم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم

## د جهنم د متعلقه امورو او لوازمو تفصيلات

## ١ـ باب مَا جَاءَ فِي صِفَةِ النَّارِ

### د جهنم د اور د كيفيت بيان

٢٥٧٣ـ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، أَخْبَرَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصِ بْنِ غِيَاثٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنِ الْعَلَاءِ بْنِ خَالِدٍ الْكَاهِلِيِّ، عَنْ شَقِيقِ بْنِ سَلَمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يُؤْتَى بِجَهَنَّمَ يَوْمَئِذٍ لَهَا سَبْعُونَ أَلْفَ زِمَامٍ، مَعَ كُلِّ زِمَامٍ سَبْعُونَ أَلْفَ مَلَكٍ يَجُرُّونَهَا". قَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، وَالثَّوْرِيُّ لَا يَرْفَعُهُ. (٢)

---

[1] ـ سنن النسائي/الاستعاذة ٥٦ (٥٥٢٣) . سنن ابن ماجه/الزهد ٣٩ (٤٣٤٠) (تحفة الأشراف : ٢٣٣) . و مسند احمد (٣/٢٠٨)

[2] ـ صحيح مسلم/صفة الجنة ١٢ (٢٨٤٢) (تحفة الأشراف : ٩٢٩٠)

**ترجمه** دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه دا هم روايت دى چې رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل چې دقيامت په ورځ به دوزخ په اويا زره واګو کې ګير راوستلى شي چې اويا زره فرشتې به دهرواګي سره وي او راکاږي به يې.

امام ترمذي وايي. د عبد الله بن عبد الرحمن قول دي چې سفيان ثوري به دا حديث مرفوع نه بيانولو.

**لغات**: زمام: هر هغه شي په کوم چې کوم شي راښکل شي يعني مهار جمع يې ازمّة راځي دنصر ينصر باب نه لکه زمّم الجمال يعني اوښانو ته يې مهارونه واچول. القربة مشك.

**تشريح**: پورتنى حديث محدثينو دمتشابهاتو نه شميرلى دى چې ددې تعلق دغيبي امورو سره دى ايمان راوړل پرې ضروري دي خو کيفيت يې مونږ ته نه دى معلوم ظاهرا ددې روايت دا مطلب کيدى شي چې دقيامت په ورځ به په لکونو فرشتې جهنم راکاږي او دحشر ميدان ته به يې راوړي او بيابه دوئ جهنم په هغه ځاى کې کيږدي چې د اهل محشر او جنت په مينځ کې به حائل شي او جنت ته دتلو دپاره به دپل صراط نه علاوه بله لار نه وي پل صراط به دجهنم دپاسه کيخودى شي او په دې باندې به تيريدو سره به خلق جنت ته رسيږي

- "سبعون الف ملك يجرونها" يعني اويا زره فرشتې به يې راکاږي بعض علماء وائي کله چې جهنم راوړى شي نو په انتهائي غضب ناك حالت کې به وي او دا به غواړي چې دا تمام مخلوق تير کړم مګر فرشتې به يې دواګو په ذريعه منع کوي که چرې فرشتې يې پريږدي نو تمام مومنان او کافران به راکاږي.

*****************

حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ عَمْرٍو أَبُو عَامِرٍ الْعَقَدِيُّ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنِ الْعَلَاءِ بْنِ خَالِدٍ بِهَذَا الإِسْنَادِ نَحْوَهُ وَلَمْ يَرْفَعْهُ. [1]

**ترجمه** په مذکوره سند هم دماقبل هم معني روايت مروي دي مګر مرفوع يې نه دي بيان کړي

*****************

٢٥٧٤_حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُعَاوِيَةَ الْجُمَحِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُسْلِمٍ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَخْرُجُ عُنُقٌ مِنَ النَّارِ يَوْمَ

---

[1] _ صحيح مسلم/صفة الجنة ١٢ (٢٨٤٢) (تحفة الأشراف: ٩٤٩٠)

الْقِيَامَةِ لَهَا عَيْنَانِ تُبْصِرَانِ، وَأُذُنَانِ تَسْمَعَانِ، وَلِسَانٌ يَنْطِقُ، يَقُولُ: إِنِّي وُكِّلْتُ بِثَلَاثَةٍ: بِكُلِّ جَبَّارٍ عَنِيدٍ، وَبِكُلِّ مَنْ دَعَا مَعَ اللَّهِ إِلَهًا آخَرَ، وَبِالْمُصَوِّرِينَ ". وفي الباب عن أبي سعيد. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رَوَاهُ بَعْضُهُمْ عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ عَطِيَّةَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَ هَذَا، وَرَوَى أَشْعَثُ بْنُ سَوَّارٍ، عَنْ عَطِيَّةَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ. ([1])

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دقيامت په ورځ به دجهنم نه يوه غړئ راوځي او دوه سترګي به يې وي چې ليدل به کوي ، دوه غوږونه به يې وي چې اوريدل به کوي او ژبه به يې وي چې خبري به کوي او داسي به وائي زه په دري قسمه خلقو مقرر شوي يم، په هر سرکش ظالم، او په هر هغه بنده څوك چې دالله تعالي نه علاوه دبل چا بندګي کوي. او په بتانو جوړونکي باندي.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن غريب صحيح دي، او په دي باب کي دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه هم روايت وارد دي، او بعضي راويانو دا حديث عن الاعمش عن عطيه عن ابي سعيد عن النبي صلي الله عليه وسلم سند سره ددي هم معني نقل کړي دي، اشعث بن سوار هم عن عطيه عن ابي سعيد الخدري عن النبي صلي الله عليه وسلم سره ددي په مثل نقل کړي دي.

***************

## ٢_باب مَا جَاءَ فِي صِفَةِ قَعْرِ جَهَنَّمَ

### دجهنم دژوروالي بيان

٢٥٧٥_حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، حَدَّثَنَا حُسَيْنُ بْنُ عَلِيٍّ الْجُعْفِيُّ، عَنْ فُضَيْلِ بْنِ عِيَاضٍ، عَنْ هِشَامٍ، عَنِ الْحَسَنِ، قَالَ: قَالَ عُتْبَةُ بْنُ غَزْوَانَ: عَلَى مِنْبَرِنَا هَذَا مِنْبَرِ الْبَصْرَةِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " إِنَّ الصَّخْرَةَ الْعَظِيمَةَ لَتُلْقَى مِنْ شَفِيرِ جَهَنَّمَ فَتَهْوِي فِيهَا سَبْعِينَ عَامًا وَمَا تُفْضِي إِلَى قَرَارِهَا ". قَالَ: وَكَانَ عُمَرُ، يَقُولُ: أَكْثِرُوا ذِكْرَ النَّارِ فَإِنَّ حَرَّهَا شَدِيدٌ وَإِنَّ قَعْرَهَا بَعِيدٌ وَإِنَّ مَقَامِعَهَا حَدِيدٌ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: لَا نَعْرِفُ لِلْحَسَنِ سَمَاعًا مِنْ عُتْبَةَ بْنِ غَزْوَانَ، وَإِنَّمَا قَدِمَ عُتْبَةُ

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٢٤٢٣)، وانظر مسند احمد (٢/٣٣٦)

بْنُ غَزْوَانَ الْبَصْرَةَ فِي زَمَنِ عُمَرَ وَوُلِدَ الْحَسَنُ لِسَنَتَيْنِ بَقِيَتَا مِنْ خِلَافَةِ عُمَرَ. ([1])

**ترجمه** حسن بصري وائي غزوه بن غزوان رضي الله عنه زمونږ دبصري په دي منبر باندي بيان كړل چې نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كه چري يوه ډيره لويه ګټه ،كمر، دجهنم غاړي ته راوړلي شي او جهنم ته اوغورځولي شي او داوياكالو په مقدار رفتار اوكړي نو بيا به هم دجهنم تل ته اونه رسيږي، عتبه وائي عمر رضي الله عنه به فرمائيل جهنم په كثرت سره يادوئ خكه چې ګرم والي يې ډيرزيات دي او ژور والي يې ډير زيات دي او ددي ګرزونه داوسپني دي.

امام ترمذي وايي دعتبه بن غزوان نه دحسن بصري سماع ثابت نه دي دعمر رضي الله عنه دخلافت په دور كي عتبه بن غزوان بصري ته راغلي دي او دحسن بصري پيدائش هغه وخت كي شوي دي كله چې دعمر رضي الله عنه دخلافت دوه كاله باقي وو

****************

٢٥٧٦_حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ مُوسَى، عَنِ ابْنِ لَهِيعَةَ، عَنْ دَرَّاجٍ، عَنْ أَبِي الْهَيْثَمِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " الصَّعُودُ جَبَلٌ مِنْ نَارٍ يَتَصَعَّدُ فِيهِ الْكَافِرُ سَبْعِينَ خَرِيفًا وَيَهْوِي فِيهِ كَذَلِكَ مِنْهُ أَبَدًا ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ مَرْفُوعًا إِلَّا مِنْ حَدِيثِ ابْنِ لَهِيعَةَ. ([2])

**ترجمه** دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه مروي دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي صعود په جهنم كي يو غر دي ديته به كافر اويا كاله ورخيژي او په هم دومره كلونو كي به ورنه واپس كوزيږي او دا عذاب به كافر ته هميشه دپاره وركولي شي

امام ترمذي وايي داحديث غريب دي دا مونږ ته صرف دابن لهيعه په سند مرفوع رارسيدلي دي.

****************

## ٣_باب مَا جَاءَ فِي عِظَمِ أَهْلِ النَّارِ

### دجهنميانو دڅورب والي او غټوالي بيان

---

[1] _ صحيح مسلم/الزهد ١ (٢٩٦٧) ، سنن ابن ماجه/الزهد ١٢ (٤١٥٦) (مختصراً جداً) (تحفة الأشراف : ٩٧٥٤) ، و مسند احمد (٤/١٧٤) ، (٥/٦١)

[2] تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ٤٠٦٣)

٢٥٧٧_حَدَّثَنَا عَبَّاسٌ الدُّورِيُّ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُوسَى، أَخْبَرَنَا شَيْبَانُ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "إِنَّ غِلَظَ جِلْدِ الكَافِرِ اثْنَانِ وَأَرْبَعُونَ ذِرَاعًا، وَإِنَّ ضِرْسَهُ مِثْلُ أُحُدٍ، وَإِنَّ مَجْلِسَهُ مِنْ جَهَنَّمَ كَمَا بَيْنَ مَكَّةَ، وَالمَدِينَةِ". هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ مِنْ حَدِيثِ الأَعْمَشِ. ([1])

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دكافر دځرمن پيړوالي به دوه څلويښت ګزه وي او يو غاښ به يې داحد دغر په مقدار وي 'و په جهنم کي دده دناستي ځاي به دومره وي څومره چې دمکي او مديني مينځ کي فاصله ده
امام ترمذي وايي داحديث داعمش په روايت حسن صحيح غريب دي

***************

٢٥٧٨_حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَمَّارٍ، حَدَّثَنِي جَدِّي مُحَمَّدُ بْنُ عَمَّارٍ، وَصَالِحٌ مَوْلَى التَّوْءَمَةِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "ضِرْسُ الكَافِرِ يَوْمَ القِيَامَةِ مِثْلُ أُحُدٍ، وَفَخِذُهُ مِثْلُ البَيْضَاءِ، وَمَقْعَدُهُ مِنَ النَّارِ مَسِيرَةُ ثَلَاثٍ مِثْلُ الرَّبَذَةِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَمِثْلُ الرَّبَذَةِ: كَمَا بَيْنَ المَدِينَةِ، وَالرَّبَذَةِ، وَالبَيْضَاءُ: جَبَلٌ مِثْلُ أُحُدٍ. ([2])

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دقيامت په ورځ به دکافر غاښ داحد دغر برابر وي او يو ورون به يې دبيضاء غر پشان وي او په جهنم کي به دده دناستي ځاي ددري ميله مسافي سره برابر وي لکه څومره چې د ربذي لري والي دي
امام ترمذي وايي داحديث حسن غريب دي د "مثل الربذة" مطلب دادي څومره چې ربذه غر دمديني نه لري دي، ربذه او بيضاء داحد پشان دوه غرونه دي

***************

٢٥٧٩_حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا مُصْعَبُ بْنُ المِقْدَامِ، عَنْ فُضَيْلِ بْنِ غَزْوَانَ، عَنْ أَبِي حَازِمٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَفَعَهُ، قَالَ: "ضِرْسُ الكَافِرِ مِثْلُ أُحُدٍ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَأَبُو

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف ١٢٤١٠)

[2] ـ صحيح مسلم/الجنة ١٣ (٢٨٥١) (تحفة الأشراف: ١٣٥٠٥، و١٣٥٩٦)

حَازِمٍ هُوَ الأَشْجَعِيُّ اسْمُهُ: سَلْمَانُ مَوْلَى عَزَّةَ الأَشْجَعِيَّةِ. (1)

**ترجمه** ابوحازم دابوهريره رضي الله عنه نه دا روايت مرفوع نقل كړي دي چې فرمائيل يې دكافر يو غاښ به داحد دغر پشان وي

امام ترمذي وايي: دا حديث حسن دي او دابو حازم اشجعي نوم سلمان دي

****************

٢٥٨٠ـ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ، عَنِ الفَضْلِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ أَبِي الْمُخَارِقِ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " " إِنَّ الْكَافِرَ لَيُسْحَبُ لِسَانُهُ الْفَرْسَخَ وَالْفَرْسَخَيْنِ يَتَوَطَّؤُهُ النَّاسُ " ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ إِنَّمَا نَعْرِفُهُ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. وَالْفَضْلُ بْنُ يَزِيدَ هُوَ كُوفِيٌّ، قَدْ رَوَى عَنْهُ غَيْرُ وَاحِدٍ مِنَ الأَئِمَّةِ وَأَبُو الْمُخَارِقِ لَيْسَ بِمَعْرُوفٍ. (1)

**ترجمه** : دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كافر به خپله ژبه يو يا دوه فرسخو پوري په خان پسي راكاږي او خلق به وربانذي گرځي.

امام ترمذي وايي: دا حديث غريب دي دا مونږ ته صرف په همدي سند معلوم دي، او فضل بن يزيد دكوفي اوسيدونكي دي او دده نه دعلم حديث ډيرو علماؤ نقل دروايت كړي دي، او ابو المخارق غير مشهور راوي دي.

****************

## ٤ـ بَاب مَا جَاءَ فِي صِفَةِ شَرَابِ أَهْلِ النَّارِ

### دجهنميا نو دمشروباتو بيان

٢٥٨١ـ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا رِشْدِينُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ الْحَارِثِ، عَنْ دَرَّاجٍ، عَنْ أَبِي الْهَيْثَمِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي قَوْلِهِ: كَالْمُهْلِ (الكهف :٢٩)، قَالَ: " كَعَكَرِ الزَّيْتِ فَإِذَا قَرَّبَهُ إِلَى وَجْهِهِ سَقَطَتْ فَرْوَةُ وَجْهِهِ فِيهِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ لاَ نَعْرِفُهُ إِلاَّ مِنْ حَدِيثِ رِشْدِينَ بْنِ سَعْدٍ، وَرِشْدِينُ قَدْ تُكُلِّمَ فِيهِ مِنْ قِبَلِ حِفْظِهِ. (2)

**ترجمه** : دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه مروي دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم دارشاد

---

[1] ـ صحيح مسلم/الجنة ١٣ (٢٨٥١) (تحفة الأشراف: ١٣٥٠٥، و١٣٥٩٦)

[2] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٨٥٩٣)

[3] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٤٠٥٨)

الهي "كالمهل" باره کي اوفرمائيل چې ددوی دڅکلو څيزونه به دتيلو دخيرې پشان وي چې کله يې کافر خولې ته رانزدې کړي (نو دګرم والي په وجه به) ددوی دمخ څرمن په دې کې راپريوځي.
امام ترمذي وايي: داحديث مونږ صرف درشدين بن سعد په روايت پيژنو او په رشدين محدثينو کلام کړی دی.

****************

٢٥٨٢ـحَدَّثَنَا سُوَيْدٌ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، أَخْبَرَنَا سَعِيدُ بْنُ يَزِيدَ، عَنْ أَبِي السَّمْحِ، عَنْ ابْنِ حُجَيْرَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "إِنَّ الْحَمِيمَ لَيُصَبُّ عَلَى رُءُوسِهِمْ، فَيَنْفُذُ الْحَمِيمُ حَتَّى يَخْلُصَ إِلَى جَوْفِهِ، فَيَسْلِتُ مَا فِي جَوْفِهِ حَتَّى يَمْرُقَ مِنْ قَدَمَيْهِ، وَهُوَ الصَّهْرُ، ثُمَّ يُعَادُ كَمَا كَانَ". وَسَعِيدُ بْنُ يَزِيدَ يُكْنَى: أَبَا شُجَاعٍ وَهُوَ مِصْرِيٌّ، وَقَدْ رَوَى عَنْهُ اللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ، وَابْنُ حُجَيْرَةَ هُوَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ حُجَيْرَةَ الْمِصْرِيُّ. (1)

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي نبي کريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دجهنميانو په سرونوبه "ماء حميم" (ګرمي اوبه) واچولي شي او دا به ددوی په سرونو کې سرايت اوکړي تردې پورې چې خيټې ته به اورسيږي او ددوی به خيټه کې چې څه دي دا به ختم کړي تردې پورې چې ددوی دخپو (کناتو) نه به لاندې اوځي او همدا هغه "صهر" دکوم ذکر چې په قران کريم کې راغلي دي او بيا به خپل حالت ته داسې واپس شي څنګه چې مخکې وو
امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح غريب دي

****************

٢٥٨٣ـحَدَّثَنَا سُوَيْدُ بْنُ نَصْرٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، أَخْبَرَنَا صَفْوَانُ بْنُ عَمْرٍو، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ بُسْرٍ، عَنْ أَبِي أُمَامَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي قَوْلِهِ: وَيُسْقَى مِنْ مَاءٍ صَدِيدٍ . يَتَجَرَّعُهُ (ابراهيم :١٥-١٢ .)، قَالَ: "يُقَرَّبُ إِلَى فِيهِ فَيَكْرَهُهُ، فَإِذَا أُدْنِيَ مِنْهُ شَوَى وَجْهَهُ وَوَقَعَتْ فَرْوَةُ رَأْسِهِ، فَإِذَا شَرِبَهُ قَطَّعَ أَمْعَاءَهُ حَتَّى يَخْرُجَ مِنْ دُبُرِهِ". يَقُولُ اللَّهُ: وَسُقُوا مَاءً حَمِيمًا فَقَطَّعَ أَمْعَاءَهُمْ (محمد: ١٥) وَيَقُولُ: وَإِنْ يَسْتَغِيثُوا يُغَاثُوا بِمَاءٍ كَالْمُهْلِ يَشْوِي الْوُجُوهَ بِئْسَ الشَّرَابُ (الكهف: ٢٩)

---

1 ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٣٥٩١)

". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ. وَهَكَذَا قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيل. عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ بُسْرٍ. وَلَا نَعْرِفُ عُبَيْدَ اللَّهِ بْنَ بُسْرٍ إِلَّا فِي هَذَا الْحَدِيثِ. وَقَدْ رَوَى صَفْوَانُ بْنُ عَمْرٍو. عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُسْرٍ صَاحِبِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَيْرَ هَذَا الْحَدِيثِ. وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ بُسْرٍ لَهُ أَخٌ قَدْ سَمِعَ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَأُخْتُهُ قَدْ سَمِعَتْ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَعُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ بُسْرٍ الَّذِي رَوَى عَنْهُ صَفْوَانُ بْنُ عَمْرٍو حَدِيثَ أَبِي أُمَامَةَ. لَعَلَّهُ أَنْ يَكُونَ أَخَا عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُسْرٍ. [1]

**ترجمه** دابوامامه رضي الله عنه نه مروي دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم دارشاد الهي "وَيُسْقَىٰ مِن مَّاءٍ صَدِيدٍ . يَتَجَرَّعُهُ" (يعني صديد اوبه به په دوئ باندي څكولي شي چې كوټ كوټ به په سخته تيروي) باره كي اوفرمائيل چې صديد كله دوئ خولي ته رانزدي كړي نو بد به يې اوګنړي كله چې ورته دا نور رانزدي كړي شي نو مخ به يې پوخ شي او دسر څرمن به يې پريوخي او چې كله يې څكي نو كولمي به يې اودوريږي تردي پوري چې ددوئ دكوناتو نه به لاندي اوځي الله تعالي فرمائيلي دي "وسقوا ماء حميما فقطع امعاءهم" يعني په دوئ باندي به ګرمي اوبه څكولي شي او دا به ددوئ كولمي پري كوي، او الله تعالي فرمائيلي دي " وَإِن يَسْتَغِيثُوا يُغَاثُوا بِمَاءٍ كَالْمُهْلِ يَشْوِي الْوُجُوهَ بِئْسَ الشَّرَابُ " او كه دوئ فرياد اوكړي نو ددوئ فرياد رسي به په داسي اوبو باندي اوكړي شي كومي چې به دتيلو دخيري پشان وي دمخ غوښه به پخوي او دا انتهائي بدترين مشروب دي.

امام ترمذي وايي: داحديث غريب دي دارنګي امام بخاري هم په سند كي عن عبيدالله بن بسر ذكر كړي دي او مونږ ته عبيدالله بن بسر صرف په همدي حديث كي معلوم دي، صفوان بن عمر دعبدالله بن بسر نه څوك چې دنبي كريم صلي الله عليه وسلم صحابي دي يو بل حديث نقل كړي دي او دعبدالله بن بسر يو ورور دي چاچې دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه احاديث اوريدلي دي او دهغه يوه خور هم شته چې درسول الله صلي الله عليه وسلم نه يې حديث اوريدلي دي او دكوم عبدالله بن بسر نه چې صفوان بن عمر داحديث نقل كړي دي هغه صحابي نه دي بل څوك دي

***************

٢٥٨٤_حَدَّثَنَا سُوَيْدُ بْنُ نَصْرٍ. أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُبَارَكِ. أَخْبَرَنَا رِشْدِينُ بْنُ سَعْدٍ. حَدَّثَنِي عَمْرُو بْنُ الْحَارِثِ. عَنْ دَرَّاجٍ. عَنْ أَبِي الْهَيْثَمِ. عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ. عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

[1] _ تفرد به المؤلف (أخرجه النسائي في الكبرى)

وَسَلَّمَ قَالَ: "كَالْمُهْلِ (الكهف :٢٩) كَعَكَرِ الزَّيْتِ فَإِذَا قُرِّبَ إِلَيْهِ سَقَطَتْ فَرْوَةُ وَجْهِهِ فِيهِ".([1])

**ترجمه** دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كالمهل يعني دتيلو دخيري پشان به وي چې كله يي جهنمي خولي ته رانزدي كړي نو دجهنمي دمخ څرمن به په دي كي پريوځي

****************

وَبِهَذَا الإِسْنَادِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لِسُرَادِقِ النَّارِ أَرْبَعَةُ جُدُرٍ كِثَفُ كُلِّ جِدَارٍ مِثْلُ مَسِيرَةِ أَرْبَعِينَ سَنَةً".([2])

**ترجمه** په مذكوره سند دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه دا هم مروي دي دجهنم دانگړ څلور ديوالونه دي او دهر ديوال مسافه دڅلويښتو كلونو دمزل په مقدار ده

****************

وَبِهَذَا الإِسْنَادِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَوْ أَنَّ دَلْوًا مِنْ غَسَّاقٍ يُهَرَاقُ فِي الدُّنْيَا لأَنْتَنَ أَهْلَ الدُّنْيَا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ إِنَّمَا نَعْرِفُهُ مِنْ حَدِيثِ رِشْدِينَ بْنِ سَعْدٍ، وَفِي رِشْدِينَ مَقَالٌ، وَقَدْ تُكُلِّمَ فِيهِ مِنْ قِبَلِ حِفْظِهِ، وَمَعْنَى قَوْلِهِ كِثَفُ كُلِّ جِدَارٍ يَعْنِي: غِلَظَهُ.([3])

**ترجمه** په مذكوره سند دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه دا مضمون هم مروي دي كه چري يو بهوكه دغساق نه دي دنيا ته راوغورځولي شي نو ټوله دنيا او اهل ددنيا به بدبويه كړي امام ترمذي وايي دا حديث مونږ صرف درشدين بن سعد په سند پيژنو او په رشدين محدثينو كلام كړي دي او دحافظي په اعتبار قوي نه دي او د "كثف كل جدار" نه مراد غلاظت دي

****************

٢٥٨٥_حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلاَنَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَرَأَ هَذِهِ الآيَةَ: اتَّقُوا اللَّهَ حَقَّ تُقَاتِهِ وَلاَ تَمُوتُنَّ إِلاَّ وَأَنْتُمْ مُسْلِمُونَ (آل عمران :١٠٢)، قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَوْ أَنَّ قَطْرَةً مِنَ الزَّقُّومِ قُطِرَتْ فِي دَارِ الدُّنْيَا لأَفْسَدَتْ عَلَى أَهْلِ الدُّنْيَا مَعَايِشَهُمْ، فَكَيْفَ بِمَنْ يَكُونُ طَعَامَهُ". قَالَ

[1] ـ انظر حديث رقم ٢٥٨١

[2] ـ انظر حديث رقم ٢٥٨١

[3] ـ انظر حديث رقم ٢٥٨١

أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** : دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم دا ايت كريمه اولوستلو " اتَّقُوا اللَّهَ حَقَّ تُقَاتِهِ وَلا تَمُوتُنَّ إِلا وَأَنْتُمْ مُسْلِمُونَ " يعني تاسو دالله تعالي نه داسي ويره كوئ ځنګه چې دويري حق دي او مرګ دي تاسو ته په داسي حال كي راشي چې تاسو په اسلام قائم يئ، او بيا يي اوفرمانيل كه چري دزقوم يوه تکره دنيا ته راوغورځولي شي نو دټولي دنيا والا زندګي به خرابه کړي پس دهغه کس به څه حال وي دچا خوراك چې صرف زقوم وي.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي

****************

## ٥ـ باب مَا جَاءَ فِي صِفَةِ طَعَامِ أَهْلِ النَّارِ

### دجهنميانو دخوراك بيان

٢٥٨٦ـ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، أَخْبَرَنَا عَاصِمُ بْنُ يُوسُفَ، حَدَّثَنَا قُطْبَةُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ شِمْرِ بْنِ عَطِيَّةَ، عَنْ شَهْرِ بْنِ حَوْشَبٍ، عَنْ أُمِّ الدَّرْدَاءِ، عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " يُلْقَى عَلَى أَهْلِ النَّارِ الْجُوعُ فَيَعْدِلُ مَا هُمْ فِيهِ مِنَ الْعَذَابِ فَيَسْتَغِيثُونَ فَيُغَاثُونَ بِطَعَامٍ مِنْ ضَرِيعٍ لا يُسْمِنُ وَلَا يُغْنِي مِنْ جُوعٍ. فَيَسْتَغِيثُونَ بِالطَّعَامِ فَيُغَاثُونَ بِطَعَامٍ ذِي غُصَّةٍ فَيَذْكُرُونَ أَنَّهُمْ كَانُوا يُجِيزُونَ الْغَصَصَ فِي الدُّنْيَا بِالشَّرَابِ، فَيَسْتَغِيثُونَ بِالشَّرَابِ فَيُرْفَعُ إِلَيْهِمُ الْحَمِيمُ بِكَلَالِيبِ الْحَدِيدِ، فَإِذَا دَنَتْ مِنْ وُجُوهِهِمْ شَوَتْ وُجُوهَهُمْ. فَإِذَا دَخَلَتْ بُطُونَهُمْ قَطَّعَتْ مَا فِي بُطُونِهِمْ. فَيَقُولُونَ: ادْعُوا خَزَنَةَ جَهَنَّمَ. فَيَقُولُونَ: أَلَمْ تَكُ تَأْتِيكُمْ رُسُلُكُمْ بِالْبَيِّنَاتِ، قَالُوا: بَلَى، قَالُوا: فَادْعُوا وَمَا دُعَاءُ الْكَافِرِينَ إِلَّا فِي ضَلَالٍ، قَالَ: فَيَقُولُونَ: ادْعُوا مَالِكًا فَيَقُولُونَ: يَا مَالِكُ لِيَقْضِ عَلَيْنَا رَبُّكَ (الزخرف: ٧٧.) قَالَ: فَيُجِيبُهُمْ إِنَّكُمْ مَاكِثُونَ (الزخرف: ٧٧ ".) قَالَ الأَعْمَشُ: نُبِّئْتُ أَنَّ بَيْنَ دُعَائِهِمْ وَبَيْنَ إِجَابَةِ مَالِكٍ إِيَّاهُمْ أَلْفَ عَامٍ. قَالَ: " فَيَقُولُونَ: ادْعُوا رَبَّكُمْ فَلا أَحَدَ خَيْرٌ مِنْ رَبِّكُمْ. فَيَقُولُونَ: رَبَّنَا غَلَبَتْ عَلَيْنَا شِقْوَتُنَا وَكُنَّا قَوْمًا ضَالِّينَ ١٠٦ رَبَّنَا أَخْرِجْنَا مِنْهَا فَإِنْ عُدْنَا فَإِنَّا ظَالِمُونَ ١٠٧ (المؤمنون: ١٠٦-١٠٧) قَالَ:

---

[1] ـ سنن ابن ماجه/الزهد ٣٢ (٤٣٢٥) (تحفة الأشراف: ٦٣٩٨)

فَيُجِيبُهُمْ اخْسَئُوا فِيهَا وَلا تُكَلِّمُونِ (المؤمنون :١٠٨) قَالَ: فَعِنْدَ ذَلِكَ يَئِسُوا مِنْ كُلِّ خَيْرٍ وَعِنْدَ ذَلِكَ يَأْخُذُونَ فِي الزَّفِيرِ وَالْحَسْرَةِ وَالْوَيْلِ ". قَالَ عَبْدُ اللهِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ وَالنَّاسُ لَا يَرْفَعُونَ هَذَا الْحَدِيثَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: إِنَّمَا نَعْرِفُ هَذَا الْحَدِيثَ عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ شِمْرِ بْنِ عَطِيَّةَ، عَنْ شَهْرِ بْنِ حَوْشَبٍ، عَنْ أُمِّ الدَّرْدَاءِ، عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ، قَوْلَهُ: وَلَيْسَ بِمَرْفُوعٍ، وَقُطْبَةُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ هُوَ ثِقَةٌ عِنْدَ أَهْلِ الْحَدِيثِ. [1]

**ترجمه** دابو الدرداء رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي په جهنميانو به داسي ولږه مسلط کړي شي او دا عذاب به په دوئ باندي دوامي شي نو دوئ به فرياد اوکړي او ددوئ فرياد رسي به په ضريع باندي اوکړي شي (او دا يو ازغي دار بوټي دي) چې نه به څربول کوي او نه به مړول کوي بيا به دوئ دوباره دخوراك فرياد اوکړي نو ددوئ فرياد رسي به په مرئ کي په انختونکي څيز باندي اوکړي شي نو دوئ به بيا فرياد اوکړي چې په دنيا کي انختلي نوړئ به مونږ داوبو په ذريعه تيرولو نو داوبو فرياد به اوکړي دي وخت کي به ددوئ فرياد رسي په حميم (دجهنميانو غلاظت) باندي اوکړي شي چې داوسپني په لوښو کي به ورکولي شي کله چې دا مواد ددوئ مخونو ته رانژدي کړي شي نو ددوئ مخونه به پاخه شي او چې کله يې خيټي ته ورسيږي ددوئ په خيټو کي چې څه دي دا به ټول کټ کړي دوئ به اواز اوکړي چې دجهنم څوکيدار راوغواړئ هغه چې راشي دوئ ته به اووائي ايا تاسو ته رسولان په واضحه دلائلو نه وو درغلي؟ دوئ به اووائي ولي نه څوکيدار به ورته اووائي ډيري چغي اووهئ دکافرانو په چغو به عمل نه کيږي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل جهنميان به اووائي مالك راوغواړئ نو دوئ به اووائي اي مالك دخپل رب نه اوغواړه چې زمونږ فيصله اوکړي (چې مونږ ته مرګ راکړي) رسول الله اوفرمائيل مالك به دوئ ته جواب ورکړي تاسو هميشه په دوزخ کي اوسيدونکي يئ. اعمش وائي چې ددوئ دبلني او دمالك په جواب کي به دزر کالو وقفه وي رسول الله اوفرمائيل جهنميان به اووائي خپل رب راوبلئ ځکه چې ستاسو درب نه بهتر بل هيڅوك نشته نو دوئ به اووائي اي زمونږه ربه په مونږ باندي زمونږ بدبختي غالبه شوي وه او مونږ بي لاري شوي وو اي زمونږه ربه مونږ ددي عذاب نه اوباسي او که مونږ دوباره بيا داسي اوکړل نو مونږ به ظالمان يو رسول الله اوفرمائيل الله تعالي به دوئ ته جواب ورکړي کوري شئ تاسو به په دي کي هميشه پراته يئ او ماته چغي مه وهئ رسول الله اوفرمائيل دغه وخت کي به دوئ دخير نه محروم شي او دي وخت کي به دخرو

[1] ــ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٠٩٨٣)

پشان هنرار کوي او په حسرت هلاکت کي به مبتلا وي
امام ترمذي وايي دعبدالله بن عبدالرحمن دارمي قول دي محدثينو دا روايت مرفوع نه ذکر کوي او دا حديث مونږ ته صرف عن الاعمش عن شمر بن عطيه عن شهر بن حوشب عن ام الدرداء عن ابي الدرداء سند سره پيژنو او دا دابو الدرداء خپل قول دي او مرفوع حديث نه دي

***************

٢٥٨٧_حَدَّثَنَا سُوَيْدٌ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ يَزِيدَ أَبِي شُجَاعٍ، عَنْ أَبِي السَّمْحِ، عَنْ أَبِي الْهَيْثَمِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: وَهُمْ فِيهَا كَالِحُونَ (المؤمنون :١٠٤)، قَالَ: "تَشْوِيهِ النَّارُ فَتَقَلَّصُ شَفَتُهُ الْعُلْيَا حَتَّى تَبْلُغَ وَسَطَ رَأْسِهِ وَتَسْتَرْخِي شَفَتُهُ السُّفْلَى حَتَّى تَضْرِبَ سُرَّتَهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ، وَأَبُو الْهَيْثَمِ اسْمُهُ: سُلَيْمَانُ بْنُ عَمْرِو بْنِ عَبْدٍ الْعُتْوَارِيُّ، وَكَانَ يَتِيمًا فِي حِجْرِ أَبِي سَعِيدٍ.[1]

**ترجمه** : دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه مروي دي نبي کريم صلي الله عليه وسلم دا ايت کريمه "وهم فيها کالحون" يعني دوزخيان به په جهنم کي بدشکله وي، باره کي اوفرمانيل ددوئ مخونه به اور سوزوي او ددوئ ژبي به اوچوي او دسر مينځ ته به ورسيږي او ددوئ لاندیني شونډه به نوم ته ورسيږي.
امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح غريب دي.

***************

## ٦_باب مِنْهُ

### دسابقه باب متعلق يو بل باب

٢٥٨٨_حَدَّثَنَا سُوَيْدُ بْنُ نَصْرٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللهِ، أَخْبَرَنَا سَعِيدُ بْنُ يَزِيدَ، عَنْ أَبِي السَّمْحِ، عَنْ عِيسَى بْنِ هِلَالٍ الصَّدَفِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " لَوْ أَنَّ رُصَاصَةً مِثْلَ هَذِهِ وَأَشَارَ إِلَى مِثْلِ الْجُمْجُمَةِ أُرْسِلَتْ مِنَ السَّمَاءِ إِلَى الْأَرْضِ هِيَ مَسِيرَةُ خَمْسِ مِائَةِ سَنَةٍ لَبَلَغَتِ الْأَرْضَ قَبْلَ اللَّيْلِ، وَلَوْ أَنَّهَا أُرْسِلَتْ مِنْ رَأْسِ السِّلْسِلَةِ لَسَارَتْ أَرْبَعِينَ خَرِيفًا اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ قَبْلَ أَنْ تَبْلُغَ أَصْلَهَا أَوْ قَعْرَهَا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ إِسْنَادُهُ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَسَعِيدُ بْنُ يَزِيدَ هُوَ مِصْرِيٌّ، وَقَدْ رَوَى عَنْهُ اللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ وَغَيْرُ وَاحِدٍ مِنَ الْأَئِمَّةِ.

---

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ٤٠٦١)، ويأتي في تفسير المؤمنون (٣١٧٦)

(1)

**ترجمه** دعبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي که ددي برابر يوه تکړه (او رسول الله خپل سر ته اشاره اوکړه) داسمان نه زمکي ته چې دپنځه سوه کالو مسافه ده راپريخودلي شي نو زمکي ته به دشپې راتلونه مخکې راورسيږي او دغه تکړه دزنځير(چې ذکر يي په قران کي راغلي دي) دسر نه راپريخودلي شي نو ددي زنځير لاندي درسيدو نه مخکې به څلويښت کاله شپې او ورځې تيري شي.

امام ترمذي وايي: ددي حديث سند حسن صحيح دي. سعيد بن يزيد دمصر اوسيدونکي دي او دده نه ليث بن سعد او نورو ډيرو راويانو نقل دروايت کړي دي

****************

## ٧_ بَاب مَا جَاءَ أَنَّ نَارَكُمْ هَذِهِ جُزْءٌ مِنْ سَبْعِينَ جُزْءًا مِنْ نَارِ جَهَنَّمَ

### ددنيا اور دجهنم داور په اويا حصو کي يوه حصه ده

٢٥٨٩_ حَدَّثَنَا سُوَيْدُ بْنُ نَصْرٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللهِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ هَمَّامِ بْنِ مُنَبِّهٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "نَارُكُمْ هَذِهِ الَّتِي يُوقِدُ بَنُو آدَمَ جُزْءٌ وَاحِدٌ مِنْ سَبْعِينَ جُزْءًا مِنْ حَرِّ جَهَنَّمَ". قَالُوا: وَاللهِ إِنْ كَانَتْ لَكَافِيَةً يَا رَسُولَ اللهِ، قَالَ: "فَإِنَّهَا فُضِّلَتْ بِتِسْعَةٍ وَسِتِّينَ جُزْءًا كُلُّهُنَّ مِثْلُ حَرِّهَا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَهَمَّامُ بْنُ مُنَبِّهٍ هُوَ أَخُو وَهْبِ بْنِ مُنَبِّهٍ وَقَدْ رَوَى عَنْهُ وَهْبٌ. (2)

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي نبي کريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي ستاسو ددنيا اور چې تاسو يي بلوئ دجهنم داور په اويا حصو کي يوه تکړه ده خلقو عرض اوکړو اي دالله رسوله که همدا اور اخرت دپاره هم باقي پريخودلي شوي وي نو دا به کافي وو رسول الله اوفرمائيل هغه ددينه يو کم اويا حصي زيات دي او دهري يوي حصي گرموالي يي ددي پشان دي

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي.

****************

٢٥٩٠_ حَدَّثَنَا الْعَبَّاسُ بْنُ مُحَمَّدٍ الدُّورِيُّ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللهِ بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا شَيْبَانُ، عَنْ فِرَاسٍ،

---

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ٨٩١٠)

[2] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ١٤٦٩٠)

عَنْ عَطِيَّةَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " نَارُكُمْ هَذِهِ جُزْءٌ مِنْ سَبْعِينَ جُزْءًا مِنْ نَارِ جَهَنَّمَ لِكُلِّ جُزْءٍ مِنْهَا حَرُّهَا ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ حَدِيثِ أَبِي سَعِيدٍ. ([1])

**ترجمه** دابوسعيد خدري رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي ستاسو دا اور دجهنم داور په اويا حصو كي يوه حصه ده او دهغي دهري حصي كرموالي ددي پشان دي
امام ترمذي وايي داحديث دابوسعيد خدري په روايت حسن غريب دي

***************

## ٨_باب مِنْهُ

### دسابقه باب متعلق يوبل باب

٢٥٩١_حَدَّثَنَا عَبَّاسٌ الدُّورِيُّ الْبَغْدَادِيُّ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ أَبِي بُكَيْرٍ، حَدَّثَنَا شَرِيكٌ، عَنْ عَاصِمٍ هُوَ ابْنُ بَهْدَلَةَ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " أُوقِدَ عَلَى النَّارِ أَلْفَ سَنَةٍ حَتَّى احْمَرَّتْ، ثُمَّ أُوقِدَ عَلَيْهَا أَلْفَ سَنَةٍ حَتَّى ابْيَضَّتْ، ثُمَّ أُوقِدَ عَلَيْهَا أَلْفَ سَنَةٍ حَتَّى اسْوَدَّتْ فَهِيَ سَوْدَاءُ مُظْلِمَةٌ ". ([2])

**ترجمه** : دابو هريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دجهنم اور زر كاله بل كړي شوي دي تردي پوري چې تك سور شو بيا زر كاله نور بل كړي شو تردي پوري چې سپين شو بيا زر كاله نور بل كړي شو تر دي پوري چې تك تور شو او اوس هغه تك تور دي.

***************

حَدَّثَنَا سُوَيْدُ بْنُ نَصْرٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ شَرِيكٍ، عَنْ عَاصِمٍ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، أَوْ رَجُلٍ آخَرَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، نَحْوَهُ وَلَمْ يَرْفَعْهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ فِي هَذَا مَوْقُوفٌ أَصَحُّ، وَلَا أَعْلَمُ أَحَدًا رَفَعَهُ غَيْرَ يَحْيَى بْنِ أَبِي بُكَيْرٍ، عَنْ شَرِيكٍ. ([3])

---

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف)

[2] _ سنن ابن ماجه/الزهد ٣٨ (٤٣٢٠) (تحفة الأشراف : ١٢٨٠٤)

[3] _ : سنن ابن ماجه/الزهد ٣٨ (٤٣٢٠) (تحفة الأشراف : ١٢٨٠٤)

**ترجمه**: په مذکوره سند دابوهريره رضي الله عنه نه دماقبل پشان روايت مروي دي او مرفوع يي نه دي بيان کړي.
امام ترمذي وايي: په ذي باب کي دابوهريره موقوف حديث زيات صحيح دي او ديحي بن ابي بکير نه علاوه چې دشريك نه يي نقل کړي ماته بل څوك نه دي معلوم چې دا حديث يي مرفوع ذکر کړي وي

***************

## ٩_باب مَا جَاءَ أَنَّ لِلنَّارِ نَفَسَيْنِ وَمَا ذُكِرَ مَنْ يَخْرُجُ مِنَ النَّارِ مِنْ أَهْلِ التَّوْحِيدِ

### دجهنم د دوه ساګانو اخستلو او د دينه دموحدينو دبهر ويستلو بيان

٢٥٩٢_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُمَرَ بْنِ الْوَلِيدِ الْكِنْدِيُّ الْكُوفِيُّ، حَدَّثَنَا الْمُفَضَّلُ بْنُ صَالِحٍ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اشْتَكَتِ النَّارُ إِلَى رَبِّهَا، وَقَالَتْ: أَكَلَ بَعْضِي بَعْضًا، فَجَعَلَ لَهَا نَفَسَيْنِ: نَفَسًا فِي الشِّتَاءِ، وَنَفَسًا فِي الصَّيْفِ. فَأَمَّا نَفَسُهَا فِي الشِّتَاءِ فَزَمْهَرِيرٌ، وَأَمَّا نَفَسُهَا فِي الصَّيْفِ فَسَمُومٌ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ. قَدْ رُوِيَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ، وَالْمُفَضَّلُ بْنُ صَالِحٍ لَيْسَ عِنْدَ أَهْلِ الْحَدِيثِ بِذَلِكَ الْحَافِظِ.[1]

**ترجمه**: دابوهريره رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي جهنم خپل رب ته شکايت اوکړو چې زما بعضي حصه بلي بعضي حصي لره خوري نو په دي وجه الله تعالي ددي دپاره دوه ساګاني مقرر کړي يوه سا په ګرمۍ کي او يوه ساه په يخنۍ کي په يخنۍ کي دجهنم ساه اخستلو سره سخته يخني راځي او په ګرمۍ کي دجهنم په ساه اخستلو سره په مزه کيږي.
امام ترمذي وايي: داحديث صحيح دي او دابوهريره په واسطه دا حديث دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه په بل سند هم مروي دي او مفضل بن صالح دمحدثينو په نزد قوي حافظي والا نه دي

***************

[1] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /المواقيت ٩ (٥٣٦) . وبدء الخلق ١٠ (٣٢٦٠) . صحيح مسلم/المساجد ٣٢ (٦١٦) . سنن ابن ماجه/الزهد ٣٨ (٤٣١٩) (تحفة الأشراف : ١٢٣٦٣) . والمؤطاء: وقوت ٨ (٢٨) . و مسند احمد (٢/٢٣٨، ٢٦٦، ٤٦٢، ٥٠٣) . وسنن الدارمي/الرقاق ١١٩ (٢٨٨٦)

۲٥٩٣_حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، وَهِشَامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "يَخْرُجُ مِنَ النَّارِ، وَقَالَ شُعْبَةُ: أَخْرِجُوا مِنَ النَّارِ مَنْ قَالَ: لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، وَكَانَ فِي قَلْبِهِ مِنَ الخَيْرِ مَا يَزِنُ شَعِيرَةً، أَخْرِجُوا مِنَ النَّارِ مِنَ قَالَ: لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَكَانَ فِي قَلْبِهِ مِنَ الخَيْرِ مَا يَزِنُ بُرَّةً، أَخْرِجُوا مِنَ النَّارِ مَنْ قَالَ: لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَكَانَ فِي قَلْبِهِ مِنَ الخَيْرِ مَا يَزِنُ ذَرَّةً". وَقَالَ شُعْبَةُ: مَا يَزِنُ ذُرَةً مُخَفَّفَةً، وفي الباب عن جَابِرٍ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَعِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** : دانس رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي هر هغه څوك به دجهنم نه اوخي راو شعبه پخپل روايت كي وائي الله تعالي به اوفرمائي هر هغه څوك دجهنم نه اوباسئ چاچي لا اله الا الله وئيلي دي او دده په زړه كي دوربشي ددانې برابر خير موجود وي هغه هم دجهنم نه اوباسئ او هغه څوك هم دجهنم نه اوباسئ چې لااله الا الله يې وئيلي وي او په زړه كي يې دغنم د دانې برابر نيكي وي، او هغه څوك هم دجهنم نه اوباسئ چې لا اله الاالله يې وئيلي وي او په زړه كي يې داوري ددانې برابر خير وي دشعبه په روايت كي دجوار ددانې برابر خير هم مذكور دي.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي، او په دي باب كي دجابر، ابوسعيد خدري، او عمران بن حصين رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

***************

۲٥٩٤_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ رَافِعٍ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، عَنْ مُبَارَكِ بْنِ فَضَالَةَ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي بَكْرِ بْنِ أَنَسٍ، عَنْ أَنَسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "يَقُولُ اللَّهُ: أَخْرِجُوا مِنَ النَّارِ مَنْ ذَكَرَنِي يَوْمًا أَوْ خَافَنِي فِي مَقَامٍ". قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. [2]

**ترجمه** دانس رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي الله تعالي به اوفرمائي هغه څوك دجهنم نه اوباسئ چاچي يوه ورځ هم زه ياد كړي يم او يا په يو وخت كي زما نه ويريدلي وي

امام ترمذي وايي داحديث حسن غريب دي

---

[1] _ اورده البخاري في الجامع الصحيح /الإيمان ۳۳ (۴۴) ، والتوحيد ۱۹ (۷۴۱۰) (في سياق حديث الشفاعة الكبرى) و ۳٦ (۷٥۰۹) ، و مسلم /الإيمان ۸۳ (۳۲٥/۱۹۳) (تحفة الأشراف : ۱۲۷۲، و۱۳٥٦) ، و مسند احمد (۳/۱۱٦، ۱۷۳، ۲۴۸، ۲۷٦)

[2] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ۱۰۸٦)

***************

## ١٠_باب مِنهُ

### دسابقه باب متعلق يو بل باب

٢٥٩٥_حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَبِيدَةَ السَّلْمَانِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنِّي لأَعْرِفُ آخِرَ أَهْلِ النَّارِ خُرُوجًا، رَجُلٌ يَخْرُجُ مِنْهَا زَحْفًا فَيَقُولُ: يَا رَبِّ قَدْ أَخَذَ النَّاسُ المَنَازِلَ. قَالَ: فَيُقَالُ لَهُ: انْطَلِقْ فَادْخُلِ الجَنَّةَ. قَالَ: فَيَذْهَبُ لِيَدْخُلَ فَيَجِدُ النَّاسَ قَدْ أَخَذُوا المَنَازِلَ، فَيَرْجِعُ فَيَقُولُ: يَا رَبِّ قَدْ أَخَذَ النَّاسُ المَنَازِلَ. قَالَ: فَيُقَالُ لَهُ: أَتَذْكُرُ الزَّمَانَ الَّذِي كُنْتَ فِيهِ؟ فَيَقُولُ: نَعَمْ. فَيُقَالُ لَهُ: تَمَنَّ. قَالَ: فَيَتَمَنَّى. فَيُقَالُ لَهُ: فَإِنَّ لَكَ مَا تَمَنَّيْتَ وَعَشَرَةَ أَضْعَافِ الدُّنْيَا. قَالَ: فَيَقُولُ: أَتَسْخَرُ بِي وَأَنْتَ المَلِكُ؟ قَالَ: فَلَقَدْ رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ضَحِكَ حَتَّى بَدَتْ نَوَاجِذُهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه** : دابن مسعود رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي ماته معلوم دی تولو نه اخر کې دوزخ وتونکی يو سړی به ددوزخ نه په تختيدو تختيدو رااوزي الله تعالي به ورته اوفرمائي څه جنت ته ننوزه هغه به جنت ته ورشي نو جنت به ورته ډک ښکاره شي، بيابه واپس راشي او به وائي يا الله هغه خو ډک دی، الله تعالي به ورته بيا اوفرمائي: لاړ شه جنت ته ننوزه جنت کې ستا دپاره دټولی دنيا په لس چنده خای دی.
(اوته وايې چې ډک دی خايی پکې نشته) هغه به اووائي يا الله ته راپوری توقی کوی ياته راپوری خندا کوی او ته بادشاه يی دټولی دنيا مالك يی (ماغوندی) محتاج پوری خندا ستا دشان سره نه ښائي راوي وائي پدی خبره رسول الله صلي الله عليه وسلم داسی وخاندل چې دجامو غاښونه مبارك يی ښكاره شول
امام ترمذي وايي: دا حديث حسن صحيح دی.

**لغات** : الملك : مصدر دي بادشاه، جمع يې ملوك او املاك وملك الاملاك راځي، يعني دبادشاهانو بادشاه املك القوم فلانا عليهم بادشاه كيدل ، الملك ، الله، بادشاه ، صاحب اقتدار، جمع يې ملوك او املاك ده

[1] ــ اورده البخاري في الجامع /الرقاق ٥١ (٦٥٧١) . والتوحيد ٣٦ (٧٥١١) . مسلم/الإيمان ٨٣ (١٨٦) . ابن ماجه/الزهد ٣٩ (٤٣٣٩) (تحفة الأشراف . ٩٤٠٥) . و مسند احمد (١/٣٦٠)

**تشريح** په دي حديث کې دهغه جنتي ذکر دی کوم چې به دټولو نه وروسته جنت ته داخل شي ، دی به وائي ای زما پروردگاره ایا ته په ما پوري ټوقي کوي الله تعالي به ورته اووائي خپل جنت ته دي ورځه کوم چې د دنیا نه لس چنده لوي دی دی به اووائي چې ای پروردگاره ته مزاق کوي علماء وائي چې دډيري خوشحالۍ په وجه به دی دا الفاظ اووائي لکه چې په يو روايت کې راغلي دي کله چې ديو سړي سورلۍ دسامان سره ورکه شي او دده دموندلو څه امید نه وي او ناڅاپه ورته ملاؤ شي نو یکدم دده په ژبه دا الفاظ جاري وي "انت عبدي وانا ربك" يعني ای الله ته زما بنده او زه ستا رب یم ، يعني دا الته الفاظ بي اختياره دده دخولي نه خارج شي نو دا رنګي دلته هم بي اختياره دخوشحالۍ په وجه دده دخولي نه اوځي چې ای الله ایا ته مزاق کوي.

"دي خبري په نقل کولو رسول الله دومره وخاندل چې نواجذ غاښونه يي ښکاره شول" ځکه چې درسول الله عام عادت مسکا کول وو ليکن دلته په ادني جنتي باندي دالله دفضل او کرم په وجه رسول الله بي اختياره وخاندل.

علماء وائي دا ادني ترين جنتي دی چاته چې به دومره نعمتونه ملاوېږي نو داعلي ترين جنتي دنعمتونو به څه حال وي د دي تصور څنګه کيدی شي؟

*****************

٢٥٩٦ـ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنِ المَعْرُورِ بْنِ سُوَيْدٍ، عَنْ أَبِي ذَرٍّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنِّي لَأَعْرِفُ آخِرَ أَهْلِ النَّارِ خُرُوجًا مِنَ النَّارِ، وَآخِرَ أَهْلِ الجَنَّةِ دُخُولًا الجَنَّةَ، يُؤْتَى بِرَجُلٍ فَيَقُولُ: سَلُوا عَنْ صِغَارِ ذُنُوبِهِ وَاخْبَئُوا كِبَارَهَا، فَيُقَالُ لَهُ: عَمِلْتَ كَذَا وَكَذَا يَوْمَ كَذَا وَكَذَا، عَمِلْتَ كَذَا وَكَذَا فِي يَوْمِ كَذَا وَكَذَا، قَالَ: فَيُقَالُ لَهُ: فَإِنَّ لَكَ مَكَانَ كُلِّ سَيِّئَةٍ حَسَنَةً، قَالَ: فَيَقُولُ: يَا رَبِّ لَقَدْ عَمِلْتُ أَشْيَاءَ مَا أَرَاهَا هَا هُنَا. قَالَ: فَلَقَدْ رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَضْحَكُ حَتَّى بَدَتْ نَوَاجِذُهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه** . د ابو ذر رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي ماته معلوم دی ټولو نه اخر کې دوزخ وتونکی یا ټولو نه اخر کې جنت ته تلونکی يو سړی به ددوزخ نه په ښبنتيدو ښبنتيدو رااوزي او الله تعالي به (فرشتو ته) اووائي دده نه دوړو وړو ګناهونو باره کې تپوس اوکړئ او لوي ګناهونه يي پټ کړئ ده ته به اووئيلي شي تا په فلانۍ ورځ داسي داسي ګناهونه کړي وو او تا په فلانۍ ورځ داسي داسي ګناهونه کړي وو؟ رسول الله

[1] ـ صحيح مسلم/الإيمان ٨٣ (١٩٠) (تحفة الأشراف: ١١٩٨٣)

اوفرمائيل ده ته به اوونيلي شي ستا دهري گناه په بدل کي ستا دپاره يوه نيکي ده رسول الله اوفرمائيل دي به عرض اوکړي اي زما ربه ما بعضي داسي گناهونه هم کړي وو کوم چې مي دلته اونه ليدل، ابوذر رضي الله عنه وائي ما رسول الله صلي الله عليه وسلم دي وخت کي دخندا په حالت اوليدو تردي چې غاښونه مبارك يي ښکاره شو.

امام ترمذي وايي. داحديث حسن صحيح دي.

****************

٢٥٩٧ـ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي سُفْيَانَ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يُعَذَّبُ نَاسٌ مِنْ أَهْلِ التَّوْحِيدِ فِي النَّارِ حَتَّى يَكُونُوا فِيهَا حُمَمًا ثُمَّ تُدْرِكُهُمُ الرَّحْمَةُ فَيُخْرَجُونَ وَيُطْرَحُونَ عَلَى أَبْوَابِ الجَنَّةِ، قَالَ: فَيَرُشُّ عَلَيْهِمْ أَهْلُ الجَنَّةِ المَاءَ، فَيَنْبُتُونَ كَمَا يَنْبُتُ الغُثَاءُ فِي حِمَالَةِ السَّيْلِ ثُمَّ يَدْخُلُونَ الجَنَّةَ". قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ عَنْ جَابِرٍ. ([1])

**ترجمه** : دجابر رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په موحدينو کي به څه کسانو ته په جهنم کي عذاب ورکولي شي تردي پوري چې سکاره به ورنه جوړ شي بيا به ورباندي درحمت الهي سوري اوشي نو دوئ به راوويستلي شي او دجنت په دروازه به اوغورځولي شي رسول الله اوفرمائيل جنتيان به په دوئ باندي اوبه چنړکاؤ کړي نو دوئ به داسي راشنه شي لکه دسيلاب په اوبو کي چې دانه شنه کيږي اوددينه پس به جنت ته داخل شي.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي او دا حديث په نورو سندونو هم دجابر رضي الله عنه نه مروي دي.

****************

٢٥٩٨ـ حَدَّثَنَا سَلَمَةُ بْنُ شَبِيبٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الخُدْرِيِّ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "يُخْرَجُ مِنَ النَّارِ مَنْ كَانَ فِي قَلْبِهِ مِثْقَالُ ذَرَّةٍ مِنَ الإِيمَانِ"، قَالَ أَبُو سَعِيدٍ: فَمَنْ شَكَّ فَلْيَقْرَأْ: إِنَّ اللَّهَ لا يَظْلِمُ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٢٣٢٢) . وانظر مسند احمد (٣/٣٩١)

(النساء: ٤٠. قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (1)

**ترجمه** . دابوسعيد خدري بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي دجهنم نه به هغه كس اوويستلي شي دچا په زړه كي چې دذري برابر ايمان وي ابوسعيد خدري اوفرمائيل دچا په زړه كي چې شك وي هغه دي دا ايت كريمه "ان الله لايظلم مثقال ذرة" اولولي يعني الله تعالي دذري برابر چاسره ظلم نه كوي.
امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي.

***************

٢٥٩٩_حَدَّثَنَا سُوَيْدُ بْنُ نَصْرٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ، أَخْبَرَنَا رِشْدِينُ بْنُ سَعْدٍ، حَدَّثَنِي ابْنُ أَنْعُمَ، عَنْ أَبِي عُثْمَانَ أَنَّهُ حَدَّثَهُ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " إِنَّ رَجُلَيْنِ مِمَّنْ دَخَلَ النَّارَ اشْتَدَّ صِيَاحُهُمَا، فَقَالَ الرَّبُّ عَزَّ وَجَلَّ: أَخْرِجُوهُمَا، فَلَمَّا أُخْرِجَا قَالَ لَهُمَا: لِأَيِّ شَيْءٍ اشْتَدَّ صِيَاحُكُمَا؟ قَالَا: فَعَلْنَا ذَلِكَ لِتَرْحَمَنَا، قَالَ: إِنَّ رَحْمَتِي لَكُمَا أَنْ تَنْطَلِقَا فَتُلْقِيَا أَنْفُسَكُمَا حَيْثُ كُنْتُمَا مِنَ النَّارِ، فَيَنْطَلِقَانِ فَيُلْقِي أَحَدُهُمَا نَفْسَهُ فَيَجْعَلُهَا عَلَيْهِ بَرْدًا وَسَلَامًا، وَيَقُومُ الْآخَرُ فَلَا يُلْقِي نَفْسَهُ، فَيَقُولُ لَهُ الرَّبُّ عَزَّ وَجَلَّ: مَا مَنَعَكَ أَنْ تُلْقِيَ نَفْسَكَ كَمَا أَلْقَى صَاحِبُكَ؟ فَيَقُولُ: يَا رَبِّ إِنِّي لَأَرْجُو أَنْ لَا تُعِيدَنِي فِيهَا بَعْدَ مَا أَخْرَجْتَنِي، فَيَقُولُ لَهُ الرَّبُّ: لَكَ رَجَاؤُكَ، فَيَدْخُلَانِ جَمِيعًا الْجَنَّةَ بِرَحْمَةِ اللَّهِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: إِسْنَادُ هَذَا الْحَدِيثِ ضَعِيفٌ، لِأَنَّهُ عَنْ رِشْدِينَ بْنِ سَعْدٍ، وَرِشْدِينُ بْنُ سَعْدٍ هُوَ ضَعِيفٌ عِنْدَ أَهْلِ الْحَدِيثِ، عَنِ ابْنِ أَنْعُمَ وَهُوَ الْأَفْرِيقِيُّ، وَالْأَفْرِيقِيُّ ضَعِيفٌ عِنْدَ أَهْلِ الْحَدِيثِ. (2)

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي جهنم ته په داخليدونكو كي به دوه كسان په چغو شي الله تعالي به اوفرمائي دوئ دواړه راوباسه كله چې دوئ راوويستلي شي نو الله تعالي به ورنه تپوس اوكړي تاسو ولې په چغو شوئ؟ دوئ به عرض اوكړي دا كار مونږ په دي وجه اوكړو چې ته راباندي رحم اوكړې الله تعالي به اوفرمائي ستاسو دواړو دپاره زما رحمت همدادي چې تاسو لاړشئ خپل خانونه هغه جهنم ته اوغورځوئ په كوم كي چې تاسو مخكي وئ نو دوئ به روان شي نو په دوئ كي به يو كس خپل ځان جهنم

---

1 _ اورده البخاري في الجامع الصحيح /التوحيد ٢٤ (٤٣٢٩) . و صحيح مسلم /الإيمان ٨١ (١٨٣) (تحفة الأشراف : ٤١٨١)
والظر مسند احمد (٣/٩٤)

2 _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ١٥٤٤٨)

ته اوغورخوي نو الله تعالي به جهنم دده دپاره يخ او سلامتي؛ والااوګرځوي او دا دويم كس به ولاړ پاتي شي او خپل ځان به نه غورځوي دده نه به الله تعالي تپوس اوكړي جهنم ته دځان غورځولو نه كوم څيز منع كړي يي؟ څنګه چې ستا ملګري ځان اوغورځولو دي به عرض اوكړي اي زما پروردګاره زما اميد دي چې ته ما لره دجهنم نه دوتو نه پس دوباره جهنم ته نه غورځوي الله تعالي به ورته اوفرمائي ستا دپاره به ستا تمنا پوره شي او بيا به دوئ دواړو ته رحمت الهيه سره جنت ته داخل شي.

امام ترمذي وايي: ددي حديث سند ضعيف دي ځكه چې درشدين بن سعد په واسطه مروي دي او رشدين دمحدثينو په نزد ضعيف دي او رشدين دعبدالرحمن بن انعم نه روايت كوي او دا نعم دافريقي اوسيدونكي دي او دا هم دمحدثينو په نزد ضعيف دي

*****************

٢٦٠٠_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا الحَسَنُ بْنُ ذَكْوَانَ، عَنْ أَبِي رَجَاءٍ العُطَارِدِيِّ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَيَخْرُجَنَّ قَوْمٌ مِنْ أُمَّتِي مِنَ النَّارِ بِشَفَاعَتِي يُسَمَّوْنَ الجَهَنَّمِيُّونَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَأَبُو رَجَاءٍ العُطَارِدِيُّ اسْمُهُ: عِمْرَانُ بْنُ تَيْمٍ وَيُقَالُ: ابْنُ مِلْحَانَ. [1]

**ترجمه** : دعمران بن حصين رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي زما دامت يوه ډله به زما په شفاعت دجهنم نه راويستلي شي او ددي ډلي نوم به جهنميان وي.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي.

*****************

٢٦٠١_حَدَّثَنَا سُوَيْدُ بْنُ نَصْرٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ المُبَارَكِ، عَنْ يَحْيَى بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَا رَأَيْتُ مِثْلَ النَّارِ نَامَ هَارِبُهَا، وَلَا مِثْلَ الجَنَّةِ نَامَ طَالِبُهَا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ إِنَّمَا نَعْرِفُهُ مِنْ حَدِيثِ يَحْيَى بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ، وَيَحْيَى بْنُ عُبَيْدِ اللَّهِ ضَعِيفٌ عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الحَدِيثِ تَكَلَّمَ فِيهِ شُعْبَةُ، وَيَحْيَى بْنُ عُبَيْدِ اللَّهِ هُوَ ابْنُ مَوْهَبٍ

[1] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /الرقاق ٥٠ (٦٥٥٩). سنن ابي داود/ السنة ٢٣ (٤٧٤٠). سنن ابن ماجه/الزهد ٣٧ (٤٣١٥) (تحفة الأشراف: ١٠٨٧١). و مسند احمد (٤/٤٣٤)

وَهُوَ مَدَنِيٌّ. (1)

**ترجمه**: د ابو هريره نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي ما د جهنم پشان داسي كوم شي نه دي ليدلي چي تختيدونكي ورنه اوده وي، او ما د جنت پشان داسي كوم شي نه دي ليدلي چي طلب كونكي يي اوده وي.

امام ترمذي وايي: دا حديث مونږ ته صرف د يحي بن عبيد الله په سند معلوم دي، او يحي د محدثينو په نزد ضعيف دي، شعبه ورباندي كلام كړى دى، او د يحي د نيكه نوم موهب دي اود مديني اوسيدونكي دي.

***************

## ١١_باب مَا جَاءَ أَنَّ أَكْثَرَ أَهْلِ النَّارِ النِّسَاءُ

### اكثر جهنميان ښځي وي

٢٦٠٢_حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيل بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا أَيُّوبُ، عَنْ أَبِي رَجَاءٍ الْعُطَارِدِيِّ، قَالَ: سَمِعْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اطَّلَعْتُ فِي الْجَنَّةِ فَرَأَيْتُ أَكْثَرَ أَهْلِهَا الْفُقَرَاءَ، وَاطَّلَعْتُ فِي النَّارِ فَرَأَيْتُ أَكْثَرَ أَهْلِهَا النِّسَاءَ". (2)

**ترجمه** : دابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دى چې رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل ما چې جنت ته وكتل نو زيات ترمي پكې غريبانان اوليدل او چې دوزخ ته مي سر ورښكاره كړو نو زيات مي پكې زنانه اوليدلي.

**لغات** : اطلعت: اطلع الامر وعليه، معني معلومول او ناڅاپه راتلل ، اطلع الفجر سحر ليدل اطلع العدو ددشمن ديټ حال نه واقف كيدل.

**تشريح** : "فرائيت اكثر اهلها الفقراء" يعني زه چې جنت ته ورغلم نو اكثر اهل جنت مي فقيران اوليدل ، معلومه خبره ده چې دمال زياتوالى انسان لره سركشه كوي او په مختلف قسم ګناهونو كې يي مبتلا كوي مطرف بن شخير به فرمائيل چې دبادشاهانو په عيش او عشرت او عمده لباس نظر مه كوئ بلكه دا سوچ اوكړئ چې ددوئ انجام به څه وي

"فرائيت اكثر اهلها النساء" زه چې جهنم ته ورغلم نو اكثر اهل جهنم مي ښځي اوليدلي په يو

---

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ١٣١٢٢)

[2] _ اورده البخاري في الجامع الصحيح /الرقاق ١٦ (تعليقا عقب حديث ٦٤٤٩) . صحيح مسلم/الذكر والدعاء ٢٦ (٢٧٣٨)(تحفة الأشراف : ٦٣١٧) . ومسند احمد (١/٢٩٣، ٣٥٩)

بل روايت کې ددي وجه راغلي ده چې "تكثرن اللعن وتكفرن العشير" يعني تاسو دلعنت لفظ زيات استعمالوئ او دخپل خاوند ناشکرياني کوئ په يو بل روايت کې راغلي دي رسول الله په صلاة الكسوف کې ددوزخ او جنت مشاهده اوکړه نو پدغه وخت کې هم رسول الله په دوزخ کې دښځو کثرت اوليدو کله چې صحابه کرامو ددي دوجي تپوس اوکړو نو رسول الله اوفرمائيل دوئ احسانات ډير هيروي او دخاوند ناشکري کوي تمام عمر ورباندي خاوند احسان اوکړي او بيا چرته معمولي شان خبره پيدا شي نو فورا وائي چې ما په تا کې هيڅ خير نه دی ليدلی.

که ښځي غواړي چې جنت ته لاړي شي نو ددي طريقه هم رسول الله په يو روايت کې بيان کړي ده چې صدقي دي ورکوي او دصدقو په وجه ددينه بچ کيدل ممکن دي کله چې رسول الله په يو موقعه کې داسي اوفرمائيل نو ښځو فورا دخپلو غوږونو زيورات او دخپلو غاړو هارونه راووستل او دبلال رضي الله عنه په څادر يي اوغورځول. (روضة الصالحين)

***************

٢٦٠٣ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عَدِيٍّ، وَمُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، وَعَبْدُ الوَهَّابِ الثَّقَفِيُّ، قَالُوا: حَدَّثَنَا عَوْفٌ هُوَ ابْنُ أَبِي جَمِيلَةَ، عَنْ أَبِي رَجَاءٍ العُطَارِدِيِّ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " اطَّلَعْتُ فِي النَّارِ فَرَأَيْتُ أَكْثَرَ أَهْلِهَا النِّسَاءَ، وَاطَّلَعْتُ فِي الجَنَّةِ فَرَأَيْتُ أَكْثَرَ أَهْلِهَا الفُقَرَاءَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَهَكَذَا يَقُولُ عَوْفٌ، عَنْ أَبِي رَجَاءٍ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، وَيَقُولُ أَيُّوبُ، عَنْ أَبِي رَجَاءٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَكِلَا الإِسْنَادَيْنِ لَيْسَ فِيهِمَا مَقَالٌ، وَيُحْتَمَلُ أَنْ يَكُونَ أَبُو رَجَاءٍ سَمِعَ مِنْهُمَا جَمِيعًا، وَقَدْ رَوَى غَيْرُ عَوْفٍ أَيْضًا هَذَا الحَدِيثَ، عَنْ أَبِي رَجَاءٍ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ. [1]

**ترجمه** . د عمران بن حصين رضي الله عنهما نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل ما چې دوزخ ته مي سر ورښکاره کړو نو زيات مي پکې زنانه اوليدلی او چې جنت مي وکتلو نو زيات ترمي پکې غريبانان وو.

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي، عوف دسند بيانولو په حال کي داسي وائي عن ابي رجاء عن عمران بن حضين او ايوب داسي وائي عن ابي رجاء عن ابن عباس په دواړو سندونو هيڅ قسم کلام نه دي شوي ددي خبري احتمال شته چې ابورجاء دعمران بن حصين او

---

[1] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /بدء الخلق ٨ (٣٢٤١) . والنكاح ١٨ (٥١٩٨) . والرقاق ١٦ (٦٤٤٩) . و ٥١ (٦٥٤٦) (تحفة الأشراف : ١٠٨٤٣) . و مسند احمد (٤٢٩/٤، ٤٤٣)

ابن عباس دوارو نه اوریدلي دي دعوف نه علاوه نورو راویانو هم دا حدیث دابو رجا، په واسطه دعمران بن حصین نه نقل کړي دي

***************

## ١٢ـ باب مِنْهُ

### دسابقه باب متعلق یوبل باب

٢٦٠٤ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ جَرِيرٍ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "إِنَّ أَهْوَنَ أَهْلِ النَّارِ عَذَابًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ رَجُلٌ فِي أَخْمَصِ قَدَمَيْهِ جَمْرَتَانِ يَغْلِي مِنْهُمَا دِمَاغُهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وفي الباب عن الْعَبَّاسِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ، وَأَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ.[1]

**ترجمه**: دنعمان بن بشیررضي الله عنه نه روایت دی چې ما د رسول الله صلي الله علیه وسلم نه دا فرمان اوریدلی دی چې دوزخیانو کې به معمولي او سپك عذاب دهغه چا وي چې دهغه د خپو په تلو کې به داور دوه سکروټی کیښودی شي چې دهغی دګرموالي په وجه به یې دماغ خوټکیږي

امام ترمذي وايي: داحدیث حسن صحیح دي او په دي باب کي دعباس بن عبدالمطلب، ابوسعید خدري، او ابو هریره رضي الله عنهم نه هم احادیث وارد دي.

**لغات**: اهون: اسم تفضیل دي هان هونا دنصر نه په معني دنرم او اسان کیدو دي لکه: هُن عندي الیوم یعني نن زما سره ارام وکړه.

اخمص اخمص القدم یعني دخپي هغه حصه کومه چې دزمکي سره نه لګي او کله کله ورنه پوره خپه مراد وي خمص دنصر نه خموصا په معني دزخم دخپي دي.

یغلي: غلي یغلي د ضرب نه غلیا وغلیانا په معني دخوټکیدو دي.

**تشریح**: دټولو نه به سپك عذاب والاابو طالب وي، په یو روایت کې داسي راغلي دي "اهون اهل النار عذابا ابو طالب وهو متنعل بنعلین یغلي منهما دماغه"

یعني دټولو نه به سپك عذاب والاپه جهنم کې ابو طالب وي چې د اور پیزار به یې اچولي وي چې دده دماغ به خوټکوي.

---

[1] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /الرقاق ٥١ (٦٥٦١، ٦٥٦٢) . صحيح مسلم/الإيمان ٩١ (٢١٣) (تحفة الأشراف: ١١٦٣٦) . و مسند احمد (٤/٢٧٤)

ددي روايت نه معلومه شوه چې د اهون اهل النار نه مراد ابي طالب دی چې په قيامت کې به ورته دتولو نه سپك عذاب ورکولی شي خکه چې هغه دنه مسلمانيدو باوجود درسول الله صلي الله عليه وسلم ډيرمدد کړی دی نو دي په عوض کې به ورته الله تعالي دتولو نه سپك عذاب ورکوي

"في اخمص قدميه جمرتان" يعني په خپو کې به يي دوه سکروتې وي ديو بل روايت نه معلوميږي چې د اور يو دوه پيزارونه به ورواچولی شي چې دهغي په وجه به يي دماغ خوټکيږي اشد منه عذابا ، يعني دټولو نه سخت عذاب والا

علماؤ ليکلي دي چې په جهنم کې دټولو نه سپك عذاب والا به خپل خان لره دټولو نه دسخت عذاب والا گنړي غرض داچې دجهنم معمولي عذاب هم سخت دی او په جنت کې معمولي مزي والابه هم خپل خان دډيرو مزو والا گنړي خکه چې دجنت معمولي نعمت هم ډير زيات وي. (روضة الصالحين)

***************

## ١٣_باب مِنْهُ

### دسابقه باب متعلق يوبل باب

٢٦٠٥_حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ مَعْبَدِ بْنِ خَالِدٍ، قَالَ: سَمِعْتُ حَارِثَةَ بْنَ وَهْبٍ الْخُزَاعِيَّ، يَقُولُ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "أَلَا أُخْبِرُكُمْ بِأَهْلِ الْجَنَّةِ كُلُّ ضَعِيفٍ مُتَضَعِّفٍ لَوْ أَقْسَمَ عَلَى اللَّهِ لَأَبَرَّهُ، أَلَا أُخْبِرُكُمْ بِأَهْلِ النَّارِ كُلُّ عُتُلٍّ جَوَّاظٍ مُتَكَبِّرٍ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه** : حارثه بن وهب رضي الله عنه روايت کوي چې ما د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه دا فرمان اوريدلی دی چې ايا زه تاسو ته دا خبره اونه بنايم چې جنتيان کوم خلق دي؟ واوري هر هغه کمزوری کس چې کمزوری اوسپك گنړلی شي (جنتي دی) که چري دالله تعالي په اعتماد باندي قسم وکړي نو الله تعالي هغه پوره کوي بيايي اوفرمائيل ايا دا درته اونه بنايم چې دوزخي خوك دی؟ واوری! هربدخويه متکبر او بخيل

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي

**لغات** عتل عتل عتلا دنصر او ضرب نه معني په سختئ سره رابنکل، اود سمع نه غلطئ

---

[1] _ اورده البخاري في الجامع الصحيح /تفسير سورة القلم ١ (٤٩١٨) ، والأدب ٦١ (٦٠٧١) ، والأيمان والنذور ٩ (٦٦٥٧) ، صحيح مسلم/الجنة ١٣ (٢٨٥٣) ، سنن ابن ماجه/الزهد ٤ (٤١١٦) (تحفة الأشراف : ٣٢٨٥) ، ومسند احمد (٣٠٦/٤)

طرف ته درابنكلو په معني استعماليږي.
جواز جاز جوزا وجوزانا دنصر نه په معني دتلو دي په تكبر سره .
متضعف دتفعيل نه په معني دحقير سره
لابره نو ضرور به يي قسم پوره كړي وو
مستكبر متكبر كيدل
امام نووي وايي عتل بدخويه متكبر خان لويی ګڼونكی . جواظ . بخيل بعضو ونيلي دي ډير غرورسره تلونكی ځنو ونيلي دي غټ خيتی.

**تشريح** : "اهل الجنة كل ضعيف" يعني په جنتيانو كې هر كمزوری دلته دجنتي سړي علامه بيانيږي چې دا به هر هغه كس وي څوك چې كمزوری وي او په خلقو كې شهرت نه لري او په معاشره كې يي كوم امتيازي مقام نه وي مګر دايمان او تقوي په اعتبار سره اعلي مقام لري ددي خبري دليل دادی چې دده دالله په ذات دومره اعتماد دی چې كه دی په كومه خبره قسم اوخوري نو الله تعالي دده خبره پوره كوي.
كل عتل جواظ . دلته دجهنميانو علامه بيانوي چې دی به سركش او بخيل اومتكبر وي

**حارثه بن وهب رضي الله عنه حالات**

نوم حارثه دپلار نوم وهب او دمور نوم ام كلثوم بنت جرول ابن مالك بن المسيب الخزاعيه وو ددينه عموما ابواسحاق السبيعي او معبد بن خالد الجهيني رضي الله عنه نقل دروايت كوي، دمروياتو شمير يي شپږ دی چې څلور په دي كې متفق عليه دي. (روضة الصالحين)

***************

# كتاب الإيمان عن رسول الله صلى الله عليه وسلم

## دايمان او اسلام داحكام او مسائلو بيان

### ١ــ باب مَا جَاءَ أُمِرْتُ أَنْ أُقَاتِلَ النَّاسَ حَتَّى يَقُولُوا لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ

**ماته حكم شوي دي چې څو پوري خلقو ايمان نه وي راوړي زه به ورسره جنګيږم**

٢٦٠٦ــ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " أُمِرْتُ أَنْ أُقَاتِلَ النَّاسَ حَتَّى يَقُولُوا لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ. فَإِذَا قَالُوهَا مَنَعُوا مِنِّي دِمَاءَهُمْ وَأَمْوَالَهُمْ إِلاَّ بِحَقِّهَا وَحِسَابُهُمْ عَلَى اللَّهِ ". وفي الباب عن جَابِرٍ، وَأَبِي سَعِيدٍ،

وَابْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (1)

**ترجمه** د ابوهريره رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي ماته حکم شوي دي چې خلقو سره هغه پوري اوجنګيږئ څو پوري چې دوئ دلااله الاالله اقرار نه وي کړي بيا چې کله دوئ ددي اقرار اوکړي نو دوئ خپلي وينې او خپل مالونه زمانه محفوظ کړي مګر دکوم حق په بدل کي او ددوئ مکمل حساب په الله تعالي دي

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي او په دي باب کي دجابر او ابوسعيد او ابن عمر رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

***************

٢٦٠٧ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ عُقَيْلٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، أَخْبَرَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ بْنِ مَسْعُودٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: لَمَّا تُوُفِّيَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاسْتُخْلِفَ أَبُو بَكْرٍ بَعْدَهُ كَفَرَ مَنْ كَفَرَ مِنَ الْعَرَبِ، فَقَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ لِأَبِي بَكْرٍ: كَيْفَ تُقَاتِلُ النَّاسَ وَقَدْ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " أُمِرْتُ أَنْ أُقَاتِلَ النَّاسَ حَتَّى يَقُولُوا لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، وَمَنْ قَالَ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ عَصَمَ مِنِّي مَالَهُ وَنَفْسَهُ إِلَّا بِحَقِّهِ وَحِسَابُهُ عَلَى اللَّهِ ". قَالَ أَبُو بَكْرٍ: وَاللَّهِ لَأُقَاتِلَنَّ مَنْ فَرَّقَ بَيْنَ الزَّكَاةِ وَالصَّلَاةِ، فَإِنَّ الزَّكَاةَ حَقُّ الْمَالِ، وَاللَّهِ لَوْ مَنَعُونِي عِقَالًا كَانُوا يُؤَدُّونَهُ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَقَاتَلْتُهُمْ عَلَى مَنْعِهِ، فَقَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ: فَوَاللَّهِ مَا هُوَ إِلَّا أَنْ رَأَيْتُ أَنَّ اللَّهَ قَدْ شَرَحَ صَدْرَ أَبِي بَكْرٍ لِلْقِتَالِ فَعَرَفْتُ أَنَّهُ الْحَقُّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَهَكَذَا رَوَى شُعَيْبُ بْنُ أَبِي حَمْزَةَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. وَرَوَى عِمْرَانُ الْقَطَّانُ هَذَا الْحَدِيثَ عَنْ مَعْمَرٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، عَنْ أَبِي بَكْرٍ، وَهُوَ حَدِيثٌ خَطَأٌ، وَقَدْ خُولِفَ عِمْرَانُ فِي رِوَايَتِهِ عَنْ مَعْمَرٍ. (2)

---

[1] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /الجهاد ١٠٢ (٢٩٤٦) . صحيح مسلم /الإيمان ٨ (٢٦١٠) . سنن ابي داود/ الجهاد ١٠٣ (٢٦٣٠) سنن النسائي/الجهاد ١ (٣٠٩٢) . سنن ابن ماجه/الفتن ١ (٣٩٢٧) (تحفة الأشراف : ١٢٥٠٦) . و مسند احمد (٢/٣١٤، ٣٧٧ ،٤٢٣، ٤٣٩، ٤٧٥ ،٤٨٢، ٥٠٢، ٥٢٨)

[2] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /الزكاة ٢ (١٣٩٩) و ٣٠ (١٤٥٧) . والمرتدين ٣ (٦٩٢٤) . والإعتصام ٢ (٧٢٨٤) صحيح مسلم /الإيمان ٨ (٢١) . سنن ابي داود/ الزكاة ١ (١٥٥٦) . سنن النسائي/الزكاة ٣ (٢٤٤٥) والجهاد ١ (٣٠٩٣ ٣٠٩٥) والمحاربة ١ (٣٩٧٥) (تحفة الأشراف ١٠٦٦٦) . و مسند احمد (٢/٥٢٨)

**ترجمه** :د ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم وفات شو او ابوبکر رضي الله عنه خليفه شو او په عربو کې ځني خلق کافر شو (زکوٰة ورکولو نه يې انکار اوکړو) نو ابوبکر رضي الله عنه هغوئ سره دجهاد نيت اوکړو نو عمررضي الله عنه ورته اووئيل دی خلقو سره به مونږ څنګه جنګ اوکړو؟ چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي ماته حکم شوی دی چې دخلقو سره جهاد اوکړم تردی چې لااله الاالله اووائي چاچې دا کلمه طيبه اوونيل خپل مالونه اوسرونه يې رانه بچ کړل، مګر دشريعت په حکم اودزړونو حساب يې الله جل جلاله سره دی (يعني رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچې کلمه اوونيله هغه له جنګ نه په امان شو) او دا خلق کلمه وائي، نو مونږ ورسره جنګ څنګه کولی شو؟ ابوبکر رضي الله عنه ورته اوفرمائيل والله زه به جنګ کوم هغه خلقو سره څوك چې په مونځ او زکوٰة کې فرق کوي (يعني مونځ کوي او زکوٰة نه ورکوي) ځکه چې زکوٰة دالله حق دی په مال کې (او رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي " الا بحقه" يعني دشريعت دحق دپاره به ورسره جنګ کيدی شي) نو والله که څوك دزکوٰة يو رسئ منع کوي، کومه چې يې د رسول الله صلي الله عليه وسلم په زمانه ورکوله نوزه به ورسره دی رسئ دپاره جنګ کوم (اوداسلام حق به تری په زور اصولوم) عمر رضي الله عنه فرمائي والله زه پوهه شوم چې الله دابوبکر رضي الله عنه سينه جنګ ته پرانستلې ده او په دی خبره کې دی په حقه دی.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي دارنګي شعيب بن ابي حمزه هم دزهري نه او زهري دعبيدالله بن عبدالله نه او عبيدالله دابوهريره نه روايت نقل کړي دي، عمران بن قطان دا حديث دمعمرو نه معمرو دزهري نه او زهري دانس بن مالك نه او انس دابوبکر رضي الله عنه نه نقل کړي دي ليکن ددي حديث په سند کي غلطي ده او هغه داده چې دمعمرو په واسطه دعمران دروايت مخالفت شوي دي.

**لغات** : فعرفت: عرف يعرف عرفة وعرفانا په معني دمعرفت سره دي دباب سمع نه : عقال معني پړي جمع يي اعقال راځي.

**تشريح** : کفر من کفر من العرب: دعربو بعضي قبيلي کافري شوي علماؤ ليکلي دي چې د وفات نبوي نه پس څلور قسمه ارتداد شروع شو، اول بت پرستي شروع شوه، دويم دتوحيد داقرار قائل پاتي شول ليکن درسالت نه منکر شول او دمتنبيانو نبوت يي اومنلو، دريم صرف دزکوٰة دفرضيت نه يي انکار اوکړو چې دا په نبي پوري مخصوص وو او زکوٰة اخستل او دزکات حکم اوس ختم شو ، څلورم خليفه ته يي دزکات ورکولو نه انکار اوکړو او وئيل به يي زمونږ خپله خوښه ده چې چاته يي ورکوو په هغوئ به يي پخپله تقسيموو.

دابن حجر بيان دی چې کفر من کفر من العرب مجازا فرمائيلی شوي دي ورنه هغوئ ټول

کافران شوي نه وو اولنۍ طبقي حقيقتاکفر کړی وو ليکن نوري دوه طبقي کفر ته نژدي شـوي وي

امرت ان اقاتل الناس. ماته حکم شوی دی چې دخلقو سره به جنګ کوم مطلب دادی لکه څنګه چې دمونځ نه مرتد کافر او مرتد دی او په پوهولو سره نه پوهيږي نو قتل کولی به شي نو دارنګې که دزکات منکر هم په پوهولو پوهه نشي نو دی به هم قتل کولی شي او دده خلاف به جنګ کولی شي خکه چې مونځ بدني عبادت دی او زکات مالي عبادت دی.

د شاانورشاه کشميري قول دی چې عمر رضي الله عنه ددي معاملي په ابتداء کې متردد وو ددي تردد منشاء دواقعي دصورت په تشخيص کې اختلاف وو عمر رضي الله عنه دا ګنړل چې مانعين دزکات صرف ديو عمل نه دبغاوت جرم کوي او دحالاتو دنقاضت تقاضا داده چې په دي وخت کې دباغيانو سره جنګ اونکړی شي ليکن دابوبکر تحقيق دا وو چې دزکاة نه منکر دمونځ نه دمنکر پشان دی لکه څرنګه چې دمونځ نه منکر مرتد وي نو دارنګې دزکاة نه منکر هم مرتد دی.

من فرق بين الصلاة والزکواة: علامه نووي وائي چې ابوبکر رضي الله عنه زکوٰة په مونځ باندي قياس کړو ددينه معلوميږي چې دمنکر نماز سره جنګ کول دصحابه کرامو په مينځ کې متفقه مسئله وه نو په دي وجه ابوبکر رضي الله عنه دزکوٰة اختلافي مسئله دمونځ په اتفاقي مسئلي قياس کړه.

قد شرح صدر ابي بکر : کله چې عمر رضي الله عنه دصديق اکبر درائي او د دليل دقول نه متاثر شو نو فورا يې تسليم کړو ددينه معلوميږي چې کله چاته حق معلوم شي نو فورا دهغي تسليمول پکار دي او دضد په وجه انکار کول نه دي پکار. «روضة الصالحين»

***************

## ٢ــ بَاب مَا جَاءَ فِي قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُمِرْتُ بِقِتَالِهِمْ حَتَّى يَقُولُوا لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ وَيُقِيمُوا الصَّلاَةَ

**ماته دوئ سره دجنګ کولو حکم شوی دی چې څو پوري دوئ لااله الا الله ونيلي نه وي او مونځ يي قائم کړي نه وي**

٢٦٠٨ــ حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ يَعْقُوبَ الطَّالِقَانِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ، أَخْبَرَنَا حُمَيْدٌ الطَّوِيلُ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " أُمِرْتُ أَنْ أُقَاتِلَ النَّاسَ حَتَّى يَشْهَدُوا أَنْ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ، وَأَنْ يَسْتَقْبِلُوا قِبْلَتَنَا، وَيَأْكُلُوا ذَبِيحَتَنَا، وَأَنْ يُصَلُّوا صَلاَتَنَا،

فَإِذَا فَعَلُوا ذَلِكَ حُرِّمَتْ عَلَيْنَا دِمَاؤُهُمْ وَأَمْوَالُهُمْ إِلَّا بِحَقِّهَا. لَهُمْ مَا لِلْمُسْلِمِينَ، وَعَلَيْهِمْ مَا عَلَى الْمُسْلِمِينَ ". وفي الباب عن مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ وَقَدْ رَوَاهُ يَحْيَى بْنُ أَيُّوبَ، عَنْ حُمَيْدٍ، عَنْ أَنَسٍ نَحْوَ هَذَا. [1]

**ترجمه** دانس بن مالك رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي ماته دخلقو سره دهغه وخته پوري دجنګ کولو حکم شوي دي څو پوري چې دوئ ددي خبري شهادت نه وي ورکړي چې دالله نه علاوه بل حقدار دبندګئ نشته او محمد (صلي الله عليه وسلم) دهغه بنده او رسول دي او زمونږ قبلي ته يي عبادت شروع کړي نه وي او زمونږ ذبيحه خوړل يي شروع کړي نه وي او زمونږ دطريقي مطابق مونځ يي شروع کړي نه وي کله چې دوئ دا ټول اعمال شروع کړي نو ددوئ وينه او مالونه په مونږ باندي حراميږي مګر دکوم حق په بدل کي او دوئ ته به هرهغه څه حاصل وي کوم چې عامو مسلمانانو ته حاصل دي او په دوئ به هغه ذمه واريانې عائد وي کومي چې په عامو مسلمانانو عائد دي.

امام ترمذي وايي: داحديث په دي سند حسن صحيح غريب دي، يحي بن ايوب دحميد نه اوحميد دانس نه ددي هم معني روايت نقل کړي دي، او په دي باب کي دمعاذ بن جبل اوابوهريره رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي

***************

## ٣ـ باب مَا جَاءَ بُنِيَ الإِسْلاَمُ عَلَى خَمْسٍ

### داسلام بنياد په پنځه څيزونو ايخودلي شوي دي

٢٦٠٩ـ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ سُعَيْرِ بْنِ الْخِمْسِ التَّمِيمِيِّ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ أَبِي ثَابِتٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " بُنِيَ الإِسْلَامُ عَلَى خَمْسٍ: شَهَادَةُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ، وَإِقَامُ الصَّلَاةِ، وَإِيتَاءُ الزَّكَاةِ، وَصَوْمُ رَمَضَانَ، وَحَجُّ الْبَيْتِ ". وفي الباب عن جَرِيرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَقَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوُ هَذَا. وَسُعَيْرُ بْنُ الْخِمْسِ ثِقَةٌ عِنْدَ

---

[1] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /الصلاة ٢٨ (٣٩٢). سنن ابي داود/ الجهاد ١٠٢ (٢٦٤١). سنن النسائي/تحريم الدم (المحاربة) ١ (٣٩٧١). والايمان ١٥ (٥٠٠٦) (تحفة الأشراف: ٧٠٦). و مسند احمد (١٩٩/٣، ٢٢٤)

أَهْلِ الحَدِيثِ. (١)

**ترجمه** ابن عمر رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي داسلام بنياد په پنځو كارونو دی .دا اقرار كول چې الله نه سوا بل هيڅوك دعبادت قابل نه شته، او رسول الله صلي الله عليه وسلم دالله رسول دی ، مونځ پابندئ سره كول ،زكوٰة وركول، ،دبيت الله حج كول اودرمضان روژې نيول.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي او دابن عمر په واسطه په يو څو سندونو مروي دي دارنګي دا حديث په يو څو سندونو دابن عمر په واسطه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه هم مروي دي، او په دي باب كي دجرير بن عبدالله رضي الله عنه نه هم روايت وارد دي

**لغات**: بني الاسلام: بني يبني بنيا وبناء وبنية وبناية معني كور جوړول بناء معني عمارت جمع يي ابنية راځي ، ابتناء: ادا كول اود باب ضرب نه په معني دراتلو دي.

**تشريح**: "بني الاسلام علي خمس" يعني داسلام بنياد په پنځه څيزونو ايخودلى شوى دى، په پورتني حديث كې داسلام تشبيه ديوعظيم الشان عمارت سره وركړى شوي ده نو داسي عمارت سره چې په پنځه ستنو ولاړ وي لكه څرنګه چې دستنو اوبنياد نه بغير عمارت قائميدى نشي نو همدارنګي ددي پنځه اركانو نه بغير داسلام وجود باقي پاتي كيدى نشي هغه پنځه اركان دادي اول كلمه دشهادت ، دويم مونځ، دريم زكواة، څلورم حج، پنځم درمضان روژي همدا وجه ده كه څوك پنځه څيزونو كې ديو نه هم انكار اوكړي نو دتمام اهل اسلام په نزد كافر كيږي او كه چري په دي كې غفلت او سستي اوكړي نو دتمامو فقهاؤ په نزد فاسق او فاجر ګرځي.

****************

حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ حَنْظَلَةَ بْنِ أَبِي سُفْيَانَ الْجُمَحِيِّ، عَنْ عِكْرِمَةَ بْنِ خَالِدٍ الْمَخْزُومِيِّ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (٢)

**ترجمه** : په مذكوره سند هم دابن عمر رضي الله عنهما په واسطه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه دماقبل هم معني روايت مروي دي.

---

[1] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /الإيمان ٢ (٨) ، صحيح مسلم /الإيمان ٥ (١٦) ، سنن النسائي/الإيمان ١٣ (٥٠٠٣) (تحفة الأشراف: ٧٦٨٢) ، و مسند احمد (٢/٩٣، ١٢٠، ١٤٣)

[2] ـ انظر ماقبله (تحفه الأشراف: ٧٣٤٤)

امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي

******************

## ٤_باب مَا جَاءَ فِي وَصْفِ جِبْرِيلَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الإِيمَانَ وَالإِسْلاَمَ

**رسول الله صلي الله عليه وسلم ته دجبرائيل عليه السلام د ايمان او اسلام اوصاف بيا نول**

٢٦١٠_حَدَّثَنَا أَبُو عَمَّارٍ الحُسَيْنُ بْنُ حُرَيْثٍ الخُزَاعِيُّ، أَخْبَرَنَا وَكِيعٌ، عَنْ كَهْمَسِ بْنِ الحَسَنِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ يَحْيَى بْنِ يَعْمَرَ، قَالَ: أَوَّلُ مَنْ تَكَلَّمَ فِي القَدَرِ مَعْبَدٌ الجُهَنِيُّ، قَالَ: فَخَرَجْتُ أَنَا وَحُمَيْدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الحِمْيَرِيُّ حَتَّى أَتَيْنَا المَدِينَةَ فَقُلْنَا: لَوْ لَقِينَا رَجُلًا مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَأَلْنَاهُ عَمَّا أَحْدَثَ هَؤُلَاءِ القَوْمُ، قَالَ: فَلَقِينَاهُ يَعْنِي عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ وَهُوَ خَارِجٌ مِنَ المَسْجِدِ، قَالَ: فَاكْتَنَفْتُهُ أَنَا وَصَاحِبِي، قَالَ: فَظَنَنْتُ أَنَّ صَاحِبِي سَيَكِلُ الكَلَامَ إِلَيَّ، فَقُلْتُ: يَا أَبَا عَبْدِ الرَّحْمَنِ إِنَّ قَوْمًا يَقْرَءُونَ القُرْآنَ وَيَتَقَفَّرُونَ العِلْمَ وَيَزْعُمُونَ أَنْ لَا قَدَرَ وَأَنَّ الأَمْرَ أُنُفٌ، قَالَ: فَإِذَا لَقِيتَ أُولَئِكَ فَأَخْبِرْهُمْ أَنِّي مِنْهُمْ بَرِيءٌ، وَأَنَّهُمْ مِنِّي بُرَآءُ، وَالَّذِي يَحْلِفُ بِهِ عَبْدُ اللَّهِ لَوْ أَنَّ أَحَدَهُمْ أَنْفَقَ مِثْلَ أُحُدٍ ذَهَبًا مَا قُبِلَ ذَلِكَ مِنْهُ حَتَّى يُؤْمِنَ بِالقَدَرِ خَيْرِهِ وَشَرِّهِ، قَالَ: ثُمَّ أَنْشَأَ يُحَدِّثُ فَقَالَ: قَالَ عُمَرُ بْنُ الخَطَّابِ: كُنَّا عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَجَاءَ رَجُلٌ شَدِيدُ بَيَاضِ الثِّيَابِ، شَدِيدُ سَوَادِ الشَّعَرِ، لَا يُرَى عَلَيْهِ أَثَرُ السَّفَرِ، وَلَا يَعْرِفُهُ مِنَّا أَحَدٌ حَتَّى أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَلْزَقَ رُكْبَتَهُ بِرُكْبَتِهِ، ثُمَّ قَالَ: يَا مُحَمَّدُ مَا الإِيمَانُ؟ قَالَ: "أَنْ تُؤْمِنَ بِاللَّهِ وَمَلَائِكَتِهِ وَكُتُبِهِ وَرُسُلِهِ وَاليَوْمِ الآخِرِ وَالقَدَرِ خَيْرِهِ وَشَرِّهِ"، قَالَ: فَمَا الإِسْلَامُ؟ قَالَ: "شَهَادَةُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ، وَإِقَامُ الصَّلَاةِ، وَإِيتَاءُ الزَّكَاةِ، وَحَجُّ البَيْتِ وَصَوْمُ رَمَضَانَ" قَالَ: فَمَا الإِحْسَانُ؟ قَالَ: "أَنْ تَعْبُدَ اللَّهَ كَأَنَّكَ تَرَاهُ فَإِنَّكَ إِنْ لَمْ تَكُنْ تَرَاهُ فَإِنَّهُ يَرَاكَ"، قَالَ: فِي كُلِّ ذَلِكَ يَقُولُ لَهُ: صَدَقْتَ، قَالَ: فَتَعَجَّبْنَا مِنْهُ يَسْأَلُهُ وَيُصَدِّقُهُ، قَالَ: فَمَتَى السَّاعَةُ؟ قَالَ: "مَا المَسْئُولُ عَنْهَا بِأَعْلَمَ مِنَ السَّائِلِ" قَالَ: فَمَا أَمَارَتُهَا؟ قَالَ: "أَنْ تَلِدَ الأَمَةُ رَبَّتَهَا، وَأَنْ تَرَى الحُفَاةَ العُرَاةَ العَالَةَ أَصْحَابَ الشَّاءِ يَتَطَاوَلُونَ فِي البُنْيَانِ" قَالَ عُمَرُ: فَلَقِيَنِي النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ ذَلِكَ بِثَلَاثٍ، فَقَالَ: "يَا عُمَرُ هَلْ تَدْرِي مَنِ السَّائِلُ؟ ذَاكَ جِبْرِيلُ أَتَاكُمْ يُعَلِّمُكُمْ مَعَالِمَ دِينِكُمْ".

حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ، أَخْبَرَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ، أَخْبَرَنَا كَهْمَسُ بْنُ الْحَسَنِ. بِهَذَا الإِسْنَادِ نَحْوَهُ. [1]

ترجمه : ديحي بن يعمر بيان دي فرمائي چې دټولو نه اول چې چا دتقدير نه انكار كړي دي هغه كس معبد جهني دي زه او عبدالرحمن حميري دواړه په سفر روان وو ترديچې مديني ته ورسيدو مونږ پخپل مينځ كي مشوره اوكړه او ددي خبري خواهش مو اوكړو چې كاش دنبي كريم صلي الله عليه وسلم په صحابه كرامو كي دچا سره زمونږ ملاقات اوشي نو مونږ به ورنه ددي فتني باره كي تپوس كوو چې كومه په خلقو كي پيدا شوي ده چنانچې زمونږ دخوش قسمتئ په وجه زمونږ ددوئ سره يعني دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما سره په داسي حال كي ملاقات اوشو چې دمسجد نه دوتلو په حال كي وو چې يو دم ورنه زه او زما ملګري چاپير شو ماته دا اندازه اولګيده چې زما ملګري دخبري كولو ذمه داري او حق ماته سپاري نو ما عرض اوكړو اي ابو عبدالرحمن بعضي داسي خلق پيدا شوي دي چې قران لولي او په قران كي دغور او فكر او تلاش كولو دعوي هم كوي مګر ددي باوجود هم دا عقيده لري چې تقدير هيڅ څيز نه دي او معامله ټوله دسر او ابتداء نه شروع ده ابن عمر رضي الله عنهما اوفرمائيل تاسو چې كله دداسي كسانو سره مخامخ شوئ نو ورته اووائي چې زه ددوئ نه بيزار يم او دوئ زما نه بيزار دي، زما دي په هغه ذات قسم وي په چا باندي چې قسم خوړلي كيږي (يعني الله تعالي) كه چري په داسي كسانو كي يو كس داحد دغر برابر سر زر هم خرچ كړي خو چې په ښه او بد تقديريي ايمان نه وي راوړي ترهغي به ددوئ دا خرچې ددوئ نه قبوله نشي او بيا يي حديث بيان كړو او وئيل يي چې عمر فاروق رضي الله عنه فرمائي چې مونږ درسول الله صلي الله عليه وسلم په مجلس كي حاضر وو ناڅاپه يو سړی رابنكاره شو ډيرې صفا كپړې ، تور ويخته دسفر نښې پرې نه وې او نه زمونږ نه چا هغه پيژندو، هغه درسول الله صلي الله عليه وسلم زنګونو سره زنګونه ملاؤ كړل او دواړه لاسونه يې درسول الله په پتونو كيښودل كيناستو، بيا يې عرض اوكړو اي محمد (صلي الله عليه وسلم) بيا هغه اووئيل چې ماته اووايه چې ايمان څه څيز دی؟ رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل دالله او دهغه درسولانو او دهغه دفرښتو دهغه دكتابونو او دقيامت دورځي تصديق دارنګ دتقدير ښه والی او بدوالی ايمان دی، بيا يې ووئيل ماته داسلام حقيقت بيان كړه رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، اسلام دادی چې ته دا ګواهي وركړې چې دالله نه سوا هيڅوك دعبادت لائق نشته او رسول الله صلي الله عليه وسلم دهغه رسول دی او دا چې مونځ قائم كړې، زكوة وركړې، درمضان روژې

[1] ـ مسلم/الإيمان ١ (٨). سنن ابي داود/ السنة ١٧ (٤٦٩٥). و النسائي/الإيمان ٥ (٤٩٩٣). سنن ابن ماجه/المقدمة ٩ (٦٣) (تحفة الأشراف : ١٠٥٧٢). و مسند احمد (١/٢٧، ٢٨، ٥١، ٥٢)

اونيسي او كه طاقت دي وي نو دالله دكور حج اوكړی بيايی اوونيل ماته اوښايه چې احسان څه دی نبي صلي الله عليه وسلم وفرمايل چې دالله تعالي عبادت داسي كوه ګوياكي چې ته الله تعالي ويني او كه چري دا (مقام او تصور درته حاصل) نه وي نو دا خيال كوه چې هغه تاويني او هغه به دهر سوال دجواب سره وئيل چې تا درست اوونيل او مونږ ورته دحيرانتيا په نظر كتل چې ذا څومره نااشنا سړي دي چې سوال هم كوي او دجواب تصديق هم پخپله كوي بيا هغه اوونيل چې دقيامت متعلق ماته څه بيان كړه؟ رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل په دي معامله كې زما علم دسائل نه زيات نه دی نو هغه اوونيل دقيامت علامي او نښي راته اوښايه نوو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل چې وينځه به خپل سردار اوزيږوي او اوږي، برښړ، نادار، مفلس او نيسمن شپونكي قسم خلق به ته په لوړو ابادو او بلډينګونو كې اووينې چې فخر او كبر به كوي، بيا رسول الله صلي الله عليه وسلم ددي واقعي نه دري ورځي پس زما سره ملاؤ شو او ماته يي اوفرمائيل ای عمر رضي الله عنه پيژني دا سوال كونكي څوك وو ، ما عرض اوكړو چې الله او دهغه رسول ښه پوهيږي نو ويي فرمائيل دا جبرائيل وو تاسو ته ددين خودلو دپاره راغلی وو.

**لغات** اماراتها: امارات جمع د امارة ده په معني دعلامي سره.

تلد: ولدت تلد وولادة معني زيګول دي.

الحفاة: حفي حفاً دسمع نه په معني د برښړو ښپو تلو سره دي ، صفت يي حافٍ او جمع يي حفاة راځي

العراة عري عرية وعريا دسمع نه په معني دبربنډيدو دي صفت يي عار او عريان راځي او جمع يي عراة راځي

العالة: عال عيلا وعيلة د ضرب نه په معني دمحتاج كيدو دي.

رعاء: رعي رعيا په معني دځاروو څرلودي الراعي فاعل دي يعني شپونكي جمع يي رعاة او رعيان او رعاء راځي

الشاة الشاة په معني دچيلي سره دي او جمع يي شياه راځي.

ربتها . معني سرداره ده . مطلب دادی چې دوينزو به دومره كثرت وي چې مالك به هغي سره جماع اوكړي او هغه وينزه به جينۍ اوزيږوي حديث كې دبنت السيد نه سردار مراد دی "عالة" په معني دنيسمن دی د "مليا" معني اوږده زمانه ده بعضو دری ورځی موده مراد كړي ده

**تشريح**: دي حديث ته حديث دجبريل هم ونيلي شي، د مسلم په يو روايت كې راغلي دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي: زمانه به تپوسونه كوئ ليكن صحابه كرامو به ورنه دهغه دهيبت دغلبي په وجه تپوس نه كولو نو جبريل امين الله راوليږلو چې دخلقو په

وراندي درسول الله نه ددين دبنيادي خبرو تپوسونه وكړي چي خلقو ته ورنه فائده ورسيږي
بعضي علماؤ ددي حديث دجامعيت متعلق ليكلي دي لكه څنګه چي دقراني علومو او معارفو خلاصه په سورت الفاتحه کښې مذكور ده د كوم په وجه چي سورت الفاتحي ته ام القران ونيلي شي نو دارنګي حديث جبريل هم په خپل جامعيت كي ددي خبري قابل دي چي ام السنة ورته وونيلي شي ، لكه چي علامه ابن حجر د امام قرطبي قول نقل كړي دي. هذا الحديث يصلح ان يقال له ام السنة لما تضمنه من جمل علم السنة.

مولانا ادريس دحافظ تور پشتي نه نقل كړي دي چي دحديث جبريل زمانه لسم هجري دحجة الوداع نه پس وه په دي حديث د تمام شريعت احكام راغلي دي ددي دپاره چي په دي كي دنبي كريم صلي الله عليه دتمام ژوند داحكامو خلاصه راجمع شي.

او همدا خبره تقريبا مولانا شبير احمد عثماني هم ذكر كړي ده: يحتمل ان يكون بعد حجة الوداع لانه ورد لفظ اخر عمره.

"وَوَضَعَ كَفَّيهِ عَلَى فَخِذَيهِ" زنګون ته يي زنګون ور نزدي كړو اوخپل دواړه لاسونه يي پخپلو زنګنانو كيخودل او كيناستلو ، په دي جمله كي په كفيه كي د ضمير مرجع په اتفاق سره راتلونكي كس(جبريل) دي ، مګر د فخذيه دضمير متعلق دوه اقوال دي اول قول دادي.

دا ضمير هم راتلونكي كس ته راجع دي او ترجمه داسي ده چي هغه خپل دواړه ورغوي پخپلو دواړو ورنونو كيخودل ، دويم قول دادي چي ددي ضمير مرجع رسول الله صلي الله عليه وسلم دي ترجمه به داوي وي چي هغوئ خپل دواړه ورغوي درسول الله په زنګنونو باندي كيخودل ، اوددينه يي مقصد رسول الله لره ځان طرف ته متوجه كول وو ددي دويم قول تائيد په يويل روايت سره هم كيږي چي حتي وضع يده علي ركبتي رسول الله صلي الله عليه وسلم.

"أَخبرنِي عَنِ الإسلامِ" اولني سوال يي داسلام متعلق كړي دي څكه چي اسلام دشرائعو دقبلولو اود التزام دفرائضو نوم دي نو په دي وجه ددي متعلق سوال د هرڅه نه مخكي كول پكار وو نو ددي په جواب كي يي داسلام بنيادي اركان بيان كړل چي توحيد ، مونځ ، زكواة، روژه، حج دي.

"فَأَخبرنِي عَنِ الإِيمَانِ" ايمان په هغه خبرو ديقين كولو نوم دي د كوموتعلق چي رسول الله صلي الله عليه وسلم احكامات جاري كړي دي ، ددي ايماني خبرو دجملي نه هغه اساسي ايمانيات هم دي كوم چي په دي روايت كي بيان شوي، مثلا:

په الله باندي يقين كول
په فرشتو باندي ايمان لرل
په اسماني كتابونو ايمان لرل

په رسولانو يقين او ايمان لرل
په قيامت ايمان لرل
په تقدير دخير او شر باندي ايمان لرل.
"فَأَخْبِرْنِي عَنِ الإِحْسَانِ . قَالَ : ((أَنْ تَعْبُدَ اللهَ كَأَنَّكَ تَرَاهُ" يعني دالله تعالي عبادت داسي كول لكه چي ته يي وينې چونكه په دنيا كې څوك الله لره په حقيقي ستركو نشي ليدلي نو خكه يې دلته حرف تشبيه كانّ استعمال كړو
"فَأَخْبِرْنِي عَنِ السَّاعَةِ" دلته ترقي ده دادني نه اعلي ته يعني انسان اول په اسلام كې داخل شي بيا يې ايمان جوړ شي په دي پسي داحسان او اخلاص درجه راځي بيا په دي شان سره دانسان ترقي كمال ته ورسيږي او هريو شي چي كله انتهاء ته ورسيږي نو هغه دتنزل كول شروع كړي نو چي عبادت سر ته ورسيدو نو ور پسي يې قيامت ذكر كړو په كوم چي زوال ته اشاره ده.
((مَا الْمَسْؤُولُ عَنْهَا بِأَعْلَمَ مِنَ السَّائِلِ))يعني ددي دتاريخ په عدم تعين كې مونږ دواړه پوښان او يوبرابر يو ، يعني دهيچا سره ددي علم نشته.
((أَنْ تَلِدَ الأَمَةُ رَبَّتَهَا)) دا جمله كنايه ده ددي خبري چي اولاد به دمور پلار نافرمان وګرځي يعني والدين به دغلامانو پشان شي او او اولاد به دمالكانو پشان شي.
" وأَنْ تَرَى الحُفَاةَ العُرَاةَ" مطلب دادي دبربنډو او وګو شپونكيانو پشان ذليلان خلق به لوړ لوړ محلونه جوړ كړي. (روضة الصالحين)

*****************

حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ مُعَاذٍ، عَنْ كَهْمَسٍ بِهَذَا الإِسْنَادِ نَحْوَهُ بِمَعْنَاهُ. وَفِي الْبَابِ عَنْ طَلْحَةَ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ، وَأَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، قَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ نَحْوُ هَذَا، عَنْ عُمَرَ. وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ عَنِ ابْنِ عُمَرَ. عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَالصَّحِيحُ هُوَ ابْنُ عُمَرَ. عَنْ عُمَرَ. عَنِ النَّبِيِّ. [1]

**ترجمه** معاذ بن معاذ هم دكهمس نه په دي سند دماقبل هم معني روايت نقل كړي دي.
امام ترمذي وايي: او په دي باب كې دطلحه بن عبيدالله او انس بن مالك رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي او داحديث حسن صحيح دي او ددي سند نه علاوه په نورو سندونو هم مروي دي دا رنګي دا روايت دابن عمر په واسطه درسول الله صلي الله عليه وسلم نه مروي دي

[1] ـ مسلم/الإيمان ١(٨). سنن ابي داود/السنة ١٧(٤٦٩٥)، والنسائي/الإيمان ٥(٤٩٩٣). سنن ابن ماجه/المقدمة ٩(٦٣) (تحفة الأشراف: ١٠٥٧٢). ومسند احمد (١/٢٧، ٢٨، ٥١، ٥٢)

مگر زيات صحيح هغه روايت دي كوم كي چې ابن عمر دعمر په واسطه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم ارشاد نقل كوي

***************

## ٥_باب مَا جَاءَ فِي إِضَافَةِ الْفَرَائِضِ إِلَى الإِيمَانِ

**په ايمان كي د نورو فرائضو او واجباتو د داخليدو بيان**

٢٦١١_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا عَبَّادُ بْنُ عَبَّادٍ الْمُهَلَّبِيُّ، عَنْ أَبِي جَمْرَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَدِمَ وَفْدُ عَبْدِ الْقَيْسِ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوا: إِنَّا هَذَا الْحَيَّ مِنْ رَبِيعَةَ وَلَسْنَا نَصِلُ إِلَيْكَ إِلَّا فِي أَشْهُرِ الْحَرَامِ، فَمُرْنَا بِشَيْءٍ نَأْخُذُهُ عَنْكَ وَنَدْعُو إِلَيْهِ مَنْ وَرَاءَنَا، فَقَالَ: " آمُرُكُمْ بِأَرْبَعٍ: الإِيمَانِ بِاللَّهِ ثُمَّ فَسَّرَهَا لَهُمْ، شَهَادَةُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَأَنِّي رَسُولُ اللَّهِ، وَإِقَامُ الصَّلَاةِ، وَإِيتَاءُ الزَّكَاةِ، وَأَنْ تُؤَدُّوا خُمُسَ مَا غَنِمْتُمْ ".[1]

**ترجمه** : دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما بيان دي فرمائي چې كله رسول الله صلي الله عليه وسلم ته وفد دعبدالقيس راغلو نو عرض يې اوكړو اي دالله رسوله زمونږ او ستا په مينځ كي ربيعه قبيله حائل ده او دحرمت والا مياشتو نه علاوه مونږ تاسو ته نشو راتلي نو په دي وجه مونږ ته كوم داسي حكم اوكړه چې مونږ يې ستاسو نه ياد كړو او چې كوم خلق زمونږ نه وروسته پاتې دي هغوئ ته يې ورسوو رسول الله اوفرمائيل زه تاسو ته په څلورو څيزونو حكم كوم (١) په الله تعالي باندي دايمان راوړلو ، او بيا يې دوئ ته ددي تفسير او تشريح اوكړه چې دلااله الاالله، او د ، محمد رسول الله گواهي وركول دي،(٢) مونځ قائمول دي (٣) زكوة وركول دي (۴) دغنيمت دمال نه پنځمه حصه ويستل دي.

***************

حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ أَبِي جَمْرَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَأَبُو جَمْرَةَ الضُّبَعِيُّ اسْمُهُ: نَصْرُ بْنُ عِمْرَانَ، وَقَدْ رَوَاهُ شُعْبَةُ، عَنْ أَبِي جَمْرَةَ أَيْضًا، وَزَادَ فِيهِ: " أَتَدْرُونَ مَا الإِيمَانُ؟ شَهَادَةُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَأَنِّي رَسُولُ اللَّهِ ". وَذَكَرَ الْحَدِيثَ. سَمِعْت قُتَيْبَةَ بْنَ سَعِيدٍ يَقُولُ: مَا رَأَيْتُ مِثْلَ هَؤُلَاءِ الْفُقَهَاءِ الأَشْرَافِ الأَرْبَعَةِ: مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، وَاللَّيْثِ بْنِ سَعْدٍ، وَعَبَّادِ بْنِ عَبَّادٍ الْمُهَلَّبِيِّ، وَعَبْدِ الْوَهَّابِ الثَّقَفِيِّ، قَالَ

[1] _ انظر حديث رقم ١٥٩٩

قُتَيْبَةُ: كُنَّا نَرْضَى أَنْ نَرْجِعَ مِنْ عِنْدِ عَبَّادٍ كُلَّ يَوْمٍ بِحَدِيثَيْنِ، وَعَبَّادُ بْنُ عَبَّادٍ هُوَ مِنْ وَلَدِ الْمُهَلَّبِ بْنِ أَبِي صُفْرَةَ. (1)

**ترجمه** په مذكوره سند هم ابوجمره دابن عباس په واسطه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه دماقبل هم معني روايت نقل كړي دي

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي او دابوجمره الضبيعي نوم نضر بن عمران دي، همدارنګي دا روايت شعبه دابوجمره نه دڅه اضافي سره هم نقل كړي دي او هغه اضافه داده چې رسول الله ددوئ نه تپوس اوكړو ايا تاسوته معلومه ده چې ايمان څه څيز دي؟ ايمان دلااله الاالله ګواهي وركولو ته او ددي خبري ګواهئ وركولو ته وئيلي شي چې زه دالله رسول يم او بيا يې باقي حديث پوره ذكر كړو، امام ترمذي وائي دقتيبه بن سعيد نه مي اوريدلي دي وئيل يې چې ددي خلورو كسانو پشان فقهاء او شريفان خلق مابل چرته نه دي ليدلي چې يو مالك بن انس، او بل ليث بن سعد او بل عباد بن عباد دي او بل عبدالوهاب ثقفي دي، عبدالوهاب ثقفي وائي قتيبه به وئيل مونږ به ديته ترجيح وركوله چې هره ورځ دعباد بن عباد نه دوه حديثونه ياد كړو او عباد بن عباد د ملهب بن ابي صفرة دخاندان سره تعلق لري.

*****************

## ٦ـ باب مَا جَاءَ فِي اسْتِكْمَالِ الإِيمَانِ وَزِيَادَتِهِ وَنُقْصَانِهِ

### دايمان دكاملولو او په ايمان كي دزيادت او نقصان راتلو بيان

٢٦١٢ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ الْبَغْدَادِيُّ. حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ ابْنُ عُلَيَّةَ. حَدَّثَنَا خَالِدٌ الْحَذَّاءُ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ مِنْ أَكْمَلِ الْمُؤْمِنِينَ إِيمَانًا أَحْسَنُهُمْ خُلُقًا وَأَلْطَفُهُمْ بِأَهْلِهِ". وفي الباب عن أَبِي هُرَيْرَةَ، وَأَنَسِ بْنِ مَالِكٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ وَلَا نَعْرِفُ لِأَبِي قِلَابَةَ سَمَاعًا مِنْ عَائِشَةَ. وَقَدْ رَوَى أَبُو قِلَابَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ يَزِيدَ رَضِيعٍ لِعَائِشَةَ، عَنْ عَائِشَةَ غَيْرَ هَذَا الْحَدِيثِ، وَأَبُو قِلَابَةَ اسْمُهُ: عَبْدُ اللَّهِ بْنُ زَيْدٍ الْجَرْمِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، قَالَ: ذَكَرَ أَيُّوبُ السَّخْتِيَانِيُّ أَبَا قِلَابَةَ فَقَالَ: كَانَ وَاللَّهِ مِنَ الْفُقَهَاءِ ذَوِي الأَلْبَابِ. (2)

---

1 ـ انظر حديث رقم ١٥٩٩

2 ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٦١٩٥)، وانظر مسند احمد (٦/٤٧، ٩٩)

**ترجمه** د عائشه رضي الله عنها نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په تاسو کې ډير کامل ايمان والا هغه مومنان دي چې اخلاق يې ډير ښه وي . او په تاسو کې بهتر کسان هغه دي چې پخپلو ښځو ډير مهربان وي.
امام ترمذي وايي: او په دي باب کي دابوهريره او انس بن مالك رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي او دا حديث صحيح دي مګر دابو قلابه سماع دعائشه نه ثابت نه ده او ابو قلابه دعبدالله بن يزيد نه چې رضيع دعائشي دي هم ددي حديث نه علاوه نور احاديث نقل کړي دي او دابوقلابه نوم عبدالله بن زيد الجرمي دي، ماته ابن ابي عمر دسفيان بن عيينه نه روايت بيان کړي دي چې ابوايوب سختياني دابوقلابه باره کي اوونيل په الله قسم چې ابوقلابه دقابل ترينو فقهاؤ نه دي.
**تشريح**: احسنهم خلقا، کوم چې ښو اخلاقو والا وي، دحسن بصري او عبدالله بن مبارك قول دی ښه اخلاق ديته وائي چې ته دخلقو سره په رونړ تندي مخامخ شي او ښه سلوك ورسره اوکړي او دتکليف ورکونکي ځيزونو نه يې بچ کړي
کنز العمال ، دابن عمر رضي الله عنهما قول نقل کړی دی چې مکارم اخلاق ديته ونيلی شي څوك چې دالله درضا دپاره دبل چا ملاقات اوکړي او چاته چې ورغلی وي هغه دراتلونکي اکرام اوکړي او ورتلونکي کس ته چې هر څه ملاؤ شي اګر که داوبو ګوټ وي خو په هغي باندي خوشحاله شي.
ابو العباس احمد وائي چاچې لوړه مرتبه موندلي وه نو هغه يې دښو اخلاقو په وجه موندلي وه.
الطفهم باهله، علماء وايي چې دښځو سره نيك سلوك كول ، غلطياني ورته معاف کول د انبياء عليهم السلام شان دي.

***************

٢٦١٣ـحَدَّثَنَا أَبُو عَبْدِ اللهِ هُرَيْمُ بْنُ مِسْعَرٍ الْأَزْدِيُّ التِّرْمِذِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ سُهَيْلِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَطَبَ النَّاسَ فَوَعَظَهُمْ، ثُمَّ قَالَ: "يَا مَعْشَرَ النِّسَاءِ، تَصَدَّقْنَ فَإِنَّكُنَّ أَكْثَرُ أَهْلِ النَّارِ". فَقَالَتِ امْرَأَةٌ مِنْهُنَّ: وَلِمَ ذَاكَ يَا رَسُولَ اللهِ؟ قَالَ: "لِكَثْرَةِ لَعْنِكُنَّ، يَعْنِي: وَكُفْرِكُنَّ الْعَشِيرَ". قَالَ: "وَمَا رَأَيْتُ مِنْ نَاقِصَاتِ عَقْلٍ وَدِينٍ أَغْلَبَ لِذَوِي الْأَلْبَابِ وَذَوِي الرَّأْيِ مِنْكُنَّ". قَالَتِ امْرَأَةٌ مِنْهُنَّ: وَمَا نُقْصَانُ دِينِهَا وَعَقْلِهَا: قَالَ: "شَهَادَةُ امْرَأَتَيْنِ مِنْكُنَّ بِشَهَادَةِ رَجُلٍ، وَنُقْصَانُ دِينِكُنَّ الْحَيْضَةُ تَمْكُثُ إِحْدَاكُنَّ الثَّلَاثَ وَالْأَرْبَعَ لَا تُصَلِّي" وفي الباب عن أَبِي سَعِيدٍ، وَابْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ

صَحِيحٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. (1)

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي فرماني چې رسول الله صلي الله عليه وسلم خلقو ته خطبه ورکړه او وعظ او نصيحت يې اوکړو او بيا يې اوفرمائيل اې دښځو جماعته صدقې ډيرې ورکوئ ځکه چې تاسو دجهنم اکثره حصه يئ دې وخت کې دښځو نه يوې ښځې اووئيل ددې څه وجه ده اې دالله رسوله رسول الله اوفرمائيل تاسو لعنت ډير استعمالوئ او ناشکرې زياته کوئ راوي وائي چې بيا يې داسې اوفرمائيل ستاسو نه په عقل او دين کې زيات کمزوري ما بل څوک نه دې ليدلي نو يوې ښځې اووئيل څه دې نقصان ددين زمونږه او دعقل زمونږه رسول الله اوفرمائيل ايا د دوه ښځو ګواهي ديو سړي دګواهۍ سره برابره نه ده او نقصان ددين ستاسو دادې چې هره مياشت تاسو درې او څلور ورځې په کورونو کې بغير دمونځ کولو تيروئ.

امام ترمذي وايي: او په دې باب کې دابوسعيد خدري او ابن عمر رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي او دا حديث په دې سند حسن صحيح غريب دې.

**لغات** : اللعن: اللعنة : دلعن اسم مرة دې معنې يې عذاب ده جمع يې لعان ده دفتح نه لعنا معنې په چا باندې لعنت کول، کنځل کول، دخير نه لرې کول رټل، لعن نفسه علي لعنة الله ، په ځان باندې لعنت کول، لعّن تلعينا عذاب ورکول، لاعن لعانا ملاعنه په يوبل لعنت ويل التعن په ځان لعنت کول، تلاعن دبعضو په بعضو لعنت کول.

**تشريح**: "يامعشر النساء" يعنې اې دښځو جماعته رسول الله دښځو دپاره مستقل بيان کړی دی ددې بيان نه په اسلام کې دښځو اهميت معلوميږي.

"فاني رئيتكن اكثر اهل النار" يعنې ما په جهنم کې دښځو اکثريت اوليدو ددې ليدلو نه مراد دمعراج شپه ده ځکه چې په دغه شپه نبي کريم صلي الله عليه وسلم ته دجهنم او جنت نظاره خودلی شوي وه په دې حديث کې دښځو يو فطري کمی او نقصان بيان شوی دی او هغه دادی چې ددوئ دين او عقل ناقص وي او په همدې وجه شريعت ددوئ ګواهي دنيم سړي دګواهۍ برابر ګرځولي ده او صدقه ورکول دجهنم دعذاب نه ډير بچ کونکی څيز دی او ګناهونو لره ختمونکی دی نو په دې وجه رسول الله صلي الله عليه وسلم په ډير اهتمام سره ښځو ته دصدقې ورکولو حکم اوکړو.

* * * * * * * * * * * * * * *

---

[1] ـ مسلم/الإيمان ٣٤(٨٠)(تحفة الأشراف: ١٣٤٣٣)، ومسند احمد(٣٧٣/٢، ٣٧٤)

٢٦١٤ـحَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ سُهَيْلِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الإِيمَانُ بِضْعٌ وَسَبْعُونَ بَابًا فَأَدْنَاهَا إِمَاطَةُ الأَذَى عَنِ الطَّرِيقِ، وَأَرْفَعُهَا قَوْلُ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَهَكَذَا رَوَى سُهَيْلُ بْنُ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَرَوَى عُمَارَةُ بْنُ غَزِيَّةَ هَذَا الحَدِيثَ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "الإِيمَانُ أَرْبَعَةٌ وَسِتُّونَ بَابًا".[1]

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دايمان څه دپاسه اويا اجزا دي، په ټولو کې اسان جز دلاري نه دتکليف څيز لري کول دي او په ټولو کې بهتر جز دلااله الاالله ونيل دي.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي او دا رنګي دا روايت سهيل بن ابي صالح دعبدالله بن دينار نه او هغه دابوصالح نه او هغه دابوهريره نه نقل کړي دي او عماره بن عزية دا حديث دابوصالح نه او هغه دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه دي تغير سره نقل کړي دي چې په ايمان کي څلور شپيته دروازي دي.

**لغات**: بضع: البضع د دريوو نه دنهو پوري عدد ته ونيلي شي.

(امام نووي فرماني) دبضع لفظ دريو نه تر نهو پوري څيزونو ته ونيلی شي د "ب" زير دی او کله کله يی زور هم ونيلی شي "شعبه" يوي ټکړی او حصی ته ونيلی شي

شعبة: الشعبة معني دوني خانبې ډلي او فرقي ته هم ونيلي شي.

الحياء: حيي حياة دسمع نه په معني دژوندي پاتي کيدو.

**تشريح**: دبضع په مصداق کې دحافظ ابن حجر يو څو اقوال دي مشهور قول دادی چې د دريو نه ترنهه پوري عدد ته ونيلی شي، دابن منده قول دی چې دبضع اطلاق دلسو پوري کيدی شي او يوبل قول دنهه پوري او بل قول د دوو نه ترلسو پوري دی.

علماء فرمائي تمامي ايماني شعبي په دوه قسمه دي اول هغه دي دکومو تعلق چې دحقوق الله سره دی او دويم قسم يي هغه دی چې تعلق يي دحقوق العباد سره دی نو اولنی خبره خو يي په لااله الاالله سره ذکر کړه يعني کله چې دی دبل چا ايخودلی شوی ضرري څيز لري کوي نو پخپله څنګه چاته ضرر رسولی شي ليکن بعضي محدثين وائي چې ايماني شعبي په دوه قسمه دي

[1] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /الإيمان ٣ (٩). صحيح مسلم /الإيمان ١٢ (٣٥). سنن ابي داود السنة ١٥ (٤٦٧٦). سنن النسائي/الإيمان ٦ (٥٠٠٧). سنن ابن ماجه/المقدمة ٩ (٥٧) (تحفة الأشراف: ١٢٨١٦). و مسند احمد (٢/٤١٤، ٤٤٢)

قولي او فعلي په قولي کې يي لااله الله ذکر کړو اوپه فعلي کې يي اماطة الاذي عن الطريق، ذکر کړو او دي برخي ته يي اشاره اوکړه چې دايمان مضبوطولو دپاره داقوالو او افعالو صحيح کيدل ضروري دي

دايماني شعبو دوضاحت په باره کې يوڅواهم کتابونه ليکلی شوي دي کوم چې مندرجه ذيل دي (۱) المنهاج ، امام ابو عبدالله حليمي (۲)شعب الايمان امام ابوبکر البيهقي (۳) شعب الايمان شيخ عبدالجليل(۴) کتاب النصائح امام قرطبي (۵)وصف الايمان وشعبه امام ابو حاتم، ابن حبان.

****************

قَالَ: حَدَّثَنَا بِذَلِكَ قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا بَكْرُ بْنُ مُضَرَ، عَنْ عُمَارَةَ بْنِ غَزِيَّةَ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. [1]

**ترجمه** : په مذکوره سند هم ابوصالح دابوهريره په واسطه دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه دماقبل پشان روايت نقل کړي دي.

****************

## ٧_باب مَا جَاءَ أَنَّ الْحَيَاءَ مِنَ الإِيمَانِ

### حياء دايمان يوه حصه ده

٢٦١٥_حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، وَأَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، المعنى واحد، قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ بِرَجُلٍ وَهُوَ يَعِظُ أَخَاهُ فِي الحَيَاءِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " الحَيَاءُ مِنَ الإِيمَانِ ". قَالَ أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ فِي حَدِيثِهِ: إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَمِعَ رَجُلًا يَعِظُ أَخَاهُ فِي الحَيَاءِ، قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وفي الباب عن أَبِي هُرَيْرَةَ، وَأَبِي بَكْرَةَ، وَأَبِي أُمَامَةَ. [2]

**ترجمه** : دابن عمر رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم ديوکس په

---

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ١٢٨٥٣)

[2] _ اورده البخاري في الجامع /الإيمان ١٦ (٢٣) ، والأدب ٧٧ (٦١١٨) . صحيح مسلم /الإيمان ١٢ (٣٦) . ابي داود/ الأدب ٧ (٤٧٩٥) . سنن النسائي/الإيمان ٢٧ (٥٠٣٦) . سنن ابن ماجه/المقدمة ٩ (٥٨) (تحفة الأشراف : ٦٨٢٨) . والمؤطاء:حسن الخلق ٢ (١٠) ومسند احمد(٢/٥٦، ١٤٧)

خوا کې تیر شوچې هغه خپل رورته دحیا نصیحت کولو (چې ډیره حیامه کوه) رسول الله صلي الله علیه وسلم ورته اوفرمائیل پریږده ده لره حیا خو دایمان جزء دی

امام ترمذي وايي احمد بن منيع پخپل روايت کي داسي لفظ نقل کړي دي چې نبي کريم صلي الله عليه وسلم ديو کس نه واوريدل چې خپل ورور ته يي دحياء باره کي نصيحت کولو.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او په دي باب کي دابوهريره او ابوبکره او ابو امامه رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي

**لغات** . دعه دفتح نه يعني پريږده، اودع مالا عنده يعني امانت ايخودل ، ودّعه. رخصت يي کړو وادّعه صلح کول، الوديعة امانت جمع يي ودائع راځي

**تشريح** : ابن حجر ليکلي دي دکوشش باوجود انصاري خپل ورور ته نصيحت کوي او څه چې اوري هغه نامعلومه نه شوه.

دعه فان الحياء من الايمان. يعني پريږده ځکه چې حياء دايمان حصه ده. دا اګر چې يو فطري وصف دی يعني ډير خلق پيدائشي طور خيرن وي ترديچې ددوئ تربيت اوشي او بيا ددوئ مخه نيکو ته اوګرځولی شي نو په دي وجه ددوئ په شرم او حياء کي مزيد اضافه کيږي اوهمدا په اسلام کي مطلوب دي په دي کې ددي خبري جواب هم اوشو چې حياء خو يو فطري څيز دی اوفطري څيزغيراختياري وي نوچې کله غير اختياري شوه نو په دي باندي ثواب څنګه ملاويږي نو دلته ددي جواب اوشو چې کومه فطري حياء وي هغه دلته مراد نه ده بلکه هغه فطري حياء مراد ده دکومي سره چې مزيد اضافه شوي وي او اختياري ګرځولی شوي وي هغه يي دايمان جزء ګنړلی دی.

****************

## ٨_باب مَا جَاءَ فِي حُرْمَةِ الصَّلَاةِ

### دمونځ دتقدس او فضيلت بيان

٢٦١٦_حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُعَاذٍ الصَّنْعَانِيُّ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ أَبِي النَّجُودِ، عَنْ أَبِي وَائِلٍ، عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ، قَالَ: كُنْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَفَرٍ، فَأَصْبَحْتُ يَوْمًا قَرِيبًا مِنْهُ وَنَحْنُ نَسِيرُ فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ أَخْبِرْنِي بِعَمَلٍ يُدْخِلُنِي الجَنَّةَ، وَيُبَاعِدُنِي عَنِ النَّارِ. قَالَ: " لَقَدْ سَأَلْتَنِي عَنْ عَظِيمٍ وَإِنَّهُ لَيَسِيرٌ عَلَى مَنْ يَسَّرَهُ اللَّهُ عَلَيْهِ. تَعْبُدُ اللَّهَ وَلَا تُشْرِكْ بِهِ شَيْئًا، وَتُقِيمُ الصَّلَاةَ، وَتُؤْتِي الزَّكَاةَ، وَتَصُومُ رَمَضَانَ، وَتَحُجُّ البَيْتَ " ثُمَّ قَالَ: " أَلَا أَدُلُّكَ عَلَى أَبْوَابِ الخَيْرِ: الصَّوْمُ جُنَّةٌ، وَالصَّدَقَةُ تُطْفِئُ الخَطِيئَةَ كَمَا يُطْفِئُ المَاءُ النَّارَ، وَصَلَاةُ الرَّجُلِ مِنْ جَوْفِ

اللَّيْلِ، قَالَ ثُمَّ تَلَا: تَتَجَافَى جُنُوبُهُمْ عَنِ الْمَضَاجِعِ (السجدة: ١٦ حَتَّى بَلَغَ يَعْمَلُونَ (السجدة: ١٩. ثُمَّ قَالَ: "أَلَا أُخْبِرُكَ بِرَأْسِ الْأَمْرِ كُلِّهِ وَعَمُودِهِ وَذِرْوَةِ سَنَامِهِ؟" قُلْتُ: بَلَى يَا رَسُولَ اللَّهِ، قَالَ: "رَأْسُ الْأَمْرِ الْإِسْلَامُ، وَعَمُودُهُ الصَّلَاةُ، وَذِرْوَةُ سَنَامِهِ الْجِهَادُ". ثُمَّ قَالَ: "أَلَا أُخْبِرُكَ بِمَلَاكِ ذَلِكَ كُلِّهِ؟" قُلْتُ: بَلَى يَا نَبِيَّ اللَّهِ، فَأَخَذَ بِلِسَانِهِ قَالَ: "كُفَّ عَلَيْكَ هَذَا". فَقُلْتُ: يَا نَبِيَّ اللَّهِ وَإِنَّا لَمُؤَاخَذُونَ بِمَا نَتَكَلَّمُ بِهِ؟ فَقَالَ: "ثَكِلَتْكَ أُمُّكَ يَا مُعَاذُ وَهَلْ يَكُبُّ النَّاسَ فِي النَّارِ عَلَى وُجُوهِهِمْ أَوْ عَلَى مَنَاخِرِهِمْ إِلَّا حَصَائِدُ أَلْسِنَتِهِمْ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (1)

**ترجمه** معاذ رضي الله عنه نه روايت دی چې ما عرض اوکړو يا رسول الله داسې کار راته اوښايه چې جنت ته مې بوځي اودوزخ نه مې لرې کړي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل.... دډير اوچت (ګران) کار تپوس دې اوکړو ليکن چې الله تعالي يې چاته اسان کړي نو ډير اسان دی هغه دادی خالص دالله جل جلاله عبادت کوه هيڅ بل شی ورسره مه شريکوه مونځ پابندئ سره کوه زکات ورکوه، درمضان روژې نيسه او حج کوه که دورتلو طاقت دې وو بيايې اوفرمائيل ايا دنيکئ دروازې درته اونه ښايم، روژه دګناهونو ډال دی او خيرات ګناهونه داسې ختموي لکه اوبه چې اور مړ کوي اودنيمې شپې مونځ (تهجد هم ګناهونه ختموي) بيايې ددې ايت تلاوت اوکړو "تتجا في جنوبهم عن المضاجع" تر يعملون پورې بيايې اوفرمائيل ايا ددين دکار بنيادونه اوستنې او داوښ کوهان يعنې دهغه بلندي او اعلي درجې درته اونه ښايم ما عرض اوکړو يا رسول الله ضرور يې راته اوښايه رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل ددين بنياد اسلام دی يعني دالله اورسول اطاعت اوستنې يې مونځ دی او اوچته څوکه يې جهاد دی بيايې اوفرمائيل ايا هغه شی درته اونه ښايم چې دا ټول يې په قبضه کې دي ما عرض اوکړو ضرور يې راته اوښايه يا سول الله رسول الله صلي الله عليه وسلم خپلې ژبې مبارکې ته اشاره اوکړه دا په قبضه کې کړه ما عرض اوکړو يا رسول الله په خبرو به هم نيولې شو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل معاذه مور درباندې بوره شه ددې ژبې دلاسه خو خلق مړمخې اور کې غورزولې شي.

امام ترمذي وايي: دا حديث حسن صحيح دی.

**لغات** ، مضاجع دمضجع جمع ده معني خوابګاه.دباب فتح نه .

**تشريح** په دې حديث کې داسلامي ارکانو اهميت بيان شوی دی چې هر يو رکن پخپل ځاي خاص اهميت لري

---

[1] ـ سنن ابن ماجه/الفتن ١٢ (٣٩٧٣) (تحفة الأشراف: ١١٣١١)

انالمواخذون بما نتكلم به: يعني مونږ چې کومې خبرې کوو ايا په دې به مونږ نيولی کيږو؟ دلته دا بيانيږي که دژبې حفاظت اونه شي نو ددې په ذريعه دانسان تمام اعمال صالحه بربادېږي او بيا جنت ته دتلو په ځاي جهنم ته رسيږي، يو بزرګ وائي خپلې خبرې دمال پشان محفوظ ساته چې کله يې خرچ کوې نو ګوره او په سوچ سمج سره يې خرچ کوه

*****************

٢٦١٧_حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ وَهْبٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ الْحَارِثِ، عَنْ دَرَّاجٍ أَبِي السَّمْحِ، عَنْ أَبِي الْهَيْثَمِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِذَا رَأَيْتُمُ الرَّجُلَ يَتَعَاهَدُ الْمَسْجِدَ فَاشْهَدُوا لَهُ بِالإِيمَانِ فَإِنَّ اللَّهَ تَعَالَى يَقُولُ: إِنَّمَا يَعْمُرُ مَسَاجِدَ اللَّهِ مَنْ آمَنَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ وَأَقَامَ الصَّلاَةَ وَآتَى الزَّكَاةَ (التوبة :١٨ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.[1]

**ترجمه** دابوسعيد خدري رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي کله چې تاسو وليدل چې يو کس دمسجد سره تعلق ساتي نو تاسو دده دپاره په ايمان ګواهي ورکړئ ځکه چې الله تعالي فرمائيلي دي " إِنَّمَا يَعْمُرُ مَسَاجِدَ اللَّهِ مَنْ آمَنَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ وَأَقَامَ الصَّلاَةَ وَآتَى الزَّكَاةَ " يعني يقينا تعمير دمساجدو هغه خوك کوي چې په الله تعالي او په ورځ داخرت ايمان لري او قائموي مونځونه او اداء کوي زکاتونه
امام ترمذي وايي داحديث حسن غريب دي.

*****************

## ٩_باب مَا جَاءَ فِي تَرْكِ الصَّلاَةِ

## دمونځ په پريخودلو دوعيد بيان

٢٦١٨_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، وَأَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي سُفْيَانَ، عَنْ جَابِرٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " بَيْنَ الْكُفْرِ وَالإِيمَانِ تَرْكُ الصَّلاَةِ ". حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَسْبَاطُ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنِ الأَعْمَشِ، بِهَذَا الإِسْنَادِ نَحْوَهُ، وَقَالَ: " بَيْنَ الْعَبْدِ وَبَيْنَ الشِّرْكِ أَوِ الْكُفْرِ تَرْكُ

---

[1] ـ سنن ابن ماجه/المساجد ١٨ (٨٠٢) (تحفة الأشراف: ٤٠٥٠)

الصَّلَاةِ". ([1])

**ترجمه**: د جابر رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي.
د ايمان او كفر مينځ كي فرق كونكي شي مونځ پريښودل دي
امام ترمذي وايي اثبات هم په مذكوره سند داعمش نه دماقبل هم معني روايت نقل كړي دي او فرمائيلي يي دي چي دبنده او دشرك او كفر مينځ كي فرق مونځ پريخودل دي

**تشريح**: په پورتني حديث كي دمونځ په پريخودو سخت وعيد راغلى دى او په همدي وجه اهل ظواهرو قول كړى دى چي مونځ پريخودونكى كافر كيږي او دامام شافعي په نزد او امام مالك په نزد كافر كيږي خو نه ليكن سزا يي قتل ده او دامام ابوحنيفه په نزد به ددي مرتكب جيل ته ليږلى شي.

***************

٢٦١٩_حَدَّثَنَا هَنَّادٌ. حَدَّثَنَا أَسْبَاطُ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنِ الأَعْمَشِ بِهَذَا الإِسْنَادِ. نَحْوَهُ. وَقَالَ: "بَيْنَ الْعَبْدِ وَبَيْنَ الشِّرْكِ أَوِ الْكُفْرِ تَرْكُ الصَّلَاةِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَأَبُو سُفْيَانَ اسْمُهُ طَلْحَةُ بْنُ نَافِعٍ. ([2])

**ترجمه**: د اعمش نه هم په مذكوره سند د ماقبل هم معني روايت مروي دي چي فرمائيل يي د بنده اود كفر او شرك مينځ كي فرق كونكي شي مونځ پريښودل دي.
امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي او دابوسفيان نوم طلحه بن نافع دي.

***************

٢٦٢٠_حَدَّثَنَا هَنَّادٌ. حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "بَيْنَ الْعَبْدِ وَبَيْنَ الْكُفْرِ تَرْكُ الصَّلَاةِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَأَبُو الزُّبَيْرِ اسْمُهُ: مُحَمَّدُ بْنُ مُسْلِمِ بْنِ تَدْرُسَ. ([3])

**ترجمه**: د جابر رضي الله عنه نه روايت دى چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي

---

[1] _ مسلم/الإيمان ٣٥ (٨٢). سنن ابي داود/ السنة ١٥ (٤٦٧٨). سنن النسائي/الصلاة ٨ (٤٦٥). سنن ابن ماجه/الإقامة ٧٧ (١٠٧٨) (تحفة الأشراف: ٢٣٠٢). و مسند احمد (٣/٣٧٠)

[2] _ صحيح مسلم/الإيمان ٣٥ (٨٢). سنن ابي داود/ السنة ١٥ (٤٦٧٨). سنن النسائي/الصلاة ٨ (٤٦٥). سنن ابن ماجه/الإقامة ٧٧ (١٠٧٨) (تحفة الأشراف: ٢٣٠٢). و مسند احمد (٣/٣٧٠)

[3] انظر ماقبله (تحفة الأشراف: ٢٧٤٦)

د مومن او كافرانو ترمينځه فرق مونځ پريښودل دى
امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح دى .اود ابو الزبير نوم محمد بن مسلم بن تدرس دى.
**لغات** كفر كفر يكفر كفرا او كفرانا ، دنصر نه الشيء معني پټول ديو شي، لکه کفر درعه بثوبه يعني خپله زغره يې په جامه پټه كړله كفرا او كفرانا دايمان ضد دي بالخالق . نفي كول او ناشكري كول او بيزار كيدل، مكافرة انكار كول . اكفر كفر اختيارول

****************

٢٦٢١ـ حَدَّثَنَا أَبُو عَمَّارٍ الحُسَيْنُ بْنُ حُرَيْثٍ، وَيُوسُفُ بْنُ عِيسَى، قَالَا: حَدَّثَنَا الفَضْلُ بْنُ مُوسَى، عَنِ الحُسَيْنِ بْنِ وَاقِدٍ. ح وَحَدَّثَنَا أَبُو عَمَّارٍ الحُسَيْنُ بْنُ حُرَيْثٍ، وَمَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، قَالَا: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الحُسَيْنِ بْنِ وَاقِدٍ، عَنْ أَبِيهِ. ح وَحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَلِيِّ بْنِ الحَسَنِ بْنِ شَقِيقٍ، وَمَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، قَالَا: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الحَسَنِ بْنِ شَقِيقٍ، عَنِ الحُسَيْنِ بْنِ وَاقِدٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "العَهْدُ الَّذِي بَيْنَنَا وَبَيْنَهُمُ الصَّلَاةُ فَمَنْ تَرَكَهَا فَقَدْ كَفَرَ"، وفِي الباب عن أَنَسٍ، وَابْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ. ([1])

**ترجمه** : دبريده رضي الله عنه نه روايت دى چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي زمونږ او كافرانو ترمينځه چې كومه وعده ده هغه مونځ دى چاچې مونځ ترك كړو كافر شو.
امام ترمذي وايي: او په دي باب كې دانس او ابن عباس رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي او دا حديث حسن صحيح غريب دي.
**تشريح** : العهد الذي بيننا وبينهم الصلاة. يعني زمونږ ددوئ په مينځ كې عهد دي هغه مونځ دي.

****************

٢٦٢٢ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ المُفَضَّلِ، عَنِ الجُرَيْرِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ شَقِيقٍ العُقَيْلِيِّ، قَالَ: "كَانَ أَصْحَابُ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، لَا يَرَوْنَ شَيْئًا مِنَ الأَعْمَالِ تَرْكُهُ كُفْرٌ غَيْرَ الصَّلَاةِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: سَمِعْت أَبَا مُصْعَبٍ المَدَنِيَّ، يَقُولُ: مَنْ قَالَ الإِيمَانُ قَوْلٌ يُسْتَتَابُ فَإِنْ تَابَ وَإِلَّا

[1] ـ سنن النسائي/الصلاة ٨ (٤٦٣). سنن ابن ماجه/الإقامة ٧٧ (١٠٧٩) (تحفة الأشراف : ١٩٦٠). و مسند احمد (٥/٣٤٦، ٣٥٥)

**ضُرِبَتْ عُنُقُهُ.** [1]

**ترجمه**. دعبدالله بن شقيق عقيلي بيان دي فرمائي چې محمد صلي الله عليه وسلم په صحابه كرامو كي به هيڅا داعمالو په پريخودلو چاته دكفر نسبت نه كولو مګر علاوه دمونځ نه

امام ترمذي وايي. دابومصعب مدني نه مي اوريدلي دي ونيل يي كه څوك داسي وائي چې ايمان صرف اقوالو سره تعلق لري (او داعمالو سره يي تعلق نشته) نو داسي كس ته دي دتوبي پيشكش اوكړي شي كه توبه يي اوويستله ډيره ښه ده او كه توبي ويستلو ته تيار نه وي نو دده څټ دي په توره اووهلي شي.

****************

## ١٠_باب مِنْهُ

## دسابقه باب متعلق يوبل باب

٢٦٢٣_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ ابْنِ الْهَادِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ بْنِ الْحَارِثِ، عَنْ عَامِرِ بْنِ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ، عَنِ الْعَبَّاسِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ، أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: " ذَاقَ طَعْمَ الْإِيمَانِ مَنْ رَضِيَ بِاللَّهِ رَبًّا وَبِالْإِسْلَامِ دِينًا وَبِمُحَمَّدٍ نَبِيًّا ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [2]

**ترجمه** : دعباس بن عبدالمطلب رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چې ما دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي دي فرمائيل يي چې يقينا هغه چا دايمان خوند اوڅكلو څوك چې راضي شو په الله تعالي درب په حيثيت او په اسلام باندي ددين په حيثيت او په محمد صلي الله عليه وسلم باندي دنبي په حيثيت.

امام ترمذي وايي. داحديث حسن صحيح دي

****************

٢٦٢٤_حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ الثَّقَفِيُّ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " ثَلَاثٌ مَنْ كُنَّ فِيهِ وَجَدَ بِهِنَّ طَعْمَ الْإِيمَانِ: مَنْ

---

[1] _ تفرد به المؤلف

[2] _ صحيح مسلم/الإيمان ١١ (٣٤) (تحفة الأشراف : ٥١٢٤) ، ومسند احمد (١/٢٠٨)

كَانَ اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَحَبَّ إِلَيْهِ مِمَّا سِوَاهُمَا، وَأَنْ يُحِبَّ الْمَرْءَ لَا يُحِبُّهُ إِلَّا لِلَّهِ، وَأَنْ يَكْرَهَ أَنْ يَعُودَ فِي الْكُفْرِ بَعْدَ إِذْ أَنْقَذَهُ اللَّهُ مِنْهُ كَمَا يَكْرَهُ أَنْ يُقْذَفَ فِي النَّارِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَقَدْ رَوَاهُ قَتَادَةُ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. [1]

**ترجمه** : دانس رضي الله عنه نه روايت دى چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي درى خويونه داسي دي چې دا په چا کې وي دايمان په خوږو به پوه شي ، اول چې الله او رسول سره هر څه نه زياته مينه لري ، دويم ، چې يو سړي سره خالص دالله درضاء دپاره مينه لري ، دريم چې کفر ته واپس کيدل ورته پس ددى نه چې الله ترې خلاص کړو داسې بد ښکاري لکه څوك چې په اور کې غورځوي

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي دارنګي دا روايت قتاده هم دانس بن مالك په واسطه دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه نقل کړي دي.

**لغات** : انقذه: نقذ نقذا ونقذ وانقذ فلانا من کذا. په معني دنجات ورکولو دي . قذف دضرب نه په معني دقې کولو دي

**تشريح**: "طعم الايمان" يعني دايمان خوږوالى اودالله اودرسول درضا دپاره لوې لوې تکليفونه برداشت کول مراد دي او دبعضي علماؤ په نزد اخرت ته په دنيا ترجيح ورکول مراد دي ' مَنْ كَانَ اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَحَبَّ إِلَيْهِ مِمَّا سِوَاهُمَا، دالله تعالي سره خويه خکه محبت ساتي چې هغه رب الارباب او منعم حقيقي دى تمام نعمتونه دهغه دفضل او کرم سره وابسته دي اودنبي کريم صلي الله عليه وسلم سره به خکه محبت ساتي چې هغه دروحاني علومو او انعامات الهيه واسطه ده.(شرح رياض الصالحين)

***************

## ۱۱_باب مَا جَاءَ لَا يَزْنِي الزَّانِي وَهُوَ مُؤْمِنٌ

**يو مومن دمومن کيدو په حالت کې زنا نه کوي**

۲٦۲٥_حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا عَبِيدَةُ بْنُ حُمَيْدٍ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يَزْنِي الزَّانِي حِينَ يَزْنِي وَهُوَ مُؤْمِنٌ. وَلَا يَسْرِقُ

[1] _ اورده البخاري في الجامع /الإيمان ۹ (۱٦) و ۱۴ (۲۱) . والأدب ۴۲ (٦۰۴۱) . ووالإكراه ۱ (٦۹۴۱) . مسلم /الإيمان ۱۵ (۴۳) النسائي/الإيمان ۲ (۴۹۹۰) . و ۳ (۴۹۹۱) . ابن ماجه/الفتن ۲۳ (۴۰۳۳) (تحفة الأشراف : ۹۳٦) . و مسند احمد (۳/۱۰۳، ۱۱۳، ۱۷۲، ۱۷۴، ۲۳۰، ۲۴۸، ۲۷۵، ۲۸۸)

السَّارِقُ حِينَ يَسْرِقُ وَهُوَ مُؤْمِنٌ، وَلَكِنِ التَّوْبَةُ مَعْرُوضَةٌ ". وفي الباب عن ابْنِ عَبَّاسٍ، وَعَائِشَةَ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي أَوْفَى. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ وَقَدْ رُوِيَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " إِذَا زَنَى الْعَبْدُ خَرَجَ مِنْهُ الْإِيمَانُ فَكَانَ فَوْقَ رَأْسِهِ كَالظُّلَّةِ فَإِذَا خَرَجَ مِنْ ذَلِكَ الْعَمَلِ عَادَ إِلَيْهِ الْإِيمَانُ ". وَقَدْ رُوِيَ عَنْ أَبِي جَعْفَرٍ مُحَمَّدِ بْنِ عَلِيٍّ أَنَّهُ قَالَ فِي هَذَا: خَرَجَ مِنَ الْإِيمَانِ إِلَى الْإِسْلَامِ. وَقَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ: " فِي الزِّنَا وَالسَّرِقَةِ مَنْ أَصَابَ مِنْ ذَلِكَ شَيْئًا فَأُقِيمَ عَلَيْهِ الْحَدُّ فَهُوَ كَفَّارَةُ ذَنْبِهِ وَمَنْ أَصَابَ مِنْ ذَلِكَ شَيْئًا فَسَتَرَ اللَّهُ عَلَيْهِ فَهُوَ إِلَى اللَّهِ إِنْ شَاءَ عَذَّبَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَإِنْ شَاءَ غَفَرَ لَهُ ". رَوَى ذَلِكَ عَلِيُّ بْنُ أَبِي طَالِبٍ، وَعُبَادَةُ بْنُ الصَّامِتِ، وَخُزَيْمَةُ بْنُ ثَابِتٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. [1]

**ترجمه**: د ابوهريره رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي کله چې زناکار زنا کوي نو دزنا کولو په وخت کي دده سره ايمان باقي نه پاتي کيږي او کله چې غل غلا کوي نو دغلا کولو په وخت کي دده سره ايمان موجود نه وي ليکن ددينه پس هم د توبي دروازه پرانيستلي وي.

امام ترمذي وايي: په دي سند دابوهريره حديث حسن صحيح غريب دي، او په دي باب کي دابن عباس، عائشه، او عبدالله بن ابي اوفي، رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او دابوهريره نه دي باره کي يو بل حديث مروي دي نبي کريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي کله چې يو کس زنا کوي نو ايمان دده نه راوخي او دده په سر دچترئ پشان دپاسه زوړند وي او کله چې ددي ګنده کار نه فارغ شي نو ايمان ورته واپس راشي، دابوجعفر محمد بن علي بيان دي فرمائي چې کله زنا کار داسي حرکت کوي ايمان دده نه اوخي او صرف مسلم پاتي شي، دعلي بن ابي طالب، عباده بن صامت، او خزيمه بن ثابت رضي الله عنهم نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم دزناکار او غل باره کي فرمائيلي دي که چري يو کس ددي قسم ګناه ارتکاب اوکړي او بباوربانديِ حد جاري کړي شي نو حد جاري کيدل به دده دګناه کفاره وي او که ديو کس نه په دي سلسله کي کومه ګناه اوشي او بيا وربانديِ الله تعالي پرده واچوي نو دده مغفرت او عدم مغفرت دالله تعالي په مشيت پوري منحصر دي که الله اوغواړي نو دقيامت په

---

[1] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /الإيمان ٣٠ (٢٤٧٥) . والأشربة ١ (٥٥٧٨) . والحدود ٣ (٦٧٧٢) . و٢٠ (٦٨١٠) . صحيح مسلم /الإيمان ٢٣ (٥٧) . سنن ابي داود/ السنة ١٦ (٤٦٨٩) . سنن النسائي/قطع السارق ١ (٤٨٨٦) . والأشربة ٤٢ (٥٦٧٥) (تحفة الأشراف : ١٢٥٣٩) . و مسند احمد (٢/٢٤٣، ٣٧٦، ٣٨٦، ٤٧٩)

ورخ به ورته عذاب ورکړي او که اوغواړي نو معافي به ورته اوکړي

****************

٢٦٢٦_حَدَّثَنَا أَبُو عُبَيْدَةَ بْنُ أَبِي السَّفَرِ وَاسْمُهُ: أَحْمَدُ بْنُ عَبْدِ اللهِ الْهَمْدَانِيُّ الْكُوفِيُّ. قَالَ: حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مُحَمَّدٍ. عَنْ يُونُسَ بْنِ أَبِي إِسْحَاقَ. عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ الْهَمْدَانِيِّ. عَنْ أَبِي جُحَيْفَةَ. عَنْ عَلِيٍّ. عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "مَنْ أَصَابَ حَدًّا فَعُجِّلَ عُقُوبَتَهُ فِي الدُّنْيَا فَاللهُ أَعْدَلُ مِنْ أَنْ يُثَنِّيَ عَلَى عَبْدِهِ الْعُقُوبَةَ فِي الآخِرَةِ، وَمَنْ أَصَابَ حَدًّا فَسَتَرَهُ اللهُ عَلَيْهِ وَعَفَا عَنْهُ فَاللهُ أَكْرَمُ مِنْ أَنْ يَعُودَ فِي شَيْءٍ قَدْ عَفَا عَنْهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ صَحِيحٌ. وَهَذَا قَوْلُ أَهْلِ الْعِلْمِ لَا نَعْلَمُ أَحَدًا كَفَّرَ أَحَدًا بِالزِّنَا أَوِ السَّرِقَةِ وَشُرْبِ الْخَمْرِ. (١)

**ترجمه** دعلي بن ابي طالب رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچې گناه اوکړه او دگناه دجرم سزا ورته ورکړي شوه نو الله تعالي ددينه زيات انصاف خوښونکي دي چې هغه دي خپل بنده ته په اخرت کي دوباره سزا ورکړي او چاچي کومه گناه اوکړه او الله تعالي په هغه باندي پرده واچوله او معافي يي ورته اوکړه نو دالله تعالي کرم ددينه ډير زيات دي چې هغه دوباره په هغي گناه دخپل بنده مؤاخذه اوکړي کومه چې هغه مخکي معاف کړي وي.

امام ترمذي وايي داحديث حسن غريب صحيح دي او په همدي اهل علمو قول کړي دي او مونږ ته هيڅوك داسي نه دي معلوم چې د زناکار او غل او شرابي تکفير يي کړي دي

****************

## ١٢_باب مَا جَاءَ فِي أَنَّ الْمُسْلِمَ مَنْ سَلِمَ الْمُسْلِمُونَ مِنْ لِسَانِهِ وَيَدِهِ

**کامل مسلمان هغه څوک دي دچا دلاس او دژبي دضرر نه چې نور مسلمانان محفوظ وي**

٢٦٢٧_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ. حَدَّثَنَا اللَّيْثُ. عَنِ ابْنِ عَجْلَانَ. عَنِ الْقَعْقَاعِ بْنِ حَكِيمٍ. عَنْ أَبِي صَالِحٍ. عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الْمُسْلِمُ مَنْ سَلِمَ الْمُسْلِمُونَ مِنْ لِسَانِهِ وَيَدِهِ. وَالْمُؤْمِنُ مَنْ أَمِنَهُ النَّاسُ عَلَى دِمَائِهِمْ وَأَمْوَالِهِمْ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَيُرْوَى عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. أَنَّهُ سُئِلَ أَيُّ الْمُسْلِمِينَ أَفْضَلُ؟ قَالَ: "مَنْ سَلِمَ

---

[1] ـ سنن ابن ماجه/الحدود ٣٣ (٢٦٠٤) (تحفة الأشراف : ١٠٣١٣)

الْمُسْلِمُونَ مِنْ لِسَانِهِ وَيَدِهِ". وفي الباب عن جَابِرٍ، وَأَبِي مُوسَى، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو. [1]

**ترجمه** د ابو هريرد رضي الله عنه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي. كامل مسلمان هغه څوك دی دچا دلاس او ژبي نه چې نور مسلمانان محفوظ وي او مومن صرف هغه څوك دی چالره چې خلقو دخپلي وينې او مال په معامله کې امين ګرځولی وي

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي او په دي باب کې دجابر، ابوموسي، او عبدالله بن عمرو رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، درسول الله صلي الله عليه وسلم نه مروي دي چې تپوس ورنه اوکړي شو په ټولو کې بهتر مسلمان څوك دي نو وېي فرمائيل دچا دژبي او دلاس دضرر نه چې مسلمانان محفوظ وي.

**لغات** سلم: سلم سلامة دسمع نه په معني دمحفوظ کيدو او بري کيدو دي.

**تشريح**: المسلم، په المسلم کې الف لام عهدي دی يعني المسلم الكامل يعني کامل مسلمان؟

سوال: په پورتني حديث کې د المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده مطلب دادی چې سړی به صرف خلقو ته تکليف نه ورکوي برابره خبره ده چې مونځ کوي او که نه روژي نيسي او که نه نيسي خو دی کامل مسلمان دی.

جواب: ابن حجر وائي په داسي روايتونو کې مع مراعات باقي الارکان قيد مقدر دی يعني دباقي پاتي نورو ارکانو رعايت به هم کوي

سوال: ايا غيرمسلم وغيره ته نقصان ورکول جائز دي حال دادی چې په احاديثو کې خو ددينه هم ممانعت راغلی دی.

جواب: دلته يي داکثريت په اعتبارسره ونيلي دي خکه چې دمسلمانانو اکثره واسطه دمسلمانانو سره راتلی شي يا د مسلمان قيد ددوئ دعظمت شان په اعتبار سره دی ، دمحارم کافر نه علاوه هيچاته نقصان رسول درست نه دي.

من لسانه، په دي کې کنځل کول لعن طعن کول او بهتان وغيره ټول شامل دي.

من يده. په دي کې وژل قتل کول دفع کول وغيره ټول شامل دي

سوال دلاس تخصيص ولي شوی دی خکه چې ضرر خو په نورو اعضاؤ سره هم ورکولی کيدی شي.

جواب: اکثر افعال په لاسونو کې کيږي خکه يي دلته دلاس تخصيص کړی دی.

سوال: لسان په يد ولي مقدم کړی شوی دی.

[1] ـ سنن النسائي/الإيمان ٨ (٤٩٩٨) (تحفة الأشراف: ١٢٨٦٤) ، ومسند احمد (٢/٣٧٩)

جواب دژبي نه تكليف زيات او عام دي ځكه چې په دي باندي حاضر او غيرحاضر دواړه نشانه كيدى شي په خلاف دلاس چې په دي باندي صرف حاضر نشانه كيدى شي په همدي باره كې علامه بدرالدين عيني دا شعر ليكلى دى.

جراحات السنان لها التيام ولايلتام ما جرح اللسان

يعني دتورو او نيزو زخمونه جوړيږي خو دژبي زخمونه نه جوړيږي

د توري سل پرهاره جوړ شي د ژبي زخم تر قيامته پوري وينه

****************

٢٦٢٨ـ حَدَّثَنَا بِذَلِكَ إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعِيدٍ الْجَوْهَرِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، عَنْ بُرَيْدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي بُرْدَةَ، عَنْ جَدِّهِ أَبِي بُرْدَةَ، عَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُئِلَ أَيُّ الْمُسْلِمِينَ أَفْضَلُ ؟ قَالَ: " مَنْ سَلِمَ الْمُسْلِمُونَ مِنْ لِسَانِهِ وَيَدِهِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ حَسَنٌ مِنْ حَدِيثِ أَبِي مُوسَى الأَشْعَرِيِّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. (1)

**ترجمه** : ابوموسي رضي الله عنه نه روايت دى چې ما عرض اوكړو يا رسول الله په مسلمانانو كې افضل څوك دى، رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل دچا دژبى اولاس نه چې نور مسلمانان محفوظ وي، يعني چې چاته په ژبه يالاسو څه نقصان نه رسوي

امام ترمذي وايي: داحديث دابو موسي اشعري په روايت چې دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه مروي دي صحيح غريب حسن دي.

**لغات**. لسان : معني ژبه جمع يي السنة راځي ، يد معني لاس جمع يي ايادي راځي

**تشريح** : من سلم المسلمون. په دي كې كفار او حيوانات هم داخل دي ليكن مسلمانان يې دعظيم الشان كيدو په وجه خاص كړي دي.

لسانه: په ژبه كنځلي كول، لعن طعن كول، بهتان او غيبت كول ټول په دي كې داخل دي علماء وائي چې لسانه يي اوفرمائيل او قوله يي اونه فرمائيل ځكه چې قوله صرف دونيلو سره تعلق لري پدي كې خو ژبه خوزول داخل نه شول.

يده په دي كې وژل او قتل كول وغيره ټول داخل دي.

سوال تكليف خو دنورو اعضاؤ نه هم رسيدى شي نو دلته يي صرف ژبه او لاس ولي ذكر كړل

جواب: ددي دواړو نه ضرر زيات رسيږي ځكه يي دا ذكر كړي دي

سوال: ژبه په لاس ولي مقدم كړى شوي ده؟ ددي دوه جوابونه دي

1 ـ انظر حديث رقم: ٢٥٠٢

اول جواب په ژبې سره چې کوم تکلیف ورکولی شي هغه حاضر او غائب دواړو ته رسیدی شي په خلاف دلاس خکه چې په لاس سره صرف حاضر ته تکلیف ورکولی شي غائب ته نه شي

دویم جواب دژبې زخم دلاس دزخم نه زیات شدید وي.

سوال دحدیث دالفاظو "من سلم المسلمون من لسانه ویده. نه معلومیږي چې څوك چاته ضرر نه رسوي هغه مسلمان دی برابره خبره ده چې مونځ نه کوي یا روژه نه نیسي حال دادی چې دا قول صحیح نه دی ددې هم دوه جوابونه دي

اول جواب علامه ابن حجر وائي ددینه مراد مع مراعات باقي الارکان. قید دی یعني چې باقي تمام ارکان هم ادا کړي.

دویم جواب دلته یې داهمیت په پیش نظر دا بیان کړی دی او ددینه دباقي احکامو او ارکانو نفي مراد نه ده.

***************

## ١٣ـ باب مَا جَاءَ أَنَّ الإِسْلاَمَ بَدَأَ غَرِيبًا وَسَيَعُودُ غَرِيبًا

**اسلام د نا اشناوالي په حالت کې راغلي وو او د نا اشناوالي په حالت کې به واپس ځي**

**٢٦٢٩ـ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ غِيَاثٍ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ أَبِي الأَحْوَصِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِنَّ الإِسْلاَمَ بَدَأَ غَرِيبًا وَسَيَعُودُ غَرِيبًا كَمَا بَدَأَ، فَطُوبَى لِلْغُرَبَاءِ ". وفي الباب عن سَعْدٍ، وَابْنِ عُمَرَ، وَجَابِرٍ، وَأَنَسٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ مِنْ حَدِيثِ ابْنِ مَسْعُودٍ إِنَّمَا نَعْرِفُهُ مِنْ حَدِيثِ حَفْصِ بْنِ غِيَاثٍ، عَنِ الأَعْمَشِ، وَأَبُو الأَحْوَصِ اسْمُهُ: عَوْفُ بْنُ مَالِكِ بْنِ نَضْلَةَ الْجُشَمِيُّ تَفَرَّدَ بِهِ حَفْصٌ. (١)**

**ترجمه** دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله علیه وسلم فرمانیلي دي اسلام داجنبي توب په حالت کې راغلي وو او د اجنبي توب په حالت کې به عنقریب واپسي اوکړي لهذا په داسې وخت کې په دې باندې دقانم پاتې کیدونکو غرباؤ دپاره زیری او مبارکي ده

امام ترمذي وایي داحدیث حسن صحیح غریب دي. او په دې باب کې دسعد. ابن عمر، جابر. او عبدالله بن عمرو رضي الله عنهم نه هم احادیث وارد دي او دا حدیث مانه صرف

---

[1] ـ سنن ابن ماجه/الفتن ١٥ (٣٩٨٨) (تحفة الأشراف: ٩٥١٠) . ومسند احمد (١/٣٩٨) . وسنن الدارمي/الرقاق ٤٢ (٢٧٩٧)

دحفص بن عياث په روايت چې داعمش په واسطه يې نقل كوي رارسيدلې دي او دابو الاحوص نوم عوف بن مالك بن فضله جشمي دي، او ابوحفص ددي حديث په نقل كولو كي منفرد دي

****************

٢٦٣٠ـ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، أَخْبَرَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ أَبِي أُوَيْسٍ، حَدَّثَنِي كَثِيرُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ عَوْفِ بْنِ زَيْدِ بْنِ مِلْحَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " إِنَّ الدِّينَ لَيَأْرِزُ إِلَى الحِجَازِ كَمَا تَأْرِزُ الحَيَّةُ إِلَى جُحْرِهَا، وَلَيَعْقِلَنَّ الدِّينُ مِنَ الحِجَازِ مَعْقِلَ الأُرْوِيَّةِ مِنْ رَأْسِ الجَبَلِ، إِنَّ الدِّينَ بَدَأَ غَرِيبًا وَيَرْجِعُ غَرِيبًا، فَطُوبَى لِلْغُرَبَاءِ الَّذِينَ يُصْلِحُونَ مَا أَفْسَدَ النَّاسُ مِنْ بَعْدِي مِنْ سُنَّتِي ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه** دعمرو بن عوف رضي الله عنه نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي يو داسي وخت به راشي چې اسلام دين به حجاز ته ورتېول شي لکه مار چې خپلې سوړې ته تـوتلو وخت كي ورتېوليږي او يقينا دين به حجاز ته په راتلو سره داسي محفوظ شي لكه څرنګه چې دغرد چيلۍ دمحفوظ كيدو دپاره دغرونو ډيركو ته ورخيژي او دين په اجنبي حالت كي راغلي وو او په همدي اجنبي حالت كي به واپس كيږي مګر زيري او مباركي ده دداسي ګمنام مصلحينو دپاره څوك چې به زما نه پس زما په سنتو كي دخلقو پيداكړو نقصاناتو اصلاح كوي

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي.

****************

## ١٤ـ باب مَا جَاءَ فِي عَلاَمَةِ الْمُنَافِقِ

### دمنافق دعلاماتو بيان

٢٦٣١ـ حَدَّثَنَا أَبُو حَفْصٍ عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ قَيْسٍ، عَنِ العَلاَءِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " آيَةُ الْمُنَافِقِ ثَلاَثٌ: إِذَا حَدَّثَ كَذَبَ، وَإِذَا وَعَدَ أَخْلَفَ، وَإِذَا اؤْتُمِنَ خَانَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ حَدِيثِ العَلاَءِ، وَقَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٠٧٧٨)

**وفي الباب عن ابْنِ مَسْعُودٍ، وَأَنَسٍ، وَجَابِرٍ.**[1]

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دمنافق دري نښي دي اول چې خبره کوي دروغ وائي دويم دا چې وعده وکړي خلاف يې کوي دريم داچې امانت ورسره کيخودی شي خيانت پکې کوي.

امام ترمذي وايي داحديث حسن غريب دي دعلاء په روايت او دابوهريره په واسطه دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه ددي سند نه علاوه په نورو سندونو هم مروي دي او په دي باب کې دابن مسعود او انس او جابر رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

**لغات** کذب کذبا دضرب نه د ضرب نه په معني ددروغ وئيلو او په قصد سره دروغ خبر ورکول.

خَلَف او خلف خلفا دسمع نه معني وعده نه پوره کول .

خان: خان خَونا وخيانة دنصر نه په معني خيانت کولو په امانت کي

**تشريح**: په يو روايت کې دا توړه ورسره ده «داسي سړی منافق دی» اګر چې روژه نيسي او مونځ کوي او خان مسلمان ګڼي.

منافق هغه چاته وئيلي شي څوك چې په ژبه داسلام اظهار کوي ليکن په زړه کې يي کفر پټ پروت وي ، نفاق په ګناه کې دکفر نه سخت دي، همدا وجه چې الله په قران کې ددوئ دپاره سخته سزا بيان کړي ده.

ان المنافقين في الدرك الاسفل من النار، دلته دعهد نبوي منافقين مراد دي چې رسول الله ته يي دوحي په ذريعه خبر ورکړي شوي وو.

په دي خبره دعلماؤ اتفاق دي چې اعتقادي نفاق درسول الله په دور کې ختم شوي دي ليکن عملي نفاق په مسلمانانو کې اوس هم موندلي شي داد کفر نه په درجه کې کم دي، ليکن خان ورنه ساتل ضروري دي.

سوال په پورتني حديث کې دمنافقانو دري عادات بيان شوي دي اوپه بعضو کي څلور دي لکه اربع من کن فيه

جواب دري او څلور کيدل قيد اتفاقي دي ، دبعضو قول دي اول رسول الله دري بيان کړي وو بيا يي څلور بيان کړل

* * * * * * * * * * * * * *

[1] ـ اورده البخاري في الصحيح /الإيمان ٢٤ (٣٣) . والشهادات ٢٨ (٢٦٨٢) . والوصايا ٨ (٢٧٤٩) . والأدب ٦٩ (٦٠٩٥) صحيح مسلم/الإيمان ٢٥ (٥٩) . سنن النسائي/الإيمان ٢٠ (٥٠٢٤) (تحفة الأشراف: ١٣٠٩٦) . و مسند احمد (٢/٣٥٧)

حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيل بْنُ جَعْفَرٍ، عَنْ أَبِي سُهَيْلِ بْنِ مَالِكٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ بِمَعْنَاهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ، وَأَبُو سُهَيْلٍ هُوَ عَمُّ مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ وَاسْمُهُ: نَافِعُ بْنُ مَالِكِ بْنِ أَبِي عَامِرٍ الْأَصْبَحِيُّ الْخَوْلَانِيُّ. (1)

**ترجمه** سهل بن مالك دخپل پلار په روايت دابوهريره په واسطه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه ددي هم معني روايت نقل كړي دي

امام ترمذي وايي داحديث صحيح دي او ابو سهيل دمالك بن انس تره دي او دده نوم نافع بن مالك بن ابي عامر الاصبحي الخولاني دي

***************

۲٦٣٢ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُوسَى، عَنْ سُفْيَانَ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُرَّةَ، عَنْ مَسْرُوقٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " أَرْبَعٌ مَنْ كُنَّ فِيهِ كَانَ مُنَافِقًا، وَإِنْ كَانَتْ خَصْلَةٌ مِنْهُنَّ فِيهِ كَانَتْ فِيهِ خَصْلَةٌ مِنَ النِّفَاقِ حَتَّى يَدَعَهَا: مَنْ إِذَا حَدَّثَ كَذَبَ، وَإِذَا وَعَدَ أَخْلَفَ، وَإِذَا خَاصَمَ فَجَرَ، وَإِذَا عَاهَدَ غَدَرَ ". قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (2)

**ترجمه** : عبدالله ابن عمرو ابن العاص رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څلور خويونه دي دا ټول چې په چا كې وي نو پوخ منافق دی اوكه ددی خويونو نه يو پكې وي نو دنفاق يوه ننبه ده تردی چې لري يې كړي، يو هغه كس دي چې كله خبره كوي نو دروغ وائي،او كله چې وعده اوكړي نو بې لوظي كوي، كله چې يې جګړه وي كنځلې كوي او چې معاهده وكړي نو دوكه كوي

امام ترمذي وايي. داحديث حسن صحيح دي

**لغات** منافق. نافق ينافق منافقة ونفاقا في دينه يعني په زړه كې كفر پټول او اسلام لره ښكاره كول. انفق محتاج كيدل په مجردو كې دنصر او سمع نه راځي

**تشريح** په دي حديث كې دمنافقانو يو څو علامات بيان شوي دي، منافق دباب مفاعلې نه

---

[1] ـ انظر ماقبله (تحفة الأشراف: ١٣٣٢١)

[2] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /الإيمان ٢٤ (٣٤) . والمظالم ١٧ (٢٤٥٩) . والجزية ١٧ (٣١٧٨) . صحيح مسلم/الإيمان ٢٥ (٥٨) . سنن ابي داود/ السنة ١٦ (٤٦٨٨) . سنن النسائي/الإيمان ٢٠ (٥٠٢٣) (تحفة الأشراف : ٨٩٣١) . و مسند احمد (٢/١٨٩، ١٩٨)

داسم فاعل صيغه ده معني مخالفت كونكى او په اصطلاح كې داسي كس ظاهرا مسلمان وي ليكن په باطن كې كافر وي.
سوال ددينه په مخكني روايت كې دمنافقانو دري علامات او دلته څلور بيان شوي دي.
اول جواب: د دري مطلب دا نه دى چې ددينه زياتيدى نه شي په مخكې كې دري بيان شوي دي دلته ورسره څلورم بيان شوي دي
دويم جواب رسول الله ته اول د دري باره كې علم وركړى شوى وو بيا ورته دڅلورم علم وركړى شو څومره چې به ورته معلومه وه هغه هومره به يې بيانوله.
دريم جواب دموقع او محل په مناسبت سره چې به يې څومره ضرورت محسوس كړو نو دومره به يې بيان كړل.
سوال: كه دا خصلتونه په مومن كې اوموندلى شي نو ايا دى به منافق وي ددي څلور جوابونه دي
اول دامام نووي قول دى كه دا علامات په مومن كې اوموندلى شي نو دى به دمنافق مشابه شي او په پورتني حديث كې چې راغلي دي كان منافقا خالصا ددي مطلب دادى چې كان شديد الشبه بالمنافقين.
دويم جواب: كه په مومن كې دا علامات اوموندلى شي نو دى به عملي منافق ګڼړلى شي دخطابي په قول په پورتني حديث كې نفاق في العقيده مراد دى.
دريم جواب: دمسلمانانو يرول مقصود دي چې چرته ددي علاماتو په وجه منافقان نشي
څلورم: شاه انورشاه كشميري وائي په دي حديث كې صرف علامات بيان شوي دي او دا لازمي نه دد چې چرته علامه وي هلته دي منافق هم وي لكه چې دتبي علامه چې دبدن ګرمائش دى دا ضروري نه ده چې كله بدن ګرم وي تبه دي ضرور وي ځكه چې نمر ته دكيناستو په وجه هم بدن حرارت پيدا كوي.

*****************

حَدَّثَنَا الحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الخَلَّالُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ نُمَيْرٍ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُرَّةَ بِهَذَا الإِسْنَادِ نَحْوَهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَإِنَّمَا مَعْنَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ نِفَاقُ العَمَلِ، وَإِنَّمَا كَانَ نِفَاقُ التَّكْذِيبِ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. هَكَذَا رُوِيَ

عَنِ الْحَسَنِ الْبَصْرِيِّ شَيْءٌ مِنْ هَذَا أَنَّهُ قَالَ: النِّفَاقُ نِفَاقَانِ: نِفَاقُ الْعَمَلِ، وَنِفَاقُ التَّكْذِيبِ. ([1])

**ترجمه** اعمش په مذكوره سند دعبدالله بن مره نه ددي هم معني روايت نقل كړي دي
امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي او داهل علمو په نزد ددينه مراد نفاق في العمل دي او نفاق في التكذيب درسول الله صلي الله عليه وسلم په زمانه كي وو همدارنګي دحسن بصري نه هم ددي متعلق يو روايت مروي دي چې ونيل يي نفاق په دوه قسمه دي يو نفاق في العمل دي او يو نفاق التكذيب دي

***************

٢٦٣٣_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عَامِرٍ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ طَهْمَانَ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ عَبْدِ الْأَعْلَى، عَنْ أَبِي النُّعْمَانِ، عَنْ أَبِي وَقَّاصٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا وَعَدَ الرَّجُلُ وَيَنْوِي أَنْ يَفِيَ بِهِ فَلَمْ يَفِ بِهِ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ وَلَيْسَ إِسْنَادُهُ بِالْقَوِيِّ، عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ الْأَعْلَى ثِقَةٌ، وَلَا يُعْرَفُ أَبُو النُّعْمَانِ وَلَا أَبُو وَقَّاصٍ وَهُمَا مَجْهُولَانِ. ([2])

**ترجمه** : د زيد بن ارقم رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كله چې يو سړي وعده اوكړي او اراده يي ددي دپوره كولو وي خو پوره يي نكړي شي نو داسي كس دالله تعالي په نزد ماخوذ نه دي.
امام ترمذي وايي: داحديث غريب دي او سند يي دقوت حامل نه دي او علي بن عبدالاعلي ثقه راوي دي او ابو النعمان او ابو وقاص غير مشهور او مجهول راويان دي

***************

## ١٥_باب مَا جَاءَ سِبَابُ الْمُسْلِمِ فُسُوقٌ

## مسلمان ته كنځل كول دګناه كار دي

٢٦٣٤_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بَزِيعٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْحَكِيمِ بْنُ مَنْصُورٍ الْوَاسِطِيُّ، عَنْ عَبْدِ

---

[1] _ اورده البخاري في الجامع الصحيح /الإيمان ٢٢ (٣٢) ، والمظالم ١٤ (٢٤٥٩) ، والجزية ١٧ (٣١٧٨) . صحيح مسلم /الإيمان ٢٥ (٥٨) . سنن ابي داود/ السنة ١٦ (٤٦٨٨) سنن النسائي/الإيمان ٢٠ (٥٠٢٣) (تحفة الأشراف : ٨٩٣١) . و مسند احمد (١٨٩/٢، ١٩٨)

[2] _ سنن ابي داود/ الأدب ٩٠ (٤٩٩٥) (تحفة الأشراف : ٣٦٩٣)

الْمَلِكِ بْنِ عُمَيْرٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " قِتَالُ الْمُسْلِمِ أَخَاهُ كُفْرٌ، وَسِبَابُهُ فُسُوقٌ "، وَفِي الْبَابِ عَنْ سَعْدٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُغَفَّلٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ مَسْعُودٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ. (1)

**ترجمه** دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي ديو مسلمان خپل يو مسلمان ورور سره قتل كول كفر دي او بي عزته كول يي ګناه ده

امام ترمذي وايي: په دي باب كي دسعد، عبدالله بن مغفل رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي او دابن مسعود حديث حسن صحيح دي او دا روايت دابن مسعود رضي الله عنه نه په ډيرو سندونو مروي دي.

***************

٢٦٣٥_حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ زُبَيْدٍ، عَنْ أَبِي وَائِلٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " سِبَابُ الْمُسْلِمِ فُسُوقٌ، وَقِتَالُهُ كُفْرٌ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَمَعْنَى هَذَا الْحَدِيثِ: قِتَالُهُ كُفْرٌ لَيْسَ بِهِ كُفْرًا مِثْلَ الِارْتِدَادِ وَالْحُجَّةُ فِي ذَلِكَ مَا رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ: " مَنْ قُتِلَ مُتَعَمِّدًا فَأَوْلِيَاءُ الْمَقْتُولِ بِالْخِيَارِ إِنْ شَاءُوا قَتَلُوا وَإِنْ شَاءُوا عَفَوْا ". وَلَوْ كَانَ الْقَتْلُ كُفْرًا لَوَجَبَ الْقَتْلُ وَلَمْ يَصِحَّ الْعَفْوُ، وَقَدْ رُوِيَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَطَاوُسٍ، وَعَطَاءٍ، وَغَيْرِ وَاحِدٍ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ قَالُوا: كُفْرٌ دُونَ كُفْرٍ، وَفُسُوقٌ دُونَ فُسُوقٍ. (2)

**ترجمه** ابن مسعود رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي مسلمان ته بدرد ونيل يا كنځلى كول يعني دمسلمان بى عزتي كول غټه ګناه ده اودمسلمان سره جنګ كول كفر دی.

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي او د قتاله كفر معني داده چې دمرتد كيدو پشان كافر كيدل دلته مراد نه دي او ددي دليل دنبي كريم صلي الله عليه وسلم دا حديث دي چې فرمانيل يي څوك چې قتل كري يو مومن لره قصدا نو دمقتول وارثانو ته اختيار دي چې په

1 _ انظر حديث رقم ١٩٨٣) (تحفة الأشراف: ٩٣٦٠)

2 _ انظر حديث رقم ١٩٨٣

بدل کي ده لره قتل کوي او که معافي ورته کوي نو که چري چالره قتل کول کفر وي نو په بدل کي به قتل کول واجب وو او عفوه کول به جائز نه وو همدارنګي دابن عباس او طاوس او عطاء وغيره اکثرو اهل علمو قول دي چې دا خو کفر دي ليکن دکمتر درجې او فسق دي ليکن دوړې درجې فسق دي

**لغات** سباب سبه سبا معني سخت کنځل، او په مقعد کې په نيزه وهل، الحبل معني رسئ

**تشريح**: "سباب المسلم فسوق" يعني مسلمان ته کنځل کول ګناه ده مطلب دادی چې دالله په نزد دمسلمان عظمت او حرمت دومره لوي دی چې ده ته بد رد ونيل هم ګناه ده

"قتاله کفر" يعني دمسلمان قتل کول کفر دی دلته دکفر نه مجازي معني مراد ده او په دي وجه علماء واني ددي دا مطلب نه دی که چا کوم مسلمان قتل کړو نو دی کافر شو بلکه ددي مطلب دادی چې په ګناه او حرمت کې قتل کول دکفر سره مشابه دي ددي جملې په سبب دقتل کولو ګناه واضح کول دي.

***************

## ١٦ـ باب مَا جَاءَ فِيمَنْ رَمَى أَخَاهُ بِكُفْرٍ

### خپل يو مسلمان ورور ته دکفر د نسبت کولو دمما نعت بيان

٢٦٣٦ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ يُوسُفَ الأَزْرَقُ، عَنْ هِشَامٍ الدَّسْتُوَائِيِّ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ ثَابِتِ بْنِ الضَّحَّاكِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " لَيْسَ عَلَى الْعَبْدِ نَذْرٌ فِيمَا لَا يَمْلِكُ، وَلَاعِنُ الْمُؤْمِنِ كَقَاتِلِهِ، وَمَنْ قَذَفَ مُؤْمِنًا بِكُفْرٍ فَهُوَ كَقَاتِلِهِ، وَمَنْ قَتَلَ نَفْسَهُ بِشَيْءٍ عَذَّبَهُ اللَّهُ بِمَا قَتَلَ بِهِ نَفْسَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ". وفي الباب عن أَبِي ذَرٍّ، وَابْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([1])

**ترجمه** دثابت بن ضحاك رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي لازم نه دي په يو بنده دهغه نذر پوره کول کوم چې دده په اختيار او وس کې نه وي او لعنت ونيل په مومن باندي دهغه دقتل کولو پشان دي او چاچې يو مومن ته دکفر نسبت اوکړو نو داسي ده لکه چې قتل يې کړئ او چاچې خپل نفس په يو څيز باندي قتل کړو

---

[1] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /الجنائز ٨٣ (١٣٦٣) والأدب ٤٤ (٦٠٤٧)، و٧٣ (٦١٠٥) والأيمان والنذور ٧ (٦٦٥٢)، صحيح مسلم/الأيمان ٤٧ (١١٠)، سنن ابي داود/ الأيمان ٩ (٣٢٥٧)، سنن النسائي/الأيمان ٧ (٣٨٠١، ٣٨٠٢)، و٣١ (٣٨٤٤) (تحفة الأشراف: ٢٠٦٢)، و مسند احمد (٣٣/٤، ٣٤) (وانظر ماتقدم عند المؤلف برقم ١٥٢٧)

(خودكشي يي اوكړه) نو د قيامت په ورځ به الله تعالى ده ته په همدغه څيز عذاب وركوي
امام ترمذي وايي او په دي باب كي دابوذر او ابن عمر رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي او داحديث حسن صحيح دي
***************

٢٦٣٧_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، عَنْ مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "أَيُّمَا رَجُلٍ قَالَ لِأَخِيهِ كَافِرٌ فَقَدْ بَاءَ بِهِ أَحَدُهُمَا". هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ، وَمَعْنَى قَوْلِهِ بَاءَ يَعْنِي: أَقَرَّ. [1]

**ترجمه** ابن عمر رضي الله عنهما نه مروي دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي هر چاچي خپل يو مسلمان ورور ته اووئيل اي كافره نو يقينا چي په دي دواړو كي به يو په كفر كي مبتلا كيږي.
امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح غريب دي او د "باء" معني اقرار كول دي.
***************

## ١٧_باب مَا جَاءَ فِيمَنْ يَمُوتُ وَهُوَ يَشْهَدُ أَنْ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ

### دمرګ وخت كي دلا اله الا الله ګواهي وركول

٢٦٣٨_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنِ ابْنِ عَجْلَانَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ يَحْيَى بْنِ حَبَّانَ، عَنِ ابْنِ مُحَيْرِيزٍ، عَنِ الصُّنَابِحِيِّ، عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ، أَنَّهُ قَالَ: دَخَلْتُ عَلَيْهِ وَهُوَ فِي الْمَوْتِ فَبَكَيْتُ، فَقَالَ: مَهْلًا لِمَ تَبْكِي؟ فَوَاللَّهِ لَئِنْ اسْتُشْهِدْتُ لَأَشْهَدَنَّ لَكَ، وَلَئِنْ شُفِّعْتُ لَأَشْفَعَنَّ لَكَ، وَلَئِنْ اسْتَطَعْتُ لَأَنْفَعَنَّكَ، ثُمَّ قَالَ: وَاللَّهِ مَا مِنْ حَدِيثٍ سَمِعْتُهُ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَكُمْ فِيهِ خَيْرٌ إِلَّا حَدَّثْتُكُمُوهُ، إِلَّا حَدِيثًا وَاحِدًا وَسَوْفَ أُحَدِّثُكُمُوهُ الْيَوْمَ وَقَدْ أُحِيطَ بِنَفْسِي، سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "مَنْ شَهِدَ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ حَرَّمَ اللَّهُ عَلَيْهِ النَّارَ". وفي الباب عن أَبِي بَكْرٍ، وَعُمَرَ، وَعُثْمَانَ، وَعَلِيٍّ، وَطَلْحَةَ، وَجَابِرٍ، وَابْنِ عُمَرَ، وَزَيْدِ بْنِ خَالِدٍ، قَالَ: سَمِعْتُ ابْنَ أَبِي عُمَرَ يَقُولُ: سَمِعْتُ ابْنَ عُيَيْنَةَ يَقُولُ: مُحَمَّدُ بْنُ عَجْلَانَ كَانَ ثِقَةً مَأْمُونًا فِي الْحَدِيثِ، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَالصُّنَابِحِيُّ

---

[1] _ اورده البخاري في الجامع الصحيح /الأدب ٧٣ (٦١٠٣) . صحيح مسلم/الإيمان ٢٦ (٦٠) (تحفة الأشراف : ٧٢٢٣) . والمؤطاء :الكلام ١(١) . و مسند احمد (٢/١٨، ٤٤، ٦٠)

هُوَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عُسَيْلَةَ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ. وَقَدْ رُوِيَ عَنِ الزُّهْرِيِّ أَنَّهُ سُئِلَ عَنْ قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ قَالَ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ دَخَلَ الْجَنَّةَ". فَقَالَ: إِنَّمَا كَانَ هَذَا فِي أَوَّلِ الْإِسْلَامِ قَبْلَ نُزُولِ الْفَرَائِضِ وَالْأَمْرِ وَالنَّهْيِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَوَجْهُ هَذَا الْحَدِيثِ عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ أَنَّ أَهْلَ التَّوْحِيدِ سَيَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ وَإِنْ عُذِّبُوا بِالنَّارِ بِذُنُوبِهِمْ فَإِنَّهُمْ لَا يُخَلَّدُونَ فِي النَّارِ. وَقَدْ رُوِيَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، وَأَبِي ذَرٍّ، وَعِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، وَجَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَأَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، وَأَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ: "سَيَخْرُجُ قَوْمٌ مِنَ النَّارِ مِنْ أَهْلِ التَّوْحِيدِ وَيَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ". هَكَذَا رُوِيَ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، وَإِبْرَاهِيمَ النَّخَعِيِّ، وَغَيْرِ وَاحِدٍ مِنَ التَّابِعِينَ، وَقَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي تَفْسِيرِ هَذِهِ الْآيَةِ: رُبَمَا يَوَدُّ الَّذِينَ كَفَرُوا لَوْ كَانُوا مُسْلِمِينَ (الحجر: ٢) قَالُوا: إِذَا أُخْرِجَ أَهْلُ التَّوْحِيدِ مِنَ النَّارِ، وَأُدْخِلُوا الْجَنَّةَ يَوَدُّ الَّذِينَ كَفَرُوا لَوْ كَانُوا مُسْلِمِينَ.[1]

**ترجمه** - دصنابحي نه مروي دي فرمائي چې زه عباده بن صامت رضي الله عنه ته هغه وخت کي ورغلم کله چې هغه دمرګ په حالت کي وو ما چې اوليدلو نو په ژړا شوم هغه راته اوونيل بس بس ولي ژاړي زما دي په الله قسم وي که زما نه ګواهي طلب کړي شوه نو زه به په اخرت کي ستا په ايمانداري ګواهي ورکوم او که دشفاعت موقعه راته راکړي شوه نو ستا شفاعت به ضرور کوم او که وس مي اوشو نو تاته به ضرور څه فائده رسوم او بيا يي اوونيل په الله قسم داسي هيڅ يو حديث نشته چې مادرسول الله صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي دي او په هغي کي ستاسو دپاره خيروي او ماتاسو ته بيان کړي نه وي، مګر علاوه ديو حديث نه او هغه زه نن تاسو ته بيانوم څکه چې زما مرګ رانزدي شوي دي مادرسول الله صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي وو چې فرمانيل يي - څوک چې ددی خبری ګواهي ورکړي چې دالله نه سوا هيڅوک دعبادت لائق نشته او رسول الله صلي الله عليه وسلم دالله پاك رسول دی نو الله پاك هغه باندي ددوزخ اور حراموي. ددي سند په بنياد داحديث حسن صحيح غريب دي، ما دابن ابي عمر نه اوريدلي دي چې ابن عيينه به وئيل محمد بن عجلان يو ثقه راوي دي او په حديث کي قابل داعتماد دي. او د صنابحي نه مراد عبدالرحمن بن عسيله ابوعبدالله دي، او په دي باب کي دابوبكر، عمر، عثمان علي،طلحه، جابر، ابن عمر، او زيد بن خالد رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، دزهري قول دي چې زما نه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم دفرمان "من قال لااله الا الله دخل الجنة" يعني څوک چې لااله الا الله اووائي جنت ته به داخل شي، په باره کي

---

[1] ـ صحيح مسلم/الإيمان ١٠ (٢٩) (تحفة الأشراف: ٥٠٩٩)

تپوس اوکړي شو چې ددې څه مطلب دې نو هغه اووئيل دا داسلام دابتدائي زماني خبره وه او دهغه وخت خبره وه کله چې فرائض او امر او نهي او واجبات نه وو راغلي، بعضي اهل علمو په نزد په دې حديث کې دا توجيه ده چې اهل توحيد به جنت ته داخليږي اګر که دګناهونو په وجه دوئ ته داور سزا ولي نه وي ورکړې شوي خکه چې دوئ به په جهنم کې هميشه نه پاتې کيږي، دعبدالله بن مسعود، ابوذر، عمران بن حصين، جابر بن عبدالله، ابن عباس، ابوسعيد خدري، او انس بن مالك رضي الله عنهم نه مروي دي نبي کريم صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي عنقريب به دتوحيد دقائلينو يو جماعت دجهنم نه راوخي او جنت ته به داخل شي دارنګې روايت دسعيد بن جبير، ابراهيم نخعي، او نورو ډيرو تابعينو نه هم مروي دي او هغوئ دايت کريمه "ربما يودالذين كفروا لوكانوا مسلمين" يعني کافران به دخپل خان دمسلمان کيدو متعلق ډير ارمانونه اوکړي، دا تفسير کوي چې کله اهل توحيد دجهنم نه راوويستلي شي او جنت ته داخل کړي شي نو کافران به دا ارزو اوکړي چې کاش مونږ هم مسلمانان وي

***************

٢٦٣٩_حَدَّثَنَا سُوَيْدُ بْنُ نَصْرٍ. أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ لَيْثِ بْنِ سَعْدٍ، حَدَّثَنِي عَامِرُ بْنُ يَحْيَى، عَنْ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْمَعَافِرِيِّ ثُمَّ الْحُبُلِيِّ، قَالَ: سَمِعْتُ عَبْدَ اللهِ بْنَ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ، يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ اللهَ سَيُخَلِّصُ رَجُلًا مِنْ أُمَّتِي عَلَى رُءُوسِ الْخَلَائِقِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَيَنْشُرُ عَلَيْهِ تِسْعَةً وَتِسْعِينَ سِجِلًّا كُلُّ سِجِلٍّ مِثْلُ مَدِّ الْبَصَرِ. ثُمَّ يَقُولُ: أَتُنْكِرُ مِنْ هَذَا شَيْئًا؟ أَظَلَمَكَ كَتَبَتِي الْحَافِظُونَ؟ فَيَقُولُ: لَا يَا رَبِّ. فَيَقُولُ: أَفَلَكَ عُذْرٌ؟ فَيَقُولُ: لَا يَا رَبِّ. فَيَقُولُ: بَلَى، إِنَّ لَكَ عِنْدَنَا حَسَنَةً فَإِنَّهُ لَا ظُلْمَ عَلَيْكَ الْيَوْمَ. فَتَخْرُجُ بِطَاقَةٌ فِيهَا أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ. فَيَقُولُ: احْضُرْ وَزْنَكَ. فَيَقُولُ: يَا رَبِّ مَا هَذِهِ الْبِطَاقَةُ مَعَ هَذِهِ السِّجِلَّاتِ؟ فَقَالَ: إِنَّكَ لَا تُظْلَمُ. قَالَ: فَتُوضَعُ السِّجِلَّاتُ فِي كَفَّةٍ وَالْبِطَاقَةُ فِي كَفَّةٍ. فَطَاشَتِ السِّجِلَّاتُ وَثَقُلَتِ الْبِطَاقَةُ. فَلَا يَثْقُلُ مَعَ اسْمِ اللهِ شَيْءٌ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ. حَدَّثَنَا ابْنُ لَهِيعَةَ، عَنْ عَامِرِ بْنِ يَحْيَى بِهَذَا الْإِسْنَادِ نَحْوَهُ. بِمَعْنَاهُ وَالْبِطَاقَةُ هِيَ الْقِطْعَةُ. [1]

**ترجمه**: دعبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهمابيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي الله تعالي به دقيامت په ورځ زما په امت کې يو کس راولي او دټولو خلقو په

[1] سنن ابن ماجه/الزهد ٣٥ (٣٠٠) (تحفة الأشراف: ٨٨٥٥)

مخامخ به يي اودروي او دده دګناهونو يو کم سل دفترونه به کولاو کړي او هر يو دفتر به دسترګو دښکار په اندازه وي بيابه الله تعالي تپوس اوکړي ايا ته په دي ګناهونو کي دکومي ګناه نه انکار کوي؟ او ايا په تا باندي زما محافظ کاتبانو ظلم کړي دي؟ دي به اووائي نه اي زما پروردګاره بيا به الله تعالي اوفرمائي ايا تاسره څه عذر شته؟ دي به اووائي نه اي زما پروردګاره، نو الله تعالي به اوفرمائي هيڅ خبره نشته زمونږ سره ستا يوه نيکي او نن ورځ به په تاباندي هيڅ ظلم نه کيږي او بيا به يوه وره پرچي راوويستلي شي چي په هغي به اشهدان لااله الا الله واشهدان محمدا عبده ورسوله " ليکلي شوي وي، يعني زه ګواهي ورکوم چي دالله تعالي نه علاوه بل هيڅ لائق دبندګۍ نشته او محمد (صلي الله عليه وسلم) دالله تعالي (مقرب) بنده او دهغه رسول دي، الله تعالي به اوفرمائي ورشه او داعمالو دتول وخت کي د تلي سره موجود اوسه دي به اووائي اي زما پروردګاره ددي دفترونو په وړاندي ددي پرچي به څه حيثيت وي، الله تعالي به اوفرمائي تاسره به ظلم نه کيږي، رسول الله اوفرمائيل بيا به دا تمام دفترونه دتلي په يوه کاسه کي کيخودلي شي او دا پرچه به په بله کاسه کي کيخودلي شي نو ټول دفترونه به پورته لاړ شي او پرچه به درباندي درنه شي او ربښتيا خبره داده چي دالله تعالي دنوم سره يعني دالله دنوم په مقابل کي چي کله کوم څيز تللي کيږي هغه څيز دالله په نوم درنيدلي نشي

امام ترمذي وايي: داحديث حسن غريب دي.

***************

## ١٨_باب مَا جَاءَ فِي افْتِرَاقِ هَذِهِ الأُمَّةِ

### دامت محمديه په فرقو تقسيمدلو بيان

٢٦٤٠_حَدَّثَنَا الحُسَيْنُ بْنُ حُرَيْثٍ أَبُو عَمَّارٍ، حَدَّثَنَا الفَضْلُ بْنُ مُوسَى، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " تَفَرَّقَتِ اليَهُودُ عَلَى إِحْدَى وَسَبْعِينَ أَوِ اثْنَتَيْنِ وَسَبْعِينَ فِرْقَةً وَالنَّصَارَى مِثْلَ ذَلِكَ، وَتَفْتَرِقُ أُمَّتِي عَلَى ثَلَاثٍ وَسَبْعِينَ فِرْقَةً ". وفي الباب عن سَعْدٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَعَوْفِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** ابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي يهوديان په يو اويا فرقو تقسيم شوي دي او نصاري هم داسي تقسيم شوي دي او زما امت به په

---

[1] ـ سنن ابن ماجه/الفتن ١٧ (٣٩٩١) (تحفة الأشراف: ١٥٠٨٢)

دري اويا فرقو تقسيم شي.
امام ترمذي وايي: دابوهريره دا حديث حسن صحيح دی، او په دي باب كي دسعد عبدالله بن عمرو او عوف بن مالك رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

*****************

٢٦٤١_حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ الْحَفَرِيُّ، عَنْ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ زِيَادِ بْنِ أَنْعُمَ الأَفْرِيقِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " لَيَأْتِيَنَّ عَلَى أُمَّتِي مَا أَتَى عَلَى بَنِي إِسْرَائِيلَ، حَذْوَ النَّعْلِ بِالنَّعْلِ حَتَّى إِنْ كَانَ مِنْهُمْ مَنْ أَتَى أُمَّهُ عَلَانِيَةً لَكَانَ فِي أُمَّتِي مَنْ يَصْنَعُ ذَلِكَ، وَإِنَّ بَنِي إِسْرَائِيلَ تَفَرَّقَتْ عَلَى ثِنْتَيْنِ وَسَبْعِينَ مِلَّةً، وَتَفْتَرِقُ أُمَّتِي عَلَى ثَلَاثٍ وَسَبْعِينَ مِلَّةً كُلُّهُمْ فِي النَّارِ إِلَّا مِلَّةً وَاحِدَةً، قَالُوا: وَمَنْ هِيَ يَا رَسُولَ اللَّهِ ؟ قَالَ: مَا أَنَا عَلَيْهِ وَأَصْحَابِي ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مُفَسَّرٌ، لَا نَعْرِفُهُ مِثْلَ هَذَا إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. [1]

**ترجمه** : دعبدالله بن عمرو رضي الله عنهما نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي زما په امت به بالكل هغه شان حالت راځي كوم چې په بني اسرائيلو راغلي وو (يعني په مماثلت كي به دواړه برابروي) تردي پوري كه په دوئ كي چا دخپلي مور سره ښكاره زنا كړي وي نو زما په امت كي به هم داسي كس وي چې ددي بدترين كارارتكاب به اوكړي بني اسرائيل په دوه اويا فرقو تقسيم شوي وو او زما امت به په دري اويا فرقو تقسيمېږي او ديوي فرقي نه علاوه به نوري ټولي فرقي جهنم ته داخلېږي صحابه كرامو عرض اوكړو اي دالله رسوله دا به كومه يوه فرقه وي؟ رسول الله اوفرمائيل دا به هغه ډله وي كوم چې زما او زما دصحابه كرامو په طريقه روان وي.

امام ترمذي وايي: دا حديث په كوم كي چې دابوهريره دحديث په مقابله كي زيات وضاحت دي حسن غريب دي او دامونږ ته صرف په همدي سند رارسيدلي دي.

*****************

٢٦٤٢_حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَرَفَةَ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ عَيَّاشٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي عَمْرٍو السَّيْبَانِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الدَّيْلَمِيِّ، قَالَ: سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَمْرٍو، يَقُولُ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: " إِنَّ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ خَلَقَ خَلْقَهُ فِي ظُلْمَةٍ، فَأَلْقَى عَلَيْهِمْ مِنْ نُورِهِ، فَمَنْ أَصَابَهُ مِنْ ذَلِكَ

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٨٨٦٣)

النُّورِ اهْتَدَى، وَمَنْ أَخْطَأَهُ ضَلَّ. فَلِذَلِكَ أَقُولُ: جَفَّ الْقَلَمُ عَلَى عِلْمِ اللهِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. ([1])

**ترجمه** دعبدالله بن عمرو رضي الله عنهما بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي الله تعالي خپل مخلوق په تياره كي پيدا كړو او بيا يي په دوئ باندي دخپل نور نه نور اوغورخولو پس چاته چې ددي نور نه نور ورسيدو هغه هدايت حاصل كړو او چاته چې ددي نور نه نور اونه رسيدو هغه بي لاري شو نو په همدي وجه وايم چې دالله تعالي په علم د تقدير قلم اوچ شو

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي.

****************

٢٦٤٣_حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو أَحْمَدَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مَيْمُونٍ، عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " أَتَدْرِي مَا حَقُّ اللهِ عَلَى الْعِبَادِ؟ " قُلْتُ: اللهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ. قَالَ: " فَإِنَّ حَقَّهُ عَلَيْهِمْ أَنْ يَعْبُدُوهُ وَلَا يُشْرِكُوا بِهِ شَيْئًا ". قَالَ: " أَتَدْرِي مَا حَقُّهُمْ عَلَيْهِ إِذَا فَعَلُوا ذَلِكَ؟ " قُلْتُ: اللهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ. قَالَ: " أَنْ لَا يُعَذِّبَهُمْ ". هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَقَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ. ([2])

**ترجمه** : دمعاذ بن جبل رضي الله عنه بيان دي چې څه رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل: اى معاذه! ايا تاته پته شته چې دالله تعالي حق په بندګانو څه دي ؟ ما اووئيل الله تعالي او دهغه رسول بنه پوهيږي، رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل چې دالله تعالي حق خو دبندګانو په ذمه دادى چې صرف دهغه عبادت اوكړي او هيڅوك ورسره شريك نكړي. بيا يي اوفرمائيل: ايا تاته پته شته چي دبندګانو په الله تعالي څه حقونه دي؟ ما اووئيل الله تعالي او دهغه رسول بنه پوهيږي، رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل د بندګانو حق په الله تعالي دادي چي عذاب ورته ورنكړي.

امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح دي او د معاذ بن جبل نه په ډيرو سندونو مروي دي.

**تشريح** : فان حق الله علي العباد، يعني دالله تعالي حق په بندګانو دادى چې شريك ورسره مقرر

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف) . و مسند احمد (١٧٦/٢، ١٩٧)

[2] ـ اورده البخاري في الصحيح /الجهاد ٤٦ (٢٨٥٦) . واللباس ١٠١ (٥٩٦٧) . والاستئذان ٣٠ (٦٢٦٧) . والرقاق ٣٧ (٦٥٠٠) . والتوحيد ١ (٧٣٧٣) . صحيح مسلم /الإيمان ١٠ (٣٠) . سنن ابن ماجه/الزهد ٣٥ (٤٢٩٦) (تحفة الأشراف : ١١٣٥١)

نکړي ځکه چې مشرکانو بتانو لره او نصاري عيسي عليه السلام يا دهغه مور لره دالله تعالي سره شريك کرځولي وو

فحق العباد علي الله. يعني دبندګانو حق په الله تعالي باندي ، او هغه دادی چې عذاب ورته ورنکړي.

سوال ايا په الله تعالي باندي دڅا حق واجب کيدی شي ددي سوال دري جوابونه دي اول جواب دادی چې حق دلته په معني دجدير دی يعني لائق ده چې په طور داحسان ورته عذاب ورنکړي، دويم جواب علامه قرطبي کړی دی چې الله تعالي دعمل کولو په بدله کې چې داجر وعده کړي ده دا تفضلي ده واجبي نه ده ځکه چې الله تعالي وعده خلافي نه کوي لکه چې ارشاد قراني دی، ان الله لايخلف الميعاد ، ورنه په الله خو دالله دطرفه هيڅ څيز واجب نه وي دريم جواب، علامه محي الدين وائي چې په اولني جمله حق العباد علي الله کې حق لفظ دی نو دا رنګي په طريقي دمقابلي او مشاکلي په حق العباد کې هم حق لفظ استعمال شوی دی لکه چې په ومکروا ومکرالله، وجزاء سيئة سيئة بمثلها.

****************

٢٦٤٤_حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ أَبِي ثَابِتٍ، وَعَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ رُفَيْعٍ، وَالأَعْمَشِ، كُلُّهُمْ سَمِعُوا زَيْدَ بْنَ وَهْبٍ، عَنْ أَبِي ذَرٍّ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " أَتَانِي جِبْرِيلُ فَبَشَّرَنِي فَأَخْبَرَنِي أَنَّهُ مَنْ مَاتَ لَا يُشْرِكُ بِاللَّهِ شَيْئًا دَخَلَ الْجَنَّةَ. قُلْتُ: وَإِنْ زَنَى، وَإِنْ سَرَقَ؟ قَالَ: نَعَمْ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وفِي الباب عن أَبِي الدَّرْدَاءِ. [1]

**ترجمه** ابوذر عفاري رضي الله عنه بيان کوي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي: جبريل عليه السلام ماته زيري راکړو او راته يي ووئيل چې ستاسو دامت نه څوك هم وفات شو او دالله تعالي سره يی شرك نه وي کړی هغه به جنت ته داخليږي ، ما عرض اوکړو اګر چې هغه زنا کړی وي او اګر چې غلايی کړي وي، ويی فرمائيل اګر چې غلا او زنا يی کړي وي.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي او په دي باب کي دابوالدرداء رضي الله عنه نه

---

[1] _ اورده البخاري في الجامع الصحيح /الاستقراض ٣ (٢٣٨٨) . و بدء الخلق ٦ (٣٢٢٢) . والاستئذان ٣٠ (٦٢٦٨) . والرقاق ١٣ (٦٤٤٣) . و ١٤ (٦٤٤٤) . والتوحيد ٣٣ (٧٤٨٧) . صحيح مسلم/الإيمان ٤٠ (٩٤) . والزكاة ٩ (٩٤/٣٢) (تحفة الأشراف : ١١٩١٥) . و مسند احمد (٥/١٥٩)

هم حديث وارد دي

**تشريح** من مات من امتك لايشرك الله شيئا . يعني چې ستا دامت نه څوك په داسې حال کې مړ شي چې دالله تعالي سره يې شريك نه وي مقرر كړى نو هغه به جنت ته داخليږي اګر که كبيره ګناهونه يې هم کړي وي خو الله تعالي به يې پخپل فضل سره معاف کړي او يا به دسزا تيرولو نه پس جنت ته لاړ شي او يا دا چې دمرګ نه مخکې به يې دكبيره ګناهونو نه خالص توبه كړي وي.

## دابوذر رضي الله عنه دزندګۍ حالات

نوم جندب كنيه ابو ذر دپلار نوم جناده او دمور نوم يې رمله وو چې دبني غفار قبيلې سره يې تعلق وو ، په شروع کې مشهور ډاكو وو خو يك دم يې په زندګۍ کې انقلاب راغی پخپله دابوذر رضي الله عنه بيان دى چې داسلام راوړو نه دري كاله مخکې هم ما مونځونه كول (طبقات ابن سعد).

كله چې درسول الله ددعوت نه خبر شو نو خپل ورور انيس يې دتحقيق كولو دپاره اوليږلو او پخپله دعلي رضي الله عنه سره ملاؤ شو او درسول الله په خدمت کې حاضر شو او اسلام يې قبول کړو نو رسول الله دى دده قوم ته دتبليغ دپاره اوليږلو ددينه پس به يې خپل ټول وخت په تبليغ او دعوت کې خرچ كولو تردې چې نيمه قبيله په همدې وخت مسلمانه شوه او نيمه قبيله يې دهجرت نه پس مسلمانه شوه (مسند احمد).

درسول الله دهجرت نه پس هغوئ مدينې ته هجرت كړى دى (طبقات ابن سعد).

ابوذر يوتارك الدنيا او زاهد انسان وو درسول الله او ابوبكر په زمانه کې په مدينه کې پاتې شوى دى او بيايې شام ته هجرت كړى دى.

وفات: كله چې دده طبعيت خراب شو نو ښځې يې ژړل چې په دې صحرا کې به څوك زمونږه انتظام كوي هغه ورته اووئيل زه تاسو ته زيرى دركوم چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چې په تاسو کې به يو تن په صحرا کې مري او هلته به دمسلمانانو يو جماعت راځي او هغوئ به دده تدفين كوي زما نه چې علاوه كوم خلق وو هغوئ په ابادۍ کې مړه شوي دي چنانچې همداسې اوشول عبدالله بن مسعود ديوې ډلې سره راغی او هغه عراق ته روان وو په ده باندې يې جنازه اوكړه او هم دلته يې دفن كړو (مستدرك حاكم)

مرويات: دده دروایاتو شمیر ۲۸۱دی چې دولس متفق علیه دي او ده په بخاري کي دي او اوه په مسلم کي دي (تهذیب الکمال ٤٤٩).

***************

# كتاب العلم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم

## دعلم او پوهې متعلق مسائلو او احكامو بيان

### ١_باب مَا جَاءَ إِذَا أَرَادَ اللَّهُ بِعَبْدٍ خَيْرًا فَقَّهَهُ فِي الدِّينِ

**كله چې الله تعالى يو بنده دپاره دخير اراده اوكړي هغه ته په دين كې پوهه وركړي**

٢٦٤٥_حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ. حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ جَعْفَرٍ. حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَعِيدِ بْنِ أَبِي هِنْدٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "مَنْ يُرِدِ اللَّهُ بِهِ خَيْرًا يُفَقِّهْهُ فِي الدِّينِ". وفي الباب عن عُمَرَ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَمُعَاوِيَةَ. هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (١)

**ترجمه** : دا بن عباس رضي الله نه روايت دى چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاته چې الله تعالي بهتري وركول اوغواړي ددين پوهه وركړي.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دابن عمر، ابوهريره، او معاويه رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

**لغات** . يفقهه يعني فقيه يې جوړ كړي تفقه معني علم فقه حاصلول ، الدين په معني دملت او مذهب دي او جمع يې اديان راځي.

**تشريح**: دپورتني حديث مضمون په نورو روايتونو كې هم موندلى شي مثلا په شرح السنه كي دسفيان ثوري دا قول منقول دى چې ماته دعلم زده كونكي نه افضل بل هيڅ يو شى معلوم نه دى په يو بل روايت كې راغلي دي چې كله الله تعالي په چا باندي دخير اراده اوكړي نو په هغه كې دري صفتونه پيدا كړي اول ددين علم دويم ددنيا نه بيزاري، دريم پخپلو عيبونو نظر يعني الله تعالي چې دچا سره ښيګړه كول غواړي نو هغه ته په دين كې ژور علم وركړي حديث خو يو وي مګر ددي په پوهه كې اشخاص مختلف وي بعضي خلق صرف ددي په ظاهري مطلب پوهيږي او بعضي په دي كې ژور نظر لري او په سلګونو مسائل ورنه معلوموي عرض داچې چاته په دين كې محارت حاصل وي هغه ډير خوش نصيب وي.

سوال. ددي حديث نه معلوميږي چې خير او كاميابي په فقهاؤ كې منحصر دي او حال دادى چې دخير كارونه په غير فقهاؤ كې هم موندلى شي.

جواب: په خيراً كې تنوين دتعظيم دپاره دى مطلب دادى چې الله تعالي دچا سره دډير خير معامله كول اوغواړي نو هغه لره فقيه اوګرځوي دويم جواب دادى چې په خيراً كې تنوين

---

[1] _ تفرد به المؤلف (٥٦٦٤)، وانظر مسند احمد (٣٠٦/١)

دتنكير دپاره دی او دلته كلام دتنزيل الناقص بمنزلة المعدوم دقبيلي نه دی مطلب دادی اگر چې په غير فقهاؤ كې هم خير موندلی شي ليكن دفقهاؤ په مقابله كې دومره ناقص دی لكه دمعدوم په شان

****************

## ٢_باب مَا جَاءَ فِي فَضْلِ طَلَبِ الْعِلْمِ

### دعلم دحاصلولو دفضيلت بيان

٢٦٤٦_حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ سَلَكَ طَرِيقًا يَلْتَمِسُ فِيهِ عِلْمًا سَهَّلَ اللَّهُ لَهُ طَرِيقًا إِلَى الْجَنَّةِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ.[1]

**ترجمه** : ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوك چې علم حاصلولو دپاره په يولار روان شو (چاچې علم حاصلولو دپاره سفر اوكړو) الله تعالي به ورته دجنت لار اسانه كړي

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي.

**لغات:** سلك يسلك سلكا وسلوكا معني په يوه لاره تلل.

يلتمس: معني طلب كوي، تلاش كوي، حاصلول كوي،

سهل : اسانول سهل يسهل سهولة معني نرم كيدل، اسان كيدل، سهل ، اسانول.

**تشريح**: په دي حديث كې دعلم حاصلونكي يوخاص فضيلت بيان شوی دی او هغه دادی څوك چې ددين دزده كولو دپاره خپل عزيزان او وطن او اقارب پريږدي او دعيش او ارام نه جدا شي نو دده ددي مشقت په وجه الله تعالي ده ته دجنت لار اسانوي يا دا مطلب دی چې طالب علم كله مصيبتونه او پريشاني برداشت كړي نو الله تعالي ورته په دي باندي دعمل كولو توفيق وركوي او كله چې دی پخپل علم باندي عمل كوي نو الله تعالي ورته جنت ته داخليدل اسانوي يا دا چې دعلم حاصلول هم جنت ته ددخول سبب دی څكه چې دعلم په وجه دی نيك اعمال پيژني او په حق او باطل كې تميز كولی شي او دادهدايت ذريعه ده او هدايت جنت ته ددخول سبب دی.

---

[1] _ صحيح مسلم/الذكر والدعاء ١٨ (٢٦٩٩) . سنن ابي داود/ العلم ١ (٣٦٤٣) . سنن ابن ماجه/المقدمة ١٧ (٢٢٥) . ويأتي في القراءت ١٢ (٢٩٤٥) (تحفة الأشراف :١٢٤٨٦) . و مسند احمد (٢/٢٥٢، ٣٢٥، ٤٠٧) . وسنن الدارمي/المقدمة ٣٢ (٣٥٦)

****************

٢٦٤٧_حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ. قَالَ: حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ يَزِيدَ الْعَتَكِيُّ، عَنْ أَبِي جَعْفَرٍ الرَّازِيِّ، عَنِ الرَّبِيعِ بْنِ أَنَسٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ خَرَجَ فِي طَلَبِ الْعِلْمِ فَهُوَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ حَتَّى يَرْجِعَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَرَوَاهُ بَعْضُهُمْ فَلَمْ يَرْفَعْهُ. (١)

**ترجمه** : انس رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوك چې علم دين حاصلولو پسې دكور نه اووتو هغه دالله په لار كې دی تردی چې كورته راواپس شي.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن غريب دي او بعضي راويانو غير مرفوع يعني موقوف بيان كړي دي

**لغات** : خرج: ووتلو، خرج يخرج خروجا په معني دوتلو ،طلب: معني لټول طلب يطلب طلبا دنصر نه معني غوښتل ، يرجع: رجع يرجع رجوعا ، واپس كيدل.

**تشريح**: مطلب دادی چې څوك د ارام تمام څيزونه پريږدي او دعلم زده كولودپاره ورنه خپل وطن پاتي شي نو ده ته به دمجاهد في سبيل الله ثواب ملاويږي او مجاهد هم دسر نه كفن تړلی وي او ددي جلتئ په وجه ميدان ته راغلی وي چې دالله تعالي دين غالب شي او كه نه نو زه به دخپل خان نظرانه دالله په دربار كې پيش كوم.

بعينه همدا جذبه دديني علم په حاصلونكو كې وي چې هغوئ هم ملاتړلي وي تردي چې دين زده كړي او نورو ته يي اوښايي او دشيطان دمكر او فريب نه خلق بچ كړي يا دا چې په دي حديث كې دي خبري ته هم اشاره ده چې علم زده كونكی كله كورته واپس راځي نو دی نور زيات فضيلت والاګرځي او چې كله دكور نه وتلو نو دنبوت دعلم نه بي برخي وو ليكن كله چې كورته راځي نو دنبوت علم ورسره دی او دانبياؤ وراثت تاج يي په سر پروت دی په همدي بنا دخصوصيت سره واپس شو.

****************

٢٦٤٨_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حُمَيْدٍ الرَّازِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُعَلَّى، حَدَّثَنَا زِيَادُ بْنُ خَيْثَمَةَ، عَنْ أَبِي دَاوُدَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَخْبَرَةَ، عَنْ سَخْبَرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "مَنْ طَلَبَ الْعِلْمَ

---

(١) _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ٨٣٠)

كَانَ كَفَّارَةً لِمَا مَضَى". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ ضَعِيفُ الإِسْنَادِ. أَبُو دَاوُدَ يُضَعَّفُ فِي الحَدِيثِ، وَلَا نَعْرِفُ لِعَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَخْبَرَةَ كَبِيرَ شَيْءٍ وَلَا لِأَبِيهِ. وَاسْمُ أَبِي دَاوُدَ: نُفَيْعٌ الأَعْمَى تَكَلَّمَ فِيهِ قَتَادَةُ وَغَيْرُ وَاحِدٍ مِنْ أَهْلِ العِلْمِ. ([1])

**ترجمه** . د سنجره نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوك چې علم حاصل كړي نو دا به دده دمخكنو ګناهونو كفاره وګرځي

امام ترمذي وايي: ددي حديث سند ضعيف دي ابو داود راوي دنفيع اعمي دحديث په بيانولو كې ضعيف دي او مونږ ته دعبدالله بن سنجره نه مروي زيات احاديث معلوم نه دي او نه دده دپلار نه (يعني دوی دواړه غير معروف راويان دي) دابوداود نوم نفيع الاعمي دي چې قتاده او نورو اهل علمو ورباندي كلام كړي دي.

***************

## ٣_باب مَا جَاءَ فِي كِتْمَانِ الْعِلْمِ

### دعلم په پټولو دوعيد بيان

٢٦٤٩_حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ بُدَيْلِ بْنِ قُرَيْشٍ اليَامِيُّ الكُوفِيُّ. حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ نُمَيْرٍ. عَنْ عُمَارَةَ بْنِ زَاذَانَ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ الحَكَمِ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ سُئِلَ عَنْ عِلْمٍ عَلِمَهُ ثُمَّ كَتَمَهُ أُلْجِمَ يَوْمَ القِيَامَةِ بِلِجَامٍ مِنْ نَارٍ". وفي الباب عن جَابِرٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ. ([2])

**ترجمه** : ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چانه چې ديو ديني مسئلی تپوس اوشو اوهغه مسئله پټه كړه ورته يی ونه ښودله دقيامت په ورځ به ورته په خوله كې داور واګی واچولی شي.

امام ترمذي وايي دابوهريره حديث حسن دي او په دي باب كي دجابر او عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي

**لغات** فكتمه. كتم معني پټول كتم يكتم كتما پټول، الجم لجم يلجم لجما ، واګي اچول.

**تشريح**: ددي حديث نه ظاهرا معلوميږي چې كله څوك سوال اوكړي نو فورا جواب وركول

---

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ٣٨١٣)

[2] _ ابي داود/ العلم ٩ (٣٦٥٨) . سنن ابن ماجه/المقدمة ٢٤ (٢٦١) (تحفة الأشراف : ١٤١٩٦)

پکار دي شاه ولي الله سيب ليکلي دي دسائل دسوال په جواب کې دومره تاخير کول چې يو خل هغه خپله خبره پوره کړي دا په کتمان علم کې داخل نه دي او کتمان علم په گناهونو کې يوه گناه ده ليکن دکتمان علم دوعيد دمستحق کيدو دپاره علماؤ يو څو شرائط بيان کړي دي که په دوئ کې هر يو شرط مفقود شي نو دکتمان علم گناه به واقع شي او هغه دادي.
اول: چې دچا پخپله په مسئله کې تردد وي او ددي تردد په وجه يي پټه کړي نو دی به گنهگار نه وي
دويم چې سائل صادق نه وي او کوم بل مقصد لري نو بيا ورته په جواب نه ورکولو کې گناه نشته.
دريم: چې سوال کونکی په دي مسئلي دپوهيدو صلاحيت هم اولري.
څلورم: دا چې هلته بل څوك جواب ورکونکی نه وي او که هلته کوم بل څوك هم وي نو بيا به جواب نه ورکونکی دکتمان علم په وعيد کې داخل نه وي(روضة).

***************

## ٤_باب مَا جَاءَ فِي الِاسْتِيصَاءِ بِمَنْ يَطْلُبُ الْعِلْمَ

### دعلم حاصلونکو سره دخير خواهئ کولو بيان

٢٦٥٠_حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ وَكِيعٍ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ الحَفَرِيُّ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ أَبِي هَارُونَ الْعَبْدِيِّ، قَالَ: كُنَّا نَأْتِي أَبَا سَعِيدٍ فَيَقُولُ: مَرْحَبًا بِوَصِيَّةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " إِنَّ النَّاسَ لَكُمْ تَبَعٌ وَإِنَّ رِجَالًا يَأْتُونَكُمْ مِنْ أَقْطَارِ الْأَرَضِينَ يَتَفَقَّهُونَ فِي الدِّينِ فَإِذَا أَتَوْكُمْ فَاسْتَوْصُوا بِهِمْ خَيْرًا ". قَالَ أَبُو عِيسَى: قَالَ عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ: قَالَ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ: كَانَ شُعْبَةُ يُضَعِّفُ أَبَا هَارُونَ الْعَبْدِيَّ، قَالَ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ: مَا زَالَ ابْنُ عَوْنٍ يَرْوِي، عَنْ أَبِي هَارُونَ الْعَبْدِيِّ حَتَّى مَاتَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَأَبُو هَارُونَ اسْمُهُ: عُمَارَةُ بْنُ جُوَيْنٍ. ([1])

**ترجمه** دابوهارون بيان دي فرمائي چې مونږ به ابوسعيد خدري رضي الله عنه ته دعلم حاصلولو دپاره ورتلو نو هغه به وئيل درسول الله صلي الله عليه وسلم دوصيت مطابق زه تاسو ته پخير راغلي وايم، رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي خلق په تاسو پسي اقتداء کونکي دي او څه کسان به تاسو ته د زمکي دلري حصو نه دعلم حاصلولو دپاره راځي کله چې هغوئ تاسو ته راشي نو تاسوورسره احسانات او ښيگړي اوکړئ.

[1] _ سنن ابن ماجه/المقدمة ٢٢ (٢٤٩) (تحفة الأشراف: ٤٢٦٣)

امام ترمذي وايي دعلي بن عبدالله المديني قول دي يحي بن سعيد به ونيل چې شعبه دابوهارون تضعيف کړي دي . يحي بن سعيد وائي ابن عون چې څو پوري ژوندي وو دابوهارون نه به يي روايتونه نقل کول، او دابوهارون نوم عماره بن جوين وو

***************

٢٦٥١_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا نُوحُ بْنُ قَيْسٍ، عَنْ أَبِي هَارُونَ الْعَبْدِيِّ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " يَأْتِيكُمْ رِجَالٌ مِنْ قِبَلِ الْمَشْرِقِ يَتَعَلَّمُونَ. فَإِذَا جَاءُوكُمْ فَاسْتَوْصُوا بِهِمْ خَيْرًا ". قَالَ: فَكَانَ أَبُو سَعِيدٍ إِذَا رَآنَا قَالَ: مَرْحَبًا بِوَصِيَّةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ أَبِي هَارُونَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ. (١)

**ترجمه** . دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه مروي دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دمشرق دطرف نه به څه کسان تاسو ته دعلم حاصلولو دپاره راځي کله چې هغوی تاسو ته راشي نو تاسو ورسره نيك ښه سلوك اوکړئ، راوي وائي دابوسعيد خدري رضي الله عنه حال دا وو چې کله به يي مونږ ته کتل نو درسول الله صلي الله عليه وسلم د وصيت مطابق به يي مونږ ته پخير راغلي ونيلو

امام ترمذي وايي: داحديث مونږ ته صرف دابوهارون په سند معلوم دي چې دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه يي نقل کړي دي

***************

## ٥_ باب مَا جَاءَ فِي ذَهَابِ الْعِلْمِ

### دعلم دختميدو بيان

٢٦٥٢_حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ إِسْحَاقَ الْهَمْدَانِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدَةُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِنَّ اللَّهَ لَا يَقْبِضُ الْعِلْمَ انْتِزَاعًا يَنْتَزِعُهُ مِنَ النَّاسِ، وَلَكِنْ يَقْبِضُ الْعِلْمَ بِقَبْضِ الْعُلَمَاءِ، حَتَّى إِذَا لَمْ يَتْرُكْ عَالِمًا اتَّخَذَ النَّاسُ رُءُوسًا جُهَّالًا، فَسُئِلُوا فَأَفْتَوْا بِغَيْرِ عِلْمٍ فَضَلُّوا وَأَضَلُّوا ". وَفِي الْبَابِ عَنْ عَائِشَةَ، وَزِيَادِ بْنِ لَبِيدٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَقَدْ رَوَى هَذَا الْحَدِيثَ الزُّهْرِيُّ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَعَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَ

---

[1] ـ سنن ابن ماجه/المقدمة ٢٢ (٢٤٩) (تحفة الأشراف: ٤٢٦٢)

هَذَا.(¹)

**ترجمه** دعبدالله بن عمرو رضي الله عنهما بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي الله تعالي علم لره داسي نه پورته كوي چې دخلقو دسينو نه يي راوكاږي ليكن الله تعالي علم لره دعلماؤ دوفات كولو په ذريعه پورته كوي ترديپوري چې الله تعالي به هيڅ يو عالم لره باقي پري نږدي نو خلق به جاهلان خپل مشران مقرر كړي او دهغوئ نه به دعلم دمسائلوتپوس كوي او هغوئ به ورته دعلم نه بغير فتوي وركوي نو هغوئ به پخپله هم گمراه شي او نورو لره به هم گمراه كړي.

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي، داحديث زهري دعروه نه او عروه دعبدالله بن عمرو نه نقل كړي دي او زهري په يو بل سند دعروه نه او عروه دعائشه رضي الله عنها په واسطه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه ددي په مثل نقل كړي دي ، او په دي باب كي دعائشه او زياد بن لبيد رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي.

**لغات** : انتزاعا: ويستل، نزع دضرب نه نزوعا او نزع دفتح نه نزاعا او نزوعا په معني دمشتاق كيدو دي.

**تشريح** : ددي پشان دعمر رضي الله عنه نه هم روايت دی چې علم به داسي نه قبض كيږي چې دسينو نه وخي بلكه په دي شان سره به وي چې علماء به ختم شي.

دعبدالله بن ثابت رضي الله عنه بيان دی چې عالمان به مري او ددوئ په مرگ به دحق نشانات ختميږي نو ددي په سبب به گمراهي مكمل شي.

دابن مسعود رضي الله عنه بيان دی چې په دي شان سره دعلم دقبض كيدو نه مخكي دا زده كړئ چې دعلم قبض كيدل داهل علمو ختميدل دي، داسي به ولي كيږي؟ ددي يوه وجه خو داده چې دعلماؤ په زړونو كي به ددنيا لالچ پيدا شي او ددوئ سره به دعلم قدر نه وي نو چې داسي وي نو نورو ته به څه فائده ورسيږي دويمه وجه داده چې په عمومي طور سره دعلم او اهل علمو قدر به ختم شي دريمه وجه داده چې په پورتني حديث كي ورته اشاره شوي ده چې اهل حق علماء به ختم شي او دنياپرست خلق به ددوئ جانشين شي پخپله به هم گمراه وي او خلق به هم گمراه كوي.

***************

٢٦٥٣ـ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنِي مُعَاوِيَةُ بْنُ صَالِحٍ،

¹ ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح/العلم ٣٤ (١٠٠) . والإعتصام ٨ (٧٣٠٧) . صحيح مسلم/العلم ٥ (٢٦٧٣) . سنن ابن ماجه/المقدمة ٨ (٥٢) (تحفة الأشراف: ٨٨٨٣) . ومسند احمد (١٦٢/٢، ١٩٠) . وسنن الدارمي/المقدمة ٢٦ (٢٤٥)

عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ جُبَيْرِ بْنِ نُفَيْرٍ، عَنْ أَبِيهِ جُبَيْرِ بْنِ نُفَيْرٍ، عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ، قَالَ: كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَشَخَصَ بِبَصَرِهِ إِلَى السَّمَاءِ ثُمَّ قَالَ: "هَذَا أَوَانُ يُخْتَلَسُ العِلْمُ مِنَ النَّاسِ حَتَّى لَا يَقْدِرُوا مِنْهُ عَلَى شَيْءٍ". فَقَالَ زِيَادُ بْنُ لَبِيدٍ الأَنْصَارِيُّ: كَيْفَ يُخْتَلَسُ مِنَّا وَقَدْ قَرَأْنَا القُرْآنَ؟ فَوَاللَّهِ لَنَقْرَأَنَّهُ، وَلَنُقْرِئَنَّهُ نِسَاءَنَا، وَأَبْنَاءَنَا. فَقَالَ: "ثَكِلَتْكَ أُمُّكَ يَا زِيَادُ إِنْ كُنْتُ لَأَعُدُّكَ مِنْ فُقَهَاءِ أَهْلِ المَدِينَةِ، هَذِهِ التَّوْرَاةُ وَالإِنْجِيلُ عِنْدَ اليَهُودِ، وَالنَّصَارَى فَمَاذَا تُغْنِي عَنْهُمْ". قَالَ جُبَيْرٌ: فَلَقِيتُ عُبَادَةَ بْنَ الصَّامِتِ، قُلْتُ: أَلَا تَسْمَعُ إِلَى مَا يَقُولُ أَخُوكَ أَبُو الدَّرْدَاءِ؟ فَأَخْبَرْتُهُ بِالَّذِي قَالَ أَبُو الدَّرْدَاءِ، قَالَ: "صَدَقَ أَبُو الدَّرْدَاءِ إِنْ شِئْتَ لَأُحَدِّثَنَّكَ بِأَوَّلِ عِلْمٍ يُرْفَعُ مِنَ النَّاسِ الخُشُوعُ يُوشِكُ أَنْ تَدْخُلَ مَسْجِدَ جَمَاعَةٍ فَلَا تَرَى فِيهِ رَجُلًا خَاشِعًا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَمُعَاوِيَةُ بْنُ صَالِحٍ ثِقَةٌ عِنْدَ أَهْلِ الحَدِيثِ، وَلَا نَعْلَمُ أَحَدًا تَكَلَّمَ فِيهِ غَيْرَ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ القَطَّانِ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ صَالِحٍ نَحْوُ هَذَا، وَرَوَى بَعْضُهُمْ هَذَا الحَدِيثَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ جُبَيْرِ بْنِ نُفَيْرٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. [1]

**ترجمه**. دابوالدرداء رضي الله عنه بیان دي فرمائي چې مونږ درسول الله صلي الله علیه وسلم سره موجود وو چې ناڅاپه یې اسمان ته اوکتل او بیا یې اوفرمائیل داسې وخت به راشي چې دخلقو دسینو نه به علم اوتختولي شي تردې پورې چې خلقو سره به هیڅ قسم علم باقي پاتې نشي زیاد بن لبید انصاري اوونیل اې دالله رسوله علم به زمونږ نه څنګه تختولي کیږي او حال دادې چې مونږ به قران لولو په الله قسم مونږ به قران ضرور لولو او ضرور به یې خپلو ښځو ته بیانوواو خپلو بچو ته به یې زده کوو رسول الله صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل اې زیاد دخپلې مور نه ورك شې زه خو تا دمدینې په فقهاؤ کې شمیرم، تورات او انجیل خو موجود دي مګر دیهود او نصارې څه پکار راغلل (یعني دوئ ته تورات او انجیل څه فائده اورسوله) جبیر راوي وائي کله چې دعباده بن صامت سره زما ملاقات اوشو نو ما ورته اوونیل ایا اوریدل نه غواړې چې ستا ورور ابوالدرداء څه ونیل؟ او بیا چې ابوالدرداء څه ونیلي وو ما ورته بیان کړل هغه اوونیل ابوالدرداء رښتیا ونیلي دي او که چرې ته مزید پوهیدل غواړې نو زه یې درته خودلې شم چې په اول اول کې دخلقو نه دعلم پورته کیدل خشوع ختمیدل دي او ډیره نزدې ده چې داسې وخت به راشي چې تاسو به جامع مسجد ته داخل شئ لیکن هلته به تاسو ته په حقیقي معنو خشوع او خضوع والا هیڅوك نه ښکاري.

---
[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٠٩٢٨)

امام ترمذي وايي. داحديث حسن غريب دي، معاويه بن صالح محدثينو په نزد ثقه دي او ديحي بن سعيد القطان نه علاوه مونږ ته بل څوك نه دي معلوم چې په ده باندي يې كلام كړي وي. دمعاويه بن صالح نه هم ددي په مثل حديث مروي دي بعضي راويانو دا حديث دعبدالرحمن بن زبير بن نكير نه او عبدالرحمن دخپل پلار جبير نه او جبير دعوف بن مالك په واسطه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه نقل كړي دي

*****************

## ٦_باب مَا جَاءَ فِيمَنْ يَطْلُبُ بِعِلْمِهِ الدُّنْيَا

## په ديني علم ددنيا حاصلولو دمذمت بيان

٢٦٥٤_حَدَّثَنَا أَبُو الأَشْعَثِ أَحْمَدُ بْنُ الْمِقْدَامِ الْعِجْلِيُّ الْبَصْرِيُّ. حَدَّثَنَا أُمَيَّةُ بْنُ خَالِدٍ. حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ يَحْيَى بْنِ طَلْحَةَ. حَدَّثَنِي ابْنُ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ. عَنْ أَبِيهِ. قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "مَنْ طَلَبَ الْعِلْمَ لِيُجَارِيَ بِهِ الْعُلَمَاءَ. أَوْ لِيُمَارِيَ بِهِ السُّفَهَاءَ. أَوْ يَصْرِفَ بِهِ وُجُوهَ النَّاسِ إِلَيْهِ أَدْخَلَهُ اللَّهُ النَّارَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. وَإِسْحَاقُ بْنُ يَحْيَى بْنِ طَلْحَةَ لَيْسَ بِذَاكَ الْقَوِيِّ عِنْدَهُمْ. تُكُلِّمَ فِيهِ مِنْ قِبَلِ حِفْظِهِ.[1]

**ترجمه** دكعب بن مالك رضي الله عنه بيان دي فرمائي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم نه مي اوريدلي دي څوك چې دي دپاره علم زده كوي چې ددي په ذريعه دعلماؤ سره خان برابر كړي او دبي عقلو او جاهلانو سره پري بحث او تكرار اوكړي او يا دعلم په ذريعه دخلقو توجه خان ته راوګرځوي داسي كس به الله جهنم ته داخل كړي

امام ترمذي وايي. داحديث غريب دي مونږ يې صرف په همدي سند پيژنو، اسحاق بن يحي بن طلحه دمحدثينو په نزد قوي نه دي دحافظي په اعتبار درباندي كلام شوي دي

*****************

٢٦٥٥_حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ نَصْرِ بْنِ عَلِيٍّ. حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبَّادٍ الْهُنَائِيُّ. حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الْمُبَارَكِ. عَنْ أَيُّوبَ السَّخْتِيَانِيِّ. عَنْ خَالِدِ بْنِ دُرَيْكٍ. عَنِ ابْنِ عُمَرَ. عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "مَنْ تَعَلَّمَ عِلْمًا لِغَيْرِ اللَّهِ أَوْ أَرَادَ بِهِ غَيْرَ اللَّهِ فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ". وفي الباب عن جابر. قَالَ أَبُو

---

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١١١٣٠)

عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. لَا نَعْرِفُهُ مِنْ حَدِيثِ أَيُّوبَ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. (١)

**ترجمه** دعبدالله بن عمررضي الله عنهما نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچې دالله تعالي درضا نه بغير په بله اراده علم حاصل کړو نو داسې کس دي په جهنم کي دخان دپاره خاي جوړ کړي

امام ترمذي وايي. دا حديث حسن غريب دي او مونږ يي صرف دايوب په روايت پيژنو. او په دي باب کي دجابر رضي الله عنه نه هم حديث وارد دي

**تشريح**: علم ددنيا ګټلو ذريعه جوړولو دممانعت او وعيداتو باره کي احاديث په کثرت سره وارد دي. مثلا ابوداود د ابوهريره رضي الله عنه نه روايت کوي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچې په دي غرض داسې علم حاصل کړو کوم باندي چي دالله تعالي رضاحاصليدی شي (يعني علم دين) چې ددنيا څه فائده تری واخلي، دقيامت په ورځ به دجنت بوئ هم نه مومي.

ددي حديث مضمون په ډيرو روايتونو راغلی دی علامه عبدالبر واقعه نقل کړي ده چې څه عراقيان کسان دابوذرغفاري رضي الله عنه په خدمت کې حاضر شول او داحاديث اوريدو درخواست يي اوکړو ابوذر غفاري اوونيل ايا تاسو ته معلومه ده چې دا احاديث صرف دالله درضا دپاره حاصلولی شي ورنه که څوك په دي باندي دنيا ګټل اوغواړي هيڅ کله به جنت ته داخل نشي او نه به دجنت خوشبو اوګوري.

علماء وائي چې دا وعيد صرف ددينې علم حاصلولو په باره کې دی مګر که څوك په دنياوي علم سره دنيا حاصله کړي په دي کې څه قباحت نشته

لم يجد عرف الجنة: دا کنايه ده ددي خبري نه چې داسې کس به جنت ته داخل نشي ليکن ددي حديث نه دداسې کس په باره کې دا معلومول چې هيڅ کله به ورته مغفرت اونه شي صحيح خبره نه ده حافظ توربشتي وائي چې دا استدلال دنصوصو نه خلاف دی خکه چې دنصوصو نه داهل ايمان ناجي کيدل معلوميږي. دا يوه جدا خبره ده چې داسې کسان به دسزا څکلو نه پس جنت ته داخليږي

لم يجد عرف الجنة، ددي جملې مطلب دادی چې دی به په شروع کې محروم کړی شي او دروسته به ورته ورکړی شي يادا مطلب دی چې دخول جنت به يي نصيب شي خو خوشبو به ورته نه ملاويږي اولنی قول زيات راجح دی په دي حديث کې دي خبري ته اشاره ده چې ددي علم حاصلول دجنت دخوشبو دحاصلولو او دپريشانئ دختمولو سبب دی او په دي کې يوه بله

---

(١) سنن ابن ماجه/المقدمة ٢٣ (٢٥٨) (تحفة الأشراف : ٦٧١٢)

اشاره هم ده چې څوك خالص دالله تعالي درضا دپاره علم حاصل کړي او بيا ورته دنيا هم راشي نو په دي کې څه حرج نشته

*****************

## ٧_باب مَا جَاءَ فِي الْحَثِّ عَلَى تَبْلِيغِ السَّمَاعِ

### نوروته ددين داحکامو رسولو متعلق ترغيب

٢٦٥٦_حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ، أَخْبَرَنَا عُمَرُ بْنُ سُلَيْمَانَ مِنْ وَلَدِ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ، قَالَ: سَمِعْتُ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ أَبَانَ بْنِ عُثْمَانَ يُحَدِّثُ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: خَرَجَ زَيْدُ بْنُ ثَابِتٍ مِنْ عِنْدِ مَرْوَانَ نِصْفَ النَّهَارِ، قُلْنَا: مَا بَعَثَ إِلَيْهِ فِي هَذِهِ السَّاعَةِ إِلَّا لِشَيْءٍ سَأَلَهُ عَنْهُ؟ فَسَأَلْنَاهُ، فَقَالَ: نَعَمْ سَأَلَنَا عَنْ أَشْيَاءَ سَمِعْنَاهَا مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: " نَضَّرَ اللَّهُ امْرَأً سَمِعَ مِنَّا حَدِيثًا فَحَفِظَهُ حَتَّى يُبَلِّغَهُ غَيْرَهُ، فَرُبَّ حَامِلِ فِقْهٍ إِلَى مَنْ هُوَ أَفْقَهُ مِنْهُ، وَرُبَّ حَامِلِ فِقْهٍ لَيْسَ بِفَقِيهٍ "، وفِي الباب عن عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، وَمُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ، وَجُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ، وَأَبِي الدَّرْدَاءِ، وَأَنَسٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ. [1]

**ترجمه** د ابان بن عثمان رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چې د غرمي وخت کي زيد بن بن ثابت ﷺ د مروان د خوا نه روان شو، مونږ اوونيل شايد چې مروان به ورنه دڅه څيز باره کي تپوس کولو نو خکه به يي ليږلي وي بيا ورنه مونږ تپوس اوکړو نو هغه اوونيل هو هغه زما نه ديو څو خبرو تپوس اوکړو مونږ درسول الله صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي دي چې الله تعالي دي هغه کس تر او تازه اوساتي چاچې زمونږ نه حديث واوريدو او ياد يې کړو تردي چې دايې نورو ته هم ورسوو خکه چې ډير خلق داسي دي چې ددين خبره دخپل خان نه پوهوخلقوته هم رسوي څوك چې پخپله فقهاء نه دي امام ترمذي وايي: داحديث حسن دي نو په دي باب کي دعبدالله بن مسعود، معاذ بن جبل، جبير بن مطعم، ابو الدرداء او انس رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي

*****************

٢٦٥٧_حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، أَنْبَأَنَا شُعْبَةُ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، قَالَ:

---

[1] _ سنن ابي داود/ العلم ١٠ (٣٦٦٠) . سنن ابن ماجه/المقدمة: ١٨ (٢٣٠) (تحفة الأشراف : ٣٦٩٤) . و مسند احمد (٤/٢٢٥/١) . و (٥/١٨٣) . وسنن الدارمي/المقدمة ٢٤ (٢٣٥)

سَمِعْتُ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ يُحَدِّثُ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: " نَضَّرَ اللَّهُ امْرَأً سَمِعَ مِنَّا شَيْئًا فَبَلَّغَهُ كَمَا سَمِعَ فَرُبَّ مُبَلَّغٍ أَوْعَى مِنْ سَامِعٍ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَقَدْ رَوَاهُ عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ عُمَيْرٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ. ([1])

**ترجمه** : ابن مسعودرضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي هغه بنده دي الله تعالي تروتازه کړي چې ځما نه څه خبره واوري او نورو ته يي ورسوي، څنګه چې يی اوريدلي وي کيدی شي چې چاته خبره اورسولی شي هغه داوريدونکي نه زيات حفاظت اوکړي

امام ترمذي وايي: دا حديث حسن صحيح دي او دا حديث عبدالملك بن عمير دعبدالله بن عبدالرحمن په واسطه بيان کړي دي.

**لغات** : نضر د نصر او سمع او کرم نه معني سر سبز اوشاداب او ترو تازه کيدل ، فبلغه: بلغ يبلغ بلوغا معني رسيدل، اوعي يادول دضرب نه مستعمل دي.

**تشريح**: په دي حديث کې دنبي کريم صلي الله عليه وسلم احاديثو لره ديادولو نه پس خلقو ته دبيانولو ترغيب دی.

"نضر الله" دماضي صيغه ده په دي کې دوه احتمالونه دي اول احتمال دادی چې ماضي پخپله معني ده يعني اخبار دی نو دحديث اوريدو نه پس بل چاته درسولو دپاره په دي کې دتراوتازه کيدو خبر ورکولی شي دا خبره اګر چې دمستقبل سره تعلق لري مګر ديقيني کيدو په وجه ورنه په ماضي سره تعبير شوی دی دويمه داده چې ماضي دلته په معني ددعا ده يعني نبي کريم صلي الله عليه وسلم دداسي کس دپاره دعا کوي.

اهل الحديث طويلة اعمارهم      ووجوههم بدعاء النبي منضرة

"اوعي" داداسم تفضيل صيغه ده په معني دمحفوظ کولو علماء وائي دلته دوه صورتونه کيدی شي يو زيات حفاظت کونکی کيدل او دويم زيات پوهه کيدل په دي بنا چې کله بل چاته خبره رسولی شي نو ممکن ده چې په دوئ کې دا دويم زيات پوهه وي يايوشان وي خو په هر حال کې تبليغ دفائدي نه خالي نه دی او په عدم تبليغ سره علم محدود پاتي کيږي بل چاته درسولو په صورت کې سمج داران ورنه استفاده کولی شي او دعلم دمحدود پاتي کيدو په ځاي وسعت اختياروي.

[1] ـ سنن ابن ماجه/المقدمة ١٨(٢٣٢) (تحفة الأشراف:٩٣٦١)

په نورو الفاظو حاملين حديث يعني دحديث يادونكي او راتلونكو نسلونو ته رسونكي ددين ډير لوي خدمت كوي چې په پورتني حديث كې ورته دعا شوي ده مګر فقهاء صرف د الفاظو په يادولو اكتفاء نه كوي بلكه دنبوت دعلومو په سمندر كې غوپه كيږي اود تل نه يې قيمتي جواهر را اوباسي او امت ته يې پيش كوي

دپورتني حديث نه دا هم معلومه شوه چې كه څوك دحديث الفاظ ياد كړي دهغه دپاره ضروري نده چې په حديث دي فهم هم ولري ده لره پكار دي چې د كوم فقيه اتباع وكړي هر كله چې دداسي كس دپاره دفقيه اتباع ضروري ده نو دعوامو دپاره خو دفقهاؤ اتباع په درجه اولي ضروري او لازمي ده.(روضة)

****************

٢٦٥٨ـ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ عُمَيْرٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ يُحَدِّثُ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " نَضَّرَ اللَّهُ امْرَأً سَمِعَ مَقَالَتِي فَوَعَاهَا وَحَفِظَهَا وَبَلَّغَهَا فَرُبَّ حَامِلِ فِقْهٍ إِلَى مَنْ هُوَ أَفْقَهُ مِنْهُ. ثَلَاثٌ لَا يُغِلُّ عَلَيْهِنَّ قَلْبُ مُسْلِمٍ: إِخْلَاصُ الْعَمَلِ لِلَّهِ، وَمُنَاصَحَةُ أَئِمَّةِ الْمُسْلِمِينَ، وَلُزُومُ جَمَاعَتِهِمْ. فَإِنَّ الدَّعْوَةَ تُحِيطُ مِنْ وَرَائِهِمْ ".[1]

**ترجمه** : دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت دي چې نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي هغه بنده دي الله ترو تازه ساتي څوك چې زما خبري يادي كړي اوځان ورباندي پوهه كړي او بيا يې نورو خلقو ته اورسوي ځكه چې زيات خلق چې كله كله دعلم خبره داسي خلقو ته رسوي څوك چې ددوئ نه زيات سمجدار او پوهه وي اويه دري خبرو كې دمسلمان زړه بخل نه كوي دخلوص سره دالله تعالي دپاره عمل كول، دمسلمانانو خيرخواهي لټول، اودمسلمانانو دډلي ره تعلق ساتل، هيڅ شك نشته چې ددوئ دعوت به په وروستنو احاطه اوكړي

****************

## ٨ـ بَاب مَا جَاءَ فِي تَعْظِيمِ الْكَذِبِ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

**رسول الله صلي الله عليه وسلم ته په دروغه ديوې خبرې نسبت كول عظيمه ګناه ده**

٢٦٥٩ـ حَدَّثَنَا أَبُو هِشَامٍ الرِّفَاعِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ عَيَّاشٍ، حَدَّثَنَا عَاصِمٌ، عَنْ زِرٍّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَنْ كَذَبَ عَلَيَّ مُتَعَمِّدًا فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهُ مِنَ

[1] ـ سنن ابن ماجه/المقدمة ١٨(٢٣٢) (تحفة الأشراف: ٩٣٦١)

النَّارِ".(1)

**ترجمه** دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچې په ماباندی په قصد دروغ جوړ كړل يعني دداسی خبری نسبت يی رسول الله صلي الله عليه وسلم ته اوكړو چې رسول الله صلي الله عليه وسلم نه وي كړي، نوخان ته دی په دوزخ كې خايی تيار كړي (دهغه خايی دوزخ دی).

**لغات**: كذب . كذب يكذب كذبا دضرب نه معني دروغ ويل ، متعمدا . معني قصدا .

**تشريح**: "من كذب علي متعمدا" دحديث په دي حصه كې دهغه چا دپاره وعيد بيان شوی دی څوك چې دخپل خان نه احاديث جوړوي ددي كار په حكم كې اختلاف دی دابومحمد جويني په نزد دا كار كفر دی ليكن دجمهورو علماؤ او امام الحرمين خيال دادی كه څوك دا كار حلال اوګڼړي نو كفر دی ورنه لويه ګناه ده

***************

٢٦٦٠ـحَدَّثَنَا إِسْمَاعِيل بْنُ مُوسَى الْفَزَارِيُّ ابْنُ بِنْتِ السُّدِّيِّ. حَدَّثَنَا شَرِيكُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ مَنْصُورِ بْنِ الْمُعْتَمِرِ، عَنْ رِبْعِيِّ بْنِ حِرَاشٍ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تَكْذِبُوا عَلَيَّ، فَإِنَّهُ مَنْ كَذَبَ عَلَيَّ يَلِجُ فِي النَّارِ". وفي الباب عن أَبِي بَكْرٍ، وَعُمَرَ، وَعُثْمَانَ، وَالزُّبَيْرِ، وَسَعِيدِ بْنِ زَيْدٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَأَنَسٍ، وَجَابِرٍ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَعَمْرِو بْنِ عَبَسَةَ، وَعُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ، وَمُعَاوِيَةَ، وَبُرَيْدَةَ، وَأَبِي مُوسَى الْغَافِقِيِّ، وَأَبِي أُمَامَةَ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، وَالْمُنَقَّعِ، وَأَوْسٍ الثَّقَفِيِّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَلِيٍّ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. قَالَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ مَنْصُورُ بْنُ الْمُعْتَمِرِ، أَثْبَتُ أَهْلِ الْكُوفَةِ، وَقَالَ وَكِيعٌ: لَمْ يَكْذِبْ رِبْعِيُّ بْنُ حِرَاشٍ فِي الْإِسْلَامِ كَذْبَةً.(2)

**ترجمه** دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په ما پوري دروغ مه تړئ ځكه چې په ما پوري دروغ تړونكي به جهنم ته داخليږي

امام ترمذي وايي دعلي رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي، او په دي باب كي دابوبكر.

---

1 ـ سنن ابن ماجه/المقدمة ٤ (٣٠) . وانظر أيضا ماتقدم برقم ٢٢٥٧ (تحفة الأشراف ٩٢١٣) . و مسند احمد (٣٨٩/١، ٤٠١، ٤٠٢، ٤٠٥، ٤٣٦، ٤٥٣)

2 ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /العلم ٣٨ (١٠٦) . صحيح مسلم /المقدمة ٢ (١) . سنن ابن ماجه/المقدمة ٤ (٣١) (تحفة الأشراف: ١٠٠٨٧) . و مسند احمد (٨٣/١، ١٢٣، ١٥٠)

عمر، عثمان، زبير، سعيد بن زيد، عبدالله بن عمرو، انس، جابر، ابن عباس، ابوسعيد، عمرو بن عبسه، عقبه بن عامر، معاويه، بريده، ابوموسي، ابوامامه، عبدالله بن عمر، مقنع، او اوس ثقفي رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي

***************

۲۶۶۱ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ كَذَبَ عَلَيَّ حَسِبْتُ أَنَّهُ قَالَ: مُتَعَمِّدًا فَلْيَتَبَوَّأْ بَيْتَهُ مِنَ النَّارِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ مِنْ حَدِيثِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَنَسٍ، وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ عَنْ أَنَسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. [1]

**ترجمه** دانس بن مالك رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي چاچي زما باره کي دروغ اوونيل (انس وائي) زما خيال دي چې رسول الله د "من كذب علي" نه پس متعمدا لفظ هم اوونيل يعني چې قصدا په ما پوري دروغ اوتړي د داسي کس داوسيدو خاي جهنم دي

امام ترمذي وايي دا حديث په دي سند حسن صحيح غريب دي يعني دزهري په هغه سند چې په کوم يي دانس بن مالك نه نقل کړي دي، او دا حديث په متعددو سندونو دانس رضي الله عنه په واسطه دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه مروي دي.

***************

## ۹ـ باب مَا جَاءَ فِيمَنْ رَوَى حَدِيثًا، وَهُوَ يَرَى أَنَّهُ كَذِبٌ

## قصدا په دروغه دموضوعي حديث بيا نولو والا دمذمت بيان

۲۶۶۲ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ أَبِي ثَابِتٍ، عَنْ مَيْمُونِ بْنِ أَبِي شَبِيبٍ، عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "مَنْ حَدَّثَ عَنِّي حَدِيثًا وَهُوَ يَرَى أَنَّهُ كَذِبٌ فَهُوَ أَحَدُ الْكَاذِبِينَ". وفِي الباب عن عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ، وَسَمُرَةَ، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَرَوَى شُعْبَةُ، عَنِ الْحَكَمِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ سَمُرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَذَا الْحَدِيثَ. وَرَوَى الأَعْمَشُ، وَابْنُ أَبِي لَيْلَى،

---

[1] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /العلم ۳۸ (۱۰۸)، صحيح مسلم /المقدمة ۲ (۲)، سنن ابن ماجه/المقدمة ۴ (۳۲) (تحفة الأشراف: ۱۵۲۵)

عَنِ الْحَكَمِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ عَلِيٍّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَكَأَنَّ حَدِيثَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ سَمُرَةَ عِنْدَ أَهْلِ الْحَدِيثِ أَصَحُّ. قَالَ: سَأَلْتُ أَبَا مُحَمَّدٍ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ حَدِيثِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَنْ حَدَّثَ عَنِّي حَدِيثًا وَهُوَ يَرَى أَنَّهُ كَذِبٌ فَهُوَ أَحَدُ الْكَاذِبِينَ ". قُلْتُ لَهُ: مَنْ رَوَى حَدِيثًا وَهُوَ يَعْلَمُ أَنَّ إِسْنَادَهُ خَطَأٌ أَيُخَافُ أَنْ يَكُونَ قَدْ دَخَلَ فِي حَدِيثِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ أَوْ إِذَا رَوَى النَّاسُ حَدِيثًا مُرْسَلًا فَأَسْنَدَهُ بَعْضُهُمْ أَوْ قَلَبَ إِسْنَادَهُ يَكُونُ قَدْ دَخَلَ فِي هَذَا الْحَدِيثِ؟ فَقَالَ: لَا إِنَّمَا مَعْنَى هَذَا الْحَدِيثِ إِذَا رَوَى الرَّجُلُ حَدِيثًا وَلَا يُعْرَفُ لِذَلِكَ الْحَدِيثِ. عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَصْلٌ فَحَدَّثَ بِهِ فَأَخَافُ أَنْ يَكُونَ قَدْ دَخَلَ فِي هَذَا الْحَدِيثِ. [1]

**ترجمه** : دمغيره بن شعبه رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچې ماته دمنصوب كولو په حال كي قصدا دروغ اوونيل او د دروغو حديث يې بيان كړو نو دي به په دوه دروغ ويونكي كي يو وي.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي. شعبه دحكم نه او حكم دعبدالرحمن بي ابي ليلي نه او عبدالرحمن دسمره نه او سمره دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه دا حديث نقل كړي دي، او اعمش او ابن ابي ليلي دحكم نه او حكم دعبدالرحمن نه او هغه دسمره رضي الله عنه نه نقل كړي دي او دا دمحدثينو په نزد زيات صحيح دي، او په دي باب كي دعلي بن ابي طالب او سمره رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي ما د ابو محمد عبدالله بن عبدالرحمن دارمي نه ددي حديث باره كي تپوس اوكړو چې ددينه څه مراد دي ما ورته اوونيل ايا دا ورته مراد دي چې چا يو حديث بيان كړو او هغه ته پته وي چې ددي په سند كي غلطي ده نو ايا دا خوف او خطره به محسوس كيږي چې داسي كس دنبي كريم صلي الله عليه وسلم ددي حديث په وعيد كي داخل شو؟او كنه ددينه مراد دادي چې خلقو مرسل احاديث بيان كړي دي او بيا بعضي خلقو دغه مراسيل مرفوع كړي دي او يا يي ددي سند التبه كړي وي نو دا خلق رسول الله پوري ددي حديث دمرفوع كولو كومه اصل وجه نه پيژني او دا كس يي مرفوع بيان كړي چې رسول الله داسي فرمائيلي دي پس زه ويريږم هسي نه چې دا كسان ددي حديث په مصداق كي داخل نشي.

***************

[1] _ صحيح مسلم/المقدمة ١ (بدون رقم) . سنن ابن ماجه/المقدمة ٥ (٣١) (تحفة الأشراف : ١١٥٣١)

## ١٠_باب مَا نُهِيَ عَنْهُ أَنْ يُقَالَ عِنْدَ حَدِيثِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

### درسول الله دحديث اوريدو وخت كي څه ونيل منع دي

٢٦٦٣_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ، وَسَالِمِ أَبِي النضر، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي رَافِعٍ، عَنْ أَبِي رَافِعٍ وَغَيْرِهِ، رَفَعَهُ قَالَ: "لَا أُلْفِيَنَّ أَحَدَكُمْ مُتَّكِئًا عَلَى أَرِيكَتِهِ يَأْتِيهِ أَمْرٌ مِمَّا أَمَرْتُ بِهِ أَوْ نَهَيْتُ عَنْهُ فَيَقُولُ: لَا أَدْرِي مَا وَجَدْنَا فِي كِتَابِ اللَّهِ اتَّبَعْنَاهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَرَوَى بَعْضُهُمْ عَنْ سُفْيَانَ، عَنِ ابْنِ الْمُنْكَدِرِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرْسَلًا، وَسَالِمِ أَبِي النَّضْرِ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي رَافِعٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَكَانَ ابْنُ عُيَيْنَةَ إِذَا رَوَى هَذَا الْحَدِيثَ عَلَى الِانْفِرَادِ، بَيَّنَ حَدِيثَ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ، مِنْ حَدِيثِ سَالِمِ أَبِي النَّضْرِ، وَإِذَا جَمَعَهُمَا رَوَى هَكَذَا، وَأَبُو رَافِعٍ مَوْلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اسْمُهُ: أَسْلَمُ. (١)

**ترجمه** . دابو رافع وغيره نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي زه دي په تاسو كي هيڅا لره په داسي حال كي اونه مومم چې هغه پخپل تخت ډډه وهلي وي او هغه ته زما دامر يا نهي كوم حكم اورسيږي او دي داسي اووائي چې ماته پته نشته مونږ خو چې دالله په كتاب كي هر څه موندلي دي دهغي پيروي مو كړي دي.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي بعضي راويانو دسفيان نه او سفيان دابن منكدر نه او ابن منكدر دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه داحديث مرسل نقل كړي دي، او بعضي راويانو دسالم ابو النضر نه او سالم دعبيدالله بن ابي رافع نه او عبيدالله دخپل پلار ابو رافع په ذريعه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه نقل كړي دي، ابن عيينه چې كله دا حديث يواخي بيانولو نو دمحمد بن منكدر دحديث نه چې كوم دسالم بن نضر نه نقل دي جدا بيانوي او چې كله به يي دواړه احاديث جمع كول نو داسي به يي نقل كول څنګه چې په دي حديث كي دي ابو رافع درسول الله صلي الله عليه وسلم ازاد كړي غلام وو او دده نوم اسلم دي

****************

٢٦٦٤_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ صَالِحٍ، عَنِ الْحَسَنِ بْنِ جَابِرٍ اللَّخْمِيِّ، عَنِ الْمِقْدَامِ بْنِ مَعْدِ يكَرِبَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

---

[١] ــ سنن ابي داود/ السنة ٦ (٤٦٠٥) . سنن ابن ماجه/المقدمة ٢ (١٣) (تحفة الأشراف : ١٢٠١٩) . و مسند احمد (٦/٨)

وَسَلَّمَ: "أَلَا هَلْ عَسَى رَجُلٌ يَبْلُغُهُ الْحَدِيثُ عَنِّي وَهُوَ مُتَّكِئٌ عَلَى أَرِيكَتِهِ فَيَقُولُ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ كِتَابُ اللَّهِ فَمَا وَجَدْنَا فِيهِ حَلَالًا اسْتَحْلَلْنَاهُ وَمَا وَجَدْنَا فِيهِ حَرَامًا حَرَّمْنَاهُ وَإِنَّ مَا حَرَّمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَمَا حَرَّمَ اللَّهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. (1)

**ترجمه** دمقدام بن معديكرب رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي خبردار ډيره نزدي ده يو سړي ته به په داسي حالت كي زما حديث اورسيږي چې پخپل تخت به يي ډډه وهلي وي او ناست به وي او دي به وائي بس زمونږ او ستاسو په مينځ كي دفيصلي څيز دالله تعالي كتاب دي په دي كي چې مونږ څه حلال مومو هم هغه به حلال ګڼو او كوم څه چې په دې كي حرام وي هغه به حرام ګڼو. ياد ساتئ يقينا رسول الله صلي الله عليه وسلم چې كوم څيز حرام ګرخولي دي دا داسي حرام دي څنګه چې دالله تعالي حرام كړي څيز وي.

امام ترمذي وايي. داحديث په دي سند حسن غريب دي.

***************

## ١١_باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ كِتَابَةِ الْعِلْمِ

**(په ابتداء د اسلام كي) داحاديثو ليكلو دمما نعت بيان**

٢٦٦٥_حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ وَكِيعٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: "اسْتَأْذَنَّا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْكِتَابَةِ فَلَمْ يَأْذَنْ لَنَا". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ مِنْ غَيْرِ هَذَا الْوَجْهِ أَيْضًا عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، رَوَاهُ هَمَّامٌ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ. (2)

**ترجمه** : دابوسعيد خدري رضي الله عنه بيان دي فرمائي چې مونږ (په ابتداء داسلام كي) درسول الله صلي الله عليه وسلم نه داحاديثو ليكلو اجازت اوغوښتلو نو مونږ ته يي ددي دليكلو اجازت رانكړو.

امام ترمذي وايي. داحديث ددي سند نه علاوه هم په نورو سندونو دزيد بن اسلم په واسطه مروي دي او دا حمام دزيد بن اسلم نه نقل كړي دي

***************

1 _ سنن ابن ماجه/المقدمة ٢ (١٢) (تحفة الأشراف: ١١٥٥٢)

2 مسلم/الزهد ١٦ (٣٠٠٤)

## ١٢ـ باب مَا جَاءَ فِي الرُّخْصَةِ فِيهِ

### درسول الله صلي الله عليه وسلم دطرفه داحاديثو ليكلو داجازت بيان

٢٦٦٦ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنِ الخَلِيلِ بْنِ مُرَّةَ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: كَانَ رَجُلٌ مِنَ الأَنْصَارِ يَجْلِسُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَسْمَعُ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الحَدِيثَ، فَيُعْجِبُهُ وَلَا يَحْفَظُهُ، فَشَكَا ذَلِكَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنِّي أَسْمَعُ مِنْكَ الحَدِيثَ فَيُعْجِبُنِي وَلَا أَحْفَظُهُ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " اسْتَعِنْ بِيَمِينِكَ وَأَوْمَأَ بِيَدِهِ لِلْخَطِّ ". وفي الباب عن عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ إِسْنَادُهُ لَيْسَ بِذَلِكَ القَائِمِ، وَسَمِعْتُ مُحَمَّدَ بْنَ إِسْمَاعِيل يَقُولُ: الخَلِيلُ بْنُ مُرَّةَ مُنْكَرُ الحَدِيثِ. ([1])

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه بيان دي فرمائي چې يو انصاري به درسول الله صلي الله عليه وسلم په مجلس كې كيناستلو او احاديث به يې اوريدل او احاديث به دهغه ډير زيات خوښ وو ليكن ياديدل به يې نه نو هغه د نه ياديدو متعلق رسول الله صلي الله عليه وسلم ته شكايت اوكړو اي دالله رسوله زه ستاسو نه احاديث اورم او زما ډير زيات خوښ دي مگر زما نه يادېږي رسول الله صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل دخپل لاس نه كار واخله او ددي ونيلو په حال كې يې په لاس ليكلو ته اشاره اوكړه.

امام ترمذي وايي: ددي حديث سند قوي او مضبوط نه دي، ما دامام بخاري نه اوريدلي دي خليل بن مره منكر الحديث دي، په دي باب كې دعبدالله بن عمرو رضي الله عنهما نه هم حديث وارد دي.

***************

٢٦٦٧ـ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُوسَى، وَمَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، قَالَا: حَدَّثَنَا الوَلِيدُ بْنُ مُسْلِمٍ، حَدَّثَنَا الأَوْزَاعِيُّ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَطَبَ فَذَكَرَ القِصَّةَ فِي الحَدِيثِ، قَالَ أَبُو شَاهٍ: اكْتُبُوا لِي يَا رَسُولَ اللَّهِ. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " اكْتُبُوا لِأَبِي شَاهٍ ". وَفِي الحَدِيثِ قِصَّةٌ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٣٨١٣)

وَقَدْ رَوَى شَيْبَانُ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ مِثْلَ هَذَا. [1]

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم يو خل خطبه ورکړه او دخطبي په دوران کي يي يوه قصه بيان کړه نو ابو شاه (صحابي) اوونيل اي دالله رسوله دا زما دپاره په چا باندي اوليکه رسول الله صلي الله عليه وسلم صحابه کرامو ته اوفرمائيل دا دابوشاه دپاره اوليکئ او په دي حديث کي پوره واقعه مذکور ده.

امام ترمذي وايي: دا حديث حسن صحيح دي شيبان ديحي بن ابي کثير نه ددي پشان روايت نقل کړي دي

****************

٢٦٦٨_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ وَهْبِ بْنِ مُنَبِّهٍ، عَنْ أَخِيهِ وَهُوَ هَمَّامُ بْنُ مُنَبِّهٍ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ، يَقُولُ: "لَيْسَ أَحَدٌ مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَكْثَرَ حَدِيثًا عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنِّي إِلَّا عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَمْرٍو، فَإِنَّهُ كَانَ يَكْتُبُ وَكُنْتُ لَا أَكْتُبُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَوَهْبُ بْنُ مُنَبِّهٍ عَنْ أَخِيهِ هُوَ هَمَّامُ بْنُ مُنَبِّهٍ. [2]

**ترجمه** : دهمام بن منبه قول دي چې ما دابوهريره رضي الله عنه نه اوريدلي دي چې درسول الله صلي الله عليه وسلم په صحابه کرامو کي داحاديثو په بيانولو کې دعبدالله بن عمرو نه علاوه زما نه بل څوك زيات نشته زما او دعبدالله بن عمرو په مينځ کي فرق دا وو چې هغه به احاديث ليکل او ما به نه ليکل.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي، او په دي روايت کي چې وهب بن منبه عن اخيه راغلي دي نو داخيه نه مراد همام بن منبه ده.

****************

## ١٣_بَاب مَا جَاءَ فِي الْحَدِيثِ عَنْ بَنِي إِسْرَائِيلَ.

### داسرائيلي روايتونو دبيا نولو دپاره داجازت غوښتلو بيان

٢٦٦٩_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ، عَنِ ابْنِ ثَوْبَانَ هُوَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ

---

[1] ـ انظر تخريج حديث رقم ١٤٠٥

[2] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /العلم ٣٩ (١١٣) (تحفة الأشراف: ١٤٨٠٠)

ثَابِتِ بْنِ ثَوْبَانَ، عَنْ حَسَّانَ بْنِ عَطِيَّةَ، عَنْ أَبِي كَبْشَةَ السَّلُولِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "بَلِّغُوا عَنِّي وَلَوْ آيَةً، وَحَدِّثُوا عَنْ بَنِي إِسْرَائِيلَ وَلَا حَرَجَ، وَمَنْ كَذَبَ عَلَيَّ مُتَعَمِّدًا فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** دعبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي خما دطرفه خلقو ته ددين احکام اورسوئ، اگر چې يو ايت وي اودبني اسرائيلو تاريخي واقعات بيانوي پدی کې څه حرج نشته اوچاچې په مابانډی په قصد دروغ جوړ کړل (يعني دداسې خبرې نسبت يې رسول الله صلي الله عليه وسلم ته اوکړو چې رسول الله صلي الله عليه وسلم نه وي کړي) نوځان ته دی په دوزخ کې ځای تيار کړي (دهغه ځای دوزخ دی).

امام ترمذي وايي. داحديث حسن صحيح دي

**لغات** بلغوا. بلغ يبلغ بلوغا په معني درسيدو دي ، کذب : کذب يکذب کذبا دضرب نه معني دروغ ويل ، متعمدا: معني قصدا .

**تشريح**: ولو اية: اية خبر دی دکان محذوفه کان او ددي اسم محذوف دی تقدير دعبارت داسې دی ولوکان المبلغ اية، داية نه مراد دقران کريم ايت دی يا مطلق دی او الکلام المفيد ورنه مراد دی نو په دي کې به ددين هره خبره داخل وي داولني مطلب په اعتبار دقراني ايت تخصيص ددي داهميت په وجه شوی دی، علماء واي کله کله کومه مختصره خبره هم دانسان دپاره دهدايت باعث گرځي.

سوال: ددي حديث نه خو معلوميږي چې صرف په قران سره دي تبليغ اوکړی شي او دحديث ذکر پکې نشته .

اول جواب دقراني ايت تبليغ حکم دی دلته دحديث دتبليغ نفي نشته.

دويم جواب: دايت لغوي معني مراد ده کومه چې په معني دعلامي ده او قراني ايت او حديث نبوي او فقهي مسائلو ته شامله ده

دريم جواب: کله چې دايت تبليغ باوجود دمحفوظ کيدو دقران ضروري دی نو دحديث خو په درجي اولي ضروري دی

حدثوا عن بني اسرائيل ولا حرج: دبني اسرائيلو خبري بيانوي په دي کې هيڅ خرج نشته.

سوال: کله چې عمر رضي الله عنه درسول الله صلي الله عليه وسلم په وړاندي دتورات نسخه

---

[1] ـ اورده البخاري في الجامع /أحاديث الأنبياء ٥٠ (٣٤٦١) (تحفة الأشراف: ٨٩٦٤)

اولوستله نورسول الله صلي الله عليه وسلم ورته غصه شو او دلته ورته رسول الله صلي الله عليه وسلم پخپله داسرائيليلياتو دنقل كولو اجازت وركوي
جواب دلته په دي حديث كې مراد اسرائيلي قصي دي او نصيحتونه دي چې نقل كولى شي په طور دعبرت او چې عمر رضي الله عنه يي منع كړى وو دهغي نه مراد احكامات دي كوم چې منسوخ شوي دي خلاصه دا شوه چې په اسرائيلي احكامو عمل كول منع دي او دعبرت دپاره يي بيانول جائز دي.

"من كذب علي متعمدا" دحديث په دي حصه كې دهغه چا دپاره وعيد بيان شوى دى څوك چې دخپل ځان نه احاديث جوړوي ددي كار په حكم كې اختلاف دى دابومحمد جويني په نزد دا كار كفر دى ليكن دجمهورو علماؤ او امام الحرمين خيال دادى كه څوك دا كار حلال اوګڼري نو كفر دى ورنه لويه ګناه ده (روضة الصالحين).

***************

حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ، عَنِ الأَوْزَاعِيِّ، عَنْ حَسَّانَ بْنِ عَطِيَّةَ، عَنْ أَبِي كَبْشَةَ السَّلُولِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ وَهَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه**: ابوكبشه سلولي دعبدالله بن عمرو رضي الله عنهما په واسطه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه دماقبل هم معني روايت نقل كړي دي.
امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي.

***************

## ١٤_باب مَا جَاءَ الدَّالُّ عَلَى الْخَيْرِ كَفَاعِلِهِ

## نيكئ ته رهنمائي كونكي دنيكي كونكو پشان دي

٢٦٧٠_حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْكُوفِيُّ، حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ بَشِيرٍ، عَنْ شَبِيبِ بْنِ بِشْرٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلٌ يَسْتَحْمِلُهُ فَلَمْ يَجِدْ عِنْدَهُ مَا يَتَحَمَّلُهُ، فَدَلَّهُ عَلَى آخَرَ فَحَمَلَهُ، فَأَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرَهُ، فَقَالَ: "إِنَّ الدَّالَّ عَلَى الْخَيْرِ كَفَاعِلِهِ". وفي الباب عن أَبِي مَسْعُودٍ الْبَدْرِيِّ، وَبُرَيْدَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا

[1] ـ اورده البخاري في الجامع /أحاديث الأنبياء ٥٠ (٣٤٦١) (تحفة الأشراف: ٨٩٦٤)

الوَجْهِ مِنْ حَدِيثِ أَنَسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. (1)

**ترجمه** دانس بن مالك رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چې يو كس دنبي كريم صلي الله عليه وسلم په خدمت كې حاضر شو چې د سورلۍ مطالبه يې كوله رسول الله صلي الله عليه وسلم ده ته دوركولو دپاره هيڅ قسم سورلۍ اونه موندله نو ده ته يې يو بل كس اوخودلو نو هغه ده ته سورلۍ وركړه دا چې كله نبي كريم صلي الله عليه وسلم ته واپس راوګرځيدو نو واقعه يې ورته بيان كړه رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل نيكۍ طرف ته رهنمائي كونكي دنيكۍ كونكي پشان دی.

امام ترمذي وايي. او په دې باب كې دابومسعود بدري او بريده رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي. او دا حديث په دې سند دانس په واسطه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه غريب دي

*****************

٢٦٧١_حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ. حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ. أَنْبَأَنَا شُعْبَةُ. عَنِ الأَعْمَشِ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا عَمْرٍو الشَّيْبَانِيَّ يُحَدِّثُ، عَنْ أَبِي مَسْعُودٍ البَدْرِيِّ، أَنَّ رَجُلًا أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْتَحْمِلُهُ. فَقَالَ: إِنَّهُ قَدْ أُبْدِعَ بِي، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "ائْتِ فُلَانًا". فَأَتَاهُ فَحَمَلَهُ. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ دَلَّ عَلَى خَيْرٍ فَلَهُ مِثْلُ أَجْرِ فَاعِلِهِ" أَوْ قَالَ: "عَامِلِهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَأَبُو عَمْرٍو الشَّيْبَانِيُّ اسْمُهُ: سَعْدُ بْنُ إِيَاسٍ، وَأَبُو مَسْعُودٍ البَدْرِيُّ اسْمُهُ: عُقْبَةُ بْنُ عَمْرٍو. (2)

**ترجمه** د ابو مسعود بدري انصاري رضي الله عنه بدري نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم په خدمت كې يو كس حاضر شو چې سورلۍ يې ورنه غوښتله او وئيل يې چې زه بې سورلۍ شوي يم رسول الله ورته اوفرمائيل فلاني ته ورشه نو دې ورته ورغلو هغه ورته سورلۍ وركړه رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل چاچې بل ته يو نيك كار اوخودو هغه ته به هم دكونكي هومره اجر وركولی شي .

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي او دابوعمرو شيباني نوم سعد بن اياس دي او دابومسعود بدري نوم عقبه بن عمرو دي

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٩٠٢)

[2] _ صحيح مسلم/الإمارة ٣٨ (١٨٩٣)، سنن ابي داود/الأدب ١٢٢ (٥١٢٩) (تحفة الأشراف: ٩٩٨٦)، ومسند احمد (٤/١٢٠)

**لغات** دلّ: دلّ دلالة ودلولة دنصر نه په معني درهنمايي كولو.

**تشريح**: "من دلّ علي خير فله مثل اجر فاعله" يعني څوك چې دنيكۍ طرف ته رهنمايي وكړي نو په دي باندي دعمل كونكي داجر برابر اجر ده ته هم ملاوېږي

ددي حديث شان ورود دادي چې كله يو صحابي د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه دسورلۍ مطالبه وكړله نو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل زما سره خو سورلۍ نشته نو يو كس ووئيل زه به داسي كس دروښايم چې ده ته به سورلۍ وركړي نو په دي وخت كې رسول الله صلي الله عليه وسلم پورتني ارشاد اوفرمائيلو.

په دي حديث كې دالله تعالي دطرفه دزبردست انعام وعده ده يو څوك پخپله دومره ثواب نشي كټلي څومره چې ورته ددعوت تبليغ په وجه ملاوېږي چې خلقو ته ترغيب وركړي او هغوئ اجر حاصل كړي او دي هم ورسره شريك شي.

******************

حَدَّثَنَا الحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الخَلَّالُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ نُمَيْرٍ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي عَمْرٍو الشَّيْبَانِيِّ، عَنْ أَبِي مَسْعُودٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ، وَقَالَ: "مِثْلُ أَجْرِ فَاعِلِهِ" وَلَمْ يَشُكَّ فِيهِ. (1)

**ترجمه**: ابوعمرو شيباني هم دابومسعود په واسطه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه دماقبل هم معني روايت نقل كړي دي مګر دده په حديث كي مثل اجرفاعله الفاظ راغلي دي او بغير دشك نه يي ذكر كړي دي.

******************

٢٦٧٢ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، وَالحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ قَالُوا: حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، عَنْ بُرَيْدِ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِي بُرْدَةَ، عَنْ جَدِّهِ أَبِي بُرْدَةَ، عَنْ أَبِي مُوسَى الأَشْعَرِيِّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "اشْفَعُوا وَلْتُؤْجَرُوا وَلْيَقْضِ اللهُ عَلَى لِسَانِ نَبِيِّهِ مَا شَاءَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَبُرَيْدٌ يُكْنَى: أَبَا بُرْدَةَ أَيْضًا هُوَ ابْنُ أَبِي مُوسَى الأَشْعَرِيِّ وَهُوَ كُوفِيٌّ ثِقَةٌ فِي الحَدِيثِ رَوَى عَنْهُ شُعْبَةُ، وَالثَّوْرِيُّ، وَابْنُ عُيَيْنَةَ. (2)

---

1 ـ صحيح مسلم/الإمارة ٣٨ (١٨٩٣). سنن ابي داود/الأدب ١٢٢ (٥١٢٩) (تحفة الأشراف: ٩٩٨٦). ومسند احمد (٤/١٢٠)

2 ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح/الزكاة ٢١ (١٤٣٢)، والأدب ٣٦ (٦٠٢٧)، و ٣٧ (٦٠٢٨)، والتوحيد ٣١ (٧٤٧٦). صحيح مسلم/البر والصلة ٤٤ (٢٦٢٧). سنن ابي داود/الأدب ١٢٦ (٥١٣١). سنن النسائي/الزكاة ٦٥ (٢٥٥٧) (تحفة الأشراف ٩٠٣٦) ومسند احمد (٤/٤٠٠، ٤٠٩، ٤١٣)

**ترجمه** : ابو موسي اشعري رضي الله عنه روايت کوي چې درسول الله صلي الله عليه وسلم وفرمائيل سفارش کوئ تاسو ته به هم دهغي اجر ملاويږي او الله تعالي ته چې کومه خبره خوښه وي هغه دځپل رسول الله صلي الله عليه وسلم په ذريعه صادر وي.

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي او د بريد اسم کنيه ابوبرده ده او دا رنگي ابن ابي موسي هم دده اسم کنيه ده او دي دکوفي اوسيدونکي او يو ثقه راوي دي په باب دحديث کي چې شعبه او سفيان ثوري او ابن عيينه ورنه نقل دروايت کړي دي

**لغات** اشفعوا : شفع شفاعة دفتح نه په معني دسفارش کولو.

**تشريح**: اشفعوا توجروا، سفارشو نه کوئ او اجرونه حاصل کړئ. چې يو کس يوکار پخپله نشي کولي اوخوك چاته ترغيب ورکړي نو چرته چې دي کار کونکي ته ثواب ملاويږي هلته به ترغيب ورکونکي هم محروم نه پاتي کيږي.

ويقضي الله علي لسان نبيه يعني الله تعالي چې دځپل رسول په ژبه څنگه فيصله صادرول اوغواړي هم هغه شان صادروي، مطلب دادي چې دنبي په ژبه چې څه جاري وي هغه دالله تعالي په خوښه اوحکم سره وي ، رسول دځپل طرفه هيڅ نه وايي ، دلته يي هم په سفارش داجر ورکولو وعده وکړله داهم دالله فضل او احسان دي چې دکار کولو نه بغير اجر ملاويږي.

***************

٢٦٧٣ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، وَعَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُرَّةَ، عَنْ مَسْرُوقٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَا مِنْ نَفْسٍ تُقْتَلُ ظُلْمًا، إِلَّا كَانَ عَلَى ابْنِ آدَمَ كِفْلٌ مِنْ دَمِهَا، وَذَلِكَ لِأَنَّهُ أَوَّلُ مَنْ أَسَنَّ الْقَتْلَ ". وَقَالَ عَبْدُ الرَّزَّاقِ: " سَنَّ الْقَتْلَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** . دابن مسعود رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په دنيا کې چې چيرته څوك بې گناه په ظلم قتل کړی شي د ادم ځوي ته دهغی قتل په گنا کې حصه رسي، څکه چې هغه په دنيا کې ړومبی سړی دی چې دقتل طريقه يی روانه کړه

امام ترمذي وايي. داحديث حسن صحيح دي.

---

[1] ـ اورده البخاري في الصحيح/أحاديث الأنبياء ١(٣٣٣٥)، والديات ٢(٦٨٦٧)، والاعتصام ١٥(٧٣٢١). مسلم/القسامة (الحدود) ٧(١٦٧٧). سنن النسائي/المحاربة ١(٣٩٩٠). سنن ابن ماجه/الديات ١(٢٦١٦) (تحفة الأشراف: ٩٥٦٨). و مسند احمد (١/٣٨٣، ٤٣٠، ٤٣٣)

لغات. كفَل كفَل كفِل او كفُل كفلا وكفولا دنصر او ضرب او سمع نه او كرم نه په معني د چاد مال ضامن كيدلو ته ونيلي شي الكفل: حصه

**تشريح**: "الا كان علي ابن ادم كفل من دمها" مگر دادم عليه السلام د اولني بچي به په دي خون کې حصه وي، دا واقعه دقران كريم په مندرجه ذيل ايت کې هم په مفصل طور سره بيان شوي ده:

واتل عليهم نبأ ابني ادم بالحق اذ قربا قربانا فتقبل من احدهما ولم يتقبل من الاخر قال لاقتلنك قال انما يتقبل الله من المتقين.

دا حديث ددينه دمخکې حديث دپاره ضابطه ده علامه نووي وايي څوك چې دكوم غلط كار ابتداء وکړي نو ددي گناه هم اوكه په دي باندي څوك وروسته عمل كوي دهغې گناه به هم په ده باندي وي، او دا سلسله به دقيامته پوري جاري وي.

په دي حديث کې په دي خبره تنبيه ده چې څوك دي داسي كار نه شروع كوي كوم چې خلاف شرع او بد كار وي چې وروسته يي بيا خلق تقليد شروع کړي . دا يو دومره لوي جرم دي چې دقيامته پوري هرڅوك پدي عمل كوي نو دي بدعت ايجاد كونكي ته به ددي گناه رسيږي لكه مخکې تير شول چې څوك نيكه طريقه جاري کړي نو ددي اجر اوثواب به ددي طريقي جاري كونكي ته رسيږي.

****************

حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ. حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ. عَنِ الأَعْمَشِ بِهَذَا الإِسْنَادِ نَحْوَهُ بِمَعْنَاهُ. قَالَ: " سَنَّ الْقَتْلَ ".([1])

**ترجمه** داعمش نه هم په دي سند باندي دماقبل هم معني روايت مروي دي مگر دده په حديث كي سن القتل الفاظ راغلي دي.

****************

## ١٥_باب مَا جَاءَ فِيمَنْ دَعَا إِلَى هُدًى فَاتُّبِعَ أَوْ إِلَى ضَلاَلَةٍ

### هدايت او گمراهۍ ته د رابلونكو بيان

---

[1] ـ اورده البخاري في الصحيح /أحاديث الأنبياء ١(٣٣٣٥) . والديات ٢(٦٨٦٧) . والاعتصام ١٥(٧٣٢١) . مسلم/القسامة (الحدود) ٧(١٦٧٧) . سنن النسائي/المحاربة ١(٣٩٩٠) . سنن ابن ماجه/الديات ١(٢٦١٦) (تحفة الأشراف : ٩٥٦٨) . و مسند احمد(١/٣٨٣، ٤٣٠، ٤٣٣)

٢٦٧٤_حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ جَعْفَرٍ، عَنِ الْعَلَاءِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَنْ دَعَا إِلَى هُدًى كَانَ لَهُ مِنَ الْأَجْرِ مِثْلُ أُجُورِ مَنْ يَتَّبِعُهُ لَا يَنْقُصُ ذَلِكَ مِنْ أُجُورِهِمْ شَيْئًا، وَمَنْ دَعَا إِلَى ضَلَالَةٍ كَانَ عَلَيْهِ مِنَ الْإِثْمِ مِثْلُ آثَامِ مَنْ يَتَّبِعُهُ لَا يَنْقُصُ ذَلِكَ مِنْ آثَامِهِمْ شَيْئًا "، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([1])

**ترجمه** . دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دى چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچې خلق نيكئ ته راوبلل هغه ته به دومره اجر وركولى شي څومره چې به دهغه تولو تابعدارو ته وركولى شي او دهغوئ داجر نه بهٔ څه نه كميږي اوچاچې خلق ګمراهئ ته راوبلل دهغه به دومرّه ګناه وي څومره ګناهونه چې دهغه د تابعدارو وي او دهغوئ دګناهونو نه به څه نه كميږي .

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي.

**لغات**: تبعه: تبع تبعا دسمع نه په معني دوړسي كيدو.

ضلّ : ضلالا وضلالة دضرب‌ولو سمع نه چې معني يي ددين نه اوړيدل دي اوحق لاري پريخودل

**تشريح**: " قال من دعي الي هدي" يعني څوك چې هدايت طرف ته رابلل كوي، د هدايت نه مراد سنت نبوي دي لكه چې په نورو روايتونو كې راغلي دي

من احيا سنة من سنتي قد اميتت من بعدي. او. من استن خيرا. ددي روايتونو نه معلومه شوه كه څوك هغه خير ته دعوت وركړي كوم چې د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه منقول دي نو دي كس ته ددي اجر ملاويږي، لكه چې ارشاد الهي دي هل جزاء الاحسان الا الاحسان. او همدارنګي كه څوك د كومي ګناه سبب جوړ شي نو دده به په ګناهونو كې حصه وي ، لكه چې په يو اثر كې راغلي دي: الدال علي الشر كفاعله. ارشاد الهي دي: جزاء سيئة سيئة مثلها.

***************

٢٦٧٥_حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا الْمَسْعُودِيُّ، عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ عُمَيْرٍ، عَنِ ابْنِ جَرِيرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَنْ سَنَّ

[1] _ صحيح مسلم/العلم ٦ (٢٦٧٤) ، سنن ابي داود/السنة ٧ (٤٦٠٩) (تحفة الأشراف : ١٣٩٧٦) ، وسنن الدارمي/المقدمة ٤٤ (٥٣٠)

سُنَّةَ خَيْرٍ فَاتُّبِعَ عَلَيْهَا فَلَهُ أَجْرُهُ وَمِثْلُ أُجُورِ مَنِ اتَّبَعَهُ غَيْرَ مَنْقُوصٍ مِنْ أُجُورِهِمْ شَيْئًا، وَمَنْ سَنَّ سُنَّةَ شَرٍّ فَاتُّبِعَ عَلَيْهَا كَانَ عَلَيْهِ وِزْرُهُ وَمِثْلُ أَوْزَارِ مَنِ اتَّبَعَهُ، غَيْرَ مَنْقُوصٍ مِنْ أَوْزَارِهِمْ شَيْئًا". وفي الباب عن حُذَيْفَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ عَنْ جَرِيرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوُ هَذَا، وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ عَنِ الْمُنْذِرِ بْنِ جَرِيرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَقَدْ رُوِيَ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ جَرِيرٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيْضًا.[1]

**ترجمه**: دجرير بن عبدالله بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچې كومه نيكه طريقه جاري كړه او دنيكي طريقي پيروي يي اوكړىيو خو به ده ته په دي باندي دعمل كولو اجر وركولي شي او دويم به ورته دهغه چا داجر په مقدار اجرور كولي شي چاچې په دي باندي عمل كړي وي او د هيڅ قسم كمي كولو نه بغير به دهغوئ داجر او ثواب برابر اجر او ثواب ده ته هم وركولي شي، او چاچې كومه بده طريقه جاري كړه او بيا يي ددي بدي طريقي پيروي اوكړه يو خو به په ده باندي دخپل عمل بوج دګناه بار وي او دويم به دهغه چا بوج دګناه په ده بار وي چاچې په دي باندي عمل كړي وي بغير ددينه چې د پيروي كونكو په ګناه كي څه كمي اوكړي شي.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي ، او دا حديث په ډيرو سندونو دجرير بن عبدالله رضي الله عنه نه مروي دي او هغه په همدي مضمون دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه نقل كړي دي دا حديث دمضر بن جرير بن عبدالله نه هم مروي دي كوم چې هغه دخپل پلار جرير نه او هغه دعبدالله په واسطه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه نقل كړي دي، دا حديث دعبيدالله بن جرير په واسطه هم مروي دي او عبيدالله دخپل پلار جرير نه نقل كړي دي اوجرير درسول الله صلي الله عليه وسلم نه، او په دي باب كي دحذيفه رضي الله عنه نه هم حديث وارد دي

****************

## ١٦ـ بَابُ مَا جَاءَ فِي الأَخْذِ بِالسُّنَّةِ وَاجْتِنَابِ الْبِدَعِ

**په سنت پابندئ سره عمل كولو او دبدعت نه د ځان ساتلو بيان**

[1] ـ مسلم/الزكاة ٢٠ (١٠١٧)، والعلم ٦ (١٠١٧/١٥)، سنن ابن ماجه/المقدمة ١٤ (٢٠٣) (تحفة الأشراف : ٣٢٣٦) و مسند احمد(٣٥٧/٤، ٣٥٨، ٣٦١، ٣٦٢)، وسنن الدارمي/المقدمة ٤٤(٥١٨)

٢٦٧٦ـ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، حَدَّثَنَا بَقِيَّةُ بْنُ الْوَلِيدِ، عَنْ بَحِيرِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ خَالِدِ بْنِ مَعْدَانَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَمْرٍو السُّلَمِيِّ، عَنِ الْعِرْبَاضِ بْنِ سَارِيَةَ، قَالَ: وَعَظَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمًا بَعْدَ صَلَاةِ الْغَدَاةِ مَوْعِظَةً بَلِيغَةً ذَرَفَتْ مِنْهَا الْعُيُونُ وَوَجِلَتْ مِنْهَا الْقُلُوبُ، فَقَالَ رَجُلٌ: إِنَّ هَذِهِ مَوْعِظَةُ مُوَدِّعٍ، فَمَاذَا تَعْهَدُ إِلَيْنَا يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ قَالَ: " أُوصِيكُمْ بِتَقْوَى اللَّهِ، وَالسَّمْعِ، وَالطَّاعَةِ، وَإِنْ عَبْدٌ حَبَشِيٌّ فَإِنَّهُ مَنْ يَعِشْ مِنْكُمْ يَرَى اخْتِلَافًا كَثِيرًا، وَإِيَّاكُمْ وَمُحْدَثَاتِ الْأُمُورِ فَإِنَّهَا ضَلَالَةٌ، فَمَنْ أَدْرَكَ ذَلِكَ مِنْكُمْ فَعَلَيْهِ بِسُنَّتِي وَسُنَّةِ الْخُلَفَاءِ الرَّاشِدِينَ الْمَهْدِيِّينَ، عَضُّوا عَلَيْهَا بِالنَّوَاجِذِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رَوَى ثَوْرُ بْنُ يَزِيدَ، عَنْ خَالِدِ بْنِ مَعْدَانَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَمْرٍو السُّلَمِيِّ، عَنِ الْعِرْبَاضِ بْنِ سَارِيَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَ هَذَا. [1]

**ترجمه** . عرباض بن ساريه رضي الله عنه راوي دی چې یوه ورځ د سحر د مونځ نه پس رسول الله صلي الله عليه وسلم ډیر مؤثر او بهترین انداز کې مونږ ته وعظ اوفرمائیلو چې هغي سره زمونږ دسترګو نه اوښکي رواني شوي او زړونه نرم شول، مونږ عرض اوکړو اي دالله رسوله! داسي معلومیږي چې دا اخري درخصتیدو وعظ وي، پس تاسو مونږ ته نور څه نصیحت او وصیت کول غواړئ؟ رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائیل څه تاسو ته دالله پاك نه دویري وصیت کوم دارنګې دحکم اوریدلو او هغي باندي دعمل کولو درته نصیحت کوم اګر که حبشي غلام ستاسو حاکم او امیر جوړکړی شي تاسو کې چې څوك څمانه پس ژوندی پاتی شو هغه به بی حده زیات اختلاف اویني،خبردار ددین په معامله کې پخپل خیال نوي کارونه جوړولو نه خان وساتئ خکه چې دا ګمراهي ده ، پس که په تاسو چا باندي دغه وخت راشي نو لازم دي په تاسو چې څما د سنتو او څما دهدایت یافته خلفاؤ دطریقي اتباع اوکړئ او هغه په غاښونو کې کلك اونیسئ.

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي، ثور بن يزيد په سند د خالد بن معدان عن عبدالرحمن بن عمرو السلمي عن عرباض بن ساريه عن النبي صلي الله عليه وسلم سره ددي هم معني هم نقل كړي دي

**لغات** وجلت وجلا وجلا وموجلا دسمع او نصر نه په معني دويريدو دي.

---

[1] ـ سنن أبي داود/ السنة ٦ (٤٦٠٧) . سنن ابن ماجه/المقدمة ٦ (٤٢) (تحفة الأشراف : ٩٨٩٠) . وسنن الدارمي/المقدمة ١٦(٩٦)

ذرفت. ذرف ذرفا وذريفا دسمع نه په معني د اوښکو بهيولو دي
عضوا عضّ عضا وعضيضا دسمع نه په معني دنيولو دي
النواجذ نجذ نجذا دفتح نه په معني د پريکولو دي په غاښونو سره، او په معني داصرار کولو دي لکه چې وئيلي شي ضحك حتي بدت نواجذه.نواجذ دناجذ جمع ده
نواجذ ذال سره دکومو غاښونو چې نوکونه راوتلي وي هغې ته نواجذ وائي ليکن بعضي حضراتو د نواجذنه مراد دجامي غاښونه اخستي دي

**تشريح**: موعظة بليغة ، يعني اثرناك بيان يي اوکړو . علامه توريشتي ددي دا مطلب بيان کړی دی چې رسول الله دتخويف او انذار ډير خاص اهتمام اوکړو، کانها موعظة مودع داسي بيان يي اوکړو لکه څنګه چې يو رخصتيدونکی درخصتولو په وخت کې کوي چې زه درنه اوس جدا کيدونکی يم نو همدارنګي رسول الله هم په دي موقعه کې دپخولو بنه کوشش اوکړو

تأمر عليكم عبد حبشي، که په تاسو باندي حبشي غلام بادشاه شي نو ترڅو پوري چې دده امارت په شرعي طريقي سره نافذ وي ترهغي به تاسو په جائزکارونو کې دده اطاعت کوي او په همدي باندي دعلماؤ اجماع ده.
سوال دغلام حاکم جوړول جائز ندي
جواب خليفه کول يي جائز ندي ليکن د کومي علاقي والي جوړيدي شي ، په حديث کې همدا مراد دي يا په مبالغه محمول دي يعني که حاکم حبشي غلام هم وي نو اطاعت به يي کوئ، زه مترجم وايم چې دلته دعبد حبشي ذکر تمثيلا دی.
فعليكم بسنتي وسنة الخلفاء الراشدين، يعني لکه چې درسول الله اطاعت واجب دي نو دخليفه اطاعت هم لازم دي.

"اياكم ومحدثات الامور" بدعت ديته وئيلی شي چې درسول الله صلي الله عليه وسلم او خلفاء راشدينو په زمانه کې نه وي شوی اوخلق يي ددين حصه ګڼري او نه کونکو لره ملامت ګڼري، امام شافعي وائي هره يوه نوي خبره چې په دين کې پيدا کړی شي نو که دا دکتاب الله سره مخالفه وي او دصحابه کرامو داقوالو سره منافي وي او دامت داجماع خلاف وي نو دا ضلالت او ګمراهي ده او که داسي نه وي نو په دي کې څه حرج نشته

## د عرباض بن ساريه رضي الله عنه حالات

نوم عرباض کنيه ابو نجيح ده او دپلار نوم يي ساريه وو داصحاب صفه نه شميرلی شي دی پخپله وائي چې زه څلورم نمبر مسلمان يم او زما نه مخکې دري کسان په اسلام کې داخل شوي دي .

وفات شام ته لاړو او بیاحمص ته لاړو او هلته یې دژوند اخري ورځې تیرې کړې چې دشاګرداتو تعداد یې کافي ډیر دی او ۷۵ روایات ورنه منقول دي لیکن ابن حزم ۳۱ لیکلي دي

***************

حَدَّثَنَا بِذَلِكَ الحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الخَلَّالُ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ قَالُوا: حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ، عَنْ ثَوْرِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ خَالِدِ بْنِ مَعْدَانَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَمْرٍو السُّلَمِيِّ، عَنِ العِرْبَاضِ بْنِ سَارِيَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ، وَالعِرْبَاضُ بْنُ سَارِيَةَ يُكْنَى: أَبَا نَجِيحٍ، وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الحَدِيثُ، عَنْ حُجْرِ بْنِ حُجْرٍ، عَنْ عِرْبَاضِ بْنِ سَارِيَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ. [1]

**ترجمه** : عبدالرحمن بن عمرو سلمي هم دعرباض بن ساريه رضي الله عنه په واسطه دنبي کریم صلي الله علیه وسلم نه دماقبل هم معنی روایت نقل کړی دی او دعرباض بن ساریه اسم کنیه ابو نجیح ده دا رنګي دا حدیث د جبیر بن حجر نه دعرباض بن ساریه په واسطه هم دنبي کریم صلي الله علیه وسلم نه دماقبل هم معنی مروي دي.

***************

۲٦۷۷_حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ مَرْوَانَ بْنِ مُعَاوِيَةَ الفَزَارِيِّ، عَنْ كَثِيرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ هُوَ ابْنُ عَمْرِو بْنِ عَوْفٍ المُزَنِيُّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِبِلَالِ بْنِ الحَارِثِ: "اعْلَمْ". قَالَ: مَا أَعْلَمُ يَا رَسُولَ اللَّهِ، قَالَ: "اعْلَمْ يَا بِلَالُ". قَالَ: مَا أَعْلَمُ يَا رَسُولَ اللَّهِ، قَالَ: "إِنَّهُ مَنْ أَحْيَا سُنَّةً مِنْ سُنَّتِي قَدْ أُمِيتَتْ بَعْدِي فَإِنَّ لَهُ مِنَ الأَجْرِ مِثْلَ مَنْ عَمِلَ بِهَا مِنْ غَيْرِ أَنْ يَنْقُصَ مِنْ أُجُورِهِمْ شَيْئًا، وَمَنِ ابْتَدَعَ بِدْعَةَ ضَلَالَةٍ لَا يَرْضَاهَا اللَّهُ وَرَسُولُهُ كَانَ عَلَيْهِ مِثْلُ آثَامِ مَنْ عَمِلَ بِهَا لَا يَنْقُصُ ذَلِكَ مِنْ أَوْزَارِ النَّاسِ شَيْئًا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَمُحَمَّدُ بْنُ عُيَيْنَةَ هُوَ مَصِيصِيٌّ شَامِيٌّ، وَكَثِيرُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ هُوَ ابْنُ عَمْرِو بْنِ عَوْفٍ المُزَنِيُّ. [2]

**ترجمه** دعمرو بن عوف رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چې نبي کریم صلي الله علیه

[1] _ سنن ابي داود/ السنة ٦ (٤٦٠٧) . سنن ابن ماجه/المقدمة ٦(٤٢) (تحفة الأشراف : ٩٨٩٠) . وسنن الدارمی/المقدمة ١٦(٩٦)

[2] سنن ابن ماجه/المقدمة ١٥(٢١٠) (تحفة الأشراف :١٠٧٧٦)

وسلم بلال بن حارث رضي الله عنه ته اوفرمائيل پوهه شه هغه اوونيل دپوهيدو لائق څه خبره ده اي دالله رسوله رسول الله اوفرمائيل پوهه شه او خبر شه هغه بيا اوونيل دپوهيدو او خبريدو لائق څه څيز دي اي دالله رسوله رسول الله اوفرمائيل چاچي زما كوم سنت ژوندي كړو او كوم چي خلقوزما نه پس عمل پريحوډلی وي نو ده ته به دومره ثواب ورکولي شي څومره چي په دي باندي عمل كونكي ته وركولي شي او ددوئ په اجر كي به هيڅ كمي نه كيږي او چاچي دگمراهئ او بدعت ايجاد وكړو په كوم چي الله او رسول نه خوشحاليږي نو په دي به دعمل كونكو دگناه برابر ايجاد كونكي هم گنهگاريږي په داسي حال كي چي دهيڅ يو په گناه كي به څه كمي نه راځي.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن دي محمد بن عيينه مصيصي دشام اوسيدونكي دي او كثير بن عبدالله نه مراد كثير بن عبدالله بن عوف مزني دي.

*****************

٢٦٧٨_حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ حَاتِمٍ الأَنْصَارِيُّ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الأَنْصَارِيُّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ زَيْدٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، قَالَ: قَالَ أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ، قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يَا بُنَيَّ "إِنْ قَدَرْتَ أَنْ تُصْبِحَ وَتُمْسِيَ لَيْسَ فِي قَلْبِكَ غِشٌّ لِأَحَدٍ فَافْعَلْ، ثُمَّ قَالَ لِي: يَا بُنَيَّ وَذَلِكَ مِنْ سُنَّتِي، وَمَنْ أَحْيَا سُنَّتِي فَقَدْ أَحَبَّنِي، وَمَنْ أَحَبَّنِي كَانَ مَعِي فِي الْجَنَّةِ". وَفِي الْحَدِيثِ قِصَّةٌ طَوِيلَةٌ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَمُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الأَنْصَارِيُّ ثِقَةٌ، وَأَبُوهُ ثِقَةٌ، وَعَلِيُّ بْنُ زَيْدٍ صَدُوقٌ، إِلَّا أَنَّهُ رُبَّمَا يَرْفَعُ الشَّيْءَ الَّذِي يُوقِفُهُ غَيْرُهُ، قَالَ: وَسَمِعْتُ مُحَمَّدَ بْنَ بَشَّارٍ يَقُولُ: قَالَ أَبُو الْوَلِيدِ، قَالَ شُعْبَةُ، حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ زَيْدٍ وَكَانَ رَفَّاعًا، وَلَا نَعْرِفُ لِسَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ أَنَسٍ رِوَايَةً إِلَّا هَذَا الْحَدِيثَ بِطُولِهِ، وَقَدْ رَوَى عَبَّادُ بْنُ مَيْسَرَةَ الْمِنْقَرِيُّ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ زَيْدٍ، عَنْ أَنَسٍ، وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، قَالَ أَبُو عِيسَى: وَذَاكَرْتُ بِهِ مُحَمَّدَ بْنَ إِسْمَاعِيلَ فَلَمْ يَعْرِفْهُ وَلَمْ يُعْرَفْ لِسَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ أَنَسٍ هَذَا الْحَدِيثُ وَلَا غَيْرُهُ، وَمَاتَ أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ سَنَةَ ثَلَاثٍ وَتِسْعِينَ، وَمَاتَ سَعِيدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ بَعْدَهُ بِسَنَتَيْنِ، مَاتَ سَنَةَ خَمْسٍ وَتِسْعِينَ. [1]

**ترجمه** - دانس بن مالك رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم

[1] - تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٨٦٥)

راته اوفرمائيل اي بچيه كه ستا نه كيدي شي چې سحر او مابنام په داسي حالت كي تير كړي چې ستا په زړه كي دي دهيچا دپاره كينه او بغض او حسد وغيره نه وي نو داسي ضرور كوه، او بيا يي اوفرمائيل اي زما بچيه داسي عمل كول زما سنت او طريقه ده چاچې زما سنت ژوندي كړو نو هغه ماسره محبت اوكړو او چاچې زما سره محبت اوكړو هغه به زما سره جنت كي يوځاي وي.

امام ترمذي وايي: په دي حديث كي يوه اوږده قصه هم ده، ددي سند په بنياد داحديث حسن غريب دي، محمد بن عبدالله انصاري ثقه دي او دده پلار هم ثقه دي، علي بن زيد صدوق دي. پس په ده كي صرف دومره كمي او نقصان دي چې هغه به اكثر هغه روايت مرفوع بيانول كوم چې نورو محدثينو موقوف بيان كړي دي، ما دمحمد بن بشار نه اوريدلي دي دابو الوليد قول دي چې شعبه وئيل ماته علي بن زيد حديث بيان كړو او علي بن زيد رقاع دي، او موږ ته دسعيد بن مسيب په سند دانس نه ددي اوږد حديث نه علاوه كوم بل روايت معلوم نه دي، عباد بن ميسره منقري داحديث دعلي بن زيد په واسطه دانس رضي الله عنه نه نقل كړي دي ليكن هغوئ په دي حديث كي دسعيد بن مسيب واسطه نه ده ذكر كړي او ما ددي حديث ذكر امام بخاري ته اوكړو نو هغه اونه پيژندم او هغه ته دسعيد بن مسيب دا حديث چې دانس نه يي نقل كوي معلوم نه وو او نه دا دهغه نه علاوه بل چاته معلوم دي انس بن مالك ۹۳هجري كي وفات شوي دي او سعيد بن مسيب دده نه دوه كاله پس په ۹۵هجري كي وفات شوي دي.

***************

## ١٧_باب فِي الاِنْتِهَاءِ عَمَّا نَهَى عَنْهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

**پريخودل دهغه څيز دكوم نه چې رسول الله صلي الله عليه وسلم مما نعت بيان كړي وي**

**٢٦٧٩_حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " اتْرُكُونِي مَا تَرَكْتُكُمْ فَإِذَا حَدَّثْتُكُمْ فَخُذُوا عَنِّي فَإِنَّمَا هَلَكَ مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ بِكَثْرَةِ سُؤَالِهِمْ وَاخْتِلاَفِهِمْ عَلَى أَنْبِيَائِهِمْ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.** ([1])

**ترجمه**: ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي: كومه خبره چې درته زه بيانول پريدم هغه پردئ (تپوسونه يی رانه مه كوئ) مخكني

[1] _ اوږده البخاري في الجامع /الاعتصام ٢ (٧٢٨٨) . مسلم/الحج ٧٣ (١٣٣٧) . والفضائل ٣٧ (١٣٣٧) . سنن ابن ماجه/المقدمة ١ (٢) (تحفة الأشراف : ١٢٥١٨) . ومسند احمد (٢/٢٤٧، ٢٥٨، ٣١٣، ٤٢٨، ٤٤٨، ٤٥٧، ٤٦٧، ٤٨٢، ٤٩٥، ٥٠٢)

قومونو ډيرو تپوسونو او خپلو نبيانو سره اختلاف كولو تباه كړي دي
امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي
**تشريح**: اتركوني ماتركتكم" يعني ما پريږدئ ترڅو چې ما تاسو پريخودي يئ، په يو بل روايت كې د دعوني په ځاي زروني لفظ راغلى دى ليكن دواړه الفاظ هم معني دي ، رسول الله دفرمان مطلب دادى زه ستاسو په وړاندي وضاحت كوم تاسو ته دسوال كولو ضرورت نه پيښيږي او بني اسرائيلو هم دغوا په باره كې سوال كړى وو او خپل ځان يې په مشقت كې اچولى وو په ابتداء كې چې هغوئ هره يوه غوا ذبح كړي وه صحيح به وه . ارشاد الهي دى "ياايها الذين امنو لاتسئلوا عن اشياء تبدلكم تسؤكم .

***************

## ١٨_باب مَا جَاءَ فِي عَالِمِ الْمَدِينَةِ

### دمديني دعالم دفضيلت بيان

٢٦٨٠_حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ الصَّبَّاحِ الْبَزَّارُ، وَإِسْحَاقُ بْنُ مُوسَى الْأَنْصَارِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ مرفوعا: "يُوشِكُ أَنْ يَضْرِبَ النَّاسُ أَكْبَادَ الْإِبِلِ يَطْلُبُونَ الْعِلْمَ فَلَا يَجِدُونَ أَحَدًا أَعْلَمَ مِنْ عَالِمِ الْمَدِينَةِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَهُوَ حَدِيثُ ابْنِ عُيَيْنَةَ، وَقَدْ رُوِيَ عَنِ ابْنِ عُيَيْنَةَ أَنَّهُ قَالَ فِي هَذَا سُئِلَ: مَنْ عَالِمُ الْمَدِينَةِ؟ فَقَالَ: إِنَّهُ مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، وَقَالَ إِسْحَاقُ بْنُ مُوسَى، سَمِعْتُ ابْنَ عُيَيْنَةَ يَقُولُ: هُوَ الْعُمَرِيُّ عَبْدُ اللهِ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ الزَّاهِدُ وَاسْمُهُ: عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللهِ، وَسَمِعْتُ يَحْيَى بْنَ مُوسَى يَقُولُ، قَالَ عَبْدُ الرَّزَّاقِ، هُوَ مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، وَالْعُمَرِيُّ هُوَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ مِنْ وَلَدِ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ.[1]

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مرفوعا مروي دي فرمائي چې ډيره نژدي دد داسي وخت به راشي چې خلق به دعلم په تلاش كي لري لري سفرونه كوي ليكن هيچرته به دوئ ته دمديني دعالم نه لوي عالم نه ملاويږي
امام ترمذي وايي: دابن عيينه حديث حسن دي دسفيان بن عيينه نه چې كله دي باره كي تپوس اوكړي شو چې دمديني عالم څوك دي، هغه اووئيل مالك بن انس دي، اسحاق بن موسي وائي ما دابن عيينه نه اوريدلي دي وئيل يي عالم دمديني عمري عبدالعزيز بن عبدالله

[1] ـ (النسائي في الكبرى) (تحفة الأشراف : ١٢٨٤٤) ، و مسند احمد (٢/٢٩٩)

زاهد دي، ما ديحي بن موسي نه اوريدلي دي عبدالر ازق به وئيل چې عالم دمديني مالك بن انس دي،اود عمري نوم عبد الله بن عبد العزيز دي او دي دعمر بن الخطاب رضي الله عنه په اولاد کي دي.

*****************

## ١٩_باب مَا جَاءَ فِي فَضْلِ الْفِقْهِ عَلَى الْعِبَادَةِ

### په عابد دفقيه دفضيلت بيان

٢٦٨١_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى، أَخْبَرَنَا الْوَلِيدُ بْنُ مُسْلِمٍ، حَدَّثَنَا رَوْحُ بْنُ جَنَاحٍ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " فَقِيهٌ أَشَدُّ عَلَى الشَّيْطَانِ مِنْ أَلْفِ عَابِدٍ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، وَلَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ مِنْ حَدِيثِ الْوَلِيدِ بْنِ مُسْلِمٍ. [1]

**ترجمه** : دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي يو فقيه عالم د زرو عابدانو په مقابله کي په شيطان باندي زيات زورور وي.
امام ترمذي وايي: داحديث غريب دي او دا مونږ ته دوليد بن مسلم په روايت صرف په همدي سند معلوم دي.

*****************

٢٦٨٢_حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ خِدَاشٍ الْبَغْدَادِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَزِيدَ الْوَاسِطِيُّ، حَدَّثَنَا عَاصِمُ بْنُ رَجَاءِ بْنِ حَيْوَةَ، عَنْ قَيْسِ بْنِ كَثِيرٍ، قَالَ: قَدِمَ رَجُلٌ مِنَ الْمَدِينَةِ عَلَى أَبِي الدَّرْدَاءِ وَهُوَ بِدِمَشْقَ، فَقَالَ: مَا أَقْدَمَكَ يَا أَخِي؟ فَقَالَ: حَدِيثٌ بَلَغَنِي أَنَّكَ تُحَدِّثُهُ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: أَمَا جِئْتَ لِحَاجَةٍ؟، قَالَ: لَا، قَالَ: أَمَا قَدِمْتَ لِتِجَارَةٍ؟ قَالَ: لَا، قَالَ: مَا جِئْتُ إِلَّا فِي طَلَبِ هَذَا الْحَدِيثِ؟ قَالَ: فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: " مَنْ سَلَكَ طَرِيقًا يَبْتَغِي فِيهِ عِلْمًا سَلَكَ اللَّهُ بِهِ طَرِيقًا إِلَى الْجَنَّةِ، وَإِنَّ الْمَلَائِكَةَ لَتَضَعُ أَجْنِحَتَهَا رِضَاءً لِطَالِبِ الْعِلْمِ، وَإِنَّ الْعَالِمَ لَيَسْتَغْفِرُ لَهُ مَنْ فِي السَّمَوَاتِ وَمَنْ فِي الْأَرْضِ حَتَّى الْحِيتَانُ فِي الْمَاءِ، وَفَضْلُ الْعَالِمِ عَلَى الْعَابِدِ كَفَضْلِ الْقَمَرِ عَلَى سَائِرِ الْكَوَاكِبِ، إِنَّ الْعُلَمَاءَ وَرَثَةُ الْأَنْبِيَاءِ، إِنَّ الْأَنْبِيَاءَ لَمْ يُوَرِّثُوا دِينَارًا وَلَا

[1] _ سنن ابن ماجه/المقدمة ١٧ (٢٢٢) (تحفة الأشراف: ٦٣٩٥)

دِرْهَمًا إِنَّمَا وَرَّثُوا العِلْمَ فَمَنْ أَخَذَ بِهِ أَخَذَ بِحَظٍّ وَافِرٍ " قَالَ أَبُو عِيسَى: وَلَا نَعْرِفُ هَذَا الحَدِيثَ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ عَاصِمِ بْنِ رَجَاءِ بْنِ حَيْوَةَ، وَلَيْسَ هُوَ عِنْدِي بِمُتَّصِلٍ هَكَذَا، حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ خِدَاشٍ هَذَا الحَدِيثَ، وَإِنَّمَا يُرْوَى هَذَا الحَدِيثُ عَنْ عَاصِمِ بْنِ رَجَاءِ بْنِ حَيْوَةَ، عَنِ الوَلِيدِ بْنِ جَمِيلٍ، عَنْ كَثِيرِ بْنِ قَيْسٍ، عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَهَذَا أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ مَحْمُودِ بْنِ خِدَاشٍ، وَرَأْيُ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْمَاعِيل هَذَا أَصَحُّ. [1]

**ترجمه**: قیس بن کثیر وايي چي ابو الدرداء رضي الله عنه سره د ملاويدو دپاره يو كس د مديني نه راغلو او ابو الدرداء په دمشق كي وو نو تپوس يي ورنه وكړو اي وروره څنګه راغلي يي؟ هغه ووئيل ما اوريدلي دي چي ته يو حديث بيانوي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه دي اوريدلى دى ابو الدرداء ووئيل د بل كوم كار دپاره خو به نه يي راغلى ؟ هغه ووئيل نه ابو الدرداء ووئيل ايا دتجارت دپاره خو به نه يي راغلي: هغه ووئيل نه زه صرف ددغه حديث حاصلولو دپاره راغلى يم ابوالدرداء رضي الله عنه وويل چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچي علم دين حاصلولو دپاره سفر اوكړو الله تعالي به ورته دجنت لار اسانه كړي او بيشكه دعلم دين طالب ته فرشتى خپلى وزرى غوړوي خكه الله تعالي دده په دى كار راضي دى ، اوبيشكه عالم دپاره دزمكى اواسمانونو ټول مخلوق دبخښنى دعا غواړي تردى چي مهيان ورته په اوبو كي دعا كوي اودعالم فضيلت په عابدباندى داسى دى لكه دسپوږمئ په نورو ستورو اوبيشكه عالمان د پيغمبرانو وارثان دي، اوديپغمبرانو نه وارثت كي دينار اودرهم نه پاتى كيږي دهغوئ وراثت، علم دى اوچاچي علم حاصل كړو هغه غټه برخه واخسته

امام ترمذي وايي مونږ دعاصم بن رجاء بن حيوه دروايت نه بغير په كوم بل سند دا حديث نه پيژنو او ددي حديث سند زما په نزد متصل نه دي دا رنګي په همدي سند دا حديث محمود بن خداش هم نقل كړي دي ، دا حديث عاصم بن رجاء بن حيوه په سند د داود بن جميل عن كثير بن قيس عن ابي الدرداء عن النبي صلي الله عليه وسلم سند سره نقل كړي دي او دا حديث دمحمود بن خداش دروايت نه زيات صحيح دي او دامام بخاري رائي دادي چي دا زيات صحيح دي

**تشريح**: ان الملائكة لتضع اجنحتها : فرشتي خپلي وزري غوړوي ، محدثينو ددي څلور

---

[1] ـ سنن ابي داود/العلم ۱(۳٦٤١) . سنن ابن ماجه/المقدمة ۱۷(۲۲۳)(تحفة الأشراف : ۱۰۹۵۸) . وسنن الدارمي/المقدمة ۳۲(۳۵۴)

مطلبونه بيان کړي دي چې مندرجه ذيل دي.
اول: حقيقي معني مراد ده چې واقعي فرشتي دطالب علم داعزاز دپاره خپلي وزري غوړوي.
دويم: دا کنايه ده چې فرشتي د الوتلو نه منع کيږي او دعلم مجلس ته راځي او په دې کې شرکت کوي.
دريم: دا دتواضع نه کنايه ده لکه چې په قران کريم کې هم راځي واخفض لهما جناح الذل
څلورم: دغلامۍ نه کنايه ده لکه څرنګه چې شاهي ميلمنو ته سلامي کولی شي نو دارنګې فرشتي هم درسول الله ميلمنو ته خپلي وزري دسلامۍ دپاره غوړوي
فضل العالم علي العابد: په دې حديث کې دعالم او عابد فرق په يو عجيب انداز سره بيان شوی دی او هغه دادی چې دعالم فضيلت په عابد داسي دی لکه دسپوږمۍ فضيلت چې په ستورو دی ځکه چې دعالم فائده متعدي وي نورو ته هم وررسيږي او دعابد فائده دهغه په ذات پوري محدود وي لکه سپوږمۍ چې ټولو خلقو ته فائده ورکوي.

***************

٢٦٨٣_حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو الأَحْوَصِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ مَسْرُوقٍ، عَنِ ابْنِ أَشْوَعَ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ سَلَمَةَ الْجُعْفِيِّ، قَالَ: قَالَ يَزِيدُ بْنُ سَلَمَةَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنِّي قَدْ سَمِعْتُ مِنْكَ حَدِيثًا كَثِيرًا أَخَافُ أَنْ يُنْسِيَنِي أَوَّلَهُ آخِرُهُ فَحَدِّثْنِي بِكَلِمَةٍ تَكُونُ جِمَاعًا، قَالَ: " اتَّقِ اللَّهَ فِيمَا تَعْلَمُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ لَيْسَ إِسْنَادُهُ بِمُتَّصِلٍ، وَهُوَ عِنْدِي مُرْسَلٌ، وَلَمْ يُدْرِكْ عِنْدِي ابْنُ أَشْوَعَ يَزِيدَ بْنَ سَلَمَةَ، وَابْنُ أَشْوَعَ اسْمُهُ: سَعِيدُ بْنُ أَشْوَعَ. [1]

**ترجمه**: يزيد بن سلمه جعفي وائي ما عرض اوکړو اې دالله رسوله ما ستاسو نه ډير زيات احاديث اوريدلي دي، چرته داسي اونه شي چې وروستني رانه اولني هير کړي تاسو راته يوه داسي کلمه اوښايئ کوم چې داولنو او اخرنو دوارو دپاره دباقي پاتي کيدو ذريعه وي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل څومره چې درته معلوم دي دهغي باره کي دالله تعالي نه ويره کوه.
امام ترمذي وايي: ددې حديث سند متصل نه دي او دا زما په نزد مرسل دي، زما په نزد ابن اشوع ديزيد بن سلمې سره ملاقات نه دي کړي، او دابن اشوع نوم سعيد بن اشوع دي.

***************

٢٦٨٤_حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا خَلَفُ بْنُ أَيُّوبَ الْعَامِرِيُّ، عَنْ عَوْفٍ، عَنِ ابْنِ سِيرِينَ، عَنْ أَبِي

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١١٨٣٠)

هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " خَصْلَتَانِ لَا تَجْتَمِعَانِ فِي مُنَافِقٍ: حُسْنُ سَمْتٍ، وَلَا فِقْهٌ فِي الدِّينِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، وَلَا نَعْرِفُ هَذَا الْحَدِيثَ مِنْ حَدِيثِ عَوْفٍ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ هَذَا الشَّيْخِ خَلَفِ بْنِ أَيُّوبَ الْعَامِرِيِّ، وَلَمْ أَرَ أَحَدًا يَرْوِي عَنْهُ غَيْرَ أَبِي كُرَيْبٍ مُحَمَّدِ بْنِ الْعَلَاءِ، وَلَا أَدْرِي كَيْفَ هُوَ. (1)

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دوه خصلتونه داسي دي چې په منافق کي جمع کيدي نشي يو ښائسته اخلاق دي او بل ددين پوهه ده

امام ترمذي وايي داحديث غريب دي او مونږ دعوف دا حديث صرف دشيخ خلف بن ايوب عامري په سند پيژنو، او ابوکريب محمد بن علاء نه علاوه مونږ ته بل څوك نه دي معلوم چې دخلف بن ايوب عامري نه يي روايت نقل کړي وي او مونږ ته دا نه ده معلومه چې هغه دعدالت په لحاظ څه حيثيت لري.

***************

٢٦٨٥_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الْأَعْلَى الصَّنْعَانِيُّ، حَدَّثَنَا سَلَمَةُ بْنُ رَجَاءٍ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ بْنُ جَمِيلٍ، حَدَّثَنَا الْقَاسِمُ أَبُو عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي أُمَامَةَ الْبَاهِلِيِّ، قَالَ: ذُكِرَ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلَانِ أَحَدُهُمَا: عَابِدٌ وَالْآخَرُ عَالِمٌ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " فَضْلُ الْعَالِمِ عَلَى الْعَابِدِ كَفَضْلِي عَلَى أَدْنَاكُمْ ". ثُمَّ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِنَّ اللَّهَ وَمَلَائِكَتَهُ وَأَهْلَ السَّمَوَاتِ وَالْأَرْضِ حَتَّى النَّمْلَةَ فِي جُحْرِهَا، وَحَتَّى الْحُوتَ لَيُصَلُّونَ عَلَى مُعَلِّمِ النَّاسِ الْخَيْرَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ صَحِيحٌ. قَالَ: سَمِعْت أَبَا عَمَّارٍ الْحُسَيْنَ بْنَ حُرَيْثٍ الْخُزَاعِيَّ، يَقُولُ: سَمِعْتُ الْفُضَيْلَ بْنَ عِيَاضٍ، يَقُولُ: عَالِمٌ عَامِلٌ مُعَلِّمٌ يُدْعَى كَبِيرًا فِي مَلَكُوتِ السَّمَوَاتِ. (2)

**ترجمه** دابوامامه رضي الله عنه نه روايت دی چې د رسول الله صلي الله عليه وسلم په وړاندي ددوه کسانو ذکر وکړي شو چې يو عالم وو او بل عابد وو رسول الله صلي الله عليه وسلم او فرمائيل دعالم فضيلت په عابد باندي داسي دی لکه خما فضيلت په يوادني مسلمان بيايي اوفرمائيل بيشکه الله تعالي اوفرښتی اودزمکی او اسمانونو اوسيدونکي تردی چې ميږي په خپلو سوړو کې اومهيان په دريابونو کې علم دين ښوونکي ته دعا کوي.

---

1 _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٣٣٨٤)

2 _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٤٩٠٤)

امام ترمذي وايي داحديث حسن غريب صحيح دي فضيل بن عياض وائي دابو عماره حصين بن حريث خزاعي نه مي اوريدلي دي وئيل يي په ملكوت السموات عمل كونكي عالم او معلم ته ډير زيات اهميت حاصل وي او دډير لوي شخصيت مالك ګڼرلي كيږي

**لغات** فضل. صاحب فضيلت كيدل فضل يفضل فضلا دنصر او سمع نه فضلا په معني دزياتي اود كرم نه صاحب فضيلت كيدل.

**تشريح**: دلته دعالم نه هغه كس مراد دى څوك چې دفرائضو او واجباتو ادا كولو نه پس باقي وختونه خلقو ته ددين په خودلو كې خرچ كوي دعالم فضيلت په عابد خكه زيات دى چې عابد صرف خپل ځان دپاره ګټه كوي مګر عالم نورو ته فائده رسوي

ان الله وملائكته واحل السموات والارض: يعني داسمان او زمكي تمام مخلوق دعالم دين دپاره دمغفرت دعا غواړي.

سوال: دزمكي او اسمان په مخلوق كې خو مهيان او ميګيان هم داخل دي نو دوئ يي جدا ولي ذكر كړل.

جواب: په دي كې دعالم دين انتهائي فضيلت بيانول مقصود دي چې دباران وريدل كوم چې عموما درحمت الهي علامه ده او ددنيا دډيرو نعمتونو تعلق ورسره دى دا دعالم دين دبركت په وجه دي تردي پورې چې په اوبو كې دمهيانو ژوندي پاتي كيدل او په سوړو كې دميګانو ژوندي پاتي كيدل پخپله دقدرت الهيه يوه نمونه ده او دا دعلماؤ په بركت سره دي ديته عموما دخلقو نظر رسائي نه كوي خكه يي دلته په خصوصيت سره مستقل بيان كړل.

***************

٣٦٨٦ـحَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ الشَّيْبَانِيُّ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ وَهْبٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ الْحَارِثِ، عَنْ دَرَّاجٍ، عَنْ أَبِي الْهَيْثَمِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَنْ يَشْبَعَ الْمُؤْمِنُ مِنْ خَيْرٍ يَسْمَعُهُ حَتَّى يَكُونَ مُنْتَهَاهُ الْجَنَّةُ". هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.[1]

**ترجمه** ابوسعيد خدري رضي الله عنه نه روايت دى چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي مسلمان په نيكئ نه مړيږي تردى چې منتها يى جنت شي.

امام ترمذي وايي. دا حديث حسن غريب دى

**لغات**: يشبع. مړيږي شبع يشبع شبعا معني مړيدل دسمع نه ، اوشبع يشبع شباعة ډير عقل مند كيدل. ، منتهاه معني اخري حد.

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٣٠٥٦)

**تشريح**: ددين علم دالله دنور دويم نوم دی په انسان کې چې څومره نور وي نو دومره یې زړه روښانه وي او دومره یې خواهش او تمنا زیاته وي، علماء وائي چې ددیني علم میدان دومره وسیع دی که دچا عمر سل زره کلونه هم شي او هیڅ یوه لمحه ضایع نکړي نو بیا به هم دعلم انتهاء ته ونه رسیږي او نه به دی په علم باندي موړ شي علم چې هر څومره حاصلوي خو دده تنده به نوره هم زیاتیږي او په همدي کې به ده لره مرګ راځي دی به وائي چې ما خو هیڅ هم نه دي حاصل کړي .

په یو روایت کې دي کله چې موسي علیه السلام لره الله تعالي دعلم حاصلولو دپاره خضر علیه السلام ته اولیږلو نو هغه ورته اووئیل ای موسي زما او ستا ددواړو علم دالله تعالي دعلم په مقابله کې دومره هم نه دی لکه څومره اوبه چې ددي مرغۍ په مخوکه کې دسمندر نه اوڅتیږي.

****************

٢٦٨٧ـحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُمَرَ بْنِ الْوَلِيدِ الْكِنْدِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ نُمَيْرٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ الْفَضْلِ، عَنْ سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " كَلِمَةُ الْحِكْمَةِ ضَالَّةُ الْمُؤْمِنِ فَحَيْثُ وَجَدَهَا فَهُوَ أَحَقُّ بِهَا ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَإِبْرَاهِيمُ بْنُ الْفَضْلِ الْمَدَنِيُّ الْمَخْزُومِيُّ يُضَعَّفُ فِي الْحَدِيثِ مِنْ قِبَلِ حِفْظِهِ. [1]

**ترجمه** : دابوهریره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله علیه وسلم فرمائیلي دي دحکمت خبري دمومن دپاره دده نه ورك شوي څیز دي هر چرته چې دي لره بیامومي نو دي ددي دحاصلولو زیات حقدار دي

امام ترمذي وایي: داحدیث غریب دي مونږ ته صرف په همدي سند معلوم دي، ابراهیم بن فضل مدني مخزومي په حدیث بیانولو کي دحفظ په اعتبار کمزوري ګڼړلي شوي دي

****************

# كتاب الاستئذان والآداب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم

## دسلام او مصافحي او کورته د داخلیدو اداب او احکام

### ١ـ باب مَا جَاءَ فِي إِفْشَاءِ السَّلاَمِ

[1] ـ سنن ابن ماجه/الزهد ١٥ (٤١٦٩) (تحفة الأشراف: ١٢٩٤٠)

## دسلام خورولو بيان

٢٦٨٨_حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَا تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ حَتَّى تُؤْمِنُوا، وَلَا تُؤْمِنُوا حَتَّى تَحَابُّوا، أَلَا أَدُلُّكُمْ عَلَى أَمْرٍ إِذَا أَنْتُمْ فَعَلْتُمُوهُ تَحَابَبْتُمْ؟ أَفْشُوا السَّلَامَ بَيْنَكُمْ". وفي الباب عن عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَلَامٍ، وَشُرَيْحِ بْنِ هَانِئٍ، عَنْ أَبِيهِ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَالْبَرَاءِ، وَأَنَسٍ، وَابْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([1])

**ترجمه**: د ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي زما دي په هغه ذات قسم وي د چا په اختيار کې چي زما روح دی تاسو جنت ته نه شئ تلی ترڅو چې مو ايمان نه وي راوړی او ايما ن مو تر هغه نه پوره کيږي تر څو چې يو بل سره محبت اونه ساتي ايا تاسو ته داسي کار اونښايم که يی اوکړئ نو يو بل سره به مو مينه پيدا شي . خپلو کې سلام عام کړئ، (يعني هر اشنا نااشنا مسلمان باندي سلام کې مخکي کيږئ)

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي ، په دي باب کي دعبدالله بن سلام، شريح بن هاني عن ابيه، عبدالله بن عمرو براء ، انس، او ابن عمر رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي

**لغات** : افشوا: افشي افشاء معني خوروول او شهرت ورکول لکه افشو سر فلان يعني دفلاني راز ښکاره کړئ.

**تشريح** ، لاتدخلوا الجنة حتي تؤمنوا، يعني دهغه وخته پوري جنت ته داخليدی نشئ ترڅوچې مو ايمان نه وي راوړی علماء وائي چې جنت ته کافر نشي داخليدی صرف مومنان به داخليږي دا فيصله دالله تعالي ده او که کافران جنت ته تلل غواړي نو ايمان دي قبول کړي "افشوا السلام بينکم" يعني پخپل مينځ کې سلام خور کړئ دسلام دخورولو مطلب دادی لکه چې په يو بل حديث کې هم راغلي دي چې هر يو کس ته دي سلام اوکړی شي برابره خبره ده چې پيژندګلو والا وي او که نه وي دسلام کولو په وجه خلق دا محسوسوي چې دي کس اسلام قبول کړی دی په اسلام باندي دراضي کيدو په وجه الله تعالي په بندګانو رحم هم کوي

****************

[1] _ مسلم/الإيمان ٢٢ (٥٤) . ابي داود/الأدب ١٤٢ (٥١٩٣) . ابن ماجه/المقدمة ٩ (٦٨) . والأدب ١١ (٣٦٩٢) (تحفة الأشراف : ١٢٥١٢) . و مسند احمد (٢/٣٩١ . ٤٤٢ . ٤٧٧ . ٤٩٥ . ٥١٢)

## ٢_باب مَا ذُكِرَ فِي فَضْلِ السَّلاَمِ

### دسلام دفضائلو بيان

٢٦٨٩_حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، وَالْحُسَيْنُ بْنُ مُحَمَّدٍ الْحَرِيرِيُّ البلخي، قَالاَ: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، عَنْ جَعْفَرِ بْنِ سُلَيْمَانَ الضُّبَعِيِّ، عَنْ عَوْفٍ، عَنْ أَبِي رَجَاءٍ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، أَنَّ رَجُلًا جَاءَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: "السَّلاَمُ عَلَيْكُمْ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "عَشْرٌ"، ثُمَّ جَاءَ آخَرُ فَقَالَ: "السَّلاَمُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللَّهِ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "عِشْرُونَ"، ثُمَّ جَاءَ آخَرُ فَقَالَ: "السَّلاَمُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللَّهِ وَبَرَكَاتُهُ. فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "ثَلاَثُونَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. وفي الباب عن عَلِيٍّ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَسَهْلِ بْنِ حُنَيْفٍ. (١)

**ترجمه** دعمران بن حصين رضي الله عنهما نه روايت دي فرماني چې يو كس د نبي كريم صلي الله عليه وسلم په خدمت كي حاضر شو او عرض يي اوكړو السلام عليكم رسول الله اوفرمائيل دده دپاره لس نيكئ دي بيا يو بل كس راغلو او هغه اووئيل السلام عليكم ورحمة الله رسول الله اوفرمائيل دده دپاره شل نيكئ دي، بيا يو بل كس راغلو او هغه اووئيل السلام عليكم ورحمة الله وبركاته رسول الله اوفرمائيل دده دپاره ديرش نيكئ دي.

امام ترمذي وايي: داحديث په دي سند حسن صحيح غريب دي، او په دي باب كي دعلي، ابوسعيد، او سهل بن حنيف رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي

### عمران بن حصين رضي الله عنه دژندګئ مختصر حالات

نوم عمران كنيه او ابو نجيد او دپلار نوم يي حصين وو دهجرت په ابتداء كي مسلمان شوى وو (مستدرك حاكم)

په بعضي غزواتو كي يي درسول الله صلي الله عليه وسلم سره ملګرتيا كړي وه او درسول الله په ټوله ژندګئ كي دى په مدينه كي پاتي شوى دى او د وفات نبوي نه پس يي مديني ته راتلل پريخودل او ګوشه نشيني يي اختيار كړه، عمرفاروق رضي الله عنه په زمانه كي چې كله بصره اباده شوه نو هلته منتقل شو او عمرفاروق رضي الله عنه ورته دتعليم خدمت حواله كړو (طبقات ابن سعد)

عمر رضي الله عنه ددور نه پس چې كله جنګونه شروع شول نو ده ورنه خان اوساتلو (الاصابه).

[1] ـ سنن ابي داود/ الأدب ١٣٢ (٥١٩٥) (تحفة الأشراف: ٤٣٢٠)

علامه ابن عبدالبر ليكلي دي كان من فضلاء الصحابة وفقهائهم (الاستيعاب).
دحسن بصري قول دی چې دعمران پشان بل بهترين سړی بصري ته نه دی راغلی (استيعاب)
دده په زندګۍ کي يو څو خصوصيات وو مثلا احترام رسول داسوه رسول پابندي په عبادت کي رياضت کول باوجود ددي چې دده ذات مرجع الخلائق وو څوك چې به په لازه تيريدل نو دده نه به يې مسائل معلومول
وفات: داستخساء په مرض مريض شو او هم دي مرض په نتيجه کي په ۵۲هجري کي په بصره کي وفات شو (مستدرك).
مرويات: دده دمروياتو شمير ۱۳۰دي په احاديثو کي به يې ډير زيات احتياط کولو نو ځکه يې دمروياتو شمير کم دی چې ۸ دهغي نه متفق عليه دي په بخاري کي څوارلس او نهه په مسلم کي دي.

****************

## ٣_باب مَا جَاءَ فِي الِاسْتِئْذَانِ ثَلَاثَةٌ

دچا کور ته د داخليدو دپاره د دري ځله اجازت غوښتلو بيان

٢٦٩٠_حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ وَكِيعٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى بْنُ عَبْدِ الْأَعْلَى، عَنِ الْجُرَيْرِيِّ، عَنْ أَبِي نَضْرَةَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ: قَالَ: اسْتَأْذَنَ أَبُو مُوسَى عَلَى عُمَرَ، فَقَالَ: السَّلَامُ عَلَيْكُمْ، أَأَدْخُلُ؟ قَالَ عُمَرُ: وَاحِدَةٌ ثُمَّ سَكَتَ سَاعَةً، ثُمَّ قَالَ: السَّلَامُ عَلَيْكُمْ، أَأَدْخُلُ؟ قَالَ عُمَرُ: ثِنْتَانِ ثُمَّ سَكَتَ سَاعَةً، فَقَالَ: السَّلَامُ عَلَيْكُمْ، أَأَدْخُلُ؟ فَقَالَ عُمَرُ: ثَلَاثٌ، ثُمَّ رَجَعَ فَقَالَ عُمَرُ لِلْبَوَّابِ: مَا صَنَعَ؟ قَالَ: رَجَعَ، قَالَ عَلَيَّ بِهِ، فَلَمَّا جَاءَهُ قَالَ: مَا هَذَا الَّذِي صَنَعْتَ؟ قَالَ: السُّنَّةُ، قَالَ السُّنَّةُ؟، وَاللَّهِ لَتَأْتِيَنِّي عَلَى هَذَا بِبُرْهَانٍ أَوْ بِبَيِّنَةٍ أَوْ لَأَفْعَلَنَّ بِكَ، قَالَ: فَأَتَانَا وَنَحْنُ رُفْقَةٌ مِنَ الْأَنْصَارِ، فَقَالَ: يَا مَعْشَرَ الْأَنْصَارِ، أَلَسْتُمْ أَعْلَمَ النَّاسِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ أَلَمْ يَقُلْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الِاسْتِئْذَانُ ثَلَاثٌ فَإِنْ أُذِنَ لَكَ، وَإِلَّا فَارْجِعْ" فَجَعَلَ الْقَوْمُ يُمَازِحُونَهُ، قَالَ أَبُو سَعِيدٍ: ثُمَّ رَفَعْتُ رَأْسِي إِلَيْهِ فَقُلْتُ: فَمَا أَصَابَكَ فِي هَذَا مِنَ الْعُقُوبَةِ فَأَنَا شَرِيكُكَ، قَالَ: فَأَتَى عُمَرَ فَأَخْبَرَهُ بِذَلِكَ، فَقَالَ عُمَرُ: مَا كُنْتُ عَلِمْتُ بِهَذَا، وفي الباب عن عَلِيٍّ، وَأُمِّ طَارِقٍ مَوْلَاةِ سَعْدٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْجُرَيْرِيُّ اسْمُهُ: سَعِيدُ بْنُ إِيَاسٍ يُكْنَى: أَبَا مَسْعُودٍ، وَقَدْ رَوَى هَذَا غَيْرُهُ أَيْضًا عَنْ

أَبِي نَضْرَةَ، وَأَبُو نَضْرَةَ الْعَبْدِيُّ اسْمُهُ: الْمُنْذِرُ بْنُ مَالِكِ بْنِ قُطَعَةَ. (1)

**ترجمه** دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چې ابوموسي اشعري رضي الله عنه دعمر رضي الله عنه نه د داخليدو دپاره اجازت اوغوښتلو او وېي وئيل السلام عليكم ايا زه دننه درتلي شم؟ عمر رضي الله عنه په زړه كي اووئيل يو ځل اجازت خو يي اوغوښتلو ابو موسي يوه شيبه خاموش اودريدو او دوباره يي اووئيل السلام عليكم ايا زه دننه درتلي شم؟ عمر رضي الله عنه په زړه كي اووئيل دوه ځل اجازت خو يي اوغوښتلو يوه شيبه نور خاموش اودريدو نو هغه بيا اووئيل السلام عليكم ايا زه دننه درتلي شم؟ عمر رضي الله عنه په زړه كي اووئيل دري پيري اجازت يي اوغوښتلو او بيا ابو موسي اشعري واپس روان شو عمر رضي الله عنه دربانچي ته اووئيل ابو موسي څه وكړل؟ دربانچي اووئيل هغه واپس روان شو عمر رضي الله عنه اوفرمائيل واپس يي ماته راوله ابو موسي چې كله عمر رضي الله عنه ته ورغلو نو ورته يي اووئيل دا دي څه اوكړل؟ ابو موسي اووئيل ما په سنت عمل اوكړو عمر رضي الله عنه اووئيل ايا په سنت؟ په الله قسم ته به ضرور په دي باندي دليل پيش كوي او كه دليل دي پيش نكړو نو ډير بد سلوك به درسره اوكړم، ابوسعيد خدري رضي الله عنه وائي چې ابو موسي مونږ ته راغلو او دغه وخت كي مونږ دانصارو يو جماعت سره موجود وو ابو موسي اووئيل اي دانصارو جماعته ستاسو نه زيات احاديث ذرسول الله بل چاته معلوم نه دي ايا رسول الله صلي الله عليه وسلم دا نه وو فرمائيلي "الاستئذان ثلاث" يعني اجازت طلب كول دري پيري سنت دي كه تاسو ته اجازت دركړي شي نو داخل شئ او كه په دري پيري كي هم اجازت درنكړي شي نو واپس شه. خلقو چې كله دده سره مكالمه شروع كړه نو ده پوري يي ټوقي شروع كړي. ابو سعيد خدري وايي ،ما ورته سر ور پورته كړو او ورته مي ووئيل كه ددي سنت باره كي تاته هرقسم سزا در كولى شي نو زه درسره شريك يم، ابو سعيد خدري وايي چې ابو موسي اشعر عمر فاروق ته ورغلو او خبر يي ورته وركړو نو عمر فاروق ووئيل ماته خو دي باره علم نه وو.

امام ترمذي وايي: په دي باب كي د علي اود ام طارق نه چي د سعد ازاده كړي وينځه ده هم احاديث وارد دي، دا حديث حسن صحيح دي اود جريري نوم سعيد بن اياس دى او ابو مسعود دده اسم كنيه ده او دا روايت دده نه علاوه راويانو د ابو نضره نه هم نقل كړي دى اود ابو نضره نوم منذر بن مالك بن قطعه دى

***************

٢٦٩١ـحَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا عِكْرِمَةُ بْنُ عَمَّارٍ، حَدَّثَنِي أَبُو

---

1 ـ صحيح مسلم/الآداب ٧ (٢١٥٣) (تحفة الأشراف: ٤٣٣٠)

زُمَيْلٍ، حَدَّثَنِي ابْنُ عَبَّاسٍ، حَدَّثَنِي عُمَرُ بْنُ الخَطَّابِ، قَالَ: "اسْتَأْذَنْتُ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثًا فَأَذِنَ لِي". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَأَبُو زُمَيْلٍ اسْمُهُ: سِمَاكٌ الحَنَفِيُّ، وَإِنَّمَا أَنْكَرَ عُمَرُ، عِنْدَنَا، عَلَى أَبِي مُوسَى حَيْثُ رَوَى عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ: "الِاسْتِئْذَانُ ثَلَاثٌ، فَإِذَا أُذِنَ لَكَ وَإِلَّا فَارْجِعْ" وَقَدْ كَانَ عُمَرُ اسْتَأْذَنَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثًا فَأَذِنَ لَهُ، وَلَمْ يَكُنْ عَلِمَ هَذَا الَّذِي رَوَاهُ أَبُو مُوسَى عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ: "فَإِنْ أُذِنَ لَكَ وَإِلَّا فَارْجِعْ".(1)

**ترجمه** دعمر بن الخطاب نه روايت دي فرمائي چې ما دري پيري درسول الله صلي الله عليه وسلم نه د داخليدو دپاره اجازت اوغوښتلو نو اجازت يې راته اوکړو

امام ترمذي وايي داحديث حسن غريب دي او دابو زميل نوم سماك الحنفي دي، زما په نزد په ابو موسي رضي الله عنه باندي دعمر فاروق د اعتراض او انکار دا وجه وه چې ابو موسي دا اوونيل رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي اجازت طلب کول دري پيري سنت دي که تاسو ته اجازت درکړي شي نو داخل شئ او که په دري پيري کي هم اجازت درنکړي شي نو واپس شه ، پاتي شوه دعمر رضي الله عنه خپله معامله نو هغه خو درسول الله نه دري پيري اجازت غوښتلي وو او اجازت يې ورته ورکړي وو او دهغه حديث باره کي ورته علم نه وو کوم چې ابو موسي رضي الله عنه بيان کړو که تاسو ته اجازت درکړي شي نو داخل شئ او که په دري پيري کي هم اجازت درنکړي شي نو واپس شه.

***************

## ٤ـ بابٌ مَا جَاءَ كَيْفَ رَدُّ السَّلَامِ

### دسلام جواب ورکول څنګه پکار دي

٢٦٩٢ـ حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ نُمَيْرٍ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ، عَنْ سَعِيدٍ المَقْبُرِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: دَخَلَ رَجُلٌ المَسْجِدَ وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَالِسٌ فِي نَاحِيَةِ المَسْجِدِ فَصَلَّى، ثُمَّ جَاءَ فَسَلَّمَ عَلَيْهِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "وَعَلَيْكَ، ارْجِعْ فَصَلِّ فَإِنَّكَ لَمْ تُصَلِّ". فَذَكَرَ الحَدِيثَ بِطُولِهِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. وَرَوَى يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ القَطَّانُ هَذَا عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ سَعِيدٍ المَقْبُرِيِّ فَقَالَ: عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ،

1 ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٠٤٩٩)

وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ "فَسَلَّمَ عَلَيْهِ". وَقَالَ: "وَعَلَيْكَ". قَالَ: وَحَدِيثُ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ أَصَحُّ. (1)

**ترجمه** ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دى چې يو سړى مسجد ته راغلو او رسول الله د مسجد په يو كوټ كي ناست وو ، نو دي كس مونځ يى اوكړو بيا د رسول الله صلي الله عليه وسلم په خدمت كي حاضر شو سلام يى واچولو. رسول الله صلي الله عليه وسلم دسلام جواب وركړو بيايى اوفرمائيل لاړ شه بيا مونځ اوكړه تا مونځ اونه كړو هغه لاړو دوباره يى مونځ اوكړو بيا راغلو دوباره يى سلام واچولو دغه شان يى درى خله اوكړل. .يعني درى خله لاړو راغلو او هر خل به يى سلام اچولو)

امام ترمذي وايي داحديث حسن دي يحي بن سعيد القطان دا حديث دعبدالله بن عمر نه او هغه دسعيد مقبري نه نقل كړي دي او په دي كي يي عن ابيه عن ابي هريرة واسطي نه دي ذكر كړي او په دي كي يي دا الفاظ نه دي ذكر كړي "فسلم عليه وقال وعليك" يعني هغه په رسول الله سلام واچولو او رسول الله اوفرمائيل په تا دي هم سلام وي ديحي بن سعيد حديث زيات صحيح دي.

**تشريح** : ثم جاء الي النبي صلي الله عليه وسلم فسلم ، يعني مونځ يي اوكړو او بيا درسول الله صلي الله عليه وسلم په خدمت كي حاضر شو او سلام يي اوكړو په بل روايت كي راخي (ثم جاء النبي صلي الله عليه وسلم فسلم عليه فقال رسول الله وعليك السلام.

فارجع فصل: واپس لاړ شه او مونځ اوكړه، ددينه نووي دا خبره ثابتوي چې لږي لږي وقفي سره بار بار سلام كول ضروري دي لكه چې ددي روايت نه معلوميږي "فانك لم تصل" يعني تا مونځ نه دى كړى علماء وائي ممكن ده چې دمونځ په واجباتو كي ورنه څه پاتي شوي وي

***************

## ٥_باب مَا جَاءَ فِي تَبْلِيغِ السَّلاَمِ

### دسلام ليږلو او دسلام درسيدلو بيان

٢٦٩٣_حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الْمُنْذِرِ الْكُوفِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُضَيْلٍ، عَنْ زَكَرِيَّا بْنِ أَبِي زَائِدَةَ، عَنْ عَامِرٍ الشَّعْبِيِّ، حَدَّثَنِي أَبُو سَلَمَةَ، أَنَّ عَائِشَةَ حَدَّثَتْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَهَا: "إِنَّ جِبْرِيلَ يُقْرِئُكِ السَّلاَمَ". قَالَتْ: وَعَلَيْهِ السَّلاَمُ وَرَحْمَةُ اللَّهِ وَبَرَكَاتُهُ. وَفِي الْبَابِ عَنْ رَجُلٍ مِنْ بَنِي نُمَيْرٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَقَدْ رَوَاهُ الزُّهْرِيُّ أَيْضًا.

---

1 _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٠٢٩٩)

عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ عَائِشَةَ. [1]

**ترجمه**. دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها بيان دي فرمائيل يي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم ماته اوفرمائيل جبرائيل عليه السلام په تا باندي سلام وئيلو نو هغي په جواب كي اووئيل وعليه السلام ورحمة الله وبركاته يعني په هغه دي هم سلام او د الله تعالي رحمتونه او بركتونه دي وي.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دبني نمير قبيلي ديو كس نه هم روايت وارد دي چې هغه يي دخپل پلار په واسطه دخپل نيكه نه نقل كړي دي، او زهري هم دا حديث دابو سلمه په واسطه دعائشه رضي الله عنها نه نقل كړي دي.

**لغات**: جبريل او جبرائيل: ديوي مشهوري فرشتي نوم دي كومي ته چې په پيغمبرانو وحي راوړل سپارلي شوي دي.

**تشريح**: جبريل ديو مشهوري فرشتي نوم دي چې پيغمبرانو ته به يي وحي راوړله

يقرء عليك السلام: يعني جبريل په تا باندي سلام وايي.

ددي نه دعائشه رضي الله عنها فضيلت معلوميږي، په امهات المومنين كي صرف ددوو په باره كي دجبريل سلام ثابت دي چې عائشه او خديجه رضي الله عنهما دي

"وعليه السلام" په دي جمله كي دغائبانه سلام جواب وركولو طريقه بيانولى شي چې په جواب كي به د وعليكم په ځاي باندي دغائب ضمير ذكر كوي دا هم معلومه شوه چې په جواب كي زائد دعائيه كلمه ذكر كول افضل دي.

****************

## ٦ــ باب مَا جَاءَ فِي فَضْلِ الَّذِي يَبْدَأُ بِالسَّلاَمِ

### په سلام اچولو كي دي دمخكي كيدونكي دفضيلت بيان

٢٦٩٤ــ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا قُرَّانُ بْنُ تَمَّامٍ الأَسَدِيُّ، عَنْ أَبِي فَرْوَةَ الرَّهَاوِيِّ يَزِيدَ بْنِ سِنَانٍ، عَنْ سُلَيْمِ بْنِ عَامِرٍ، عَنْ أَبِي أُمَامَةَ، قَالَ: قِيلَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ الرَّجُلاَنِ يَلْتَقِيَانِ أَيُّهُمَا يَبْدَأُ بِالسَّلاَمِ؟ فَقَالَ: "أَوْلاَهُمَا بِاللَّهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. قَالَ مُحَمَّدٌ أَبُو فَرْوَةَ الرَّهَاوِيُّ

---

[1] ــ اورده البخاري في الصحيح /بدء الخلق ٦ (٣٢١٧). وفضائل الصحابة ٣٠ (٣٧٦٨). والأدب ١١١ (٦٢٠١). والاستئذان ١٦ (٦٢٤٩). و١٩ (٦٢٥٣). مسلم/فضائل الصحابة ١٣ (٢٤٤٧). ابي داود/الأدب ١٦٦ (٥٢٣٢). النسائي/عشرة النساء ٣ (٣٩٦٣-٣٩٦٠). ابن ماجه/الأدب ١٢ (٣٦٩٥) (تحفة الأشراف: ١٧٧٢٧). واحمد (٦/١٤٦، ١٥٠، ٢٠٨، ٢٢٤). والدارمي/الاستئذان ١٠ (٢٦٩٠)

مُقَارِبُ الحَدِيثِ. إِلَّا أَنَّ ابْنَهُ مُحَمَّدَ بْنَ يَزِيدَ يَرْوِي عَنْهُ مَنَاكِيرَ. (1)

**ترجمه** دابو امامه باهلي رضي الله عنه نه روايت دى چې رسول الله صلي الله عليه وسلم نه تپوس اوشو چې دوه كسه مخامخ شي نو څوك به په سلام كې وړومبى كيږي؟ رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل دى دواړو كې چې څوك الله ته ډير نزدى وي

امام ترمذي وايي: داحديث حسن دي امام بخاري واني ابو فروه رهاوي راوي مقارب الحديث دي مگر دهغه خوي محمد بن يزيد به دهغه نه منكر روايتونه نقل كول.

**لغات** بدء دفتح نه بدءاً معني شروع كول ، او پيدا كول او صفت يي بادي او مبدي راځي

**تشريح**: په سلام كې دمخكې كيدو فضيلت مخاطبين هغه كسان دي څوك چې په لاره كې ديويل سره مخامخ كيږي په دې صورت كې دسلام كولو دحق په سلسله كې دوئ ديو بل سره برابر حيثيت لري لهذا په دوئ كې چې څوك مخكې والى اوكړي نو دى به دپورتني حديث دفضيلت مستحق اوگرځي.

دعمر رضي الله عنه په باره كې مروي دي چې فرمائيل به يي دري څيزونه داسي دي دكومو په اختيارولو چې دمسلمانانو تعلقات پخپل مينځ كې قوي كيږي او دهغي په سبب په محبت كې اضافه راځي، اول دملاقات په وخت كې په سلام كې مخكې كيدل، دويم چاته په داسي نوم اواز كول په كوم چې هغه خوشحاليږي، دريم كله چې مجلس ته راشي نو دعزت په طريقي سره ځاي پريخودل.

***************

## ٧_باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ إِشَارَةِ الْيَدِ بِالسَّلَامِ

### دلاس په اشاري سره سلام كول مكروه دي

٢٦٩٥_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا ابْنُ لَهِيعَةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " لَيْسَ مِنَّا مَنْ تَشَبَّهَ بِغَيْرِنَا، لَا تَشَبَّهُوا بِالْيَهُودِ، وَلَا بِالنَّصَارَى، فَإِنَّ تَسْلِيمَ الْيَهُودِ الْإِشَارَةُ بِالْأَصَابِعِ، وَتَسْلِيمَ النَّصَارَى الْإِشَارَةُ بِالْأَكُفِّ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ إِسْنَادُهُ ضَعِيفٌ، وَرَوَى ابْنُ الْمُبَارَكِ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنِ ابْنِ لَهِيعَةَ فَلَمْ يَرْفَعْهُ. (2)

**ترجمه**: دعبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٢٨٦٩)

[2] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٨٤٣٣)

وسلم فرمائيلي دي هغه كس زمونږ نه نه دي څوك چې زمونږ دغيرو سره مشابهت اختيار کړي، نه به ديهودو سره مشابهت اختياروئ او نه دنصاري سره ديهوديانو سلام کول دګوتو په اشاري سره وي او دنصاري سلام دورغوي په اشاري سره وي

امام ترمذي وايي. ددي حديث سند ضعيف دي، ابن مبارك دا حديث دابن لهيعه نه نقل کړي دي او مرفوع يي نه دي بيان کړي

****************

## ٨ـ باب مَا جَاءَ فِي التَّسْلِيمِ عَلَى الصِّبْيَانِ

### په ماشومانو دسلام اچولو بيان

٢٦٩٦ـ حَدَّثَنَا أَبُو الْخَطَّابِ زِيَادُ بْنُ يَحْيَى الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو عَتَّابٍ سَهْلُ بْنُ حَمَّادٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ سَيَّارٍ، قَالَ: كُنْتُ أَمْشِي مَعَ ثَابِتٍ الْبُنَانِيِّ فَمَرَّ عَلَى صِبْيَانٍ فَسَلَّمَ عَلَيْهِمْ. فَقَالَ ثَابِتٌ: كُنْتُ مَعَ أَنَسٍ فَمَرَّ عَلَى صِبْيَانٍ فَسَلَّمَ عَلَيْهِمْ، وَقَالَ أَنَسٌ: "كُنْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمَرَّ عَلَى صِبْيَانٍ فَسَلَّمَ عَلَيْهِمْ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ، رَوَاهُ غَيْرُ وَاحِدٍ، عَنْ ثَابِتٍ، وَرُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ، عَنْ أَنَسٍ. ([1])

حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ أَنَسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ.

**ترجمه** : دسيار بيان دي فرمائي چې زه دثابت بناني سره روان وم چې دماشومانو په خوا تير شو او په هغوئ يي سلام واچولو (ثابت خپله واقعه بيانوي فرمائي چې زه دانس رضي الله عنه سره چرته روان وم او هغه دماشومانو په خوا تيريدو وخت کي په هغوئ سلام واچولو او بيا هغه خپله واقعه بيان کړه چې زه رسول الله صلي الله عليه وسلم سره چرته روان وم کله چې رسول الله دماشومانو په خوا تيريدو نو سلام يي ورباندي واچولو

امام ترمذي وايي. داحديث صحيح دي داروايت متعددو راويانو دثابت نه نقل کړي دي، دا رنګي دا حديث په ډيرو سندونو دانس رضي الله عنه نه هم مروي دي

****************

## ٩ـ باب مَا جَاءَ فِي التَّسْلِيمِ عَلَى النِّسَاءِ

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٨٤٣٢)

## په ښځو دسلام اچولو بيان

٢٦٩٧ـ حَدَّثَنَا سُوَيْدٌ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ الْحَمِيدِ بْنُ بَهْرَامَ، أَنَّهُ سَمِعَ شَهْرَ بْنَ حَوْشَبٍ، يَقُولُ: سَمِعْتُ أَسْمَاءَ بِنْتَ يَزِيدَ تُحَدِّثُ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "مَرَّ فِي الْمَسْجِدِ يَوْمًا وَعُصْبَةٌ مِنَ النِّسَاءِ قُعُودٌ فَأَلْوَى بِيَدِهِ بِالتَّسْلِيمِ، وَأَشَارَ عَبْدُ الْحَمِيدِ بِيَدِهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، قَالَ أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ لَا بَأْسَ بِحَدِيثِ عَبْدِ الْحَمِيدِ بْنِ بَهْرَامَ، عَنْ شَهْرِ بْنِ حَوْشَبٍ، وَقَالَ مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ: شَهْرٌ حَسَنُ الْحَدِيثِ، وَقَوَّى أَمْرَهُ، وَقَالَ: إِنَّمَا تَكَلَّمَ فِيهِ ابْنُ عَوْنٍ ثُمَّ رَوَى عَنْ هِلَالِ بْنِ أَبِي زَيْنَبَ، عَنْ شَهْرِ بْنِ حَوْشَبٍ، أَنْبَأَنَا أَبُو دَاوُدَ الْمَصَاحِفِيُّ بَلْخِيٌّ، أَخْبَرَنَا النَّضْرُ بْنُ شُمَيْلٍ، عَنِ ابْنِ عَوْنٍ، قَالَ: إِنَّ شَهْرًا نَزَكُوهُ، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: قَالَ النَّضْرُ: نَزَكُوهُ أَيْ طَعَنُوا فِيهِ، وَإِنَّمَا طَعَنُوا فِيهِ لِأَنَّهُ وَلِيَ أَمْرَ السُّلْطَانِ. (1)

**ترجمه**. داسماء بنت يزيد رضي الله عنها بيان دي فرمائي چې يوه ورځ رسول الله صلى الله عليه وسلم په مسجد کې تير شو او هلته دښځو يوه ډله ناسته وه چنانچې رسول الله په هغوئ باندې دلاس په اشارې سلام واچولو.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن دی، او عبدالحميد راوي هم پخپل لاس اشاره اوکړه (چې داسې) امام احمد بن حنبل وائي دشهر بن حوشب په واسطه د عبدالحميد بن بهرام په روايت کې هيڅ حرج نشته، امام بخاري وائي شهر حسن الحديث دی، او په روايت دحديث قوي دی ليکن په ده باندې ابن عون کلام کړی دی، دابن عون قول دی "ان شهرا نزکوه" يعني په شهر باندې محدثينو تنقيد کړی دی، ابو داود وائي دنضر قول دی دنزکوه مطلب طعنوا فيه دی يعني اعتراضونه يې ورباندې کړي دي او جرحه يې ورباندې کړي ده چې هغه دسلطان (دحکومت ملازمت کولو).

### اسماء بنت يزيد رضي الله عنها حالات

نوم اسماء، کنيه ام سلمه، اسماء بنت يزيد بن السکن بن رافع دهجرت نه پس ديو څو ښځو سره درسول الله په خدمت کې حاضره شوه او اسلام يې قبول کړو دهجرت په اول کال چې دعائشه رضي الله عنها رخصتي کيدله نو کومو ښځو چې دا سنګار کړي وه په هغې کې يوه اسماء رضي الله عنها هم وه، دهجرت په پنځلسم کال په يرموک جنګ کې هغې دخپل خيمې په موګي نهه روميان وژلي وو (اصابه)

1ـ سنن ابي داود/الأدب ١٤٨ (٥٢٠٤) (تحفة الأشراف: ١٥٧٦٦)

علامه ابن حجر وائي كانت ذات العقل والدين يعني هغه په عقل او دين دواړو متصف وه او درسول الله صلي الله عليه وسلم خدمت يي كولو (مسند احمد)
اسماء رضي الله عنها ديره مهمان نوازه وه يو خل ورته شهر بن حوشب راغي او خوراك يي ورته پيش كړو شهر دخوړلو نه انكار اوكړو نو اسماء ورته دنبي كريم صلي الله عليه وسلم واقعه بيان كړه په هغي كي ديته اشاره وه چې دخوراك نه انكار كول مناسب نه دي نو په دي وخت كي شهر اووئيل بيابه هيڅ كله زه دا غلطي اونكړم (مسند احمد)
ددي دوفات دتاريخ باره كي اسماء الرجال والا خاموش دي او ٨١ روايات ورنه منقول دي
***************

## ١٠_باب مَا جَاءَ فِي التَّسْلِيمِ إِذَا دَخَلَ بَيْتَهُ

### خپل كورته د داخليدو وخت كي دسلام اچولو بيان

٢٦٩٨_حَدَّثَنَا أَبُو حَاتِمٍ الْبَصْرِيُّ الْأَنْصَارِيُّ مُسْلِمُ بْنُ حَاتِمٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الْأَنْصَارِيُّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ زَيْدٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يَا بُنَيَّ "إِذَا دَخَلْتَ عَلَى أَهْلِكَ فَسَلِّمْ يَكُونُ بَرَكَةً عَلَيْكَ وَعَلَى أَهْلِ بَيْتِكَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ. .[1]

**ترجمه** : دانس رضي الله عنه بيان دي فرمائي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم ماته اوفرمائيل اي بچيه كله چې دخپل كور خلقو ته ورځي نو سلام كوه دا سلام ستا دپاره او ستا دكور والاخلقو دپاره دخير او بركت باعث دي.
امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح غريب دي.
***************

## ١١_باب مَا جَاءَ فِي السَّلَامِ قَبْلَ الْكَلَامِ

### سلام اچول دخبروشروع كولو نه مخكي پكاردي

٢٦٩٩_حَدَّثَنَا الْفَضْلُ بْنُ الصَّبَّاحِ بَغْدَادِيٌّ، حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ زَكَرِيَّا، عَنْ عَنْبَسَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ زَاذَانَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: قَالَ

---

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٨٦٥)

رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "السَّلَامُ قَبْلَ الْكَلَامِ".[1]

**ترجمه** : دجابر بن عبدالله رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي سلام اچول دخبرو شروع کولو نه مخکي پکار دي

***************

وَبِهَذَا الْإِسْنَادِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَا تَدْعُوا أَحَدًا إِلَى الطَّعَامِ حَتَّى يُسَلِّمَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ مُنْكَرٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَسَمِعْت مُحَمَّدًا يَقُولُ: عَنْبَسَةُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ ضَعِيفٌ فِي الْحَدِيثِ ذَاهِبٌ، وَمُحَمَّدُ بْنُ زَاذَانَ مُنْكَرُ الْحَدِيثِ.[2]

**ترجمه** : په مذکوره سند دا سند هم دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه مروي دي دطعام دپاره يو کس هغه وخته پوري مه رابلئ چې څو پوري يي سلام اچولي نه وي.

امام ترمذي وايي: داحديث منکر دي او ددي سند نه علاوه په بل سند مونږ ته معلوم نه دي دامام بخاري نه مي اوريدلي دي وئيل يي چې عنبسه بن عبدالرحمن په باب دحديث کي ضعيف دي او محمد بن زاذان منکر الحديث دي.

***************

## ١٢_باب مَا جَاءَ فِي التَّسْلِيمِ عَلَى أَهْلِ الذِّمَّةِ

### په ذميانو دسلام اچولو بيان

٢٧٠٠_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ سُهَيْلِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَا تَبْدَءُوا الْيَهُودَ، وَالنَّصَارَى بِالسَّلَامِ، وَإِذَا لَقِيتُمْ أَحَدَهُمْ فِي الطَّرِيقِ فَاضْطَرُّوهُمْ إِلَى أَضْيَقِهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[3]

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي ، په نصرانيانو او يهوديانو سلام اچولو کي ورومبی کيږئ مه او چې لار

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٣٠٤٣)

[2] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٣٠٤٣)

[3] ـ انظر حديث رقم ١٦٠٢

کې درسره مخامخ شي (نو لار ورته مه پريدئ) په تنګ ځايی کې تيريدو باندی يی مجبور کړئ
امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي.
**لغات** : فاضطرهم معني مجبوره يي کړئ ، ضرَ ضراً فلان معني نقصان ورکول.
**تشريح: غير مسلم ته په سلام کې ابتداء کول ولې منع دي؟**
لاتبدؤوا اليهود والنصاري بالسلام ، "په يهودو او نصاري باندي په سلام کولو کې مه مخکې کيږئ" ددي وجه داده چې سلام کول په حقيقت کې يو اسلامي اعزاز دی او غيرمسلم ددي مستحق نه دي ددي مستحق صرف مسلمانان دي ياداچې سلام کول داکرام او احترام علامه ده اوغير مسلم ددي مستحق نه دی بعضي وائي چې په سلام اچولو سره الفت پيدا کيږي او دغير مسلمو سره الفت پيدا کول الله تعالي منع کړي دي.
"فاضطروه الي اضيقه" يعني په تنګه لاره يي تلو ته مجبور کړئ يعني يهود او نصاري کوم چې داسلام دشمنان دي او دين لره بدناموں غواړي که دوئ درسره په لاره کې مخامخ شي نو دومره دباؤ ورباندي ، اچوئ چې مخامخ لار درته پريږدي ددي وجه داده چې داسلام عظمت اوشوکت او دمسلمانانو دبدبه ظاهره شي.

***************

۲۷۰۱ـحَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْمَخْزُومِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: إِنَّ رَهْطًا مِنَ الْيَهُودِ دَخَلُوا عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوا: السَّامُ عَلَيْكَ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " عَلَيْكُمْ ". فَقَالَتْ عَائِشَةُ: بَلْ عَلَيْكُمُ السَّامُ وَاللَّعْنَةُ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يَا عَائِشَةُ " إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الرِّفْقَ فِي الأَمْرِ كُلِّهِ ". قَالَتْ عَائِشَةُ: أَلَمْ تَسْمَعْ مَا قَالُوا ؟ قَالَ: " قَدْ قُلْتُ: عَلَيْكُمْ ". وَفِي الْبَابِ عَنْ أَبِي بَصْرَةَ الْغِفَارِيِّ، وَابْنِ عُمَرَ، وَأَنَسٍ، وَأَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْجُهَنِيِّ، قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَائِشَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]
**ترجمه** : دعائشه رضي الله عنها نه روايت دی چې ديهوديانو يوي ډلي دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه دراتلو دپاره اجازت اوغوښتلو کله چې راغلل نو ويي وئي السام عليك (يعني

---

[1] ـ اورده البخاري في الجامع /استتابة المرتدين ۴ (۶۹۲۷) ، صحيح مسلم/السلام ۴ (۲۱۶۵) (تحفة الأشراف : ۱۶۴۳۴)
، ومسند احمد (۶/۱۹۹)

ستا دپاره دي مرګ وي، ما اوونيل بلکه ستاسو دپاره دي مرګ او په تاسو دي لعنت وي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل اي عائشي الله تعالي محبت او نرمي کونکی خوښوي ، په ټولو کارونو کې نرمي کول خوښوي ما اوونيل ايا تا وانوريدل چې هغوئ څه اوونيل رسول الله اوفرمائيل ما هم په جواب کې وعليکم ونيلي دي

امام ترمذي وايي: دعائشه حديث حسن صحيح دي او په دي باب کې دابوبصره غفاري، ابن عمر، انس، او ابو عبدالرحمن جهني رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

*****************

## ١٣ـ بَابُ مَا جَاءَ فِي السَّلَامِ عَلَى مَجْلِسٍ فِيهِ الْمُسْلِمُونَ وَغَيْرُهُمْ

### دمسلمانانو اوغير مسلمو په مختلط مجلس دسلام اچولو بيان

٢٧٠٢ـ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ، أَنَّ أُسَامَةَ بْنَ زَيْدٍ أَخْبَرَهُ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "مَرَّ بِمَجْلِسٍ وَفِيهِ أَخْلَاطٌ مِنَ الْمُسْلِمِينَ وَالْيَهُودِ فَسَلَّمَ عَلَيْهِمْ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه**: داسامه بن زيد رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم ديو مجلس په خوا کې تير شو په کوم کې چې مسلمانانو او مشرکانو خبري اترې کولي او هلته ناست وو او بت پرست او يهوديان هم وو نو رسول الله صلي الله عليه وسلم دوئ ته سلام اوکړو

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي.

*****************

## ١٤ـ بَابُ مَا جَاءَ فِي تَسْلِيمِ الرَّاكِبِ عَلَى الْمَاشِي

### په پياده تلونکي دسور دسلام اچولو بيان

٢٧٠٣ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، وَإِبْرَاهِيمُ بْنُ يَعْقُوبَ، قَالَا: حَدَّثَنَا رَوْحُ بْنُ عُبَادَةَ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ الشَّهِيدِ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "يُسَلِّمُ الرَّاكِبُ عَلَى الْمَاشِي، وَالْمَاشِي عَلَى الْقَاعِدِ، وَالْقَلِيلُ عَلَى الْكَثِيرِ وَزَادَ ابْنُ الْمُثَنَّى فِي حَدِيثِهِ وَيُسَلِّمُ الصَّغِيرُ عَلَى الْكَبِيرِ". وفي الباب عن عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ شِبْلٍ، وَفَضَالَةَ بْنِ عُبَيْدٍ، وَجَابِرٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا

---

[1] ـ اورده البخاري في الصحيح /تفسير آل عمران ١٥ (٣٥٦٦)، والمرضى ١٥ (٥٦٦٣)، والأدب ١١٥ (٦٢٠٧)، والاستئذان ٢٠ (٦٢٥٤)، صحيح مسلم/الجهاد ٤٠ (١٧٩٨) (تحفة الأشراف: ١٠٩)، ومسند احمد (٥/٢٠٣)

حَدِيثٌ قَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. وقَالَ أَيُّوبُ السَّخْتِيَانِيُّ، وَيُونُسُ بْنُ عُبَيْدٍ، وَعَلِيُّ بْنُ زَيْدٍ: إِنَّ الْحَسَنَ لَمْ يَسْمَعْ مِنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. (١)

**ترجمه** : دابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي سور به په پیاده سلام اچوي او پیدا روان به په ناست سلام اچوي او لږ به په ډیرو سلام اچوي.او د ابن المثني په روايت کې ورسره دا جمله هم ده کشر به په مشر سلام اچوي.

امام ترمذي وايي. داحديث دابوهريره رضي الله عنه نه په متعددو سندونو مروي دي، ايوب سختياني، يونس بن عبيد او علي بن يزيد وائي چې حسن بصري دابوهريره رضي الله عنه نه اوريدل نه دي کړي، او په دي باب کي دعبدالرحمن بن شبل ، فزاله بن عبيد . او جابر رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

لغات : الراكب: سور، ركب دسمع نه ركوبا ومركبا معني ختل او سوريدل، الماشي: پيدل تلونكي ، مشي يمشي مشيا دضرب نه په معني دتلو دي ، القاعد : ناست قعد قعودا ومقعدا دولاړي نه کيناستل، اقعاد معني کينول باب افعال دي په مزيدو کې دنورو بابونو نه هم راځي

تشريح : يسلم الراكب علي الماشي، يعني سورلئ والا به په پيدل باندي سلام اچوي علماء وائي چې شريعت دا حکم انسان ته دتواضع او انکسارئ دتعليم دپاره کړی دی چې سورلئ والا به په پيدل باندي فخر نه کوي ځکه شريعت هغه ته حکم کړی دی چې په سلام کې به مخکې کيږي چې عاجزي او انکساري پکې راشي همدارنګې روان سړی په ناست سړي فوقيت لري نو په دي مناسبت کې هغه هم دناست نه په سلام کې مخکې کيږي.

القليل علي الكثير ، يعني څوك چې په تعداد کې کم وي هغوئ به په زياتو باندي سلام اچوي دوئ لره پکار دي چې دزياتو احترام اوکړي دغيردينو پشان طريقه پکار نه ده چې ادني به اعلي ته سلام کوي.

*****************

٢٧٠٤_حَدَّثَنَا سُوَيْدُ بْنُ نَصْرٍ، أَنْبَأَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، أَنْبَأَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ هَمَّامِ بْنِ مُنَبِّهٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " يُسَلِّمُ الصَّغِيرُ عَلَى الْكَبِيرِ، وَالْمَارُّ عَلَى الْقَاعِدِ، وَالْقَلِيلُ عَلَى الْكَثِيرِ "، قَالَ: وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (٢)

---

[1] _ اورده البخاري في /الاستئذان ٣ (٦٢٣١) ، و٥ (٦٢٣٢) ، و٦ (٦٢٣٣) ، و٤ (٦٢٣٤) . صحيح مسلم/السلام ١ (٢١٦٠. ٩٢) . سنن ابي داود/ الأدب ١٣٥ (٥١٩٨) . ٥١٩٩) (تحفة الأشراف : ١٢٢٥١) . و مسند احمد (٢/٢٢٥ . ٥١٠)

[2] _ انظر ماقبله (تحفة الأشراف : ١٣٦٤٩)

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كشر به په مشر سلام اچوي روان به په ناست سلام اچوي او لږ به په ډيرو سلام اچوي
امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي

****************

٢٧٠٥_حَدَّثَنَا سُوَيْدُ بْنُ نَصْرٍ. أَنْبَأَنَا عَبْدُ اللهِ. أَنْبَأَنَا حَيْوَةُ بْنُ شُرَيْحٍ. أَخْبَرَنِي أَبُو هَانِئٍ اسْمُهُ: حُمَيْدُ بْنُ هَانِئٍ الْخَوْلَانِيُّ. عَنْ أَبِي عَلِيٍّ الْجَنْبِيِّ. عَنْ فَضَالَةَ بْنِ عُبَيْدٍ. أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "يُسَلِّمُ الْفَارِسُ عَلَى الْمَاشِي. وَالْمَاشِي عَلَى الْقَائِمِ. وَالْقَلِيلُ عَلَى الْكَثِيرِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَأَبُو عَلِيٍّ الْجَنْبِيُّ اسْمُهُ: عَمْرُو بْنُ مَالِكٍ. ([1])

**ترجمه** دفضاله بن عبيد رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي سور به په پياده تلونكي سلام اچوي او روان به په ولاړ سلام اچوي او لږ به په ډيرو سلام اچوي.
امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي.

****************

## ١٥_باب مَا جَاءَ فِي التَّسْلِيمِ عِنْدَ الْقِيَامِ وَعِنْدَ الْقُعُودِ

### دمجلس نه دروانيدو او مجلس ته د داخليدو وخت كي دسلام كولو بيان

٢٧٠٦_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ. حَدَّثَنَا اللَّيْثُ. عَنِ ابْنِ عَجْلَانَ. عَنْ سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ. عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "إِذَا انْتَهَى أَحَدُكُمْ إِلَى مَجْلِسٍ فَلْيُسَلِّمْ. فَإِنْ بَدَا لَهُ أَنْ يَجْلِسَ فَلْيَجْلِسْ. ثُمَّ إِذَا قَامَ فَلْيُسَلِّمْ فَلَيْسَتِ الْأُولَى بِأَحَقَّ مِنَ الْآخِرَةِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ أَيْضًا عَنِ ابْنِ عَجْلَانَ. عَنْ سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ. عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. ([2])

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كله چې په تاسو كي څوك يو مجلس ته راورسيږي نو سلام دي اوكړي بيا كه دده زړه كيناستل

---

[1] _ سنن النسائي/عمل اليوم والليلة ١٢٧ (٣٣٨) (تحفة الأشراف: ١١٠٣٢). وسنن الدارمي/الاستئذان ٦ (٢٦٤٦)

[2] _ ابي داود/ الأدب ١٥٠ (٥٢٠٨). سنن النسائي/عمل اليوم والليلة ١٣١ (٣٦٩) (تحفة الأشراف: ١٣٠٣٨). و مسند احمد (٢/٢٣٠، ٢٨٧، ٤٣٩)

غواړي نو کيناستي شي او کله چې دي دروانيدو دپاره اودريږي نو سلام دي اوکړي او اولني سلام د دويم سلام نه زيات ضروري نه دي
امام ترمذي وايي: داحديث حسن دي دا حديث دابن عجلان په روايت هم مروي دي او ابن عجلان په سند د سعيد المقبري عن ابيه عن ابي هريرة عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل کړي دي.

***************

## ١٦ـ بَاب مَا جَاءَ فِي الِاسْتِئْذَانِ قُبَالَةَ الْبَيْتِ

### دکور د دروازې سره مخامخ اودريدو حالت کي داجازت غوښتلو بيان

٢٧٠٧ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ. حَدَّثَنَا ابْنُ لَهِيعَةَ. عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي جَعْفَرٍ. عَنْ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْحُبُلِيِّ. عَنْ أَبِي ذَرٍّ. قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَنْ كَشَفَ سِتْرًا فَأَدْخَلَ بَصَرَهُ فِي الْبَيْتِ قَبْلَ أَنْ يُؤْذَنَ لَهُ فَرَأَى عَوْرَةَ أَهْلِهِ فَقَدْ أَتَى حَدًّا لَا يَحِلُّ لَهُ أَنْ يَأْتِيَهُ. لَوْ أَنَّهُ حِينَ أَدْخَلَ بَصَرَهُ اسْتَقْبَلَهُ رَجُلٌ فَفَقَأَ عَيْنَيْهِ مَا غَيَّرْتُ عَلَيْهِ. وَإِنْ مَرَّ الرَّجُلُ عَلَى بَابٍ لَا سِتْرَ لَهُ غَيْرِ مُغْلَقٍ فَنَظَرَ. فَلَا خَطِيئَةَ عَلَيْهِ. إِنَّمَا الْخَطِيئَةُ عَلَى أَهْلِ الْبَيْتِ ". وفي الباب عن أَبِي هُرَيْرَةَ. وَأَبِي أُمَامَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ. لَا نَعْرِفُهُ مِثْلَ هَذَا إِلَّا مِنْ حَدِيثِ ابْنِ لَهِيعَةَ. وَأَبُو عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْحُبُلِيُّ اسْمُهُ: عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يَزِيدَ.[1]

**ترجمه**: دابوذر رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په کور کي د داخليدو دپاره داجازت غوښتلو نه مخکي چې څوك ديو کور د دروازې په پرده کي داخل شي او دکور والادزنانه پرده يي ختمه کړه نو ده داسي کار اوکړو د کوم کول چې دده دپاره حلال نه وو او کوم وخت کي چې ده خپل نظر دننه داخل کړي وو کاش چې دغه وخت کي دده مخامخ کيدل دداسي کس سره شوي وي چې دده دواړه سترګي يي ويستلي وي نو ما به دهغه په حق کي دخون بها فيصله نه وه کړي او که يو کس دداسي دروازې په مخه تيريږي کومي ته چې پرده لګيدلي نه وي او دروازه بنده هم نه وي او بيا هم دتيريدونکي نظر اولګي نو په دي کي دتيريدونکي څه ګناه نشته په دي کي ګناه او غلطي دکور والاده.
امام ترمذي وايي: داحديث غريب دي دا حديث صرف دابن لهيعه په واسطه مروي دي، او په دي باب کي دابوهريره او ابو امامه رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي.

---

[1] ـ (تحفة الأشراف: ١١٩٦٠). و مسند احمد (٥/١٨١)

***************

## ١٧_باب مَنِ اطَّلَعَ فِي دَارِ قَوْمٍ بِغَيْرِ إِذْنِهِمْ

### څوک چې دچا کورته بغير اجازت غوښتلو داخل شي

٢٧٠٨_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الوَهَّابِ الثَّقَفِيُّ، عَنْ حُمَيْدٍ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "كَانَ فِي بَيْتِهِ فَاطَّلَعَ عَلَيْهِ رَجُلٌ فَأَهْوَى إِلَيْهِ بِمِشْقَصٍ فَتَأَخَّرَ الرَّجُلُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([1])

**ترجمه** . دانس رضي الله عنه نه مروي دي چې يو ځل نبي كريم صلي الله عليه وسلم پخپل كور كي موجود وو او دي دوران كي يو كس ددوئ كور ته راودانګل نو رسول الله په يو غشي پسي ورمنډه كړل (چې دده ستركي ورباندي اوباسي) ليكن هغه فورا شاته وروسته شو.
امام ترمذي وايي. داحديث حسن صحيح دي.

***************

٢٧٠٩_حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ. حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ السَّاعِدِيِّ، أَنَّ رَجُلًا اطَّلَعَ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ جُحْرٍ فِي حُجْرَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَمَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِدْرَاةٌ يَحُكُّ بِهَا رَأْسَهُ. فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَوْ عَلِمْتُ أَنَّكَ تَنْظُرُ لَطَعَنْتُ بِهَا فِي عَيْنِكَ إِنَّمَا جُعِلَ الِاسْتِئْذَانُ مِنْ أَجْلِ البَصَرِ". وفي الباب عن أَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([2])

**ترجمه** . دسهل بن سعد رضي الله عنه نه مروي دي چې د رسول الله صلي الله عليه وسلم دكور په يو سوري كي يو كس ورودانګل او دغه وخت كي درسول الله صلي الله عليه وسلم په لاس كي يو لركي وو چې سر يي ورباندي ګرولو رسول الله اوفرمائيل كه چري ماته مخكي معلومه وي چې ته دلته رادانګي نو دا لركي به ما ستا په ستركو كي درمنډلي وو رايا تاته پته نشته،

[1] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /الاستئذان ١١ (٦٢٤٢) . والديات ١٥ (٦٨٨٠) . و ٢٣ (٦٩٠٠). صحيح مسلم /الآداب ٩ (٢١٥٤) . سنن ابي داود/ الأدب ١٣٦ (٥١٧١) . سنن النسائي/القسامة ٢٦ (٤٨٦٢) (تحفة الأشراف : ٤٢١) و مسند احمد (٣/١٠٨، ١٤٠، ٢٣٩، ٢٤٢)

[2] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /اللباس ٧٥ (٥٩٢٤) والاستئذان ١١ (٦٢٤١) . والديات ٢٣ (٦٩٠١) . صحيح مسلم/الآداب ٩ (٢١٥٦) . سنن النسائي/القسامة ٤٢ (٤٨٦٣) (تحفة الأشراف : ٤٨٠٦) . و مسند احمد (٥/٣٣٠، ٣٣٥)

داجازت غوښتلو حکم د سترګو د ضرر نه د بچ کیدو دپاره دی
امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي او په دي باب کي دابوهريره رضي الله عنه نه هم روايت وارد دي

****************

## ١٨_باب مَا جَاءَ فِي التَّسْلِيمِ قَبْلَ الِاسْتِئْذَانِ

### یو کورته د داخلیدو دپاره داجازت غوښتلو نه مخکي سلام کولو بیان

٢٧١٠_حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ وَكِيعٍ، حَدَّثَنَا رَوْحُ بْنُ عُبَادَةَ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، أَخْبَرَنِي عَمْرُو بْنُ أَبِي سُفْيَانَ، أَنَّ عَمْرَو بْنَ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ صَفْوَانَ أَخْبَرَهُ، أَنَّ كَلَدَةَ بْنَ حَنْبَلٍ أَخْبَرَهُ، أَنَّ صَفْوَانَ بْنَ أُمَيَّةَ بَعَثَهُ بِلَبَنٍ وَلِبَإٍ وَضَغَابِيسَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِأَعْلَى الْوَادِي، قَالَ: فَدَخَلْتُ عَلَيْهِ وَلَمْ أُسَلِّمْ وَلَمْ أَسْتَأْذِنْ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "ارْجِعْ فَقُلِ السَّلَامُ عَلَيْكُمْ أَأَدْخُلُ؟" وَذَلِكَ بَعْدَ مَا أَسْلَمَ صَفْوَانُ، قَالَ عَمْرٌو: وَأَخْبَرَنِي بِهَذَا الْحَدِيثِ أُمَيَّةُ بْنُ صَفْوَانَ وَلَمْ يَقُلْ سَمِعْتُهُ مِنْ كَلَدَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ ابْنِ جُرَيْجٍ، وَرَوَاهُ أَبُو عَاصِمٍ أَيْضًا، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ مِثْلَ هَذَا، وَضَغَابِيسُ هُوَ: حَشِيشٌ يُؤْكَلُ.[1]

**ترجمه** کلده بن حنبل رضي الله عنه وائي چي صفوان بن اميه شوده او دڅه خوراك څيزونه راکړل او نبي کريم صلیالله علیه وسلم ته يي اوليږل او رسول الله په دغه وخت کي دمکي په اوچته حصه کي وو ما ورنه اجازت اوغوښتلو اوسلام کولو نه بغير ورداخل شوم نورسـول الله اوفرمائيل واپس بهر لاړ شه او بيا داسي اووايه السلام عليكم ايا زه داخليدي شم؟ دا دغه وخت خبره ده کله چي صفوان اسلام قبول کړي وو، عمرو بن عبدالله وائي دا حديت ماته اميه بن صفوان بيان کړي دي ليکن هغه دا ونه ونيلي چي ما دا حديث دکلده نه اوريدلي دي
امام ترمذي وايي داحديث حسن غريب دي دا مونږ صرف دابن جريج په روايت پيژنو. ابو عاصم هم دابن جريرج نه ددي هم معني روايت نقل کړي دي

### دکلده بن حنبل رضي الله عنه حالات

نوم کلده دپلار نوم حنبل دبني اسلم سره تعلق لري دمشهورصحابي صفوان بن اميه مو: شريکی ورور دی دا دمعمر بن حبيب غلام وو چي په يمن کي په عکاز ښار کي يي اخستلی وو

[1] _ سنن ابي داود/الأدب ١٢٧ (٥١٧٦) (تحفة الأشراف: ١١١٦٤) ، و مسند احمد (٣/٤١٣)

اوبيايي حليف اوګرځولو هميشه په مکه کي اوسيدلی دی محدثين وائي چې وفات شوی هم په مکه کي دی

****************

٢٧١١ـ حَدَّثَنَا سُوَيْدُ بْنُ نَصْرٍ. أَخْبَرَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ. أَنْبَأَنَا شُعْبَةُ. عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ. عَنْ جَابِرٍ. قَالَ: " اسْتَأْذَنْتُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي دَيْنٍ كَانَ عَلَى أَبِي. فَقَالَ: مَنْ هَذَا؟ فَقُلْتُ: أَنَا. فَقَالَ: أَنَا أَنَا كَأَنَّهُ كَرِهَ ذَلِكَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([1])

**ترجمه** دجابر رضي الله عنه بيان دي فرمائي چې ما دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه ديو قرض باره کي کوم چې زما په پلار وو دخبرو کولو دپاره تپوس کولو متعلق دداخليدو اجازت اوغوښتلو نورسول الله اوونيل څوك يي؟ ما اوونيل زه يم رسول الله اوفرمائيل زه هم زه يم (ددي مطلب دادي زه يم ونيل نه دي پکار خپل نوم اخستل ضروري دي)

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي.

****************

## ١٩ـ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ طُرُوقِ الرَّجُلِ أَهْلَهُ لَيْلاً

## دشپې وخت کي دسفر نه کورته دراتلو دکراهت بيان

٢٧١٢ـ أَخْبَرَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ. حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ. عَنِ الأَسْوَدِ بْنِ قَيْسٍ. عَنْ نُبَيْحٍ الْعَنَزِيِّ. عَنْ جَابِرٍ. أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " نَهَاهُمْ أَنْ يَطْرُقُوا النِّسَاءَ لَيْلاً ". وفي الباب عن أَنَسٍ. وَابْنِ عُمَرَ. وَابْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَقَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ. عَنْ جَابِرٍ. عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَقَدْ رُوِيَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ. أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " نَهَاهُمْ أَنْ يَطْرُقُوا النِّسَاءَ لَيْلاً ". قَالَ: فَطَرَقَ رَجُلاَنِ بَعْدَ نَهْيِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَوَجَدَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مَعَ امْرَأَتِهِ رَجُلاً. ([2])

**ترجمه** دجابر رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم خلق

---

[1] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /الاستئذان ١٤(٦٢٥٠). صحيح مسلم/الآداب ٨ (٢١٥٥). سنن ابي داود/الأدب ١٣٩ (٥١٨٤). سنن ابن ماجه/الأدب ١٤ (٣٧٠٩) (تحفة الأشراف : ٣٠٢٢). و مسند احمد (٣/٢٩٨). وسنن الدارمي/الاستئذان ٢(٢٦٠٣)

[2] اورده البخاري في اجامع الصحيح /العمرة١٦(١٨٠١). والنكاح١٢٠(٣٣ ٤) صحيح مسلم/الإمارة٥٦(١٨٣/١٩٢٨)

دشپي په وخت كي كورونو ته دراتلو نه منع كړي دي.
امام ترمذي وايي. دا حديث حسن صحيح دي، دا حديث په يو څو سندونو دجابر په واسطه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه مروي دي، او په دي باب كي دانس، ابن عمر، او ابن عباس رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي دابن عباس نه دا هم مروي دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم خلق دشپي په وخت كي خپلو ښځو ته دراتلو نه منع كړي دي دابن عباس قول دي درسول الله ددي ممانعت باوجود يو خل دوه كسان دشپي كورونو ته واپس راغلل نو ددي نافرمانئ دا نتيجه راوختله چې په دي دواړو كي هر يو دخپلي خپلي ښځي سره پردي سړي اوموندلو.

***************

## ٢٠ـ باب مَا جَاءَ فِي تَتْرِيبِ الْكِتَابِ

### دخط دليكلو نه پس په خط باندي دخاوري اچولو بيان

٢٧١٣ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا شَبَابَةُ. عَنْ حَمْزَةَ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " إِذَا كَتَبَ أَحَدُكُمْ كِتَابًا فَلْيُتَرِّبْهُ. فَإِنَّهُ أَنْجَحُ لِلْحَاجَةِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ مُنْكَرٌ لَا نَعْرِفُهُ عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. قَالَ: وَحَمْزَةُ هُوَ عِنْدِي ابْنُ عَمْرٍو النَّصِيبِيُّ، هُوَ ضَعِيفٌ فِي الْحَدِيثِ. [1]

**ترجمه** . دجابر رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كله چې په تاسو كي څوك يو تحرير اوليكي نو د ليكلو نه پس په دي باندي خاوره اچول پكار دي ځكه چې په دي طريقه په دي باندي دحاجت پوره كيدو زياته توقع ده.
امام ترمذي وايي. داحديث منكر دي دا مونږ صرف په همدي سند دابو زبير په واسطه پيژنو، او حمزه زمونږ په نزد دعمرو نصيبي خوي دي او هغه دحديث بيانولو په باب كي ضعيف گڼلي شوي دي

***************

## ٢١ـ باب مِنْهُ

### دسابقه باب متعلق يو بل باب

٢٧١٤ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ الْحَارِثِ، عَنْ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ زَاذَانَ، عَنْ أُمِّ سَعْدٍ،

---

[1] ـ سنن ابن ماجه/الأدب ٣٩ (٣٧٧٤) (تحفة الأشراف: ٢٦٩١)

عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، قَالَ: دَخَلْتُ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَبَيْنَ يَدَيْهِ كَاتِبٌ فَسَمِعْتُهُ يَقُولُ: " ضَعِ الْقَلَمَ عَلَى أُذُنِكَ فَإِنَّهُ أَذْكَرُ لِلْمُمْلِي ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَهُوَ إِسْنَادٌ ضَعِيفٌ، وَعَنْبَسَةُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، وَمُحَمَّدُ بْنُ زَاذَانَ يُضَعَّفَانِ فِي الْحَدِيثِ. [1]

**ترجمه** · دزيد بن ثابت رضي الله عنه بيان دي فرماني چې زه نبي كريم صلي الله عليه وسلم ته وروسيدم نو دهغه په وړاندي يو كاتب ناست وو ما واوريدل چې رسول الله ورته فرمائيل ته خپل قلم په غوږ كي ايخودلي ساته څكه چې په دي طريقه ليكونكو ته يادهاني كيږي.
امام ترمذي وايي. داحديث غريب دي دا مونږ صرف په همدي سند پيژنو او دا سند ضعيف دي، عنبسه بن عبدالرحمن او محمد بن زاذان دواړه دحديث په باب كي ضعيف دي.

***************

## ٢٢_بَاب مَا جَاءَ فِي تَعْلِيمِ السُّرْيَانِيَّةِ

### دسرياني ژبي زده كولو بيان

٢٧١٥_حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ أَبِي الزِّنَادِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ خَارِجَةَ بْنِ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، عَنْ أَبِيهِ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، قَالَ: " أَمَرَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ أَتَعَلَّمَ لَهُ كَلِمَاتٍ مِنْ كِتَابِ يَهُودَ، قَالَ: إِنِّي وَاللَّهِ مَا آمَنُ يَهُودَ عَلَى كِتَابٍ، قَالَ: فَمَا مَرَّ بِي نِصْفُ شَهْرٍ، حَتَّى تَعَلَّمْتُهُ لَهُ، قَالَ: فَلَمَّا تَعَلَّمْتُهُ كَانَ إِذَا كَتَبَ إِلَى يَهُودَ كَتَبْتُ إِلَيْهِمْ، وَإِذَا كَتَبُوا إِلَيْهِ قَرَأْتُ لَهُ كِتَابَهُمْ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ هَذَا الْوَجْهِ، عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، رَوَاهُ الْأَعْمَشُ، عَنْ ثَابِتِ بْنِ عُبَيْدٍ الْأَنْصَارِيِّ، عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، قَالَ: أَمَرَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " أَنْ أَتَعَلَّمَ السُّرْيَانِيَّةَ ". [2]

**ترجمه** · دزيد بن ثابت رضي الله عنه بيان دي فرماني چې رسول الله صلي الله عليه وسلم ماته حكم اوكړو چې زه دهغوئ دپاره ديهوديانو تحريري طريقه زده كړه، رسول الله اوفرمائيل په الله قسم زه ديهوديانو په تحرير اعتماد نه كوم چنانچې نيمه مياشت لاته وه تيره شوي چې

[1] ـ تفرد به المؤلف (التحفة: ٣٧٢٢)

[2] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /الأحكام ٤٠ (٧١٩٥) (تعليقاً) . سنن ابي داود/ العلم ٢ (٣٦٤٥) (تحفة الأشراف: ٣٧٠٢) . و مسند احمد (٥/١٨٦)

رسول الله صلي الله عليه وسلم ددوئ ژبه زده كړه راوي وائي كله چې مارسول الله ته ددوئ دژبې تعليم وركړو نو چې كله به يې يهوديانوته خط ليكلو نو ما به ورله خط اوليكلو او چې كله به ورته دهغوئ خط راغي نو دهغوئ خط به مې ورته اولوستلو

امام ترمذي وايي. داحديث حسن صحيح دي دا حديث ددې سند نه علاوه هم په نورو سندونو دزيد بن ثابت رضي الله عنه نه مروي دي داروايت اعمش دثابت بن عبيد انصاري په واسطه دزيد بن ثابت رضي الله عنه نه نقل كړي دي زيد بن ثابت وائي رسول الله صلي الله عليه وسلم ماته حكم اوكړو چې زه سرياني ژبه زده كړم.

****************

## ٢٣ـ باب فِي مُكَاتَبَةِ الْمُشْرِكِينَ

### مشركانو ته دخطونو ليږلو بيان

٢٧١٦ـ حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ حَمَّادٍ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الأَعْلَى، عَنْ سَعِيدٍ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَتَبَ قَبْلَ مَوْتِهِ إِلَى كِسْرَى، وَإِلَى قَيْصَرَ، وَإِلَى النَّجَاشِيِّ، وَإِلَى كُلِّ جَبَّارٍ، يَدْعُوهُمْ إِلَى اللَّهِ، وَلَيْسَ بِالنَّجَاشِيِّ الَّذِي صَلَّى عَلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ.[1]

**ترجمه** دانس بن مالك رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم دخپل وفات كيدو نه مخكې كسري او قيصر او نجاشي او هر سركش او متكبر بادشاه نه دعوتي خطونه اوليږل، خو ددې نجاشي نه (هغه نجاشي مراد نه دي چې نوم يې اصحمه دې) په چا باندې چې رسول الله صلي الله عليه وسلم غائبانه جنازه كړي وه.

امام ترمذي وايي. داحديث حسن صحيح غريب دي.

****************

## ٢٤ـ باب مَا جَاءَ كَيْفَ يُكْتَبُ إِلَى أَهْلِ الشِّرْكِ

### مشركانو ته به خطونه په كوم انداز ليكلي كيږي

٢٧١٧ـ حَدَّثَنَا سُوَيْدُ بْنُ نَصْرٍ، أَنْبَأَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، أَنْبَأَنَا يُونُسُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، أَخْبَرَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّهُ أَخْبَرَهُ، أَنَّ أَبَا سُفْيَانَ بْنَ حَرْبٍ أَخْبَرَهُ، أَنَّ

---

[1] ـ صحيح مسلم/الجهاد ٢٧ (١٧٧٤) (تحفة الأشراف: ١١٦٩)، ومسند احمد (٣/١٣٦)

هِرَقْلَ أَرْسَلَ إِلَيْهِ فِي نَفَرٍ مِنْ قُرَيْشٍ وَكَانُوا تُجَّارًا بِالشَّامِ، فَأَتَوْهُ فَذَكَرَ الحَدِيثَ. قَالَ: ثُمَّ دَعَا بِكِتَابِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُرِئَ فَإِذَا فِيهِ "بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ. مِنْ مُحَمَّدٍ عَبْدِ اللَّهِ وَرَسُولِهِ إِلَى هِرَقْلَ عَظِيمِ الرُّومِ. السَّلَامُ عَلَى مَنِ اتَّبَعَ الهُدَى أَمَّا بَعْدُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَأَبُو سُفْيَانَ اسْمُهُ: صَخْرُ بْنُ حَرْبٍ.[1]

**ترجمه** : دابن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي فرمائي چې ابوسفيان بن حرب رضي الله عنه راته اوونيل چې زه دقريشو دځه تاجرانو سره شام ته تلي وم چې هرقل (دشام) بادشاه اوغوښتلو نو مونږ ټول ورته ورغلو او بيا ابو سفيان پوره حديث بيان کړو ونيل يې چې بيا هرقل درسول الله صلي الله عليه وسلم خط راوغوښتلو او ولوستلي شو پس په دي کي دا مضمون وو " بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ. مِنْ مُحَمَّدٍ عَبْدِ اللَّهِ وَرَسُولِهِ إِلَى هِرَقْلَ عَظِيمِ الرُّومِ. السَّلَامُ عَلَى مَنِ اتَّبَعَ الهُدَى أَمَّا بَعْدُ " يعني زه شروع کوم دالله په نوم چې انتهائي عام مهربان او خاص رحم کونکي دي داخط دمحمد (صلي الله عليه وسلم) دطرفه ليږلي کيږي چې دالله تعالي بنده او دهغه رسول دي او دهرقل په نوم چې دروم بادشاه دي ليږلي کيږي سلامتي دي وي په هغه چا باندي چې پيروي دهدايت اوکړي امابعد دحمد او نعت نه پس .الخ
امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي او دابوسفيان نوم صخر بن حرب دي.

***************

## ٢٥ـ باب مَا جَاءَ فِي خَتْمِ الْكِتَابِ

### په خط باندي دمهر لګولو بيان

٢٧١٨ـ حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ، أَخْبَرَنَا مُعَاذُ بْنُ هِشَامٍ، حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: لَمَّا أَرَادَ نَبِيُّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَكْتُبَ إِلَى العَجَمِ قِيلَ لَهُ: "إِنَّ العَجَمَ لَا يَقْبَلُونَ إِلَّا كِتَابًا عَلَيْهِ خَاتَمٌ فَاصْطَنَعَ خَاتَمًا. قَالَ: فَكَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَى بَيَاضِهِ فِي كَفِّهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى:

---

[1] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /بدء الوحي ١ (٧) ، والجهاد ١٠٢ (٢٩٤١) ، وتفسير آل عمران ٤ (٤٥٥٣) ، صحيح مسلم /الجهاد ٢٧ (١٧٧٣) سنن ابي داود/الأدب ١٢٨ (٥١٣٦) (تحفة الأشراف : ٤٨٥٠)

هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (1)

**ترجمه** دانس رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چې کله به رسول الله صلي الله عليه وسلم عجمي بادشاهانو ته خط ليږلو نو ورته به اووئيلي شول چې عجميان دمهر شوي خط نه علاوه بل خط نه قبلوي چنانچې رسول الله صلي الله عليه وسلم دمهر دپاره يوه ګوته په چا باندي جوړه کړه راوي وائي لکه چې ماته داسي ښکاري لکه چې نن زه دهغه ګوتي سپين والي ته ګورم
امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي.

***************

## ٢٦_باب كَيْفَ السَّلاَمُ

### سلام په کوم انداز اچول پکار دي

٢٧١٩_حَدَّثَنَا سُوَيْدُ بْنِ نَصْرٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، أَخْبَرَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ الْمُغِيرَةِ، حَدَّثَنَا ثَابِتُ الْبُنَانِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي لَيْلَى، عَنِ الْمِقْدَادِ بْنِ الأَسْوَدِ، قَالَ: أَقْبَلْتُ أَنَا وَصَاحِبَانِ لِي قَدْ ذَهَبَتْ أَسْمَاعُنَا وَأَبْصَارُنَا مِنَ الْجَهْدِ، فَجَعَلْنَا نَعْرِضُ أَنْفُسَنَا عَلَى أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَيْسَ أَحَدٌ يَقْبَلُنَا، فَأَتَيْنَا النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَتَى بِنَا أَهْلَهُ فَإِذَا ثَلاَثَةُ أَعْنُزٍ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " احْتَلِبُوا هَذَا اللَّبَنَ بَيْنَنَا ". فَكُنَّا نَحْتَلِبُهُ فَيَشْرَبُ كُلُّ إِنْسَانٍ نَصِيبَهُ، وَنَرْفَعُ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَصِيبَهُ، فَيَجِيءُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ اللَّيْلِ " فَيُسَلِّمُ تَسْلِيمًا لاَ يُوقِظُ النَّائِمَ، وَيُسْمِعُ الْيَقْظَانَ، ثُمَّ يَأْتِي الْمَسْجِدَ فَيُصَلِّي ثُمَّ يَأْتِي شَرَابَهُ فَيَشْرَبُهُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (2)

**ترجمه** دمقداد بن اسود رضي الله عنه بيان دي فرمائي چې زه او زما دوست مديني ته راغلو او دفقر او فاقي او مشقت په وجه زمونږ سماعت متاثر شوي وو او نظر مو خراب شوي

---

[1] _ اورده البخاري في الصحيح/العلم ٧ (٦٥)، والجهاد ١٠١ (٢٩٣٨)، واللباس ٥٠ (٥٨٧٢)، ٥٢ (٥٨٧٥)، والأحكام ١٥ (٧١٦٢)، صحيح مسلم/اللباس ١٣ (٢٠٩٢/٥٦)، سنن ابي داود/ الخاتم ١ (٤٢١٤)، سنن النسائي/الزينة ٤٧ (٥٢٠٢) (تحفة الأشراف: ١٣٦٨)، و مسند احمد (٣/١٦٨، ١٦٩، ١٧٠، ١٨١، ٢٢٣، ٢٧٥)

[2] _ مسلم/الأشربة والأطعمة ٣٢ (٢٠٥٥)، سنن النسائي/عمل اليوم والليلة ١٢٢ (٣٢٣) (تحفة الأشراف: ١١٥٣٦)، و مسند احمد (٦/٣٦٢)

وو مونږ اوغوښتل چې خپل ځانونه د نبي کريم صلي الله عليه وسلم صحابه کرامو ته پيش کړو نو هيچا قبول نکړو بيا مونږ رسول الله صلي الله عليه وسلم ته ورغلو نو هغوئ خپل کور ته بوتلو او دغه وخت کي رسول الله سره درې چيلئ وې او وې فرمائيل ددې شوده زمونږ ټولو دپاره اولوشئ نو دا زمونږ دپاره اولوشلې شول او په مونږ کي هر کس خپله حصه اوڅکله او درسول الله حصه اوساتلې شوه بيا رسول الله دشپي کور ته راغلو او سلام يې په داسې انداز اوکړو چې اوده کس ورباندې نه رابيداريږې او ويخو کسانو اوريدلې شو بيا مسجد ته لاړو او دتهجد مونځ يې اوکړو او بيا راغلو او دخپلې حصې شوده يې اوڅکل.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي.

*****************

## ٢٧ـ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ التَّسْلِيمِ عَلَى مَنْ يَبُولُ

## په متيازو ناست کس باندې دسلام اچولو دکراهت بيان

٢٧٢٠ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، وَنَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، قَالاَ: حَدَّثَنَا أَبُو أَحْمَدَ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنِ الضَّحَّاكِ بْنِ عُثْمَانَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ "أَنَّ رَجُلًا سَلَّمَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يَبُولُ فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيْهِ، يَعْنِي: السَّلاَمَ". ([1])

**ترجمه**: دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه مروي دي چې يو کس رسول الله باندې هغه وخت سلام واچولو کله چې هغه اودس ماتولو دپاره ناست وو نو ده ته يې دسلام جواب ورنکړو.

*****************

حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى النَّيْسَابُورِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنِ الضَّحَّاكِ بْنِ عُثْمَانَ بِهَذَا الإِسْنَادِ نَحْوَهُ، وَفِي البَابِ، عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ الفَغْوَاءِ، وَجَابِرٍ، وَالبَرَاءِ، وَالمُهَاجِرِ بْنِ قُنْفُذٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([2])

**ترجمه**: سفيان هم دضحاك بن عثمان په سند ددې هم معني روايت نقل کړې دي.

امام ترمذي وايي: او په دې باب کي دعلقمه بن الفغواء، جابر، براء، او مهاجر بن قنفذ رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او دا حديث حسن صحيح دي.

---

[1] ـ انظر حديث رقم ٩٠

[2] ـ انظر حديث رقم ٩٠

****************

## ٢٨_باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ أَنْ يَقُولَ عَلَيْكَ السَّلاَمُ مُبْتَدِئًا

### دخبروشروع کولووخت کي عليک السلام ونيل مکروه دي

٢٧٢١_حَدَّثَنَا سُوَيْدٌ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ، أَخْبَرَنَا خَالِدٌ الْحَذَّاءُ، عَنْ أَبِي تَمِيمَةَ الْهُجَيْمِيِّ، عَنْ رَجُلٍ مِنْ قَوْمِهِ، قَالَ: طَلَبْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمْ أَقْدِرْ عَلَيْهِ، فَجَلَسْتُ فَإِذَا نَفَرٌ هُوَ فِيهِمْ وَلاَ أَعْرِفُهُ وَهُوَ يُصْلِحُ بَيْنَهُمْ، فَلَمَّا فَرَغَ قَامَ مَعَهُ بَعْضُهُمْ فَقَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، فَلَمَّا رَأَيْتُ ذَلِكَ، قُلْتُ: عَلَيْكَ السَّلاَمُ يَا رَسُولَ اللَّهِ، عَلَيْكَ السَّلاَمُ يَا رَسُولَ اللَّهِ، عَلَيْكَ السَّلاَمُ يَا رَسُولَ اللَّهِ، قَالَ: "إِنَّ عَلَيْكَ السَّلاَمُ تَحِيَّةُ الْمَيِّتِ، إِنَّ عَلَيْكَ السَّلاَمُ تَحِيَّةُ الْمَيِّتِ، ثَلاَثًا" ثُمَّ أَقْبَلَ عَلَيَّ، فَقَالَ: "إِذَا لَقِيَ الرَّجُلُ أَخَاهُ الْمُسْلِمَ فَلْيَقُلِ السَّلاَمُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللَّهِ"، ثُمَّ رَدَّ عَلَيَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: وَعَلَيْكَ وَرَحْمَةُ اللَّهِ وَعَلَيْكَ وَرَحْمَةُ اللَّهِ وَعَلَيْكَ وَرَحْمَةُ اللَّهِ"، قَالَ أَبُو عِيسَى: وَقَدْ رَوَى هَذَا الْحَدِيثَ أَبُو غِفَارٍ، عَنْ أَبِي تَمِيمَةَ الْهُجَيْمِيِّ، عَنْ أَبِي جُرَيٍّ جَابِرِ بْنِ سُلَيْمٍ الْهُجَيْمِيِّ، قَالَ: أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَ الْحَدِيثَ، وَأَبُو تَمِيمَةَ اسْمُهُ: طَرِيفُ بْنُ مُجَالِدٍ. [1]

**ترجمه** - دجابر بن سليم رضي الله عليه وبيان دي فرمائي چې ما درسول الله صلي الله عليه وسلم سره ملاويدل غوښتل مګر رسيدلي ورته نشو زه يوه شيبه کيناستم نو څه کسان راغلل په هغوئ کي رسول الله صلي الله عليه وسلم هم موجود وو او ما نه پيژندلو او رسول الله ددوئ مينځ کي صلح کوله هر کله چې فارغ شو نو په دوئ کي ورسره بعضي کسان پاڅيدل او وئيل يي يارسول الله هر کله چې ما دا حالت اوليدو نو ما اووئيل: عليك السلام يارسول الله، عليك السلام يارسول الله، عليك السلام يارسول الله، رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل عليك السلام مه وايه ځکه چې پداسي الفاظوسره خو مړوته سلام کيږي، پداسي الفاظوسره خو مړوته سلام کيږي، دري ېيري يي اوفرمائيل بيا ماته متوجه شو او ويي فرمائيل کله چې څوک د خپل يو مسلمان ورور سره مخامخ شي نو دا الفاظ دي اووايي السلام عليكم ورحمة الله، او بيا رسول الله په دي الفاظو ماته د سلام جواب راکړو و عليك ورحمة الله . و عليك ورحمة الله . و عليك ورحمة الله

امام ترمذي وايي. ابوغفار دا حديث په سند د ابو تميمه الهجيمي عن ابي جري جابر بن سليم الهجيمي سره نقل کړي دي هجيمي وائي زه نبي کريم صلي الله عليه وسلم ته ورغلم او بيا يي دماقبل پشان پوره حديث بيان کړو دابوتميمه نوم طريف بن مجالد دي.

---

[1] سنن ابي داود/ الأدب ١٥١ (٥٢٠٩)، سنن النسائي/عمل اليوم والليلة ١٣٣ (٣١٤/٣٢٠) (تحفة الأشراف: ٣١٢٣، ١٥٥٩٨)

***************

۲۷۲۲_حَدَّثَنَا بِذَلِكَ الحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الخَلَّالُ. حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ. عَنْ أَبِي غِفَارٍ المُثَنَّى بْنِ سَعِيدٍ الطَّائِيِّ، عَنْ أَبِي تَمِيمَةَ الهُجَيْمِيِّ، عَنْ جَابِرِ بْنِ سُلَيْمٍ، قَالَ: أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ: عَلَيْكَ السَّلَامُ. فَقَالَ: " لَا تَقُلْ عَلَيْكَ السَّلَامُ. وَلَكِنْ قُلِ السَّلَامُ عَلَيْكَ ". وَذَكَرَ قِصَّةً طَوِيلَةً. وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (۱)

**ترجمه** : د ابو تميه هجيمي رضي الله عنه نه روايت دى چې جابر بن سليم اوفرمائيل زه د رسول الله صلي الله عليه وسلم په خدمت کې حاضر شوم نو داسې مې سلام واچولو چې عليك السلام يا رسول الله رسول الله صلي الله عليه وسلم وفرمائيل عليك السلام مه وايه بلکه داسې وايه: السلام عليك او بيا يې يوه اوږده واقعه ذکر کړه

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح غريب دي.

***************

۲۷۲۳_حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ. أَخْبَرَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ بْنُ عَبْدِ الوَارِثِ. حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ المُثَنَّى. حَدَّثَنَا ثُمَامَةُ بْنُ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ. عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ. أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " كَانَ إِذَا سَلَّمَ سَلَّمَ ثَلَاثًا وَإِذَا تَكَلَّمَ بِكَلِمَةٍ أَعَادَهَا ثَلَاثًا ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ. (۲)

**ترجمه** : دانس رضي الله عنه نه روايت دى چې درسول الله صلي الله عليه وسلم دا عادت وو چې کله به يې څه خبره کوله نو درې خله به يې بيا بيا اوفرمائيله، چې خلق وريانډي ښه پوهه شي او چې کله به يې سلام اچولو نو درې خله به يې سلام اچولو.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح غريب دي

**لغات** . اعاد· اعاد يعيد باب افعال په معني دواپس کولو او په مجردو کې دنصر نه عود ګرځيدل ددي نه علاوه دنورو معانيو دپاره هم راځي.

**تشريح** د درې خله سلام اچولو مطلب دا بيان شوى دى چې وړومبي سلام به مجلس ته راننوتو داجازت دپاره وو، دويم دملاقات په وخت او دريم دواپس کيدو رخصتي سلام، اوچا

---

[1] ـ سنن ابي داود/ الأدب ۱۵۱ (۵۲۰۹) . سنن النسائي/عمل اليوم والليلة ۱۲۲ (۳۱۸/۳۲۰) (تحفة الأشراف : ۲۱۲۳ و ۱۵۵۹۸)

[2] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /العلم ۳۰ (۹۴، ۹۵) . والاستئذان ۱۳ (۶۲۴۴)

ويلي دي ډيرى ګنړى ته درانتوتو په وخت يې ورومبني سلام دمجلس په سر کې ورمبنو کسانو باندي واچولو. دويم په مينځ کې او دريم پر. خري سر کې چې ورومبنى سلام به په ګنړه کې تولو کسانو نه شو اوريدى

علماء وائي يوه خبره دري ځله تکرارول مستحسن دي اوبالخصوص کله چې ددي خبري ضرورت زيات وي.علماء وائي داسي به عموما په هغه وخت کې کيدل کله چې به مجمع زياته وه يو ځل به يې ښۍ طرف ته اووئيل او دويم ځل چپ طرف ته او په دريم ځل مخامخ طرف ته. په دي باندي قياس کول پکار دي چې سلام به رسول الله ذري پيري کولو ددي دپاره چې تول يي واوزي

****************

## ٢٩_بَاب اجْلِسْ حَيْثُ انْتَهَى بِكَ الْمَجْلِسُ

### مجلس کي چې درته چرته ځاي ملاوشي هلته کيناستل پکاردي

٢٧٢٤_حَدَّثَنَا الْأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا مَعْنٌ، حَدَّثَنَا مَالِكٌ، عَنْ إِسْحَاق بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ، عَنْ أَبِي مُرَّةَ مَوْلَى عَقِيلِ بْنِ أَبِي طَالِبٍ، عَنْ أَبِي وَاقِدٍ اللَّيْثِيِّ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَمَا هُوَ جَالِسٌ فِي الْمَسْجِدِ وَالنَّاسُ مَعَهُ، إِذْ أَقْبَلَ ثَلَاثَةُ نَفَرٍ فَأَقْبَلَ اثْنَانِ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَذَهَبَ وَاحِدٌ، فَلَمَّا وَقَفَا عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَلَّمَا، فَأَمَّا أَحَدُهُمَا فَرَأَى فُرْجَةً فِي الْحَلْقَةِ فَجَلَسَ فِيهَا، وَأَمَّا الْآخَرُ فَجَلَسَ خَلْفَهُمْ، وَأَمَّا الْآخَرُ فَأَدْبَرَ ذَاهِبًا، فَلَمَّا فَرَغَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " أَلَا أُخْبِرُكُمْ عَنِ النَّفَرِ الثَّلَاثَةِ؟ أَمَّا أَحَدُهُمْ فَأَوَى إِلَى اللَّهِ فَآوَاهُ اللَّهُ، وَأَمَّا الْآخَرُ فَاسْتَحْيَا فَاسْتَحْيَا اللَّهُ مِنْهُ، وَأَمَّا الْآخَرُ فَأَعْرَضَ فَأَعْرض الله عنه ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَأَبُو وَاقِدٍ اللَّيْثِيُّ اسْمُهُ: الْحَارِثُ بْنُ عَوْفٍ، وَأَبُو مُرَّةَ مَوْلَى أُمِّ هَانِئٍ بِنْتِ أَبِي طَالِبٍ وَاسْمُهُ: يَزِيدُ وَيُقَالُ: مَوْلَى عَقِيلِ بْنِ أَبِي طَالِبٍ. [1]

**ترجمه** . د ابو واقد حارث ابن عوف رضي الله عنه نه روايت دی چې يو ورځ رسول الله صلي الله عليه وسلم په جمات کې ناست وو او اصحاب تري چاپيره ناست وو په دی وخت کې دری کسان رانبکاره شو دوه د رسول الله صلي الله عليه وسلم مجلس ته راغلل او يو واپس لاړو (دا دوه کسه چې مجلس ته رانزدی شو) نو اوددريو يو کس دمجلس په مينځ کې خالي ځايی

[1] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /العلم ٨ (٦٦)، والصلاة ٨٤ (٤٧٤). صحيح مسلم/السلام ١٠ (٢١٧٦) (تحفة الأشراف: ١٥٥١٤). والمؤطأ: السلام ٣ (٤). ومسند احمد (٥/٢١٩)

اوموندلو ورکې کيناستو، او دويم کس د ناستو کسانو شاته کيناستو دريم واپس لاړو رسول الله صلي الله عليه وسلم چې فارغ شو نو اصحابو ته يې اوفرمائيل ايا تاسو ته ددی دريو واړه کسانو حال ووايم په دوئ کې يو خو الله تعالي ته ځان اوسپارلو نو الله تعالي ورباندی رحم اوکړو او دويم حيا اوکړه (دمجلس مينځ کې ورننوتو نه دحيا په وجه منع شو ورستو کيناستو) نو الله تعالي ورباندی ددی حيا په وجه رحم اوکړو او دريم کوم چې واپس شو دالله جل جلاله درحمت نه مخ واړولو نو الله تعالي هم تری مخ واړولو دالله تعالي درحمت نه محروم شو.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي او ابو مره دام هاني بنت ابي طالب رضي الله عنها ازاد کړي غلام دي او دده نوم يزيد دي، دا هم وئيلي کيږي چې ابو مره دعقيل بن ابي طالب ازاد کړي غلام وو.

**لغات**. فرجة معني سوري ، فاستحيي معني شرم او حياء کول ، فاعرض ، معني اعراض کول.

**تشريح**: "دري کسان راغلل" دنفر نه مراد کسان دي جماعت نه دی ورنه کم از کم نهه کسان به مراد وی ليکن دا خبره غلطه ده لکه چې جمله وئيلی شي او دري سړي ورنه مراد دي دا مطلب نه دی چې دسړو دري جماعتونه دي مراد وي حاصل دادی چې حياء في العلم مذموم عمل دی کوم چې دعلم پريخودو ته خلق اماده کوي.

فاقبل اثنان الي رسول الله صلي الله عليه وسلم: يعني دوه کسان راغلل چرته چې د رسول الله مجلس قائم وو هلته کيناستل يا دا چې درسول الله په وړاندي کيناستل

فلما فرغ رسول الله صلي الله عليه وسلم کله چې رسول الله فارغ شو دخطبي نه يادډين دتعليم ياذکر وغيره نه

واما الاخر فاستحي فاستحي الله منهم : يعني دويم شرم اوکړو نو الله تعالي ورنه هم حياء اوکړه شارحينو ددي دوه مطلبونه ليکلي دي اول دا چې دمجلس والانه يي حياء اوکړه مذاهمت يي اونکړو دويم مطلب دادی چې ددوئ په مجلس کې يې دناستي اراده نه وه ليکن دحياء په وجه کيناستو چې درسول الله مجلس څنګه پريږدم او ورنه لاړشم.

فاعرض الله عنه: يعني الله تعالي هم ورنه اعراض اوکړو لکه چې هغه ددي مبارك مجلس دخير او برکت نه محروم شو، دا دري کسان څوك وو او ددوئ څه نومونه وو ددوئ په باره کې علامه ابن حجر وائي

لم اقف في شيء من طرق هذا الحديث علي تسمية واحد من الثلاثة: يعني ما ددي حديث تمام طرق تلاش کړل ليکن په دوئ کې مي دهيچا نوم معلوم نکړوددي حديث نه معلومه شوه چې

حيا في العلم مذموم ده او تعليم پريخودو ته انسان اماده كوي

**د ابوواقد حارث ابن عوف رضي الله عنه حالات**

دده نوم حارث دی ليكن په ابو واقد مشهور وو او دپلار نوم يې عوف بن الحارث دی او دبعضو په نزد حارث بن مالك دی بعضي علماء وائي چې په بدر كې شريك شوی وو ليكن بعضي اسماء الرجال والا ددينه انكار كوي او بعضي اسماء الرجال والا وائي چې دفتح په ورځ دده په لاس كې دبني ضمراء قبيلې او ليث قبيلې او بني سعد قبيلې جهنډه وه دبعضي علماؤ خيال دادی چې دی دفتح په ورځ مسلمان شوی دی ليكن صحيح قول دادی چې په فتح مكه كې شريك وو او ددينه مخكې مسلمان شوی وو په مكه كې اوسيدو او په مكه كې په ۸۲هجري كې وفات شو او دمهاجرينو په قبرستان كې دفن كړی شو او په دغه وخت كې دده عمر ۷۵يا ۸۵كلونه وو دده دمروياتو شمير ۲۴دی چې يولس په دي كې متفق عليه دي

*****************

۲۷۲۵_حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا شَرِيكٌ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، قَالَ: "كُنَّا إِذَا أَتَيْنَا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَلَسَ أَحَدُنَا حَيْثُ يَنْتَهِي". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ، وَقَدْ رَوَاهُ زُهَيْرُ بْنُ مُعَاوِيَةَ، عَنْ سِمَاكٍ أَيْضًا. ([1])

**ترجمه** : دجابر بن سمره رضي الله عنه نه روايت دی چې مونږ به د رسول الله صلي الله عليه وسلم په مجلس كې حاضر شو نو دمجلس په اخر كې (دټولو نه روستو) به كيناستو (دناستو خلقو دپاسه به مخكې صف ته نه اوړيدو) ابو داود او ترمذي روايت كړی دی او حديث حسن يې ورته وئيلی دی.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح غريب دي او دا حديث زهير بن معاويه هم دسماك نه نقل كري دي.

**لغات** : حيث ظرف مكان مبني علي الضمه دي په معني داعتبار سره او كله كله دظرف زمان دپاره هم استعماليږي.

*****************

## ۳۰_باب مَا جَاءَ فِي الْجَالِسِ عَلَى الطَّرِيقِ

**په لاركې دكيناستونكو خلقو بيان**

---

[1] _ سنن ابي داود/ الأدب ١٦ (٤٨٢٥) (تحفة الأشراف : ٢١٤٣) . و مسند احمد (٥/٩٨)

٢٧٢٦_حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنِ الْبَرَاءِ، وَلَمْ يَسْمَعْهُ مِنْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ بِنَاسٍ مِنَ الأَنْصَارِ وَهُمْ جُلُوسٌ فِي الطَّرِيقِ، فَقَالَ: "إِنْ كُنْتُمْ لَا بُدَّ فَاعِلِينَ فَرُدُّوا السَّلَامَ، وَأَعِينُوا الْمَظْلُومَ، وَاهْدُوا السَّبِيلَ". وفي الباب عن أَبِي هُرَيْرَةَ، وَأَبِي شُرَيْحٍ الخُزَاعِيِّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. [1]

**ترجمه** دبراء بن عازب رضي الله عنه نه مروي دي (په سند كي ددي خبري تصريح ده چې ابواسحاق دبراء نه اوزيدل نه دي كړي نو په دي وجه په سند كي انقطاع ده، ليكن دشواهدو په بنا صحيح دي ليكن خاصكر دشعبه دموجود كيدو په وجه قوي دي) چې دانصارو څه كسان په لاره كي ناست وو او رسول الله صلي الله عليه وسلم ددوئ په خوا كي تير شو او ورته يي اوفرمائيل (په لاره كي خو كيناستل څه ښه كار نه وي) ليكن كه تاسو كيناستل ضروري ګنړئ نو دسلام جواب به وركوئ، او دمظلوم مدد به كوئ او چې دچا نه لار وركه وي هغه ته به دلاري رهنمائي كوئ .

امام ترمذي وايي. داحديث حسن غريب دي، او په دي باب كي دابوهريره، او ابو شريح خزاعي رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي

***************

## ٣١_باب مَا جَاءَ فِي الْمُصَافَحَةِ

### دمصافحي بيان

٢٧٢٧_حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ وَكِيعٍ، وَإِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ نُمَيْرٍ، عَنِ الأَجْلَحِ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَا مِنْ مُسْلِمَيْنِ يَلْتَقِيَانِ فَيَتَصَافَحَانِ إِلَّا غُفِرَ لَهُمَا قَبْلَ أَنْ يَفْتَرِقَا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ حَدِيثِ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنِ الْبَرَاءِ، وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ عَنِ الْبَرَاءِ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ، وَالأَجْلَحُ هُوَ ابْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ حُجَيَّةَ بْنِ عَدِيٍّ الْكِنْدِيُّ. [2]

---

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ١٨٨٣) . وانظر مسند احمد (٢٨١/٤، ٢٨٣، ٢٩١، ٢٩٣، ٣٠١) . وسنن الدارمي/الاستئذان ٢٦ (٢٦٩٧)

[2] _ سنن ابي داود/ الأدب ١٥٣ (٥٢١٣) . سنن ابن ماجه/الأدب ١٢ (٣٧٠٣) (تحفة الأشراف : ١٧٩٩) . و مسند احمد (٢٨٩/٤، ٣٠٣)

**ترجمه** دبراء رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي کله چې دوه مسلمانان ملاقات اوکړي او يو بل سره مصافحه اوکړي ددوئ دجدا کيدو نه مخکې ورته گناهونه معاف شي.

امام ترمذي وايي: دا حديث حسن غريب دي او دبراء نه په يو څو سندونو مروي دي

**لغات** . يفترقا تفرّق تفرّقا وافترق او تفارق د اجتمع ضد دي.

**تشريح** دحذيفه بن يمان په يو بل روايت کې دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل کله چې يو مومن دبل مومن سره سلام کوي او بيا مصافحه اوکړي نو دده گناهونه داسي ختميږي لکه څرنگه چې په خزان کې د ونو نه پاڼړي رجيږي همدارنگې دبراء په روايت کې هم راغلي دي عطاء خراساني دا ارشاد نبوي نقل کړی دی چې مصافحې کوئ ددي په وجه دزړه خيرى ختميږي اوپخپل مينځ کې يوبل ته تحفې ورکوئ ددي په وجه عداوت ختميږي علماء وائي په مصافحي کولو سره چې دگناهونو دمعافئ کوم اعلان دی دهغې نه مراد صغائر دي او دکبائرو دمعافئ دپاره توبه ويستل لازمي دي.

****************

٢٧٢٨_حَدَّثَنَا سُوَيْدٌ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ، أَخْبَرَنَا حَنْظَلَةُ بْنُ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: قَالَ رَجُلٌ: " يَا رَسُولَ اللَّهِ الرَّجُلُ مِنَّا يَلْقَى أَخَاهُ أَوْ صَدِيقَهُ أَيَنْحَنِي لَهُ ؟ قَالَ: لَا. قَالَ: أَفَيَلْتَزِمُهُ وَيُقَبِّلُهُ ؟ قَالَ: لَا. قَالَ: أَفَيَأْخُذُ بِيَدِهِ وَيُصَافِحُهُ ؟ قَالَ: نَعَمْ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. ([1])

**ترجمه** . انس رضي الله عنه نه روايت دی چې يو سړي رسول الله صلي الله عليه وسلم نه تپوس اوکړو يا رسول الله! زمونږ چې خپل يو مسلمان ورور يا دوست سره ملاقات اوشي نو هغه سره (مصافحی په وخت) لږ ټيټيږو ، رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل نه، هغه عرض اوکړو ايا غاړه يې باسو او ښکل يې کړو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل نه نو هغه اووئيل بيا دهغه لاس په خپل لاس کې ونيسو؟ او مصافحه ورسره اوکړو؟ رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل هو.

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي

**لغات** . ينحني: انحنا کږيدل ، التزمه يعني په خان يې لازم کړو.

**تشريح**: دلته دا هم معلومه شوه چې دبعضو خلقو عادت دی چې دسلام کولو په وخت کې سر

---

[1] ــ سنن ابن ماجه/الأدب ١٥(٣٧٠٢) (تحفة الأشراف : ٨٢٢)

ټيټوي دا کار دسنت خلاف دی اوهمداخبره شيخ يحي د محي السنه نه نقل کړي ده چې دسلام کولو په وخت کې ملاټيټول مکروه دي ځکه چې ممانعت يي ددي حديث نه معلوم شو.
دعقائدو امام شيخ ابو منصور ماتريدي وائي که څوك دچا په وړاندي زمکه ښکل کړي ياچاته ملاراټيټه کړيي نوددي په وجه دی نه کافر کيږي مګر سخت ګنهګار به وي او که دعبادت په نيت يي داسي اوکړل نوبيا په يقيني طور سره کافر کيږي
معانقه او بوسه اخستل (ښکلول) جائز دي البته دامام ابوحنيفه او محمد رحمهما الله نه نقل دي چې هغوئ به مکروه ګڼړل
اودبعضو په نزد جائزدي هغوئ دهغه احاديثو نه استدلال کوي په کوم کې چې پخپله رسول الله معانقه کړي ده ليکن ددي اختلاف ختمولو دپاره دا ونيل کافي دي که چرې معانقه او بوسه دجنسي جذباتو په خيال وي نوناجائز ده او که داکرام په وجه وي نو بياجائز ده

****************

٢٧٢٩_حَدَّثَنَا سُوَيْدٌ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللهِ، أَخْبَرَنَا هَمَّامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، قَالَ: قُلْتُ لِأَنَسِ بْنِ مَالِكٍ: هَلْ كَانَتِ الْمُصَافَحَةُ فِي أَصْحَابِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ؟ قَالَ: نَعَمْ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (١)

**ترجمه** قتاده وائي دانس بن مالك رضي الله عنه نه مي تپوس اوکړو ايا درسول الله صلي الله عليه وسلم په صحابه کرامو کي دمصافحي رواج وو؟ انس اوونيل هو.
امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي.

****************

٢٧٣٠_حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَبْدَةَ الضَّبِّيُّ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سُلَيْمٍ الطَّائِفِيُّ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ خَيْثَمَةَ، عَنْ رَجُلٍ، عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " مِنْ تَمَامِ التَّحِيَّةِ الْأَخْذُ بِالْيَدِ ". وفي الباب عن الْبَرَاءِ، وَابْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ وَلَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ يَحْيَى بْنِ سُلَيْمٍ، عَنْ سُفْيَانَ، قَالَ: سَأَلْتُ مُحَمَّدَ بْنَ إِسْمَاعِيل، عَنْ هَذَا الْحَدِيثِ فَلَمْ يَعُدَّهُ مَحْفُوظًا، وَقَالَ: إِنَّمَا أَرَادَ عِنْدِي حَدِيثَ سُفْيَانَ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ خَيْثَمَةَ، عَمَّنْ، سَمِعَ ابْنَ مَسْعُودٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " لَا سَمَرَ إِلَّا لِمُصَلٍّ أَوْ مُسَافِرٍ ". قَالَ مُحَمَّدٌ: وَإِنَّمَا يُرْوَى عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ أَبِي إِسْحَاق، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ يَزِيدَ، أَوْ غَيْرِهِ، قَالَ: " مِنْ تَمَامِ التَّحِيَّةِ

---

١ ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح/الاستئذان ٢٧ (٦٢٦٣) (تحفة الأشراف: ١٢٠٥)

الْأَخْذُ بِالْيَدِ".([1])

**ترجمه** دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه مروي دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي مكمل سلام السلام عليكم ورحمة الله وبركاته وئيل دي او ددي سره لاس په لاس كي نيول (مصافحه كول) دي

امام ترمذي وايي داحديث غريب دي دا مونږ صرف ديحيي بن سليم په روايت پيژنو چې دسفيان نه يي نقل كوي، ما دامام بخاري نه دي حديث باره كي تپوس اوكړو نو هغه محفوظ او نه شميرلو او وئيل يي زما په نزد ديحيي بن سليم دسفيان هغه روايت مراد كړي دي كوم چې هغه دمنصور نه نقل كړي دي او منصور دقيسمه نه او قيسمه دابن مسعود نه اوريدلي دي او ابن مسعود دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه نقل كړي دي چې فرمائيل يي (دماخوستن دمونځ نه پس) خبري اتري اوقصي كول پكار نه دي مگر علاوه دهغه چا نه څوك چې يوه شپه پس تهجد دپاره راپاڅي او يا سفر كول غواړي، محمد وائي چې دمنصور نه مروي دي او هغه دابواسحاق نه روايت كوي او ابواسحاق دعبدالرحمن بن يزيد نه او يا دهغه نه علاوه دبل چا نه چې فرمائيل يي دسلام دتكميل نه مراد لاس نيول (مصافحه كول دي)، او په دي باب كي دبراء او ابن عمررضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي.

****************

٢٧٣١ـحَدَّثَنَا سُوَيْدُ بْنُ نَصْرٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللهِ، أَخْبَرَنَا يَحْيَى بْنُ أَيُّوبَ، عَنْ عُبَيْدِ اللهِ بْنِ زَحْرٍ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ يَزِيدَ، عَنِ الْقَاسِمِ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي أُمَامَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "تَمَامُ عِيَادَةِ الْمَرِيضِ أَنْ يَضَعَ أَحَدُكُمْ يَدَهُ عَلَى جَبْهَتِهِ أَوْ قَالَ: عَلَى يَدِهِ، فَيَسْأَلُهُ كَيْفَ هُوَ، وَتَمَامُ تَحِيَّاتِكُمْ بَيْنَكُمُ الْمُصَافَحَةُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا إِسْنَادٌ لَيْسَ بِالْقَوِيِّ. قَالَ مُحَمَّدٌ: عُبَيْدُ اللهِ بْنُ زَحْرٍ ثِقَةٌ، وَعَلِيُّ بْنُ يَزِيدَ ضَعِيفٌ، وَالْقَاسِمُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ يُكْنَى: أَبَا عَبْدِ الرَّحْمَنِ وَهُوَ مَوْلَى عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ خَالِدِ بْنِ يَزِيدَ بْنِ مُعَاوِيَةَ وَهُوَ ثِقَةٌ، وَالْقَاسِمُ شَامِيٌّ.([2])

**ترجمه** دابوامامه رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي ديو مريض مكمل عيادت دادي چې په تاسو كي عيادت كونكي خپل لاس دده په تندي باندي كيږدي، او كه داسي يي اوفرمائيل (دراوي شك دي) چې خپل لاس دي دده په لاس باندي كيږدي او بيا دي ورنه تپوس اوكړي چې څنگه يي؟ او ستاسو دسلامونو تكميل دادي چې

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٩٦٢١)

[2] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٤٩١٠)

خپل مینځ کي دي يوبل سره مصافحه اوکړي.
امام ترمذي وايي. ددي حديث سند قوي نه دي، امام بخاري وائي عبيدالله بن زحر ثقه دي او علي بن يزيد ضعيف دي او دقاسم بن عبدالرحمن اسم كنيه ابو عبدالرحمن ده اودي د عبدالرحمن بن خالد بن يزيد بن معاويه ازاد كړي غلام دي او ثقه دي او قاسم دشام اوسيدونكي دي

***************

## ٣٢_باب مَا جَاءَ فِي الْمُعَانَقَةِ وَالْقُبْلَةِ

### دغاړي وركولو او ښكلولو بيان

٢٧٣٢_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيل، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ يَحْيَى بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عَبَّادٍ الْمَدَنِيُّ، حَدَّثَنِي أَبِي يَحْيَى بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاق، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ مُسْلِمٍ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "قَدِمَ زَيْدُ بْنُ حَارِثَةَ الْمَدِينَةَ وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي بَيْتِي، فَأَتَاهُ فَقَرَعَ الْبَابَ، فَقَامَ إِلَيْهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عُرْيَانًا يَجُرُّ ثَوْبَهُ، وَاللَّهِ مَا رَأَيْتُهُ عُرْيَانًا قَبْلَهُ وَلَا بَعْدَهُ فَاعْتَنَقَهُ وَقَبَّلَهُ"، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ مِنْ حَدِيثِ الزُّهْرِيِّ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ.[1]

**ترجمه**: دعائشى رضي الله عنها نه روايت دى كله چې زيد بن حارثه چې دمكى معظمى نه مدينى منورى ته راغلو تنبه يى اووهله رسول الله صلي الله عليه وسلم سره په تلوار ورپاخيدو څادر مبارك يى خان پسى رابنكلو هغه ته يى غاړه وركړه او ښكل يى كړو

امام ترمذي وايي: داحديث حسن غريب دي او موږ يي صرف دزهري په روايت په همدي سند پيژنو

**لغات**: فاعتنقه: اعتناق معني په غيږ كې نيول، ورغاړه وتل.

**تشريح**: خلاصه داده چې زيد بن حارثه رضي الله عنه كله درسول الله كورته راغى نورسول الله صلي الله عليه وسلم په جلتى سره پاڅيدو تردي چې څادر يي په زمكه رابنكلى شو او په جلتى يي ورسره معانقه هم وكړله ددي حديث مضمون دجعفر بن ابي طالب نه هم منقول دى كله چې دحبشي نه راغى نو رسول الله ورسره معانقه اوكړله

په اصل كي معانقه يو بل لره غاړه وركول دي لكه څرنګه چې دعربو عادت دى او كه څوك

---

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٦٦١١)

سینه لګوي نو داهم په بعضو روایاتو کې وارد دي خو په اکثرو احادیثو کې معانقه لفظ راغلی دی علماء وائي چې کله څوك دسفر نه راشي نو په دي صورت کې معانقه جائز ده او که چرې په کومه شبهه یا بدئ کې دمبتلا کیدو خطره وي نو بیا معانقه جائز نه ده یعني دجنسي جذباتو په وجه یا دبربندوالي په وجه بالکل جائز نه دي

وقبله یعني رسول الله صلي الله علیه وسلم ښکل کړو علامه نووي چې په شرح دمسلم کې په دي سلسله کې کومه خبره کړي ده دهغي خلاصه داده که دچا لاس ښکلول دزهد او تقوي او دعلم په وجه وي نو دا جائز نه بلکه مستحب دي او که ددنیوي غرض دپاره وي نو مکروه دي

***************

## ٣٣_باب مَا جَاءَ فِي قُبْلَةِ الْيَدِ وَالرِّجْلِ

### دلاس یا دخپې ښکلولو بیان

٢٧٣٣_حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ إِدْرِيسَ، وَأَبُو أُسَامَةَ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَلَمَةَ، عَنْ صَفْوَانَ بْنِ عَسَّالٍ، قَالَ: قَالَ يَهُودِيٌّ لِصَاحِبِهِ اذْهَبْ بِنَا إِلَى هَذَا النَّبِيِّ، فَقَالَ صَاحِبُهُ: لَا تَقُلْ نَبِيٌّ إِنَّهُ لَوْ سَمِعَكَ كَانَ لَهُ أَرْبَعَةُ أَعْيُنٍ. فَأَتَيَا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَأَلَاهُ عَنْ تِسْعِ آيَاتٍ بَيِّنَاتٍ، فَقَالَ لَهُمْ: "لَا تُشْرِكُوا بِاللَّهِ شَيْئًا، وَلَا تَسْرِقُوا، وَلَا تَزْنُوا، وَلَا تَقْتُلُوا النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللَّهُ إِلَّا بِالْحَقِّ، وَلَا تَمْشُوا بِبَرِيءٍ إِلَى ذِي سُلْطَانٍ لِيَقْتُلَهُ، وَلَا تَسْحَرُوا، وَلَا تَأْكُلُوا الرِّبَا، وَلَا تَقْذِفُوا مُحْصَنَةً، وَلَا تُوَلُّوا الْفِرَارَ يَوْمَ الزَّحْفِ، وَعَلَيْكُمْ خَاصَّةً الْيَهُودَ أَنْ لَا تَعْتَدُوا فِي السَّبْتِ". قَالَ: فَقَبَّلُوا يَدَهُ وَرِجْلَهُ، فَقَالَا: نَشْهَدُ أَنَّكَ نَبِيٌّ، قَالَ: "فَمَا يَمْنَعُكُمْ أَنْ تَتَّبِعُونِي". قَالُوا: إِنَّ دَاوُدَ دَعَا رَبَّهُ أَنْ لَا يَزَالَ فِي ذُرِّيَّتِهِ نَبِيٌّ وَإِنَّا نَخَافُ إِنْ تَبِعْنَاكَ أَنْ تَقْتُلَنَا الْيَهُودُ. وفي الباب عن يَزِيدَ بْنِ الْأَسْوَدِ، وَابْنِ عُمَرَ، وَكَعْبِ بْنِ مَالِكٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** دصفوان بن غسال رضي الله عنه نه منقول دي .یوه ورځ یو یهودي خپل یو ملګري ته اوونیل چې راشه چې دي نبي ته ورشو ملګري یې ورته اوونیل نبي ورته مه وایه که چرې وایې اوریدل چې یهودیان خو هم مانبي ګڼري نو سترګې به یې څلور شي یعني دخوشحالئ نه به په جامو کې نه ځایږي[1] بهر حال دوئ دواړه دنبي کریم صلي الله علیه وسلم په خدمت کې حاضر شول او دنهه واضحو احکامو په باره کې یې ورنه سوال اوکړو رسول الله صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل هیڅوك به دالله تعالي سره نه شریکوئ، غلا به نه کوئ، زنا به نه کوئ او دکوم نفس

---

[1] ـ (رواه الترمذي: ٢١٤٣، والنسائي في السنن الكبرى: ٨٦٥٦ـ وابن ماجة: ٣٧٠٥ـ

وژل چی الله حرام کړي دي هغه به په ناحقه نه قتل کوئ او دکوم بي ګناه دقتل کولو دپاره به په هغه باندي ددي دپاره الزام نه لګوئ چی حاکم ته یي وروليئ او سزا ورته ورکړي، جادو به نه کوئ، سود به نه خورئ، او په پاکدامنو ښځو به دزنا تهمت نه لګوئ، او دجنګ په میدان کي به دشمن ته شا نه ورګرځوئ او اي یهودیانو په تاسو باندي په خصوصیت سره واجب دي چی دخالي دورځي په معامله کي دالله دحکم نه تجاوز اونکړئ . راوي واني چی ددي په اوریدو سره دواړو یهودیانو دنبي کریم صلي الله علیه وسلم لاس او خپي ښکل کړل او ویي وئیل مونږ ګواهي ورکوو چی ته واقعي دالله نبي او رسول یي رسول الله صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل هر کله چی تاسو زماپه رسالت یقین اوکړو نو زما دِاتباع نه ستاسو دپاره کوم څیز مانع دی ؟ هغوئ اووئیل حقیقت دادی چی داود علیه السلام دخپل رب نه دعا غوښتلي وه چی نبوت دي همیشه زماپه اولاد کي وي لهذا مونږ ویریږو چی که ستا پیروي اوکړو نو یهودیان به مو قتل کړي

**تشریح** : ددي حدیث نه معلومه شوه چی په رسول الله ایمان لرل جدا څیز دی او اتباع رسول جدا څیز دی ، خلاصه داده چی دالله تعالي داطاعت سره خاي په خاي داطاعت رسول حکم بار بار شوی دی او په مختلفو عنواناتو سره درسول دبیان کړو احکامو دمنلو هدایت شوی دی دا هر څه ددي خطري پیش نظر دي چی څوك احادیث رسول لره دقران نه جدا اونه ګنړي او داطاعت الهیه نه یي جدا اونه ګنړي او انکار ورنه اونکړي داتباع رسول متعلق احادیث او دعلماؤ اقوال نور هم ډیر زیات دي لیکن مونږ په مذکوره بحث اکتفاء کوو

**دصفوان ابن عسال رضي الله عنه حالات**

نوم صفوان دپلار نوم عسال دکوفي اوسیدونکي دي او اکثر یي نقل درروایت داهل کوفه نه کړي دي چې یوڅو روایات ورنه منقول دي

***************

## ٣٤_باب مَا جَاءَ فِي مَرْحَبًا

**دملاقات وخت کي دمرحبا وئیلو بیان**

٢٧٣٤_حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مُوسَى الأَنْصَارِيُّ. حَدَّثَنَا مَعْنٌ. حَدَّثَنَا مَالِكٌ. عَنْ أَبِي النَّضْرِ. أَنَّ أَبَا مُرَّةَ مَوْلَى أُمِّ هَانِئٍ بِنْتِ أَبِي طَالِبٍ أَخْبَرَهُ. أَنَّهُ سَمِعَ أُمَّ هَانِئٍ. تَقُولُ: ذَهَبْتُ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ الْفَتْحِ. فَوَجَدْتُهُ يَغْتَسِلُ وَفَاطِمَةُ تَسْتُرُهُ بِثَوْبٍ. قَالَتْ: فَسَلَّمْتُ. فَقَالَ: "مَنْ هَذِهِ؟" قُلْتُ: أَنَا أُمُّ هَانِئٍ. فَقَالَ: "مَرْحَبًا بِأُمِّ هَانِئٍ". قَالَ: فَذَكَرَ فِي الْحَدِيثِ قِصَّةً طَوِيلَةً. هَذَا حَدِيثٌ

حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** ام هاني وائي دفتح مكه په كال زه رسول الله صلي الله عليه وسلم ته ورغلم او هغه دي وخت كي غسل كولو او فاطمه رضي الله عنها ديو څادر نه رسول الله ته پرده جوړه كړي وه ما دورتلو سره سلام اوكړو نو رسول الله تپوس اوكړو ته څوك يي ؟ ما اوونيل ام هاني يم رسول الله اوفرمائيل دام هاني راتلل دي مبارك وي (يعني پخير راغلي) بيا راوي په دي حديث كي يوه اوږده قصه ذكر كړه.
امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي.

***************

٢٧٣٥_حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ قَالُوا: حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ مَسْعُودٍ أَبُو حُذَيْفَةَ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ مُصْعَبِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ بْنِ أَبِي جَهْلٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ جِئْتُهُ: " مَرْحَبًا بِالرَّاكِبِ الْمُهَاجِرِ ". وَفِي الْبَابِ، عَنْ بُرَيْدَةَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَأَبِي جُحَيْفَةَ، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ لَيْسَ إِسْنَادُهُ بِصَحِيحٍ، لَا نَعْرِفُهُ مِثْلَ هَذَا إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ مِنْ حَدِيثِ مُوسَى بْنِ مَسْعُودٍ، عَنْ سُفْيَانَ، وَمُوسَى بْنُ مَسْعُودٍ ضَعِيفٌ فِي الْحَدِيثِ، وَرَوَى هَذَا الْحَدِيثَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ مُرْسَلًا، وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ عَنْ مُصْعَبِ بْنِ سَعْدٍ، وَهَذَا أَصَحُّ، قَالَ: سَمِعْتُ مُحَمَّدَ بْنَ بَشَّارٍ يَقُولُ، مُوسَى بْنُ مَسْعُودٍ ضَعِيفٌ فِي الْحَدِيثِ، قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ: وَكَتَبْتُ كَثِيرًا عَنْ مُوسَى بْنِ مَسْعُودٍ ثُمَّ تَرَكْتُهُ. [2]

**ترجمه** دعكرمه بن ابي جهل بيان دي فرماني چې كله ما د مكي نه مديني ته هجرت اوكړو او راغلم نو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل په سورلئ سور مهاجر راتلل دي مبارك وي
امام ترمذي وايي ددي حديث سند صحيح نه دي مونږ يي صرف دموسي بن مسعود په روايت پيژنو چې دسفيان نه يي نقل كوي او موسي بن مسعود په باب دحديث كي ضعيف دي، عبدالرحمن بن مهدي هم دا حديث دسفيان نه او سفيان دابو اسحاق نه مرسل نقل كړي دي او

---

[1] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /الغسل ٢١ (٢٨٠) ، والصلاة ٤ (٣٥٧) ، والجزية ٩ (٣١٧١) ، والأدب ٩٤ (٦١٥٨) صحيح مسلم /الحيض ١٦ (٣٣٦) ، والمسافرين ١٣ (٨٢ : ٣٣٦) سنن ابن ماجه/الطهارة ٥٩ (٤٦٥) (ببعضة) (تحفة الأشراف : ١٨٠٨) ، والمؤطاء :قصر الصلاة ٨ (٢٨) ، ومسند احمد (٦/٣٤٣ ٣٤٢) ، وسنن الدارمي/الصلاة ١٥١ (١٤٩٣)

[2] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ١٠٠١٧)

په دي سند کي دمصعب بن سعد ذکر نشته او دا دنورو نه زيات صحيح روايت دي ما دمحمد بن بشار نه اوريدلي دي وئيل يي موسي بن مسعود په حديث بيانولو کي ضعيف دي محمد بن بشار وئيل ما دموسي بن مسعود نه ډير احاديث اوريدلي دي او بيا مي دهغه نه احاديث اوريدل پريخودل، په دي باب کي دبريده ، ابن عباس، او ابو جحيفه رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي

***************

# كتاب الأدب عن رسولِ الله صلى الله عليه وسلم

## داسلامي ادابو او اخلاقو بيان

## ١_باب مَا جَاءَ فِي تَشْمِيتِ العَاطِسِ

## پرنجي کونکي ته جواب ورکول

٢٧٣٦_حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو الأَحْوَصِ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنِ الحَارِثِ، عَنْ عَلِيٍّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " لِلْمُسْلِمِ عَلَى الْمُسْلِمِ سِتٌّ بِالْمَعْرُوفِ: يُسَلِّمُ عَلَيْهِ إِذَا لَقِيَهُ، وَيُجِيبُهُ إِذَا دَعَاهُ، وَيُشَمِّتُهُ إِذَا عَطَسَ، وَيَعُودُهُ إِذَا مَرِضَ، وَيَتْبَعُ جَنَازَتَهُ إِذَا مَاتَ، وَيُحِبُّ لَهُ مَا يُحِبُّ لِنَفْسِهِ ". وَفِي البَابِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَأَبِي أَيُّوبَ، وَالبَرَاءِ، وَأَبِي مَسْعُودٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَقَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَقَدْ تَكَلَّمَ بَعْضُهُمْ فِي الحَارِثِ الأَعْوَرِ. [1]

**ترجمه** . د علي رضي الله عنه نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دمسلمان په مسلمان شپږ حقونه دي، اول کله چې ورسره مخامخ شي سلام پري اچوه. دويم کله چې دعوت درکړي قبول يي کړه، دريم کله چې څوك پرنجي اوکړي الحمدلله اووائي په جواب کې ورته يرحمك الله اووايه ، څلورم، کله چې ناجوړه شي تپوس يي اوکړه، ، پنځم او چې مړ شي جنازی سره يي لاړ شه ، شپږم چې کوم شي خان دپاره خوښوي هغه دده دپاره هم خوښ کړه.

امام ترمذي وايي. داحديث حسن دي او دا حديث په متعدکو سندونو درسول الله صلي الله عليه وسلم نه منقول دي بعضي محدثينو په حارث اعور کلام کړي دي، او په دي باب کې

[1] _ ابن ماجه/الجنائز ا(١٤٣٣) (تحفة الأشراف : ١٠٠٣٢) . و مسند احمد (٨٩/١) . و الدارمي/ الاستئذان ٥(٢٦٤٥)

دابوهريره، ابو ايوب، براء، او ابن مسعود رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي
**تشريح**: حق مسلم علي المسلم ، يعني ديومسلمان په بل مسلمان حقونه دي ابن حجر په نزد په حق لفظ کې واجب کيدوته اشاره ده .
(۱) دسلام جواب ورکول واجب دي په قران کريم کې راغلي دي واذا حييتم بتحية فحيوا باحسن منها او ردوها ، دلته دتحيه نه مراد په اتفاق سره سلام دی دسلام دفضيلت دپاره دومره کافي ده چې په دي باندي تمامو انبياؤ اوفرښتو تعامل کړی دی او دا به په جنت کې هم وي.
(۲) دعوت قبلول دامام نووي قول دی چې دامام شافعي په نزد دعوت قبلول فرض عين دي خو په دي شرط چې څه عذر نه وي ليکن داهل ظواهر په نزد واجب دي او دجمهورو فقهاؤ په نزد واجب نه دي په دعوت قبلولو سره اسلامي اخوت مستحکم کيږي اود زړونو کدورت ورسره ختميږي.
(۳) : پرنجي کونکي ته جواب ورکول څوک چې پرنجی اوکړي نوالحمدلله دي اووائي او اوريدونکی دي يرحمك الله اووائي پرنجيدونکی دي بيا اووائي يهديكم الله ويصلح بالكم جواب ورکونکی به وائي يغفرالله لنا ولكم ، څوك چې په پرنجيدو الحمد لله نه وايي نو يرحمك الله ورته مه وايئ ځکه چې داد مسلمان حق دي اوبدي محبت پيدا کيږي
(۴) : عيادة المريض، يعني بيمارپرسي کول دفقهاؤ په نزد بيمارپرسي کول سنت مؤکده دي دامام بخاري په نزد واجب دي او ابن حمدان فرض کفايه ګڼړلي دي پخپله نبي کريم صلي الله عليه وسلم به دصحابه کرامو دعيادت دپاره ورتلو داد صحابه کرامو هم مستقل عادت وو
(۵) اتباع الجنائز ، يعني دجنازو سره تلل اوپه دفن کې شريکيدل فقهاؤ فرض کفايه ګڼړلي دي په ډيرو روايتونو کې ددي تاکيد راغلی دی دابوسعيد خدري رضي الله عنه بيان دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دمريض عيادت به کوئ او دجنازوسره به ځئ يقينا چې دا کارونه تاسوته اخرت رايادونکي دي .

*****************

۲۷۳۷_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ. حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُوسَى الْمَخْزُومِيُّ الْمَدَنِيُّ. عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ. عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " لِلْمُؤْمِنِ عَلَى الْمُؤْمِنِ سِتُّ خِصَالٍ: يَعُودُهُ إِذَا مَرِضَ. وَيَشْهَدُهُ إِذَا مَاتَ. وَيُجِيبُهُ إِذَا دَعَاهُ. وَيُسَلِّمُ عَلَيْهِ إِذَا لَقِيَهُ. وَيُشَمِّتُهُ إِذَا عَطَسَ. وَيَنْصَحُ لَهُ إِذَا غَابَ أَوْ شَهِدَ ". قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَمُحَمَّدُ بْنُ مُوسَى الْمَخْزُومِيُّ

الْمَدَنِيُّ ثِقَةٌ، رَوَى عَنْهُ عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، وَابْنُ أَبِي فُدَيْكٍ. (1)

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي ديو مومن په بل مومن شپږ حقوق دي، اول چې بيمار شي نو بيمار پرسي به يې کولي، دويم چې کله وفات شي نو په جنازه کې به يې شرکت کوي مړږيم، چې کله دعوت ورکړي نو دعوت به يې قبولي ، څلورم چې کله مخامخ شي نو سلام به ورته کوي، پنځم چې کله پرنجي اوکړي نو دپرنجي جواب به ورکوي، شپږم که دده په وړاندي موجود وي او کنه وي مګر دده خيرخواهي به هر وخت کي.

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي، محمد بن موسي مخزومي ثقه دي دده نه عبدالعزيز بن محمد او ابن ابي فديك نقل دروايت کړي دي.

**تشريح**: ' يعني که کوم مسلمان درنه خيرخواهي اوغاړي او مشوره درنه طلب کړي نو ته ورسره نيکه معامله اوکړي مطلب دادی چې مسلمانانو ته دداسي خبرو نصيحت کوئ په کومو کې چې هغوئ ددنيا او اخرت فائده وي ليکن که دبشري تقاضو مطابق په چا کې کومه کمزوري وي نو په هغي دي پرده واچولی شي او په محضر عام کې دي رسوا نکړی شي

***************

## ٢_باب مَا يَقُولُ الْعَاطِسُ إِذَا عَطَسَ

## پرنجي کونکي دپاره څه وئيل پکار دي

٢٧٣٨_حَدَّثَنَا حُمَيْدُ بْنُ مَسْعَدَةَ. حَدَّثَنَا زِيَادُ بْنُ الرَّبِيعِ. حَدَّثَنَا حَضْرَمِيٌّ مَوْلَى آلِ الْجَارُودِ. عَنْ نَافِعٍ. أَنَّ رَجُلًا عَطَسَ إِلَى جَنْبِ ابْنِ عُمَرَ. فَقَالَ: الْحَمْدُ لِلَّهِ وَالسَّلَامُ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ. قَالَ ابْنُ عُمَرَ: وَأَنَا أَقُولُ الْحَمْدُ لِلَّهِ وَالسَّلَامُ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ، وَلَيْسَ هَكَذَا عَلَّمَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَّمَنَا. أَنْ نَقُولَ: "الْحَمْدُ لِلَّهِ عَلَى كُلِّ حَالٍ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ. لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ زِيَادِ بْنِ الرَّبِيعِ. (2)

**ترجمه** نافع وائي دابن عمر رضي الله عنهما په څنګ کي ناست يو سړي پرنجي اوکړو نو هغه اووئيل الحمد لله والسلام علي رسول الله يعني تمام تعريفونه دالله پاك دپاره دي او سلام

1 _ صحيح مسلم/السلام ٣ (٢١٦٢) (تحفة الأشراف : ١٣٠٦٦) ، و مسند احمد (٢/٣٢١، ٢٧٢، ٣١٢، ٤١٢، ٥٤٠) (و ورد عند صحيح البخاري/ (الجنائز ٢/ح ١٢٤٠) ، وم (السلام ٣/ح ٢١٦٢)

2 _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ٧٦٢٨)

دي وي دهغه په رسول باندي، ابن عمر اوونيل زه خو هم داسي وايم الحمدلله والسلام علي رسول الله ليكن داسي وئيل مونږ ته رسول الله صلي الله عليه وسلم خودلي نه دي رسول الله مونږ ته الحمدلله علي كل حال خودلي دي يعني په هر حال كي ټول تعريفونه دالله تعالي دپاره دي

امام ترمذي وايي. داحديث غريب دي دا مونږ صرف دزياد بن ربيع په روايت پيژنو

**د نافع رضي الله عنه مختصر حالات:**

نوم نافع دپلار نوم كاوس يا هرمز وو دده په عجمي كيدو دعلماؤ اتفاق دى چې خراسان . ديلم، طالقان، يا كابل اوسيدونكى وو په كوم جنګ كي يا چرته همداسي ابن عمر رضي الله عنهما اخستلى وو او دابن عمر رضي الله عنهما تربيت الله تعالي دده نصيب كړو چې تقريبا ديرشت كاله مسلسل يې دابن عمر په خدمت كي تير كړل (تذكرة الحفاظ).

امام نووي ليكلي دي چې نافع جليل القدر تابعي دى دده په توثيق او جلالت دعلماؤ اتفاق دى (تهذيب الاسماء).

پخپله ابن عمر رضي الله عنهما به په نافع فخر كولو اوفرمائيل به يې چې الله تعالي دنافع په ذريعه په مونږ احسان كړى دى (تهذيب التهذيب).

لكه څرنګه چې نافع دابن عمر رضي الله عنهما په خدمت كي ژوند تير كړى دى دا رنګي امام مالك به هم ترڅو پوري چې نافع ژوندى وو دده نه استفاده كوله (تذكرة الحفاظ).

دهجرت په ۱۱۷ كال وفات شو (تهذيب الحفاظ).

دمزيد حالاتو دپاره تهذيب الاسماء دنووي اوګورئ ، طبقات ابن سعد او تاريخ ابن خلكان او شزراتو الذهب وغيره.

***************

## ٣_بَاب مَا جَاءَ كَيْفَ تَشْمِيتُ الْعَاطِسِ

## پرنجي كونكي ته جواب څنګه وركول پكار دي

٢٧٣٩_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ. حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ. حَدَّثَنَا سُفْيَانُ. عَنْ حَكِيمِ بْنِ دَيْلَمَ. عَنْ أَبِي بُرْدَةَ. عَنْ أَبِي مُوسَى. قَالَ: " كَانَ الْيَهُودُ يَتَعَاطَسُونَ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. يَرْجُونَ أَنْ يَقُولَ لَهُمْ: " يَرْحَمُكُمُ اللَّهُ. فَيَقُولُ: يَهْدِيكُمُ اللَّهُ وَيُصْلِحُ بَالَكُمْ ". وَفِي الْبَابِ عَنْ عَلِيٍّ. وَأَبِي أَيُّوبَ. وَسَالِمِ بْنِ عُبَيْدٍ. وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ جَعْفَرٍ. وَأَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا

حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (١)

ترجمه : دابوموسي اشعري رضي الله عنه بيان دي كله چې به يهوديان رسول الله صلي الله عليه وسلم په خوا كي موجود وو نو په دي اميد به يي پرنجي كول چې رسول الله مونږ ته يرحمك الله اووائي مګر رسول الله ته صرف په دي موقعه يهديكم الله ويصلح بالكم وئيل يعني الله تعالي دي تاسو ته هدايت اوكړي اوستاسوحال دي درست كړي

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي، او په دي باب كي دعلي، ابوايوب، سالم بن عبيد، عبدالله بن جعفر، او ابوهريره رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

***************

٢٧٤٠_حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو أَحْمَدَ الزُّبَيْرِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ هِلَالِ بْنِ يَسَافٍ، عَنْ سَالِمِ بْنِ عُبَيْدٍ، أَنَّهُ كَانَ مَعَ الْقَوْمِ فِي سَفَرٍ فَعَطَسَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ، فَقَالَ: السَّلَامُ عَلَيْكُمْ. فَقَالَ: عَلَيْكَ وَعَلَى أُمِّكَ. فَكَأَنَّ الرَّجُلَ وَجَدَ فِي نَفْسِهِ. فَقَالَ: أَمَا إِنِّي لَمْ أَقُلْ إِلَّا مَا قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. عَطَسَ رَجُلٌ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقَالَ: السَّلَامُ عَلَيْكُمْ. فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " عَلَيْكَ وَعَلَى أُمِّكَ. إِذَا عَطَسَ أَحَدُكُمْ فَلْيَقُلِ الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ. وَلْيَقُلْ لَهُ مَنْ يَرُدُّ عَلَيْهِ يَرْحَمُكَ اللَّهُ. وَلْيَقُلْ يَغْفِرُ اللَّهُ لَنَا وَلَكُمْ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ اخْتَلَفُوا فِي رِوَايَتِهِ، عَنْ مَنْصُورٍ، وَقَدْ أَدْخَلُوا بَيْنَ هِلَالِ بْنِ يَسَافٍ وَسَالِمٍ رَجُلًا. (١)

**ترجمه** : دسالم بن عبيد بيان دي فرمائي چې زه دخلقو سره په يو سفر كي موجود وم چې په دوئ كي يو كس پرنجي اوكړو نو هغه اووئيل السلام عليكم سالم ددي په جواب كي اووئيل "عليك وعلي امك" يعني په تا او ستا په مور دي سلام وي نو دا خبره ددغه كس خوښه نه شوه سالم اووئيل وروره ما خو هغه څه وئيلي دي كوم چې نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي درسول الله په وړاندي يو كس پرنجي اوكړو نو هغه اووئيل السلام عليك نو رسول الله ورته اوفرمائيل عليك وعلي امك، او بيا يي وړاندي اوفرمائيل كله چه په تاسو كي چاته پرنجي راشي هغه دپاره الحمدلله رب العالمين وئيل پكار دي او جواب وركونكي به يرحمك الله وائي او پرنجي كونكي به په اخره كي يغفرالله لي ولكم اووائي (او السلام عليك) به نه وائي

امام ترمذي وايي. دا يو داسي حديث دي دكوم په نقل كولو كي چې منصور دنورو راويانو

---

[1] ـ سنن ابي داود/ الأدب ١٠١ (٥٠٣٨) . سنن النسائي/عمل اليوم والليلة ٨٤ (٢٣٢/م) (تحفة الأشراف : ٩٠٨٢) . و مسند احمد(٣/٢٠٠)

مخالفت کړي دي او علماؤ دهلال بن یساف او سالم په مینځ کي یو بل راوي داخل کړي دي

***************

٢٧٤١ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ، أَخْبَرَنِي ابْنُ أَبِي لَيْلَى، عَنْ أَخِيهِ عِيسَى بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ أَبِي أَيُّوبَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا عَطَسَ أَحَدُكُمْ فَلْيَقُلِ الحَمْدُ لِلَّهِ عَلَى كُلِّ حَالٍ، وَلْيَقُلِ الَّذِي يَرُدُّ عَلَيْهِ يَرْحَمُكَ اللَّهُ، وَلْيَقُلْ هُوَ يَهْدِيكُمُ اللَّهُ وَيُصْلِحُ بَالَكُمْ".([1])

**ترجمه** دابي ایوب رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلي الله علیه وسلم فرمائیلي دي: څوك چې پرنجي اوکړي نو الحمدلله دي اووائي او دهغه مسلمان ورور یادمجلس ملګری دي ورته یرحمك الله اووائي او ددی په جواب کي دی پرنجی کوونکی یهدیکم الله ویصلح بالکم اووائي.

**لغات** بالکم: بال معني زړه ، ماخطر الامر ببالي یعني په زړه کې مي ندي تیر شوي . او فلان کاسف البال یعني بدوخیالاتو والادي، او وما بالك یعني ستا څه حال دي.

**تشریح** : ولیقل له اخوه او صاحبه: یرحمك الله، دحدیث مطلب دادي چې کله پرنجي والا الحمد لله اووایي نو اوریدونکي به یرحمك الله وايي.

**دهر اوریدونکي په یرحمك الله ویلو کي دفقهاؤ مذاهب**

داحنافو په نزد یرحمك الله ویل واجب علي الکفایه دي مطلب دادی که چري دپرنجي اوریدونکي ډیر کسان وي نو که په دوئ کي یوکس یرحمك الله اووائي کافي به وي او وجوب به دټولو دذمي نه ساقط شي داکابرو علماؤ یوجماعت او صاحب دسفر السعادت وائي چې دپرنجي جواب ورکول په اوریدونکي باندي فرض دي او که څوك جواب نه ورکوي ګنهګار به وي لیکن دشوافعو علماؤ په نزد سنت علي الکفایه دي دامام مالك په مذهب کي یو څو اقوال دي دیو قول په اعتبار واجب دي او دبل قول په اعتبار سنت دي

فلیقل یهدیکم الله ویصلح بالکم. کله چې پرنجي کونکي ته په یرحمك الله سره جواب ورکړی شي نو پرنجي والابه یهدیکم الله ویصلح بالکم وائي علماء وائي که چري ددي سره یغفرالله لي ولکم یوځاي کړی شي نو ډیر به بهتر وي

---

[1] ـ ابي داود/الأدب ٩٩ (٥٠٣١) . النسائي/عمل اليوم والليلة ٨٦ (٢٢٥) (تحفة الأشراف : ٣٤٨٦) . واحمد (٤/٨٠٦)

[2] ـ سنن النسائي/عمل اليوم والليلة ٨٢ (٢١٣) (تحفة الأشراف : ٣٣٤٢)

****************

حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنِ ابْنِ أَبِي لَيْلَى بِهَذَا الْإِسْنَادِ نَحْوَهُ، قَالَ: هَكَذَا رَوَى شُعْبَةُ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنِ ابْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ أَبِي أَيُّوبَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَكَانَ ابْنُ أَبِي لَيْلَى يَضْطَرِبُ فِي هَذَا الْحَدِيثِ يَقُولُ: أَحْيَانًا: عَنْ أَبِي أَيُّوبَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَيَقُولُ أَحْيَانًا: عَنْ عَلِيٍّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.[1]

**ترجمه** ابن ابي ليلي په دي سند هم دماقبل هم معني روايت نقل کړي دي، امام ترمذي وائي شعبه هم دا حديث دابن ابي ليلي نه دابو ايوب په واسطه دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه نقل کړي دي او ابن ابي ليلي به په دي حديث کي مضطرب کيدو کله کله به يي ابوايوب عن النبي صلي الله عليه وسلم ونيل او کله کله به يي عن علي عن النبي صلي الله عليه وسلم ونيل

****************

حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ وَمُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى الثَّقَفِيُّ المروزي، قَالَا: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ الْقَطَّانُ، عَنِ ابْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ أَخِيهِ عِيسَى، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ عَلِيٍّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ.[2]

**ترجمه** . عبدالرحمن بن ابي ليلي هم په مذکوره سند کي دعلي رضي الله عنه په واسطه دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه دماقبل هم معني روايت نقل کړي دي

****************

## ٤_باب مَا جَاءَ فِي إِيجَابِ التَّشْمِيتِ بِحَمْدِ الْعَاطِسِ

**دپرنجي کونکي دالحمدلله ويلو نه پس په يرحمک الله سره دجواب ورکولو دوجوب بيان**

٢٧٤٢_حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ سُلَيْمَانَ التَّيْمِيِّ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ رَجُلَيْنِ عَطَسَا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " فَشَمَّتَ أَحَدَهُمَا، وَلَمْ يُشَمِّتِ الْآخَرَ ". فَقَالَ الَّذِي لَمْ يُشَمِّتْهُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، شَمَّتَّ هَذَا وَلَمْ تُشَمِّتْنِي، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِنَّهُ حَمِدَ اللَّهَ

---

[1] _ سنن النسائي/عمل اليوم والليلة ٨٢ (٢١٣) (تحفة الأشراف : ٣٢٤٢)

[2] _ سنن النسائي/عمل اليوم والليلة ٨٢ (٢١٣) (تحفة الأشراف : ٣٢٤٢)

وَإِنَّكَ لَمْ تَحْمَدِ اللَّهَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. [1]

**ترجمه** : دانس بن مالك رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چې درسول الله صلي الله عليه وسلم په وړاندي دوه کسانو پرنجي اوکړو رسول الله يو ته يرحمك الله ونيلو سره دعا اوکړه او دويم ته يي جواب ورنکړو نو چاته چې يي جواب ورنکړو هغه اووئيل اي دالله رسوله هغه ته خو دي په يرحمك الله ونيلو سره دعا اوکړه او زما دپرنجيدو په وجه دي دعا اونکړه رسول الله اوفرمائيل دپرنجي وخت کي هغه دالله حمد بيان کړو او تا دالله حمد بيان نکړو

امام ترمذي وايي. داحديث حسن صحيح دي داحديث دابوهريره په واسطه هم دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه مروي دي.

## دانس بن مالک رضي الله عنه حالات

نوم انس او کنيه يي ابو حمزه او لقب يي خادم رسول الله قبيله يي بنو نجار وه او دپلار نوم يي مالك او دمور نوم يي ام سليم سهله بنت ملحان انصاريه وه درشتي په لحاظ سره ام سليم درسول الله صلي الله علليه وسلم ترور کيدله

انس رضي الله عنه داته يا نهه کالو په عمر کي دخپلي مور سره يو ځاي مسلمان شوی وو کله چې لسو کالو ته ورسيدو نو مور يي اووئيل ای دالله رسوله انس پخپله غلامۍ کي قبول کړه نو رسول الله قبول کړو تقريبا لس کاله درسول الله صلي الله عليه وسلم په خدمت کي پاتي شو په سفر او حضر کي به ورسره يو ځاي وو او په صلح حديبيه، بيعت رضوان، خيبر طائف. او حجة الوداع کي يي درسول الله سره ملګرتيا کړي ده .

صديق اکبر رضي الله عنه دبحرين عامل مقرر کړو او عمر فاروق رضي الله عنه دتعليم او تربيت دپاره بصري ته وليږلو دفتني په زمانه کي ګوشانشين شو، دده په زندګۍ په خصوصي عاداتو کي حق ګويي، تواضع. اشاعت اسلام حب رسول او اتباع رسول شامل وو

مرويات انس رضي الله عنه دمکثرينو صحابه کرامو دجملي نه وو دده دمروياتو تعداد ۱۲۸۲ دی چې ۱۳۸ يکي متفق عليه دي او ۸۲ صرف په بخاري کي دي او ۷۱ صرف په مسلم کي دي (تهذيب الکمال).

وفات: د هجرت په ۹۳ کال کي دسلو کالو نه په زيات عمر کي وفات شو دوفات کيدو نه مخکي يي خپل شاګرد ثابت بناني ته اووئيل چې زما دژبي نه لاندي درسول الله

---

[1] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /الأدب ۱۲۳ (۶۲۲۱) . صحيح مسلم/الزهد ۹ (۲۹۹۱) . سنن ابي داود/ الأدب ۱۰۲ (۵۰۳۹) . سنن ابن ماجه/الأدب ۲۰ (۳۷۱۳) (تحفة الأشراف : ۸۷۲) . وسنن الدارمي/الاستئذان ۲۱ (۲۷۰۲)

صلي الله عليه وسلم ويخته مبارك كيږده نو هغه دحكم تعميل اوكړو او په همدي حال كي ورنه روح پرواز اوكړو غرض دا چې فسطن بن كلاب وربانديي جنازه اوكړه او خپل كور ته نزدي په لف مقام كي دفن كړى شو.

***************

## ٥ـ باب مَا جَاءَ كَمْ يُشَمَّتُ الْعَاطِسُ

### پرنجي كونكي ته څو ځلې جواب وركول پكار دي

٢٧٤٣ـ حَدَّثَنَا سُوَيْدُ بْنُ نَصْرٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ، أَخْبَرَنَا عِكْرِمَةُ بْنُ عَمَّارٍ، عَنْ إِيَاسِ بْنِ سَلَمَةَ بْنِ الأَكْوَعِ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: عَطَسَ رَجُلٌ عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَأَنَا شَاهِدٌ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَرْحَمُكَ اللَّهُ" ثُمَّ عَطَسَ الثَّانِيَةَ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "هَذَا رَجُلٌ مَزْكُومٌ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (١)

**ترجمه**: سلمه بن اكوع دخپل پلار نه روايت كوي چې فرمانيل يي زما په موجود ګئ كي رسول الله صلي الله عليه وسلم يو كس پرنجي اوكړو نو رسول الله اوفرمائيل يرحمك الله الله دي په تا رحم اوكړي، بيا هغه دوباره پرنجي اوكړو نو رسول الله اوفرمائيل په ده باندي زكام لګيدلي دي.

امام ترمذي وايي. داحديث حسن صحيح دي

***************

حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا عِكْرِمَةُ بْنُ عَمَّارٍ، عَنْ إِيَاسِ بْنِ سَلَمَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ، إِلاَّ أَنَّهُ قَالَ لَهُ فِي الثَّالِثَةِ: "أَنْتَ مَزْكُومٌ". قَالَ: هَذَا أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ ابْنِ الْمُبَارَكِ. (٢)

**ترجمه**: اياس بن سلمه هم دخپل پلار په واسطه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه دماقبل هم معني روايت نقل كوي مكر په دي كي ددي الفاظو اضافه ده چې په دويم او دريم ځل يي ورته

---

[1] ـ صحيح مسلم/الزهد ٩ (٢٩٩٣) سنن ابي داود/ الأدب ١٠٠ (٥٠٣٧)، سنن ابن ماجه/الأدب ٢٠ (٣٧١٤) (تحفة الأشراف ٤٥١٣)، وسنن الدارمي/الاستئذان ٣٢ (٢٧٠٣)

[2] ـ صحيح مسلم/الزهد ٩ (٢٩٩٣)، سنن ابي داود/ الأدب ١٠٠ (٥٠٣٧)، سنن ابن ماجه/ الأدب ٢٠ (٣٧١٤) (تحفة الأشراف: ٤٥١٣)، وسنن الدارمي/الاستئذان ٣٢ (٢٧٠٣)

اوونيل په تا باندي زکام دي.
امام ترمذي وايي دا حديث دابن مبارك دحديث نه زيات صحيح دي
****************

وَقَدْ رَوَى شُعْبَةُ، عَنْ عِكْرِمَةَ بْنِ عَمَّارٍ هَذَا الحَدِيثَ نَحْوَ رِوَايَةِ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا بِذَلِكَ أَحْمَدُ بْنُ الحَكَمِ البَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عِكْرِمَةَ بْنِ عَمَّارٍ بِهَذَا وَرَوَى عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، عَنْ عِكْرِمَةَ بْنِ عَمَّارٍ، نَحْوَ رِوَايَةِ ابْنِ المُبَارَكِ، وَقَالَ لَهُ فِي الثَّالِثَةِ: "أَنْتَ مَزْكُومٌ"، حَدَّثَنَا بِذَلِكَ إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ.([1])

**ترجمه** : شعبه دعکرمه بن دينار نه هم په دي سند دا روايت نقل کړي دي، او عبدالرحمن بن مهدي هم دعکرمه بن عمار نه دابن مبارك هم معني روايت نقل کړي دي او بيا په دويم او دريم خل اوفرمائيل په تاباندي زکام دي، اسحاق بن منصور هم دعبدالرحمن بن مهدي نه ددي هم معني روايت نقل کړي دي.
****************

٢٧٤٤_حَدَّثَنَا القَاسِمُ بْنُ دِينَارٍ الكُوفِيُّ، حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ السَّلُولِيُّ الكُوفِيُّ، عَنْ عَبْدِ السَّلَامِ بْنِ حَرْبٍ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ أَبِي خَالِدٍ الدَّالَانِيِّ، عَنْ عُمَرَ بْنِ إِسْحَاقَ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ، عَنْ أُمِّهِ، عَنْ أَبِيهَا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يُشَمَّتُ العَاطِسُ ثَلَاثًا، فَإِنْ زَادَ فَإِنْ شِئْتَ فَشَمِّتْهُ وَإِنْ شِئْتَ فَلَا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ وَإِسْنَادُهُ مَجْهُولٌ.([2])

**ترجمه** : عبيد بن رفاعه وائي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي پرنجي کونکي ته به دري پيرو پوري جواب ورکولي شي او که د دري پيرو نه زيات پرنجي اوکړي نو تاسو ته اختيار دي چې جواب ورکوئ او کنه ورکوئ
امام ترمذي وايي داحديث غريب دي او ددي سند مجهول دي
****************

## ٦_بَابُ مَا جَاءَ فِي خَفْضِ الصَّوْتِ وَتَخْمِيرِ الوَجْهِ عِنْدَ العُطَاسِ

[1] _ صحيح مسلم/الزهد ٩ (٢٩٩٣)، سنن ابي داود/الأدب ١٠٠ (٥٠٣٧)، سنن ابن ماجه/الأدب ٢٠ (٣٧١٤) (تحفة الأشراف: ٤٥١٣)، وسنن الدارمي/الاستئذان ٣٢ (٢٧٠٣)

[2] _ سنن ابي داود/الأدب ١٠٠ (٥٠٣٦) (تحفة الأشراف: ٩٧٢٦)

## دپر نجيدووخت کي داواز ټيټولواو خولي پټولو بيان

٢٧٤٥_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ وَزِيرٍ الْوَاسِطِيُّ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَجْلَانَ، عَنْ سُمَيٍّ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ إِذَا عَطَسَ غَطَّى وَجْهَهُ بِيَدِهِ أَوْ بِثَوْبِهِ وَغَضَّ بِهَا صَوْتَهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي فرماني چې رسول الله صلي الله عليه وسلم ته به کله پرنجي راغي نو پخپل لاس يا به يي پخپله جامه خوله پټوله او خپل اواز به يي ټيټولو
امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي.

******************

## ٧_باب مَا جَاءَ إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْعُطَاسَ وَيَكْرَهُ التَّثَاؤُبَ

### الله تعالي پر نجي کول خوښوي او اسويلي کول نه خوښوي

٢٧٤٦_حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ ابْنِ عَجْلَانَ، عَنِ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " الْعُطَاسُ مِنَ اللَّهِ، وَالتَّثَاؤُبُ مِنَ الشَّيْطَانِ، فَإِذَا تَثَاءَبَ أَحَدُكُمْ فَلْيَضَعْ يَدَهُ عَلَى فِيهِ، وَإِذَا قَالَ: آهْ آهْ فَإِنَّ الشَّيْطَانَ يَضْحَكُ مِنْ جَوْفِهِ، وَإِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْعُطَاسَ وَيَكْرَهُ التَّثَاؤُبَ فَإِذَا قَالَ الرَّجُلُ: آهْ آهْ إِذَا تَثَاءَبَ فَإِنَّ الشَّيْطَانَ يَضْحَكُ فِي جَوْفِهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([2])

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي پرنجی دالله تعالي د طرفه وي او اسويلي ويستل د شيطان دطرفه دي ، تاسو کې چې څوك پرنجی اوکړي او الحمدلله اووائي نو په هر هغه مسلمان چې دا واوري لازم دي چې يرحمك الله ورته اووائي څوك چې اررمی ويستل غواړي پخپله وسه دي يی واپس کوي کنه نو په خوله دي لاس کيږدي، خکه چې شيطان تاسو په اسويلي ويستو اووينې نو ستاسو په خيتو پوري خندا کوي

---

[1] ـ سنن ابي داود/ الأدب ٩٨ (٥٠٢٩) (تحفة الأشراف : ١٢٥٨١)

[2] ـ سنن النسائي/عمل اليوم والليلة ٨٢ (٢١٤) . سنن ابن ماجه/الإقامة ٤٢ (٩٦٩) . وانظر مايأتي بعده (تحفة الأشراف : ١٣٠١٩)

امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح دی .

**لغات** العطاس عطس عطسا وعطاسا معني پرنجيدل ،بيماري. التثاؤب معني اسويلي كول . تثائب الاخبار جستجو كول

**تشريح** : ملا علي قاري په دي باره کې ليکلي دي الله تعالي پرنجي لره خوښوي خکه چې ددې په سبب دماغ سپکيږي او جسم ته راحت رسيږي اوپه دي باندي دالله تعالي حمد ادا کول پکار دي ددي برعکس په اسويلي او ستوماني؛ ويستلو سره په حواسو کدورت راخي همدا وجه ده چې شيطان ورباندي خوشحاليږي

او په همدي وجه به رسول الله ته ارګمي نه راتلل

دپرنجي وخت کي به الحمدلله وائي په بعضو روايتونو کي راخي چې دالحمدلله سره که رب العالمين علي کل حال يوخاي کړی شي نو هيڅ کله به ددي کس په غاښونو او غوږونو درد رانشي همدارنګي حافظ ابن حجر دطبراني نه دا هم نقل کړي دي چې په الحمدلله وئيلو سره به دده په ملا اوغاښ درد رانشي.

***************

٢٧٤٧_حَدَّثَنَا الحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الخَلَّالُ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا ابْنُ أَبِي ذِئْبٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ المَقْبُرِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ العُطَاسَ وَيَكْرَهُ التَّثَاؤُبَ، فَإِذَا عَطَسَ أَحَدُكُمْ، فَقَالَ: الحَمْدُ لِلَّهِ، فَحَقٌّ عَلَى كُلِّ مَنْ سَمِعَهُ أَنْ يَقُولَ: يَرْحَمُكَ اللَّهُ، وَأَمَّا التَّثَاؤُبُ فَإِذَا تَثَاءَبَ أَحَدُكُمْ فَلْيَرُدَّهُ مَا اسْتَطَاعَ وَلَا يَقُولَنَّ: هَاهْ هَاهْ فَإِنَّمَا ذَلِكَ مِنَ الشَّيْطَانِ يَضْحَكُ مِنْهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ، وَهَذَا أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ ابْنِ عَجْلَانَ، وَابْنُ أَبِي ذِئْبٍ أَحْفَظُ لِحَدِيثِ سَعِيدٍ المَقْبُرِيِّ، وَأَثْبَتُ مِنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَجْلَانَ. قَالَ: سَمِعْت أَبَا بَكْرٍ العَطَّارَ البَصْرِيَّ يَذْكُرُ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ المَدِينِيِّ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، قَالَ: قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ عَجْلَانَ: أَحَادِيثُ سَعِيدٍ المَقْبُرِيِّ رَوَى بَعْضَهَا سَعِيدٌ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَرَوَى بَعْضَهَا عَنْ سَعِيدٍ، عَنْ رَجُلٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، فَاخْتَلَطَتْ عَلَيَّ، فَجَعَلْتُهَا عَنْ سَعِيدٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. [1]

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي

[1] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /بدء الخلق ١١(٣٢٨٩) ، والأدب ١٢٥(٦٢٢٣) ، و ٢٦(٦٢٢٦) . صحيح مسلم/الزهد٩ (٢٩٩٥) . سنن ابي داود/ الأدب ٩٧ (٥٠٢٨) (تحفة الأشراف ١٣٠٢٢) . و مسند احمد (٢/٢٦٥ ، ٤٢٨ ، ٥١٧) وانظر ما تقدم برقم ٣٧٠

دي پرنجى دالله تعالي خوښ دى او اسويلي ويستل يى نه دي خوښ نو تاسو كې چې څوك پرنجى اوكړي او الحمدلله اووائي نو په هر هغه مسلمان چې دا واوري لازم دي چې يرحمك الله ورته اووائي او اسويلي دشيطان دطرفه دى نو څوك چې اسويلي ويستل غواړي نو خپله وسه دي يى واپس كوي ځكه چې شيطان تاسو په اسويلي ويستو اووينى نوخوشحاله شي.

امام ترمذي وايي: داحديث صحيح دي او دا دابن عجلان دپورتني مذكوره روايت نه زيات صحيح دي، ابن ابي ذئب سعيد مقبري لره دحديث زيات ياد ساتونكي او قوي حافظي والا ګڼلي دي او محمد بن عجلان دده نه كمي درجي والادي، ما دابوبكرعطاء بصري نه اوريدلي دي چې دعلي بن مديني په واسطه يي ديحي بن سعيد نه روايت كولو چې يحي بن سعيد ونيل دمحمد بن عجلان قول دي دسعيد مقبري داحاديثو معامله داده چې سعيد بعضي احاديث بغير دواسطي نه دابوهريره نه نقل كړي دي او بعضي يي دواسطي سره دابوهريره نه نقل كړي دي او داټول زما په ذهن كي ګډ وډ شوي دي ماته دا ياد نه دي چې واسطي والا كم دي او بغير واسطي والا كم دي نو ما ټول روايتونه دسعيد په واسطه دابوهريره نه نقل كړل

***************

## ٨_باب مَا جَاءَ إِنَّ الْعُطَاسَ فِي الصَّلاَةِ مِنَ الشَّيْطَانِ

### په مونځ كې پرنجي كول دشيطان دطرفه وي

٢٧٤٨_حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا شَرِيكٌ، عَنْ أَبِي الْيَقْظَانِ، عَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، رَفَعَهُ قَالَ: " الْعُطَاسُ وَالنُّعَاسُ وَالتَّثَاؤُبُ فِي الصَّلاَةِ، وَالْحَيْضُ وَالْقَيْءُ وَالرُّعَافُ مِنَ الشَّيْطَانِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، لاَ نَعْرِفُهُ إِلاَّ مِنْ حَدِيثِ شَرِيكٍ، عَنْ أَبِي الْيَقْظَانِ. قَالَ: وَسَأَلْتُ مُحَمَّدَ بْنَ إِسْمَاعِيلَ، عَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ. قُلْتُ لَهُ: مَا اسْمُ جَدِّ عَدِيٍّ؟ قَالَ: لاَ أَدْرِي، وَذُكِرَ عَنْ يَحْيَى بْنِ مَعِينٍ قَالَ: اسْمُهُ دِينَارٌ. (1)

**ترجمه**: ثابت دخپل پلار نه روايت كوي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په مونځ كي پرنجي او اوده كيدل او اسويلي كول او حائضه كيدل او قي كول او ذپوزي ماتيدل دشيطان دطرفه دي

امام ترمذي وايي داحديث غريب دي او دامونږ صرف دشريك په سند پيژنو چې دابواليقضان نه يي نقل كوي مادامام بخاري نه ددي روايت باره كي تپوس اوكړو چې دعدي دپلار څه نوم دي هغه اووئيل ماته پته نشته ليكن ديحي بن معين نه تپوس شوي وو نو هغه اووئيل دده

(1) ـ سنن ابن ماجه/الإقامة ٤٢ (٩٦٩) (تحفة الأشراف: ٣٥٤٢)

دنيکه نوم دينار دي

*****************

## ۹_باب كَرَاهِيَةِ أَنْ يُقَامَ الرَّجُلُ مِنْ مَجْلِسِهِ ثُمَّ يُجْلَسُ فِيهِ

### دمجلس نه دچا پاڅول او پخپله دهغه په ځاي کيناستل مکروه دي

۲۷٤۹_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا يُقِمْ أَحَدُكُمْ أَخَاهُ مِنْ مَجْلِسِهِ ثُمَّ يَجْلِسُ فِيهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (۱)

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دهيچا دپاره خپل ورور لره دخپل ځاي نه پاڅول او بيا دهغه په ځاي کيناستل پکار نه دي

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي.

*****************

۲۷۵۰_حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الْخَلَّالُ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يُقِمْ أَحَدُكُمْ أَخَاهُ مِنْ مَجْلِسِهِ ثُمَّ يَجْلِسُ فِيهِ". قَالَ: وَكَانَ الرَّجُلُ يَقُومُ لِابْنِ عُمَرَ فَلَا يَجْلِسُ فِيهِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ. (۲)

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په تاسو کي چې څوك خپل ورور دخپل ځاي نه پاڅوي چې پخپله دهغه په ځاي کيني نو داسي دي نه کوي سالم راوي وائي دابن عمر رضي الله عنهما په احترام کي به بعضي کسان دهغه دراتلو وخت کي دخپل ځاي نه پاڅيدل ليکن هغه ددي دممانعت په وجه دهغوئ په ځاي نه کيناستل

امام ترمذي وايي داحديث صحيح دي. او بيا به هغه کس واپس راغلو او پخپل ځاي به کيناستو نو اودريدلي کس پخپل ځاي دکيناستلو زيات حقدار دي.

---

[1] _ صحيح مسلم/السلام ۱۱ (۲۱۷۷) (تحفة الأشراف: ۷۵۲۱)

[2] انظر ماقبله (تحفة الأشراف: ٦٩٢٢)

****************

## ١٠_باب مَا جَاءَ إِذَا قَامَ الرَّجُلُ مِنْ مَجْلِسِهِ ثُمَّ رَجَعَ إِلَيْهِ فَهُوَ أَحَقُّ بِهِ

**چې دضرورت په وجه دمجلس نه يو كس دخپل ځاي نه پاڅي او دوباره واپس راشي نو دي دخپل ځاي زيات مستحق دي**

٢٧٥١_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الْوَاسِطِيُّ، عَنْ عَمْرِو بْنِ يَحْيَى، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ يَحْيَى بْنِ حَبَّانَ، عَنْ عَمِّهِ وَاسِعِ بْنِ حَبَّانَ، عَنْ وَهْبِ بْنِ حُذَيْفَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الرَّجُلُ أَحَقُّ بِمَجْلِسِهِ، وَإِنْ خَرَجَ لِحَاجَتِهِ ثُمَّ عَادَ فَهُوَ أَحَقُّ بِمَجْلِسِهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ، وَفِي الْبَابِ، عَنْ أَبِي بَكْرَةَ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ. ([1])

**ترجمه**. دوهب بن حذيفه رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي هريو كس دخپل دناستي دځاي زيات مستحق دي كه چري دي دكوم ضرورت دپاره لاړ شي او واپس راشي نو هم دي پخپل ځاي دكيناستلو زيات حق لري

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح غريب دي او په دي باب كي دابوبكره، ابوسعيد خدري، او ابوهريره رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي

****************

## ١١_باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الْجُلُوسِ بَيْنَ الرَّجُلَيْنِ بِغَيْرِ إِذْنِهِمَا

**د دوه كسانو مينځ كي بغير دهغوئ داجازت نه دكيناستلو دمما نعت بيان**

٢٧٥٢_حَدَّثَنَا سُوَيْدٌ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ، أَخْبَرَنَا أُسَامَةُ بْنُ زَيْدٍ، حَدَّثَنِي عَمْرُو بْنُ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا يَحِلُّ لِلرَّجُلِ أَنْ يُفَرِّقَ بَيْنَ اثْنَيْنِ إِلَّا بِإِذْنِهِمَا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رَوَاهُ عَامِرٌ الْأَحْوَلُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ أَيْضًا. ([2])

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دهيچادپاره جائز نه دي چي هغه د دوه كسانو په مينځ كي جدائي راولي راودي

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١١٤٩٢)

[2] ـ سنن ابي داود/ الأدب ٢٢ (٤٨٤٣، ٤٨٤٥) (تحفة الأشراف: ٨٦٥٦)، ومسند احمد (٢/٢١٣)

دهغوی په مینځ کې کینې، مګر که هغوی اجازت اوکړي (نو څه حرج نشته)
امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي او دا حديث عامر احول هم دعمرو بن شعيب نه نقل کړي دي

*****************

## ١٢_باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الْقُعُودِ وَسْطَ الْحَلْقَةِ

### دمجلس په مينځ کې د ناستي دکراهت بيان

٢٧٥٣_حَدَّثَنَا سُوَيْدٌ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللهِ، أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَبِي مِجْلَزٍ، أَنَّ رَجُلًا قَعَدَ وَسْطَ حَلْقَةٍ، فَقَالَ حُذَيْفَةُ: " مَلْعُونٌ عَلَى لِسَانِ مُحَمَّدٍ، أَوْ لَعَنَ اللهُ عَلَى لِسَانِ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ قَعَدَ وَسْطَ الحَلْقَةِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَأَبُو مِجْلَزٍ اسْمُهُ لَاحِقُ بْنُ حُمَيْدٍ. [1]

**ترجمه** : د ابو مجلز نه روايت دی چې حذيفه ابن اليمان رضي الله عنه ووئيل چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرنيلي دي ملعون دي هغه کس ، او که لعنت یې وئيلی دی په هغه کس څوك چې دمجلس دحلقی په مينځ کې کيني.
امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي او دابومجلز نوم لاحق بن حميد دي
**لغات** : وسط: وسط يسط وسطا وسطة معني په مينځ کې کيناستل او صفت یې واسط راځي
**تشريح**: لعن من جلس وسط الحلقة، يعني په هغه کس لعنت دی څوك چې دحلقي په مينځ کې کيني ددې حديث باره کې دعلماؤ يو څو اقوال دي، اول لکه چې په يو ځاي کې خلق ناست وي دحلقي په شکل کې اويوکس راشي ددوی په مينځ کې کيني، دويم دمسخري کولودپاره په مينځ کې کيني تردې پورې چې خلق اوخاندي، دريم ددې دپاره کيني چې په حلقه کې ديوکس نه دخلقو مخونه پناه کړي تردې چې په حلقه کې ناستوخلقو ته تکليف ورسيږي چونکه درسول الله ارشادات جامع دي نو په دې بنا دلته داټول مراد کيدی شي.

*****************

## ١٣_باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ قِيَامِ الرَّجُلِ لِلرَّجُلِ

### ديو کس دپاره دبل کس اعزازي او تعظيمي قيام کول مکروه دي

---

[1] _ سنن ابي داود/ الأدب ١٤ (٤٨٢٦) (تحفة الأشراف : ٣٣٨٩)

٢٧٥٤_حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ. أَخْبَرَنَا عَفَّانُ. أَخْبَرَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ. عَنْ حُمَيْدٍ. عَنْ أَنَسٍ. قَالَ: "لَمْ يَكُنْ شَخْصٌ أَحَبَّ إِلَيْهِمْ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ: وَكَانُوا إِذَا رَأَوْهُ لَمْ يَقُومُوا لِمَا يَعْلَمُونَ مِنْ كَرَاهِيَتِهِ لِذَلِكَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. (1)

**ترجمه** انس رضي الله عنه راوي دي فرمائي چې هيڅ يو کس صحابه کرامو ته د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه زيات محبوب نه وو راوي وائي چې هغوئ به رسول الله اوليدلو نو دادب په وجه به ورته نه پاڅيدو خکه چې هغوئ ته دا معلومه وه چې رسول الله صلي الله عليه وسلم داسي کار نه خوښوي

امام ترمذي وايي: داحديث په دي سند حسن صحيح غريب دي

****************

٢٧٥٥_حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا قَبِيصَةُ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ الشَّهِيدِ، عَنْ أَبِي مِجْلَزٍ، قَالَ: خَرَجَ مُعَاوِيَةُ، فَقَامَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الزُّبَيْرِ، وَابْنُ صَفْوَانَ حِينَ رَأَوْهُ. فَقَالَ: اجْلِسَا سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. يَقُولُ: "مَنْ سَرَّهُ أَنْ يَتَمَثَّلَ لَهُ الرِّجَالُ قِيَامًا فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ" وَفِي الْبَابِ، عَنْ أَبِي أُمَامَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. حَدَّثَنَا هَنَّادٌ. حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ الشَّهِيدِ، عَنْ أَبِي مِجْلَزٍ. عَنْ مُعَاوِيَةَ. عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. مِثْلَهُ. (2)

**ترجمه** دابومجلز بيان دي معاويه رضي الله عنه بهر اووتلو نوعبدالله بن زبير او صفوان اوليدلو نو هغوئ داحترام په وجه اودريدو معاويه رضي الله عنه اووئيل تاسو دواړه کينئ مادرسول الله صلي الله عليه وسلم دا فرمان اوريدلي دي څوك چې دا خوښوي چې خلق ده ته دادب دپاره اودريږي نو دي دي په جهنم کي دخان دپاره داوسيدو خاي برابر کړي

امام ترمذي وايي: داحديث حسن دي او په دي باب کي دابو امامه رضي الله عنه نه هم حديث وارد دي مونږ ته حناد حديث بيان کړي دي او هناد ته ابواسامه حديث بيان کړي دي او هغه ته حبيب شهيد او حبيب شهيد ته ابو مجلز بيان کړي دي او ابو مجلز دمعاويه په واسطه دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه ددي هم معني روايت نقل کړي دي

---

1 ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٦٢٥)

2 ـ سنن ابي داود/ الأدب ١٦٥ (٥٢٢٩) (تحفة الأشراف: ١١٤٤٨). و مسند احمد (٤/١٠٠)

*****************

## ١٤_باب مَا جَاءَ فِي تَقْلِيمِ الأَظْفَارِ

### د نوكانو دكټ كولو بيان

٢٧٥٦_حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الْحَلْوَانِيُّ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ، قَالُوا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " خَمْسٌ مِنَ الْفِطْرَةِ: الِاسْتِحْدَادُ، وَالْخِتَانُ، وَقَصُّ الشَّارِبِ، وَنَتْفُ الإِبْطِ، وَتَقْلِيمُ الأَظْفَارِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (١)

**ترجمه** ابوهريره رضي الله عنه راوي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي پنځه خيزونه دفطرت نه دي ، اول شرمګاه صفاكول، دويم سنت كول. دريم بريت كټ كول. څلورم دترخونو ويخته ختمول، پنځم نوكان كټ كول

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي.

*****************

٢٧٥٧_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، وَهَنَّادٌ، قَالَا: حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ زَكَرِيَّا بْنِ أَبِي زَائِدَةَ، عَنْ مُصْعَبِ بْنِ شَيْبَةَ، عَنْ طَلْقِ بْنِ حَبِيبٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " عَشْرٌ مِنَ الْفِطْرَةِ: قَصُّ الشَّارِبِ، وَإِعْفَاءُ اللِّحْيَةِ، وَالسِّوَاكُ، وَالِاسْتِنْشَاقُ، وَقَصُّ الأَظْفَارِ، وَغَسْلُ الْبَرَاجِمِ، وَنَتْفُ الإِبْطِ، وَحَلْقُ الْعَانَةِ، وَانْتِقَاصُ الْمَاءِ، قَالَ زَكَرِيَّا. قَالَ مُصْعَبٌ: وَنَسِيتُ الْعَاشِرَةَ إِلَّا أَنْ تَكُونَ الْمَضْمَضَةَ ". قَالَ أَبُو عُبَيْدٍ: انْتِقَاصُ الْمَاءِ: الِاسْتِنْجَاءُ بِالْمَاءِ. وَفِي الْبَابِ، عَنْ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ، وَابْنِ عُمَرَ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. (٢)

**ترجمه** - دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها نه مروي دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي لس كارونه دفطرت نهدي (١) بريت كټ كول (٢) ګيره غټول (٣) مسواك وهل

---

[1] _ اورده البخاري في الصحيح/اللباس ٦٣ (٥٨٨٩)، و ٦٣ (٥٨٩١)، والاستئذان ٥١ (٦٢٩٧) ومسلم/الطهارة ١٦ (٢٥٧) ابي داود/ الترجل ١٦ (٤١٩٨) سنن النسائي/الطهارة ٩ (٩)، و ١٠ (١٠)، والزينة ٥٣ (٥٠٤٦)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٨ (٢٩٢) (تحفة الأشراف : ١٣٢٨٦)، والموطأ: صفة النبي ﷺ ٣ (٣) ومسند احمد (٢/٢٢٩، ٢٤٠، ٢٨٤، ٤١١، ٤٨٩)

[2] _ صحيح مسلم/الطهارة ١٦ (٢٦١)، سنن ابي داود/ الطهارة ٢٩ (٥٣)، سنن النسائي/الزينة ١ (٥٠٤٣)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٨ (٢٩٣) (تحفة الأشراف : ١٦١٨٨)، ومسند احمد (٦/١٣٧)

(۴) پوزه كي اوبه اچول (۵) نوكان كټ كول (۲) دګوتو دبندونو شاكاني وينځل (۷) دنرخونو ويخته ويستل (۸) دنوم نه لاندي صفائي كول (۹) په اوبو استنجاء كول . زكريا راوي وائي چې مصعب اووئيل لــم ځيز زما نه هير شوي دي كيدي شي چې هغه غړغړه كول وي او د انتقاص الماء نه مراد په اوبو استنجاء كول دي.

امام ترمذي وايي. داحديث حسن دي، او په دي باب كي دعمار بن ياسر، ابن عمر، او ابوهريره رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي

*****************

## ١٥ـ باب فِي التَّوْقِيتِ فِي تَقْلِيمِ الأَظْفَارِ وَأَخْذِ الشَّارِبِ

### د نوكانو دكټ كولو او بريت كټ كولو دمودي بيان

٢٧٥٨ـ حَدَّثَنَا إِسْحَاق بْنُ مَنْصُورٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ بْنُ عَبْدِ الْوَارِثِ، حَدَّثَنَا صَدَقَةُ بْنُ مُوسَى أَبُو مُحَمَّدٍ صَاحِبُ الدَّقِيقِ، حَدَّثَنَا أَبُو عِمْرَانَ الْجَوْنِيُّ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَنَّهُ وَقَّتَ لَهُمْ فِي كُلِّ أَرْبَعِينَ لَيْلَةً تَقْلِيمَ الأَظْفَارِ وَأَخْذَ الشَّارِبِ وَحَلْقَ الْعَانَةِ".[1]

**ترجمه** . دانس رضي الله عنه نه مروي دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم دخلقو دپاره دمودي تعين كړي دي چې څلويښت ورځو كي دننه نوكان كټ كول ضروري دي او بريت كټ كول ضروري دي او دنوم نه لاندي صفائي كول ضروري دي

*****************

٢٧٥٩ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ أَبِي عِمْرَانَ الْجَوْنِيِّ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: "وُقِّتَ لَنَا فِي قَصِّ الشَّارِبِ، وَتَقْلِيمِ الأَظْفَارِ، وَحَلْقِ الْعَانَةِ، وَنَتْفِ الإِبْطِ، أَنْ نَتْرُكَ أَكْثَرَ مِنْ أَرْبَعِينَ يَوْمًا". قَالَ: هَذَا أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ الأَوَّلِ، وَصَدَقَةُ بْنُ مُوسَى لَيْسَ عِنْدَهُمْ بِالْحَافِظِ.[2]

**ترجمه** . دانس بن مالك رضي الله عنه بيان دي فرمائي چې زمونږ دپاره دنوكانو كټ كولو او شرمګاه پاكولو او ترخونو پاكولو متعلق څلويښت ورځو پوري وخت مقرر كړي شوي دي او

---

[1] ـ صحيح مسلم /الطهارة ١٦ (٢٥٨) . سنن ابي داود/ الترجل ١٦ (۴٢٠٠) . سنن النسائي/ الطهارة ١۴ (١۴) . سنن ابن ماجه/الطهارة ٨ (٢٩٢) (تحفة الأشراف : ١٠٧٠) . و مسند احمد (١٢٢/٣، ٢٠٣)

[2] ـ صحيح مسلم/الطهارة ١٦ (٢٥٨) . سنن ابي داود/ الترجل ١٦ (۴٢٠٠) . سنن النسائي/ الطهارة ١۴ (١۴) . سنن ابن ماجه/الطهارة ٨ (٢٩٢) (تحفة الأشراف : ١٠٧٠) . و مسند احمد (١٢٢/٣، ٢٠٣)

هغه دادي چې مونږ به دا دخلويښتو ورځو نه زيات نه پريږدو
امام ترمذي وايي داحديث د مخکني حديث نه زيات صحيح دي او صدقه بن موسي (څوك چې دسابقه حديث راوي دي دمحدثينو په نزد قوي حافظي والانه دي).

*****************

## ١٦_باب مَا جَاءَ فِي قَصِّ الشَّارِبِ
### دبريتوکټ کولو بيان

٢٧٦٠_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُمَرَ بْنِ الْوَلِيدِ الْكِنْدِيُّ الْكُوفِيُّ. حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ آدَمَ. عَنْ إِسْرَائِيلَ. عَنْ سِمَاكٍ. عَنْ عِكْرِمَةَ. عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ: "كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُصُّ أَوْ يَأْخُذُ مِنْ شَارِبِهِ. وَكَانَ إِبْرَاهِيمُ خَلِيلُ الرَّحْمَنِ يَفْعَلُهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.[1]

**ترجمه** : دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي فرمائي چې نبي کريم صلي الله عليه وسلم به خپل بريت کټ کول او فرمائيل به يې چې خليل الله ابراهيم عليه السلام به هم داسې کول.
امام ترمذي وايي. داحديث حسن غريب دي.

*****************

٢٧٦١_حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ. حَدَّثَنَا عَبِيدَةُ بْنُ حُمَيْدٍ، عَنْ يُوسُفَ بْنِ صُهَيْبٍ. عَنْ حَبِيبِ بْنِ يَسَارٍ. عَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ. أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ: "مَنْ لَمْ يَأْخُذْ مِنْ شَارِبِهِ فَلَيْسَ مِنَّا". وَفِي الْبَابِ. عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.
حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ. حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ. عَنْ يُوسُفَ بْنِ صُهَيْبٍ بِهَذَا الإِسْنَادِ. نَحْوَهُ.[2]

**ترجمه** دزيد بن ارقم رضي الله عنه نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوك چې خپل بريت نه کموي هغه زمونږ نه نه دي.
امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دی، محمد بن بشار هم پخپل سند د يحي بن سعيد نه د ماقبل هم معني روايت نقل کړی دی

*****************

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٦١١٤)

[2] _ النسائي/الطهارة ١٣ (١٣). والزينة ٢ (٥٠٥٠). ومسند احمد (٤/٣٦٦، ٣٦٨)

## ١٧_باب مَا جَاءَ فِي الأَخْذِ مِنَ اللِّحْيَةِ

## دكيرې كمولو بيان

٢٧٦٢_حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ هَارُونَ، عَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَأْخُذُ مِنْ لِحْيَتِهِ مِنْ عَرْضِهَا وَطُولِهَا". هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، وَسَمِعْتُ مُحَمَّدَ بْنَ إِسْمَاعِيل، يَقُولُ عُمَرُ بْنُ هَارُونَ: مُقَارِبُ الحَدِيثِ، لَا أَعْرِفُ لَهُ حَدِيثًا لَيْسَ لَهُ أَصْلٌ، أَوْ قَالَ: يَنْفَرِدُ بِهِ إِلَّا هَذَا الحَدِيثَ، كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يَأْخُذُ مِنْ لِحْيَتِهِ مِنْ عَرْضِهَا وَطُولِهَا" لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ عُمَرَ بْنِ هَارُونَ، وَرَأَيْتُهُ حَسَنَ الرَّأْيِ فِي عُمَرَ بْنِ هَارُونَ، قَالَ أَبُو عِيسَى: وَسَمِعْتُ قُتَيْبَةَ، يَقُولُ: عُمَرُ بْنُ هَارُونَ كَانَ صَاحِبَ حَدِيثٍ، وَكَانَ يَقُولُ: الإِيمَانُ قَوْلٌ وَعَمَلٌ، قَالَ: سَمِعْتُ قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا، وَكِيعُ بْنُ الجَرَّاحِ، عَنْ رَجُلٍ، عَنْ ثَوْرِ بْنِ يَزِيدَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَصَبَ المَنْجَنِيقَ عَلَى أَهْلِ الطَّائِفِ، قَالَ قُتَيْبَةُ: قُلْتُ لِوَكِيعٍ: مَنْ هَذَا؟ قَالَ: صَاحِبُكُمْ عُمَرُ بْنُ هَارُونَ. ([1])

**ترجمه** دعبدالله بن عمر بن العاص رضي الله عنهما نه مروي دي چې نبي كريم صلي الله عليه وسلم به خپله گيره طولاو عرضا يعني په اوږدو او په پلنو اخستله.

امام ترمذي وايي داحديث غريب دي، ما دامام بخاري نه اوريدلي دي عمر بن هارون مقارب الحديث دي اوماته دهغه كوم داسې حديث نه دي معلوم دكوم چې اصل نه وي او يا داچې ماته كوم داسې حديث معلوم نه دي په كوم كې چې هغه منفرد وي علاوه ددې حديث نه چې رسول الله صلي الله عليه وسلم به خپله گيره طولاو عرضا كموله داحديث ماته صرف دعمر بن هارون په سند معلوم دي ما دامام بخاري نه دعمر بن هارون باره كې تپوس اوكړو او دده باره كې يې ښه رائي قائمه كړه، ما دقتيبه نه دعمرين هارون باره كې اوريدلي دي چې عمر بن هارون صاحب حديث دي هغه به ونيل چې ايمان دقول او عمل نوم دي، قتيبه وائي وكيع بن جراح ماته ديو داسې كس په واسطه دثور بن يزيد نه حديث بيان كړو او ثور درسول الله صلي الله عليه وسلم نه چې رسول الله په اهل طائف منجنيق نصب كړو قتيبه وائي ما دخپل استاذ وكيع نه تپوس اوكړو چې داكس څوك دي (كوم چې تا اوس په عن رجل ونيلو سره ذكر كړو) هغه اوونيل دا عمر بن هارون دي

***************

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٨٦٦٣)

## ١٨_باب مَا جَاءَ فِي إِعْفَاءِ اللِّحْيَةِ
## دګیري د غتې ساتلو بیان

٢٧٦٣_حَدَّثَنَا الحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الخَلَّالُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ نُمَيْرٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَحْفُوا الشَّوَارِبَ وَأَعْفُوا اللِّحَى". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما بیان دي فرمائي چې رسول الله صلي الله علیه وسلم فرمائیلي دي بریتونه کټ کړئ او ګیري لوي کړئ
امام ترمذي وايي: داحدیث صحیح دي.

***************

٢٧٦٤_حَدَّثَنَا الأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا مَعْنٌ، حَدَّثَنَا مَالِكٌ، عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ نَافِعٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَمَرَنَا بِإِحْفَاءِ الشَّوَارِبِ، وَإِعْفَاءِ اللِّحَى". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَأَبُو بَكْرِ بْنُ نَافِعٍ هُوَ مَوْلَى ابْنِ عُمَرَ ثِقَةٌ، وَعُمَرُ بْنُ نَافِعٍ ثِقَةٌ، وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ نَافِعٍ مَوْلَى ابْنِ عُمَرَ يُضَعَّفُ. [2]

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما بیان دي فرمائي چې رسول الله صلي الله علیه وسلم مونږ ته دبریتو کټ کولو او ګیري غټولو حکم کړي دي.
امام ترمذي وايي داحدیث حسن صحیح دي، او دابن عمر ازاد کړي غلام ابوبکر بن نافع ثقه دي او عمر بن نافع هم ثقه دي، عبدالله بن نافع دابن عمر رضي الله عنهما ازاد کړي غلام دي او په حدیث بیانولو کي ضعیف دي

***************

## ١٩_باب مَا جَاءَ فِي وَضْعِ إِحْدَى الرِّجْلَيْنِ عَلَى الأُخْرَى مُسْتَلْقِيًا
## یوه پښه په بله پښه اچول او ستوني ستق څملاستلو بیان

---

[1] _ اورده البخاري في الجامع الصحيح /اللباس ٦٤ (٥٨٩٢) و ٦٥ (٥٨٩٣) صحيح مسلم/ الطهارة ١٦ (٢٥٩) . سنن النسائي/الطهارة ١٥ (١٥) . والزينة ٢ (٥٠٤٨) . و ٥٦ (٥٢٢٨) ومسند احمد (٢/٥٢)

[2] _ ابي داود/ الخاتم ١٦ (٤١٩٩)

٢٧٦٥ـ حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْمَخْزُومِيُّ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ، قَالُوا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عَبَّادِ بْنِ تَمِيمٍ، عَنْ عَمِّهِ، أَنَّهُ رَأَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " مُسْتَلْقِيًا فِي الْمَسْجِدِ وَاضِعًا إِحْدَى رِجْلَيْهِ عَلَى الْأُخْرَى "، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَعَمُّ عَبَّادِ بْنِ تَمِيمٍ هُوَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ زَيْدِ بْنِ عَاصِمٍ الْمَازِنِيُّ. [1]

**ترجمه** دعباد بن تميم تره عبدالله بن زيد بن عاصم مازني راوي دي فرماني چې مارسول الله صلي الله عليه وسلم په مسجد کې په داسي حال کې اوليدلو چې يوه پنډئ يې په بله اچولي وه او ستوني ستق پروت وو

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي.

****************

## ٢٠ـ بَاب مَا جَاءَ فِي الْكَرَاهِيَةِ فِي ذَلِكَ

### ديوي پنډئ په بلې اچولو او ستوني ستق څملاستلو دکراهت بيان

٢٧٦٦ـ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ بْنُ أَسْبَاطِ بْنِ مُحَمَّدٍ الْقُرَشِيُّ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ التَّيْمِيُّ، عَنْ خِدَاشٍ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِذَا اسْتَلْقَى أَحَدُكُمْ عَلَى ظَهْرِهِ فَلَا يَضَعْ إِحْدَى رِجْلَيْهِ عَلَى الْأُخْرَى " هَذَا حَدِيثٌ، رَوَاهُ غَيْرُ وَاحِدٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ التَّيْمِيِّ، وَلَا يُعْرَفُ خِدَاشٌ هَذَا مَنْ هُوَ، وَقَدْ رَوَى لَهُ سُلَيْمَانُ التَّيْمِيُّ غَيْرَ حَدِيثٍ. [2]

**ترجمه** دجابر رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي کله چې په تاسو کې يو کس ستوني ستق څملي نو يوه پنډئ دي په بلې نه اچوي

امام ترمذي وايي: داحديث يو څو راويانو دسليمان تيمي نه نقل کړي دي او دخداش پته نه لګي چې څوک دي او سليمان تيمي ورنه ددينه علاوه نور احاديث هم نقل کړي دي

****************

---

[1] ـ اورده البخاري في الصحيح /الصلاة ٨٥ (٤٧٥)، واللباس ١٠٣ (٥٩٦٩)، والاستئذان ٤٤ (٦٢٨٧). صحيح مسلم/اللباس ٢٢ (٢١٠٠) سنن ابي داود/ الادب ٣٦ (٤٨٦٦) سنن النسائي/المساجد ٢٨ (٧٢٢) (تحفة الأشراف ٥٢٩٨). والمؤطاء: السفر ٢٤ (٨٧). واحمد (٣٩/٤ ٤٠)

[2] ـ صحيح مسلم /اللباس ٢٠ (٢٠٨٩). سنن ابي داود/ الأدب ٣٦ (٤٨٦٥) (تحفة الأشراف: ٢٧٠٢). ومسند احمد (٢٩٧/٣، ٣٢٩، ٣٤٢) وانظر مابعده

٢٧٦٧_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَهَى عَنِ اشْتِمَالِ الصَّمَّاءِ، وَالِاحْتِبَاءِ فِي ثَوْبٍ وَاحِدٍ، وَأَنْ يَرْفَعَ الرَّجُلُ إِحْدَى رِجْلَيْهِ عَلَى الْأُخْرَى وَهُوَ مُسْتَلْقٍ عَلَى ظَهْرِهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه** . دجابر رضي الله عنه نه روايت دي فرماني چې رسول الله صلي الله عليه وسلم ديوې پنډۍ په بلې داچولو نه او دصماء او احتباء كولو نه او د ستوني ستق څملاستلو نه منع فرمائيلي ده.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي.

**تشريح**: دا ممانعت په ابتداء داسلام كي وو مګر علامه خطابي وائي چې بيا منسوخ شو، بعضي علماؤ دواړه قسمه احاديثو كي داسي تطبيق كړي دي چې يوه پنډۍ په بلې اچول په دوه قسمه دي يو قسم دادي چې دواړه پنډۍ جدا جدا دي چې فاصله پكي وي او دويم قسم دادي چې بغير فاصلي وي نو دي كي څه حرج نشته ځكه چې په دي صورت كي دستر ماتيدو خطره نشته.

***************

## ٢١_بَاب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الِاضْطِجَاعِ عَلَى الْبَطْنِ

### دنسكور څملاستو دكراهت بيان

٢٧٦٨_حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا عَبْدَةُ بْنُ سُلَيْمَانَ، وَعَبْدُ الرَّحِيمِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، حَدَّثَنَا أَبُو سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: رَأَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلًا مُضْطَجِعًا عَلَى بَطْنِهِ، فَقَالَ: "إِنَّ هَذِهِ ضَجْعَةٌ لَا يُحِبُّهَا اللَّهُ". وَفِي الْبَابِ عَنْ طِهْفَةَ، وَابْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَرَوَى يَحْيَى بْنُ أَبِي كَثِيرٍ هَذَا الْحَدِيثَ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ يَعِيشَ بْنِ طِهْفَةَ، عَنْ أَبِيهِ، وَيُقَالُ طِخْفَةُ وَالصَّحِيحُ طِهْفَةُ، وَقَالَ بَعْضُ الْحُفَّاظِ، الصَّحِيحُ طِخْفَةُ، وَيُقَالُ طِغْفَةُ، يَعِيشُ هُوَ مِنَ الصَّحَابَةِ.[2]

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم يو كس لره نسكور پروت اوليدو نو ويې فرمائيل دي داسي پروت دي كوم چې الله تعالي نه خوښوي.

---

[1] _ سنن النسائي/الزينة ١٠٧ (٥٣٤٤) (تحفة الأشراف : ٢٩٠٥) . و مسند احمد (٣/٢٩٣، ٣٢٢، ٣٣١، ٣٤٣، ٣٤٩) وانظر ماقبله

[2] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ١٥٠٢١ و ١٥٠٥٢) وانظر مسند احمد (٢/٣٠٢)

امام ترمذي وايي. داحديث يحي بن ابي كثير دابوسلمه نه نقل كړي دي او ابو سلمه ديعيش بن طهفه په واسطه دهغه دپلار نه نقل كړي دي او هغه ته تخفه هم ونيلي شي او هغه تهفه هم ونيلي شي او بعضي حافظان وائي طهفه صحيح دي او طعفه ورته هم ونيلي شي او يعيش ورته هم ونيلي شي او دا دصحابه كرامو دجملي نه دي، او په دي باب كي دطهفه او ابن عمر رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي

****************

## ٢٢_باب مَا جَاءَ فِي حِفْظِ الْعَوْرَةِ

### دشرم ګاه دستر او حفاظت بيان

٢٧٦٩_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا بَهْزُ بْنُ حَكِيمٍ، حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ جَدِّي، قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، عَوْرَاتُنَا مَا نَأْتِي مِنْهَا وَمَا نَذَرُ؟ قَالَ: "احْفَظْ عَوْرَتَكَ إِلَّا مِنْ زَوْجَتِكَ أَوْ مَا مَلَكَتْ يَمِينُكَ. فَقَالَ الرَّجُلُ: يَكُونُ مَعَ الرَّجُلِ. قَالَ: إِنِ اسْتَطَعْتَ أَنْ لَا يَرَاهَا أَحَدٌ فَافْعَلْ. قُلْتُ: وَالرَّجُلُ يَكُونُ خَالِيًا؟ قَالَ: فَاللَّهُ أَحَقُّ أَنْ يُسْتَحْيَا مِنْهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَجَدُّ بَهْزٍ اسْمُهُ مُعَاوِيَةُ بْنُ حَيْدَةَ الْقُشَيْرِيُّ، وَقَدْ رَوَى الْجُرَيْرِيُّ، عَنْ حَكِيمِ بْنِ مُعَاوِيَةَ وَهُوَ وَالِدُ بَهْزٍ. (١)

**ترجمه** : دمعاويه بن حيده رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چې ما عرض اوكړو اي دالله رسوله مونږ خپل شرمګاهونه څومره حده پوري ښكاره كولي شو او څومره حده پوري ددي پټول ضروري دي؟ رسول الله اوفرمائيل دخپلو ښځو دخپلو وينځو نه علاوه دهر چانه خپل شرمګاهونه پټ ساتي: هغه اوونيل يو سړي كله كله ديو كس سره يوځاي پاتي كيږي رسول الله اوفرمائيل بيا هم تاسو لره ممكن كوشش كول پكار دي چې ستاسو شرمګاه اونه وينې ماااوونيل كه څوك يواځي وي نو څه حكم دي رسول الله اوفرمائيل الله تعالي ددي زيات مستحق دي چې حياء او شرم ورنه اوكړي شي

امام ترمذي وايي داحديث حسن دي او دبهز دنيكه نوم معاويه بن حيده القشيري دي، او جريري دحكيم بن معاويه نه روايت كړي دي او هغه دخپل پلار بهز نه نقل كړي دي.

### دمعاويه بن حيده رضي الله عنه حالات

نوم معاويه دبصري اوسيدونكى وو بيا خراسان ته منتقل شو دده نه عموما دده خوي حكم بن

معاويه نقل دروايت كوي دده دوفات تاريخ او دمروياتو دشمير باره كي څه معلومات نشته

***************

## ٢٣_باب مَا جَاءَ فِي الاِتِّكَاءِ

### دډډي وهلو بيان

٢٠٧٠_حَدَّثَنَا عَبَّاسُ بْنُ مُحَمَّدٍ الدُّورِيُّ البَغْدَادِيُّ، حَدَّثَنَا إِسْحَاق بْنُ مَنْصُورٍ الكُوفِيُّ، أَخْبَرَنَا إِسْرَائِيلُ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، قَالَ: رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " مُتَّكِئًا عَلَى وِسَادَةٍ عَلَى يَسَارِهِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَرَوَى غَيْرُ وَاحِدٍ هَذَا الحَدِيثَ عَنْ إِسْرَائِيلَ، عَنْ سِمَاكٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، قَالَ: " رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُتَّكِئًا عَلَى وِسَادَةٍ "، وَلَمْ يَذْكُرْ عَلَى يَسَارِهِ. ([1])

**ترجمه** : دجابر رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چې مارسول الله صلي الله عليه وسلم په ګس طرف يو بالخت ته د ډډي وهلو او تكيه كولو په حال كي ليدي دي

امام ترمذي وايي: داحديث حسن غريب دي داحديث يو څو راويانو په سند د اسرائيل عن سماك عن جابر بن سمره سره نقل كړي دي فرمائي چې مانبي كريم صلي الله عليه وسلم د ډډي وهلو په حال كي ليدلي وولېكن هغه پخپل حديث كي علي يساره الفاظ نه دي ذكر كړي

**تخريج**: سنن ابي داود/ اللباس ٣٥ (٤١٤٣) (تحفة الأشراف : ٢١٣٨)

***************

٢٧٧١ حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ إِسْرَائِيلَ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، قَالَ: رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " مُتَّكِئًا عَلَى وِسَادَةٍ ". هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ. ([2])

**ترجمه** : دجابر بن سمره رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي مارسول الله صلي الله عليه وسلم د ډډي وهلو په حالت كي ليدلي دي

امام ترمذي وايي: داحديث صحيح دي

***************

---

[1] _ اورده البخاري في الجامع /الطهارة ٩٩ . سنن ابي داود/ الحمام ٣ (٤٠١٧) . سنن ابن ماجه/النكاح ٢٨ (١٩٢٠) . ويأتي برقم ٢٧٩٤) (تحفة الأشراف : ١١٣٨٠)

[2] _ سنن ابي داود/ اللباس ٣٥ (٤١٤٣) (تحفة الأشراف : ٢١٣٨)

## ٢٤_باب مِنْهُ
## د سابقه باب متعلق يو بل باب

٢٧٧٢_حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ إِسْمَاعِيل بْنِ رَجَاءٍ، عَنْ أَوْسِ بْنِ ضَمْعَجٍ، عَنْ أَبِي مَسْعُودٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا يُؤَمُّ الرَّجُلُ فِي سُلْطَانِهِ وَلَا يُجْلَسُ عَلَى تَكْرِمَتِهِ فِي بَيْتِهِ إِلَّا بِإِذْنِهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه** . د ابو مسعود عقبه بن عمرو بدري انصاري رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلي الله علیه وسلم فرمائیلي دي: هیڅوك دی دبل په حلقه کې بی اجازته امامتئ ته نه مخکي کیږي او نه دی بی اجازي دبل دناستی په خاص ځایی (که ګدئ یا قالین وغیره) کیني امام ترمذي وایي دا حدیث حسن صحیح دی.

**لغات** یؤم امّ دنصر نه امّا ، وامّم او تامّم وائتمّ قصد کول، وامّاه یعني دماغي صدمه یي ورکړه امامتا وامام القوم ، دقوم امام جوړیدل

**تشریح**: دسلطان نه مراد دیوځایی حاکم دی یا چې یی په یو ځایی کي خاص اثر وي.

او تکرمه د "ت" په زور او د"ر" په زیر ده یعني دناستی خاص ځایی لکه تخت یا قالین یا ګدئ یا بل داسی شی.

ولا یوم الرجل الرجل في سلطانه . یعني څوك به دبل ځا په حکومت کي امامت نه ورکوي فقهاء وائي که معین امام موجود وي نو هم هغه به امامت ورکوي اګر که راتلونکی کس دده نه ښه وي او که دده نه بد وي بیا خو به دخلقو په زړه کي دهغه نه نفرت پیدا شي او خراب لره امام ګرځول مناسب نه دي.

امام نووي وائي مخکني لره اختیار دی چې پخپله امامت ورکوي او که بل څوك مخکې کوي که راتلونکی کس زیات علم لري نو بیا خو مستحب داده چې هغه مخکې کړی شي.

ولا یقعد في بیته علي تکرمته الا بأذله. یعني څوك به دچا په کور کي دچا په مخصوص ځاي داجازت طلب کولو نه بغیر نه کیني مطلب دادی که څوك ځاته ورشي برابره خبره وي چې کور وي او که دفتر وي نو هلته دچا په مخصوص ځاي کیناستل پکارنه دي مګر چې اجازت اوغواړي

---
[1] ـ انظر حدیث رقم ٢٢٥

****************

## ٢٥_باب مَا جَاءَ أَنَّ الرَّجُلَ أَحَقُّ بِصَدْرِ دَابَّتِهِ

### هر كس پخپله سورلۍ دمخكي كيناستو زيات حقدار دي

٢٧٧٣_حَدَّثَنَا أَبُو عَمَّارٍ الحُسَيْنُ بْنُ حُرَيْثٍ، حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الحُسَيْنِ بْنِ وَاقِدٍ، حَدَّثَنِي أَبِي، حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ بُرَيْدَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبِي بُرَيْدَةَ، يَقُولُ: "بَيْنَمَا النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمْشِي إِذْ جَاءَهُ رَجُلٌ وَمَعَهُ حِمَارٌ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ ارْكَبْ، وَتَأَخَّرَ الرَّجُلُ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَأَنْتَ أَحَقُّ بِصَدْرِ دَابَّتِكَ إِلَّا أَنْ تَجْعَلَهُ لِي، قَالَ: قَدْ جَعَلْتُهُ لَكَ قَالَ: فَرَكِبَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الوَجْهِ، وَفِي البَابِ، عَنْ قَيْسِ بْنِ سَعْدِ بْنِ عُبَادَةَ. ([1])

**ترجمه** : بريده رضي الله عنه راوي دي فرمائي چې نبي كريم صلي الله عليه وسلم چرته روان وو او يو كس ورته په داسي حال راغلو چې خر ورسره وو او رسول الله ته يې عرض اوكړو اي دالله رسوله سور شه او پخپله شاته راوړاندي شه رسول الله صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل ته دخپلي سورلۍ په سينه يعني دمخكي كيناستو زيات حقدار يې مگر هله كه ته اجازت اوكړي ددي خبري په اوريدو هغه فورا اوونيل ما ددي حق تاته دركړي دي او بياورباندي رسول الله صلي الله عليه وسلم سور شو.

امام ترمذي وايي: په دي سند دا حديث حسن غريب دي او په دي باب كي دقيس بن عباده نه هم روايت ولرد دي.

****************

## ٢٦_باب مَا جَاءَ فِي الرُّخْصَةِ فِي اتِّخَاذِ الأَنْمَاطِ

### په پالنكونو دابري اچولو دجواز بيان

٢٧٧٤_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ المُنْكَدِرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "هَلْ لَكُمْ أَنْمَاطٌ؟ قُلْتُ: وَأَنَّى تَكُونُ لَنَا أَنْمَاطٌ؟ قَالَ: أَمَا إِنَّهَا سَتَكُونُ لَكُمْ أَنْمَاطٌ". قَالَ: فَأَنَا أَقُولُ لِامْرَأَتِي أَخِّرِي عَنِّي أَنْمَاطَكِ، فَتَقُولُ: أَلَمْ يَقُلِ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّهَا سَتَكُونُ لَكُمْ أَنْمَاطٌ، قَالَ: فَأَدَعُهَا، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا

[1] _ سنن ابي داود/ الجهاد ٦٥ (٢٥٧٢) (تحفة الأشراف: ١٩٦١)

حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** دجابر رضي الله عنه بیان دي رسول الله صلي الله علیه وسلم فرمائیلي دي ایا تاسو سره انماط شته ما اووئیل داخیزونه مونږ سره چرته دي رسول الله اوفرمائیل ډیره نزدي ده چې انماط «دپالنګونو ابري» به تاسو سره پیدا شي «او اوس هغه زمانه راغلي ده زه خپلي ښځي ته وایم چې ته خپل انماط «پالنګونو ابري» زما نه لري ساته نو هغه راته وایي ایا رسول الله صلي الله علیه وسلم دا نه دي وئیلي چې تاسو سره به انماط وي نو بیا زه هغي ته ددینه تیر شم

امام ترمذي وایي: داحدیث حسن صحیح دي

*****************

## ٢٧_بَاب مَا جَاءَ فِي رُكُوبِ ثَلَاثَةٍ عَلَى دَابَّةٍ

## په یوه سورلۍ په یو وخت کي د دري کسانو دسوریدو بیان

٢٧٥_حَدَّثَنَا عَبَّاسٌ الْعَنْبَرِيُّ بْنُ عَبْدِ الْعَظِيمِ، حَدَّثَنَا النَّضْرُ بْنُ مُحَمَّدٍ هُوَ الْجُرَشِيُّ الْيَمَامِيُّ، حَدَّثَنَا عِكْرِمَةُ بْنُ عَمَّارٍ، عَنْ إِيَاسِ بْنِ سَلَمَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: لَقَدْ قُدْتُ نَبِيَّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْحَسَنَ، وَالْحُسَيْنَ عَلَى بَغْلَتِهِ الشَّهْبَاءِ، حَتَّى أَدْخَلْتُهُ حُجْرَةَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَذَا قُدَّامُهُ وَهَذَا خَلْفُهُ ". وَفِي الْبَابِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ جَعْفَرٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. [2]

**ترجمه** : سلمه رضي الله عنه وائي ما درسول الله صلي الله علیه وسلم شهباء نوم قچره رابنکله او رسول الله صلي الله علیه وسلم او حسن او حسین په دي باندي سواره وو تردي پوري چې درسول الله صلي الله علیه وسلم کور ته مي داخل کړه چې حسن مخکي ناست وو او حسین وریسي شاته ناست وو.

امام ترمذي وایي: داحدیث په دي سند حسن صحیح غریب دي، دابن عباس او عبدالله بن جعفر رضي الله عنهم نه هم په دي باب کي احادیث وارد دي.

*****************

---

[1] ـ اورده البخاري في الصحيح /المناقب ٢٥ (٣٦٣١) . واللباس ٦٢ (٥١٦١) . مسلم/اللباس ٧ (٢٠٨٣) . ابي داود/ اللباس ٣٥ (٤١٤٥) . النسائي/النكاح ٨٣ (٣٣٨٨) (تحفة الأشراف : ٣٠٢٢)

[2] ـ صحيح مسلم /فضائل الصحابة ٨ (٢٤٢٣) (تحفة الأشراف : ٥١٨)

## ٢٨_باب مَا جَاءَ فِي نَظْرَةِ الْمُفَاجَأَةِ

### په غير محرم د ناڅاپي نظر پريوتو بيان

٢٧٧٦_حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، أَخْبَرَنَا يُونُسُ بْنُ عُبَيْدٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ أَبِي زُرْعَةَ بْنِ عَمْرِو بْنِ جَرِيرٍ، عَنْ جَرِيرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: سَأَلْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ نَظْرَةِ الْفُجَاءَةِ " فَأَمَرَنِي أَنْ أَصْرِفَ بَصَرِي "، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَأَبُو زُرْعَةَ بْنُ عَمْرٍو اسْمُهُ هَرِمٌ. [1]

**ترجمه** : جرير بن عبدالله رضي الله عنه وائي چې ما درسول الله صلي الله عليه وسلم نه په پردئ ښځه دناڅاپي نظر لګيدو متعلق تپوس اوکړو نو ويي فرمائيل ته به خپل نظر راګرځوې
امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي

***************

٢٧٧٧_حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا شَرِيكٌ، عَنْ أَبِي رَبِيعَةَ، عَنِ ابْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، رَفَعَهُ قَالَ: " يَا عَلِيُّ، لَا تُتْبِعِ النَّظْرَةَ النَّظْرَةَ فَإِنَّ لَكَ الْأُولَى وَلَيْسَتْ لَكَ الْآخِرَةُ "، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ شَرِيكٍ. [2]

**ترجمه** :د ابو موسي اشعري رضي الله عنه نه مروي دي چې رسول الله علي رضي الله عنه ته اوفرمائيل چې اې علي په يو ځل ليدو پسې بل ځل کتل مه وربسې کوه ځکه چې په اولني ځل نظر لګيدل ستا دپاره معاف دي ليکن په دويم ځل کتل معاف نه دي
امام ترمذي وايي: داحديث حسن غريب دي او مونږ يي صرف دشريك په روايت پيژنو.

***************

## ٢٩_باب مَا جَاءَ فِي احْتِجَابِ النِّسَاءِ مِنَ الرِّجَالِ

### د سړو نه دښځو پردي کولو بيان

٢٧٧٨_حَدَّثَنَا سُوَيْدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ، أَخْبَرَنَا يُونُسُ بْنُ يَزِيدَ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ نَبْهَانَ مَوْلَى

---

[1] _ مسلم/الأدب ١٠ (٢١٥٩) ، سنن ابي داود/ النكاح ٤٤ (٢١٤٨) (تحفة الأشراف : ٣٢٣٧) ، و مسند احمد (٤/٣٥٨، ٣٦١) و الدارمي/الاستئذان ١٥ (٢٦٨٥)

[2] _ سنن ابي داود/ النكاح ٤٤ (٢١٤٩) (تحفة الأشراف : ٢٠٠٧)

أُمِّ سَلَمَةَ، أَنَّهُ حَدَّثَهُ، أَنَّ أُمَّ سَلَمَةَ حَدَّثَتْهُ، أَنَّهَا كَانَتْ عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَمَيْمُونَةَ، قَالَتْ: فَبَيْنَا نَحْنُ عِنْدَهُ أَقْبَلَ ابْنُ أُمِّ مَكْتُومٍ فَدَخَلَ عَلَيْهِ، وَذَلِكَ بَعْدَ مَا أُمِرْنَا بِالحِجَابِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "احْتَجِبَا مِنْهُ". فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَلَيْسَ هُوَ أَعْمَى لَا يُبْصِرُنَا وَلَا يَعْرِفُنَا ؟ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَفَعَمْيَاوَانِ أَنْتُمَا أَلَسْتُمَا تُبْصِرَانِهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** : ام سلمه رضي الله عنها نه روایت دی چې زه او میمونه رضي الله عنها رسول الله صلي الله علیه وسلم سره ناستی وو چې عبدالله بن ام مکتوم رضي الله عنه نابینا صحابي راغلو دا واقعه دپردی دحکم راتلو نه پس ده نو رسول الله صلي الله علیه وسلم مونږ ته اوفرمائیل تاسو دواړه په دده شئ مونږ عرض اوکړو یا رسول الله صلي الله علیه وسلم ایا دی نابینا نه دی چې نه مونږ ویني او نه مو پیژني (نو ده نه دپردی څه ضرورت دی) رسول الله صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل ایا تاسو دواړه هم ړندی یئ نه یې وینئ.
امام ترمذي وایي: داحدیث حسن صحیح دي

**لغات** : الحجاب مصدر دي جمع یې حجب راځي هرهغه شي ته ویلي شي چې ددوه شیانو په مینځ کې خائل شي لکه پرده .

**تشریح**: دپورتني حدیث نه معلومیږي لکه څرنګه چې دسړو دپاره ښځو ته کتل حرام دي همدارنګې ښځو لره هم سړو ته کتل حرام دي لیکن علماء وائي چې یوه ښځه بغیر دجنسي خواهش نه نارینه ته کتلی شي لکه چې دعائشه رضي الله عنها په واقعه کې راځي کله چې حبشیانو نیزه بازي کوله نو عائشه رضي الله عنها درسول الله شاته پټه اودریده او کتل یې او دا واقعه دهجرت دنهم کال ده لیکن علماء دپورتني حدیث نه دا جواب کوي چې دا په تقوي او پرهیزګارئ محفوظ ده چې دا کتل اګر چې جائز دي لیکن نه کتل تقوي ده البته که څوك په جنسي خواهش سره اوګوري نو په داسي صورت کې ښځو لره هم سړو ته کتل حرام دي او نن سبا خو صرف دخواهش زمانه ده نو په دي وجه په دي مسئله کې دښځو دپاره هم سړو ته کتل جائز نه دي.
(دی حدیث شریف نه معلومه شوه چې څرنګه دسړو دپاره پردو ښځو ته کتل ناروا دي دغه شان دښځو دپاره هم پردو سړوته کتل ناروا دي).

***************

[1] - سنن ابي داود/ اللباس ٣٧ (٤١١٢) (تحفة الأشراف : ١٨٢٢٢) . و مسند احمد (٦/٢٩٦)

## ۳۰ـ باب مَا جَاءَ فِي النَّهْيِ عَنِ الدُّخُولِ، عَلَى النِّسَاءِ إِلاَّ بِإِذْنِ الأَزْوَاجِ

### دخاوند داجازت نه بغير دهغوئ ښځوته دورتلو دمما نعت بيان

۲۷۷۹ـ حَدَّثَنَا سُوَيْدُ بْنِ نَصْرٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ، أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ، عَنِ الْحَكَمِ، عَنْ ذَكْوَانَ، عَنْ مَوْلَى عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ، أَنَّ عَمْرَو بْنَ الْعَاصِ أَرْسَلَهُ إِلَى عَلِيٍّ يَسْتَأْذِنُهُ عَلَى أَسْمَاءَ بِنْتِ عُمَيْسٍ، فَأَذِنَ لَهُ حَتَّى إِذَا فَرَغَ مِنْ حَاجَتِهِ، سَأَلَ الْمَوْلَى عَمْرَو بْنَ الْعَاصِ عَنْ ذَلِكَ، فَقَالَ: " إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَانَا أَوْ نَهَى أَنْ نَدْخُلَ عَلَى النِّسَاءِ بِغَيْرِ إِذْنِ أَزْوَاجِهِنَّ " وَفِي الْبَابِ، عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَجَابِرٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه** : عمرو بن العاص رضي الله عنه دازاد کړي غلام نه روايت دي فرمائي چې عمرو بن عاص زه علي رضي الله عنه ته (دهغه دښځي) اسماء بنت عميس سره دملاقات کولو داجازت غوښتلو دپاره اوليږلم نوهغوئ داجازت اوکړو بيا چې کله هغه دکوم ضرورت دپاره تلي وو دهغي وينا يي اوکړه او فارغ شو نو ددوئ ازاد کړي غلام ددوئ نه دي باره کي تپوس اوکړو نو هغه اووئيل رسول الله صلي الله عليه وسلم مونږ دښځو سره دمخامخ کيدو نه دهغوئ دخاوندانو داجازت نه بغير منع کړي يو.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي او په دي باب کي دعقبه بن عامر عبدالله بن عمرو، او جابر رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

****************

## ۳۱ـ باب فِي تَحْذِيرِ فِتْنَةِ النِّسَاءِ

### دښځو دفتني نه دبچ کيدو بيان

۲۷۸۰ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الأَعْلَى الصَّنْعَانِيُّ، حَدَّثَنَا الْمُعْتَمِرُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي عُثْمَانَ، عَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ، وَسَعِيدِ بْنِ زَيْدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ نُفَيْلٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " مَا تَرَكْتُ بَعْدِي فِي النَّاسِ فِتْنَةً أَضَرَّ عَلَى الرِّجَالِ مِنَ النِّسَاءِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رَوَى هَذَا الْحَدِيثَ غَيْرُ وَاحِدٍ مِنَ الثِّقَاتِ، عَنْ سُلَيْمَانَ التَّيْمِيِّ، عَنْ أَبِي عُثْمَانَ، عَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَلَمْ يَذْكُرُوا فِيهِ عَنْ سَعِيدِ بْنِ زَيْدٍ

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ۱۰۷۵۲)

بْنِ عَمْرِو بْنِ نُفَيْلٍ، وَلَا نَعْلَمُ أَحَدًا قَالَ: عَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ، وَسَعِيدُ بْنُ زَيْدٍ غَيْرُ الْمُعْتَمِرِ. وَفِي الْبَابِ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ. ([1])

**ترجمه** داسامه بن زيد رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي ما دخپل خان نه پس سړو دپاره دښځو دفتني نه زيات نقصان رسوونكی شی بل نه دی پريښی.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي او داحديث ديو څو ثقه راويانو نه په سند د سليمان التيمي عن ابي عثمان عن اسامه بن زيد عن النبي صلي الله عليه وسلم سره مروي دي او هغوئ په دي سند كي دسعيد بن زيد عمرو بن نفيل ذكر نه دي كړي او مونږ ته دمعتمر نه علاوه بل څوك نه دي معلوم چې هغه عن اسامه بن زيد وسعيد بن زيد دواړه په يوځاي وئيلي دي، او په دي باب كي دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه هم حديث وارد دي

**لغات**: اضرّ: اسم تفضيل دي دباب نصر نه، زيات تكليف وركونكي ته وئيلي شي.

**تشريح**: دښځو فتنه دتمامو فتنو نه لويه او زياته خطرناكه ګڼړلی شوي ده خكه چې په يو بل روايت كي هم راځي ارشاد نبوي دی چې دښځو مكر او فتنه دشيطان دفتني نه هم زياته ده خكه چې الله تعالي دشيطان دمكر په باره كي فرمائيلي دي چې دا ضعيف او كمزوری دی "ان كيدالشيطان كان ضعيفا" ليكن دښځو دمكر او فتني په باره كي يي فرمائيلي دي "ان كيدكن عظيم" يعني ستاسو مكر او فتنه ډيره لويه ده.

همدارنګي علماء فرمائي چې په ښځو كي خواهشات او ددنيا حرص دسړو په نسبت زيات وي او بل طرف ته دنارينوو طبائع ښځو طرف ته مائل كيږي او ددي ښځو دمحبت په وجه سړي ددنيا په حصول كي دحرامو ارتكاب هم كوي دبعضي هوښيارانو په قول كه چري په دنيا كي ښځي نه وی نو سړي به ټول جنت ته تلي وو.

دلته دا خبره ياد ساتئ چې ټولي ښځي داسي نه وي ډيري ښځي داسي هم شته چې دسړو په نسبت اخرت طرف ته زياتي متوجه وي او خلقو لره هم اخرت طرف ته متوجه كونكی وي.

**************

حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ. حَدَّثَنَا سُفْيَانُ. عَنْ سُلَيْمَانَ التَّيْمِيِّ، عَنْ أَبِي عُثْمَانَ، عَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ، عَنِ

[1] - اورده البخاري في الصحيح /النكاح ١٨ (٥٠٩٦) . صحيح مسلم /الذكر والدعاء ٢٦ (٢٧٤٠) . ابن ماجه/الفتن ١٩ (٣٩٩٨) (تحفة الأشراف: ٩٩، و ٤٤٦٢) . و احمد (٥/٢٠٠)

النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، نَحْوَهُ. (1)

**ترجمه** په دي سند هم داسامه بن زيد په واسطه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه دماقبل هم معني روايت مروي دي.

***************

## ٣٢_باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ اتِّخَاذِ الْقُصَّةِ

### پخپلو ويختو پوري دفالتو ويختوا نخلولو دمما نعت بيان

٢٧٨١_حَدَّثَنَا سُوَيْدٌ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللهِ، أَخْبَرَنَا يُونُسُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، أَخْبَرَنَا حُمَيْدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، أَنَّهُ سَمِعَ مُعَاوِيَةَ بِالْمَدِينَةِ يَخْطُبُ يَقُولُ: أَيْنَ عُلَمَاؤُكُمْ يَا أَهْلَ الْمَدِينَةِ، إِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْهَى عَنْ هَذِهِ الْقُصَّةِ وَيَقُولُ: " إِنَّمَا هَلَكَتْ بَنُو إِسْرَائِيلَ حِينَ اتَّخَذَهَا نِسَاؤُهُمْ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ عَنْ مُعَاوِيَةَ. (2)

**ترجمه** : حميد بن عبدالرحمن نه روايت دى چې ما دمعاويه نه اوريدلي دي چې په مدينه کي يي خطبه ورکوله او ويي ونيل دمدينې خلقو ستاسو عالمان څه شو (چې مسئله درته نه بنائي) ما د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي دي چې دداسې كار نه يې خلق منع كول يعنى مصنوعي ويښتو نه يې خلق منع كول اوفرمائيل يې دبني اسرائيلو ښځو چې داسې كارونه شروع كړل نو بني اسرائيل تباه شو.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي او داحديث په يو څو سندونو دمعاويه رضي الله عنه نه مروي دي

**لغات** : هلكت: هلك يهلك هلكا دضرب سمع او فتح نه هلاكا وهُلكا وهلوكا وتهلوكا ومهلكا تهلكة معني فنا كيدل او مره كيدل او نيست او نابود كيدل، عموما ددي استعمال دبد مرګ دپاره وي ، اليه وعليه لالچي كيدل خواهش مند كيدل، هلكه واهلكه فنا كول او نيست او نابود كول كه څوك كوم لوي كار وكړي نو هغي ته هلكت واهلكت ويلي شي.

---

[1] _ اورده البخاري في الصحيح/النكاح ١٨ (٥٠٩٦) . صحيح مسلم/الذكر والدعاء ٢٦ (٢٧٤٠) . ابن ماجه/الفتن ١٩ (٣٩٩٨) (تحفة الأشراف : ٩٩، و٢٢٦٢) . و احمد (٥/٢٠٠)

[2] _ اورده البخاري في الجامع الصحيح /أحاديث الأنبياء ٥٤ (٣٤٦٨) . واللباس ٨٣ (٥٩٣٢) . صحيح مسلم/اللباس ٣٣ (٢١٢٧) . سنن ابي داود/ الترجل ٥ (٤١٦٧) . سنن النسائي/الزينة ٢١ (٥٠٩٥) . و ٦٨ (٥٢٤٩٥٢٥٠) (تحفة الأشراف : ١١٤٠٧) . والمؤطاء :الشعر ١ (٢) . و مسند احمد (٩٥/٤، ٩٨)

**تشريح** : ددي حديث نه يو څو خبري معلومي شوي
١ . كه حاكمان كومه ګناه د خوريدو په حالت كې اووينې نو هغه دي منع كړي
٢ . دګناه نه منع كول پخپل ځان هلاكت ته دعوت وركول دي
٣ . او همدا رنګي پردي ويخته لګول دبني اسرائيلو عادت وو
*****************

## ٣٣ـ بَاب مَا جَاءَ فِي الْوَاصِلَةِ وَالْمُسْتَوْصِلَةِ وَالْوَاشِمَةِ وَالْمُسْتَوْشِمَةِ

### دخپلو ويختو سره د نورو ويختو لګونكو ښځواو ددي په خواهش كونكو ښځواو په خال لګونكو ښځواو دخال په خواهش كونكو ښځو دلعنت بيان

٢٧٨٢ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا عَبِيدَةُ بْنُ حُمَيْدٍ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَلْقَمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " لَعَنَ الْوَاشِمَاتِ وَالْمُسْتَوْشِمَاتِ، وَالْمُتَنَمِّصَاتِ، مُبْتَغِيَاتٍ لِلْحُسْنِ مُغَيِّرَاتٍ خَلْقَ اللَّهِ ". قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رَوَاهُ شُعْبَةُ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ مِنَ الْأَئِمَّةِ، عَنْ مَنْصُورٍ. [1]

**ترجمه** : ابن مسعود رضي الله عنه نه روايت دى چې هغه اووئيل په واشمه اومستوشمه او متنمصه، او متفلجه چې د حسن خواهش مندي وي،په دوئ تولو باندي رسول الله صلي الله عليه وسلم لعنت وئيلي دي چې دالله تعالي پيدائشت كې تغير راولي.
امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي داحديث شعبه او بعضي نورو راويانو هم دمنصور نه نقل كړي دي.
**لغات** : المغيرات جمع دمغيرة ده معني دالله خلقت لره تبديل كونكي ښځي المتفلجة: هغه ښځي چې دغاښونو مينځ كې خالي ګاه جوړونكي وي.
**تشريح** : واشمه معني خال لګونكي ، او مستوشمه دخال لګولو خواهش كونكي، المتفلجات غاښونه سوهان كونكي، دی دپاره چې ترمينځه يی فاصله پيداشي او ښايسته شي دی ته وشرهم وائي هغه زمانه كې په عربو كې دمخامخ دوو غاښونو ترمينځه لږ فاصله دحسن او دنيك بختئ علامه ګڼلی شوه، نو كه قدرتي فاصله به دچا غاښونو كی نه وه هغوئ به لږ لږ

---

[1] ـ اورده البخاري في الصحيح /التفسير الحشر ٤ (٤٨٨٦) . واللباس ٨٢ (٥٩٣١) . ٨٣ (٥٩٣٩) . و ٨٥ (٥٩٤٣) . و ٨٦ (٥٩٤٤) . و ٨٧ (٥٩٤٨) . مسلم /اللباس ٣٣ (٢١٢٥) . ابي داود/ الترجل ٥ (٤١٦٩) . النسائي/الزينة ٢٤ (٥١٠٢) . و ٢٦ (٥١١٠) . ٧٤ (٥٢٥٤) . ابن ماجه/النكاح ٥٢ (١٩٨٩)

سوهان کړل او مصنوعي حسن به یی پیدا کولو، دغه څیز نه رسول الله صلي الله علیه وسلم منع کړی ده نامصه هغه ښځه ده چې دوروخو نه وینښته اوباسي دښایست دپاره یی نرئ کوي او ترمینځه یی فاصله پیدا کوي متنمصه هغه ښځه ده چې دا کار په چا کوي یعنی په بله باندی دخپلو روخو نه وینښته اوباسي.

په پورتني حدیث کې په یو څو قسمه ښځو لعنت شوي دي. لعن الواشمات والمستوشمات. خالونه لګونکي او دخالونو لګولو طلب کونکي دا دواړه قسمه کسان حرام کوي ددي وضاحت په سابقه حدیث کې تیر شوی دی المتنمصات دمخ نه ویخته ویستونکي ښځي علماء واني چې ددي یو صورت خو دادی دبعضو ښځو په مخونو دسړو پشان ویخته راوخیژي نو دهغي صفاکول جائز دي ددینه علاوه جائز نه دي.

والمتفلجات للحسن: او د غاښونو په مینځ کې فراخي پیدا کول عموما دوړو جینکو غاښونه داسي وي په عربو کې چې کله ښځي ډیر عمر ته ورسیږي نو غاښونه به یي په ستن یاشګو مړل چې درست شي مقصد به یي دا وو چې دډیر عمر ښکاره نه شي نو دا کار شریعت ناجائز اوګرځولو.

المغیرات خلق الله: دا تمامي ښځي دکومو چې ذکر اوشو دا داسي دي چې الله تعالي دوی څرنګه پیدا کړي دي دوئ په دي کې دخپل خواهش مطابق ترمیم او تغیر کول غواړي.

ما اتاکم الرسول فخذوه ومانهاکم عنه فانتهوا: یعني دالله رسول چې تاسو ته کوم حکم کوئ هغه قبول کړئ او چې دڅه نه مو منع کوي دهغي نه منع شئ مطلب دادی چې دالله رسول دکومي خبري چې حکم کړی دی یایي منع فرمائیلي ده دا په اصل کې دالله حکم دی صرف دنبي حکم نه دی.

علامه طیبي واني چې په مذکوره ښځورسول الله لعنت فرمائیلی دی نو دا داسي ده لکه چې الله وریاندي لعنت فرمائیلی دی نو په دي وجه ددي کارونو نه ځان ساتل پکار دي.

بخاري دابن مسعود رضي الله عنه نه روایت نقل کړي دي چې فرمائیلي یي وو. لعن ال الواشمات والمستوشمات والمتنمصات والمتفلجات للحسن المغیرات خلق الله . نوچې دب اسد قبیلي یوي ښځي ته ددي واقعي خبر ورسیدو نو وئي وئیل ماته خبر رارسیدلي دي چې په داسي داسي ښځو لعنت وئیلي دي ابن مسعود رضي الله عنه ووئیل څکه چې دالله ر وریاندي لعنت وئیلي دي ، ښځي ووئیل چې ددواړو لوحو په مینځ کتاب ما تمام لوستلي د او ماخوپکې دا ندي لوستلي ابن مسعود رضي الله عنه ووئیل که تاد الله کتاب لوستلي وي دا به دي پکې ضرور لوستلي وو ایا تا ندي اوریدلي چې الله تعالي فرمائیلي دي. "ما آتاَ

الرسول فخذوه ومانهاكم عنه فانتهوا" رواه البخاري۔

****************

۲۷۸۳_حَدَّثَنَا سُوَيْدٌ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " لَعَنَ اللَّهُ الْوَاصِلَةَ وَالْمُسْتَوْصِلَةَ، وَالْوَاشِمَةَ وَالْمُسْتَوْشِمَةَ "، قَالَ نَافِعٌ: الْوَشْمُ فِي اللِّثَةِ، قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَفِي الْبَابِ، عَنْ عَائِشَةَ، وَمَعْقِلِ بْنِ يَسَارٍ، وَأَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ، وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ يَحْيَى قَوْلَ نَافِعٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه** . دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما بيان دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دالله تعالي لعنت دي وي په هغه ښځو چې په ويښتو پورې نور ويښته انخلوي او په هغه ښځو ځوك چې ددې خواهش كوي اوپه هغه ښځو چې خالونه لګوي او په هغه ښځو ځوك چې خالونه لګول خوښوي نافع وائي لثه په اورو كي وي.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي او په دې باب كې دعائشه، معقل بن يسار، اسماء بنت ابي بكر او ابن عباس رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي محمد بن بشار به ونيل چې مونږ ته يحي بن سعيد روايت بيان كړي دي او يحي ته عبيدالله بن عمر دنافع نه روايت بيان كړي دي او نافع دابن عمر په واسطه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه ددې هم معني روايت نقل كړي دي مګر يحي په دې روايت كې دنافع قول نه دی ذكر كړي.

****************

## ٣٤_بَاب مَا جَاءَ فِي الْمُتَشَبِّهَاتِ بِالرِّجَالِ مِنَ النِّسَاءِ

### دسړو سره دمشابهت اختيارونكو ښځو بيان

۲۷۸٤_حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ الطَّيَالِسِيُّ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، وَهَمَّامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "لَعَنَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمُتَشَبِّهَاتِ بِالرِّجَالِ مِنَ النِّسَاءِ، وَالْمُتَشَبِّهِينَ بِالنِّسَاءِ مِنَ الرِّجَالِ"، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[2]

[1] ـ انظر حديث رقم ١٧٥٩

[2] ـ انظر حديث رقم ١٧٥٩

**ترجمه** : دابن عباس رضي الله عنهما نه مه وي دي فرمائي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم په داسي ښځو لعنت ونيلي دي څوك چې دسړو سره مشابهت اختياروي او په هغه سړو يې لعنت ونيلي دي څوك چې دښځو سره مشابهت اختياروي.
امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي.

***************

۲۷۸۵_حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الْخَلَّالُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، وَأَيُّوبَ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "لَعَنَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمُخَنَّثِينَ مِنَ الرِّجَالِ، وَالْمُتَرَجِّلَاتِ مِنَ النِّسَاءِ"، قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَفِي الْبَابِ، عَنْ عَائِشَةَ. ([1])

**ترجمه** : ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دى چې رسول الله صلي الله عليه وسلم په هغه سړو لعنت ونيلى دى په هجړاتوب كونكو سړو باندي، او په هغه ښځو چې د سړو سره مشابهت اختياروي.
امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دعائشه رضي الله عنها نه هم روايت وارد دي.

**لغات** : لعن: لعن لعنا معني لعنت كول ، رسوا كول، كنځل كول ، دخير نه لري كول، رټل، تلعين معني عذاب وركول.

**تشريح**: مخنث داسي سړي ته ونيلى شي څوك چې دښځو پشان لباس اغوندي او دښځو پشان لب او لهجه اختياروي او همدا رنګي په ټولو حركاتو او سكناتو كې دښځو انداز خپل كړي داسي سړي ته زمونږ په عرف كې هجړا ونيلى شي، مخنث په دوه قسمه دى يو خو هغه وي په كوم كې چې پيدانشي طور دښځو پشان نرمي او لكچ وي دويم هغه دى په چا كې چې دا څيزونه په پيدانشي طور نه وي مګر قصدا خان داسي جوړ كړي نو په دي دويم قسم مخنث باندي لعنت شوى دى په خلاف داولني قسم خكه چې هغه معذور دى.
همدا رنګي هغه زنانه څوك چې مردانه لباس او مردانه وضع قطع اختيار كړي او په نورو عاداتو كي دسړو سره مشابهت كوي په دوئ باندي هم لعنت شوى دى.

***************

[1] ــ اورده البخاري في الجامع الصحيح /اللباس ٥١ (٥٨٨٥). سنن ابي داود/ اللباس ٣١ (٤٠٩٧). سنن ابن ماجه/النكاح ٢٢ (١٩٠٤) (تحفة الأشراف : ٦١٨٨). و مسند احمد (١/٢٥١، ٣٣٠). وسنن الدارمي/الاستئذان ٢١ (٢٦٩١)

## ٣٥_باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ خُرُوجِ الْمَرْأَةِ مُتَعَطِّرَةً

**دعطر لګولو په حال کي دښځي دکور نه بهر وتلو دحرمت بيان**

٢٧٨٦_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ الْقَطَّانُ، عَنْ ثَابِتِ بْنِ عُمَارَةَ الْحَنَفِيِّ، عَنْ غُنَيْمِ بْنِ قَيْسٍ، عَنْ أَبِي مُوسَى، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "كُلُّ عَيْنٍ زَانِيَةٌ، وَالْمَرْأَةُ إِذَا اسْتَعْطَرَتْ فَمَرَّتْ بِالْمَجْلِسِ فَهِيَ كَذَا وَكَذَا يَعْنِي زَانِيَةً". وَفِي الْبَابِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** دابوموسي اشعري رضي الله عنه نه مروي دي نبي کريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي هره يوه سترګه زناکاره ده او يوه ښځه چې کله خوشبو اولګوي او ديو مجلس په خوا کي تيريږي نو دا هم داسي ده، يعني دا هم زناکاره ده.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي، او په دي باب کي دابوهريره رضي الله عنه نه هم روايت وارد دي.

*****************

## ٣٦_باب مَا جَاءَ فِي طِيبِ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ

**دسړو او ښځو دپاره دخوشبو لګولو حکم**

٢٧٨٧_حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ الْحَفَرِيُّ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنِ الْجُرَيْرِيِّ، عَنْ أَبِي نَضْرَةَ، عَنْ رَجُلٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "طِيبُ الرِّجَالِ مَا ظَهَرَ رِيحُهُ وَخَفِيَ لَوْنُهُ، وَطِيبُ النِّسَاءِ مَا ظَهَرَ لَوْنُهُ وَخَفِيَ رِيحُهُ". [2]

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دسړو خوشبو هغه ده دکومي نه چې خوشبويي خوريږي او رنګ يي نه خوريږي او دښځو خوشبو هغه دي چې رنګ يي ظاهر وي ليکن خوشبو يي پټه وي

امام ترمذي وايي داحديث حسن دي

*****************

[1] - ابي داود/الترجل ٧ (٤١٧٣)، سنن النسائي/الزينة ٣٥ (٥١٢٩) (تحفة الأشراف: ٩٠٢٢)

[2] - سنن ابي داود/النكاح ٥٠ (٢١٧٤)، و النسائي/الزينة ٣٢ (٥١٢٠، ٥١٢١) (تحفة الأشراف: ١٥٨٦)، و مسند احمد (٢/٥٤١)

حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا إِسْمَاعِيل بْنُ إِبْرَاهِيمَ، عَنِ الجُرَيْرِيِّ، عَنْ أَبِي نَضْرَةَ، عَنِ الطُّفَاوِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ بِمَعْنَاهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، إِلَّا أَنَّ الطُّفَاوِيَّ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا فِي هَذَا الحَدِيثِ، وَلَا نَعْرِفُ اسْمَهُ. وَحَدِيثُ إِسْمَاعِيل بْنِ إِبْرَاهِيمَ أَتَمُّ وَأَطْوَلُ. وفي الباب عن عمران بن حصين. [1]

**ترجمه** . طفاوي دابوهريره په واسطه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه ددي هم معني روايت نقل كړي دي.

امام ترمذي وايي. داحديث حسن دي او دطفاوي په روايت ددي حديث نه علاوه بل حديث مونږ ته معلوم نه دي او نه مونږ ته دده نوم معلوم دي او داسماعيل بن ابراهيم حديث كامل او اوږد دي، او په دي باب كي دعمران بن حصين رضي الله عنه نه هم حديث وارد دي.

***************

۲۷۸۸ــ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرٍ الحَنَفِيُّ، عَنْ سَعِيدٍ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ الحَسَنِ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، قَالَ: قَالَ لِي النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِنَّ خَيْرَ طِيبِ الرَّجُلِ مَا ظَهَرَ رِيحُهُ وَخَفِيَ لَوْنُهُ، وَخَيْرَ طِيبِ النِّسَاءِ مَا ظَهَرَ لَوْنُهُ وَخَفِيَ رِيحُهُ، وَنَهَى عَنْ مِيثَرَةِ الأُرْجُوَانِ ". هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الوَجْهِ. [2]

**ترجمه** : دعمران بن حصين رضي الله عنه بيان دي فرمائي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم ماته اوفرمائيل دسړو بهترينه خوشبو هغه ده چې خوشبو يې يې خوريږي او رنګ يې نه خوريږي او د ښځو بهترينه خوشبو هغه ده چې رنګ يې ظاهر وي او خوشبو يې پته پاتي شي او رسول الله صلي الله عليه وسلم دزني دپاسه دتكي سري ريشمي كپړي اچولو نه منع فرمائيلي ده.

امام ترمذي وايي: داحديث په دي سند حسن غريب دي.

تشريح "مسيرة الارجوان" سور رنګ والا وړي ګدۍ ته وئيلي شي چې په اسونو يې خلق دزن دپاسه ايږدي.

***************

[1] ــ سنن ابي داود/ النكاح ٥٠ (٢١٧٤) . سنن النسائي/الزينة ٣٢ (٥١٢٠، ٥١٢١) (تحفة الأشراف : ١٥٨٦). و مسند احمد (٢/٥٤١)

[2] ــ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ١٠٨٠٥) . و مسند احمد (٤/٤٤٢)

## ٣٧_باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ رَدِّ الطِّيبِ

## چاته خوشبو واپس کول ناخوښه او مکروه کاردي

٢٧٨٩_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، حَدَّثَنَا عَزْرَةُ بْنُ ثَابِتٍ، عَنْ ثُمَامَةَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: كَانَ أَنَسٌ لَا يَرُدُّ الطِّيبَ، وَقَالَ أَنَسٌ: إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ لَا يَرُدُّ الطِّيبَ" وَفِي البَابِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (١)

**ترجمه** دثمامه بن عبد الله بيان دي چي د انس بن مالك رضي الله عنه ته چې به چا خوشبوئي پيش كړه نو هغوئ به نه واپس كوله. او ونيل به يې چې رسول الله صلي الله عليه وسلم ته چې به چا خوشبوئي پيش كړه نو هغوئ به نه واپس كوله.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دابوهريره رضي الله عنه نه هم حديث وارد دي.

**لغات**: طيب ، پاكيزه، حلال ، عمده جمع يې طيبات او طوبي ده.

**تشريح**: دعلامه عيني قول دى چي چونكه رسول الله صلي الله عليه وسلم به دفرشتو سره خبري اتري او مكالمي كولي او هغوئ دبدبويي نه نفرت كوي او دخوشبو سره محبت لري نو په دي وجه درسول الله صلي الله عليه وسلم به هم خوشبو خوښه وه علماء واني چي دا حكم دهر هغه هديي هم دى كومه چې په قيمت كي كمه وي مګر دفائدي په اعتبار زياته وي دكومي په وركولو اخستو چي په چا باندي څه بوج نه راخي.

*****************

٢٧٩٠_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي فُدَيْكٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُسْلِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "ثَلَاثٌ لَا تُرَدُّ: الوَسَائِدُ، وَالدُّهْنُ، وَاللَّبَنُ الدُّهْنُ. يَعْنِي بِهِ الطِّيبَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، وَعَبْدُ اللَّهِ هُوَ ابْنُ مُسْلِمِ بْنِ جُنْدَبٍ وَهُوَ مَدَنِيٌّ. (٢)

**ترجمه** : دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دري څيزونه داسي دي (چې څوك يې په تحفه كي دركړي) نو واپس كول يې پكار نه دي يو

---

[1] - اورده البخاري في الجامع الصحيح /الهبة ٩ (٢٥٨٢) . واللباس ٨٠ (٥٩٢٩) . سنن النسائي/الزينة ٧٤ (٥٢٦٠) (تحفة الأشراف: ٤٩٥٢)

[2] - تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٧٢٥٣)

تكيه ده بل تيل دي او بل شوده دي (او دتيلو نه مراد خوشبو ده).
امام ترمذي وايي: داحديث غريب دي، عبدالله دمسلم بن جندب خوي دي او دمديني اوسيدونكي دي.

* * * * * * * * * * * * * * * *

٢٧٩١_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ خَلِيفَةَ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ بَصْرِيٌّ، وَعَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ، قَالَا: حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، عَنْ حَجَّاجٍ الصَّوَّافِ، عَنْ حَنَانٍ، عَنْ أَبِي عُثْمَانَ النَّهْدِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا أُعْطِيَ أَحَدُكُمُ الرَّيْحَانَ فَلَا يَرُدَّهُ فَإِنَّهُ خَرَجَ مِنَ الْجَنَّةِ". قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَلَا نَعْرِفُ حَنَانًا إِلَّا فِي هَذَا الْحَدِيثِ، وَأَبُو عُثْمَانَ النَّهْدِيُّ اسْمُهُ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مُلٍّ، وَقَدْ أَدْرَكَ زَمَنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَمْ يَرَهُ وَلَمْ يَسْمَعْ مِنْهُ. (1)

**ترجمه** : د ابو عثمان نهدي رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاته چې کشمالي يعني خوشبوئي پيش کړی شوه نو واپس کوی دی نه ځکه چې داد جنت نه راغلي دي.

امام ترمذي وايي: داحديث غريب دي مونږ یي صرف په همدي سند پيژنو او دحنان په نوم راوي مونږ صرف په همدي حديث پيژنو او دابو عثمان نهدي نوم عبدالرحمن بن مل دي او هغه درسول الله صلي الله عليه وسلم زمانه نه ده موندلي او نه يي درسول الله صلي الله عليه وسلم سره ملاقات نصيب شوي دي او نه يي ورنه کوم حديث اوريدلي دي.

**تشريح** : په دي حديث کې دا مسئله بيان شوي ده چې دخوشبودار څيز هديه به قبلوئ ددي وجه داده چې دخوشبو هديه ورکونکو باندي هم بوج نه وي او بله داده چې خوشبو يو ښه څيز دی دا هم معلومه شوه چې دخوشبو هديه قبلول مستحب دي خوچې څه بوج پکې نه وي علماء وائي چې دخوشبو استعمال هم مستحب دی او بل چاته يي په هديه کې ورکول هم مستحب دي او ګنړي ته دورتلو نه مخکې ددي استعمال هم مستحب دی.

* * * * * * * * * * * * * * *

## ٣٨_باب فِي كَرَاهِيَةِ مُبَاشَرَةِ الرَّجُلِ الرَّجُلَ وَالْمَرْأَةِ الْمَرْأَةَ

**ديو سړي دبل سړي سره او ديوي ښځي دبلي ښځي سره دجسم پيوست کولو دحرمت بيان**

٢٧٩٢_حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ شَقِيقِ بْنِ سَلَمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ:

---

1_ سنن ابي داود/ المراسيل ٩٧ (تحفة الأشراف : ١٨٩٨٥)

قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تُبَاشِرُ الْمَرْأَةُ الْمَرْأَةَ حَتَّى تَصِفَهَا لِزَوْجِهَا كَأَنَّمَا يَنْظُرُ إِلَيْهَا".
قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (1)

**ترجمه** : ابن مسعود رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلی دي يوه ښځه دی هم بلی ښځی ته بربنډ حالت کې نه ګوري چې بيا دهغی دبدن پټ حسن خپل خاوند ته داسی بيانوي لکه چې هغه يی په خپلو سترګوويني.
امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي.

**لغات**: زوج په معني دښځي ، خاوند ، ملګري، جوړي، لکه چې ويلي شي عندي زوجا حمام ، زما سره يوه جوړه ده جمع يي ازواج ده او جمع الجمع يي ازاويج ده ، الزوجة معني ښځه جمع يي زوجات ، الزواج واده کول.

**تشريح** : لاتباشر: مباشرت دي نه کوي يوه ښځه دبلي ښځي سره مباشرت ونيلی شي د دوه جسمونو يوځاي کولو ته علماء وائي په پورتني حديث کې دمباشرت لفظ اصلي او مجازي دواړه معني مراد کيدی شي اصلي معني يي جسم دجسم سره يوځاي کول دي او مجازي معني يي صرف کتل دي ددي مباشرت مقصد داوي چې دجسم خصوصيات يعني خوب صورتي وغيره اوګوري او بيايي دکوم نارينه په وړاندي بيان کړي په پورتني حديث کې ددي مذمت راغلی دی او انتهائي بدترين کار ګڼرلی شوی دی ددي په سبب بي شرمي او بداخلاقي پيدا کيږي او ددي په وجه زنا طرف ته لار هواريږي او که داسي نه وي نو کم از کم ددي په وجه په ګنده خيالاتو کې دمبتلا کيدو خطره ضرور ده

***************

۲۷۹۳ـحَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي زِيَادٍ، حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ حُبَابٍ، أَخْبَرَنِي الضَّحَّاكُ بْنُ عُثْمَانَ، أَخْبَرَنِي زَيْدُ بْنُ أَسْلَمَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يَنْظُرُ الرَّجُلُ إِلَى عَوْرَةِ الرَّجُلِ، وَلَا تَنْظُرُ الْمَرْأَةُ إِلَى عَوْرَةِ الْمَرْأَةِ، وَلَا يُفْضِي الرَّجُلُ إِلَى الرَّجُلِ فِي الثَّوْبِ الْوَاحِدِ، وَلَا تُفْضِي الْمَرْأَةُ إِلَى الْمَرْأَةِ فِي الثَّوْبِ الْوَاحِدِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ صَحِيحٌ. (2)

---

[1] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /النكاح ۱۱۸ (۵۲۴۰) . سنن ابي داود/ النكاح ۴۴ (۲۱۵۰) (تحفة الأشراف : ۹۲۵۲) . و مسند احمد (۳۸۷/۱، ۴۶۰)

[2] ـ مسلم /النكاح ۲۱۳ (۱۴۳۷) ، سنن ابي داود/ الحمام ۳ (۴۰۱۸) (تحفة الأشراف : ۴۱۱۵)

**ترجمه** : ابوسعيد خدري رضي الله عنه نه روايت دی چه سړي دی دسړو عورت ته (پردی خايونوته، نه ګوري او ښځه دی دښځو عورت ته نه ګوري اونه دی نارينه دنارينه سره په يو کپړه کي څملي (يعنی چې نوری جامی یی نه وي بربنډوي صرف يوه کپړه کي پټ وي) او نه دی ښځه دښځی سره صرف يوه کپړه کي څملي.
امام ترمذي وايي: داحديث حسن غريب صحيح دي.

**لغات** : نظر : نظر ينظر نظرا ومنظرا ومنظرة وتنظارا ونظرانا معني كتل ، په غور سره كتل.

**تشريح** : لا ينظر الرجل الي عورة الرجل: يو نارينه به دبل نارينه عورت ته نه ګوري: دسړي دنوم نه لاندي دزنګنونو پوري عورت دي ددي حصي بغير دضرورت نه ليدل دبل چا دپاره حرام دي نه دسړي دپاره دکومي محرمي ښځي دپاره مګرکه خپله ښځه يا وينځه وي نو خير دي ، دښځي عورت دبلي ښځي په حق کي هم دنوم نه لاندي دزنګنونو پوري دي ، اود سړو په حق کي د اجنبي ښځي تمام جسم عورت دي.
ديوي ښځي عورت دخپلو محرمانو په حق کي خيټه او دزنګنانو نه د نوم پوري حصه ده خو محرم سړي سر مخ ، متي ليدلي شي خو پدي شرط چې جنسي خيال ونه لري ، په دي کي بي ريري هلك هم داخل کړي دي.
دوه هم په يوه بستره کي نشي څملاستي خو چې بربنډ وي اوکه جامي اولباس يي اغوستلي وي نو بيا خير دي باك نشته.

***************

## ٣٩ـ بَاب مَا جَاءَ فِي حِفْظِ الْعَوْرَةِ
## شرمګاه دبي پردي کيدو نه دساتلو بيان

٢٧٩٤ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ. حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ مُعَاذٍ، وَيَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، قَالَا: حَدَّثَنَا بَهْزُ بْنُ حَكِيمٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: قُلْتُ: يَا نَبِيَّ اللَّهِ، عَوْرَاتُنَا مَا نَأْتِي مِنْهَا وَمَا نَذَرُ؟ قَالَ: "احْفَظْ عَوْرَتَكَ إِلَّا مِنْ زَوْجَتِكَ أَوْ مَا مَلَكَتْ يَمِينُكَ". قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِذَا كَانَ الْقَوْمُ بَعْضُهُمْ فِي بَعْضٍ؟ قَالَ: "إِنِ اسْتَطَعْتَ أَنْ لَا يَرَاهَا أَحَدٌ فَلَا يَرَاهَا". قَالَ: قُلْتُ: يَا نَبِيَّ اللَّهِ، إِذَا كَانَ أَحَدُنَا خَالِيًا؟ قَالَ: "فَاللَّهُ أَحَقُّ أَنْ يُسْتَحْيَا مِنْهُ مِنَ النَّاسِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ.[1]

**ترجمه** : معاويه بن هيده رضي الله عنه وائي ما عرض اوکړو اي دالله رسوله مونږ خپله

---

[1] ـ انظر حديث رقم ٢٤٦٩

شرمګاه څومره حده پوري ښکاره کولي شو او کوم حده پوري ددي پټول ضروري دي؟رسول الله اوفرمائيل تاسو خپل شرمګاهونه خپلو ښځو او خپلو وينځو نه علاوه دهر چانه پټ ساتئ ما اوونيل کله چې خلق په يو ځاي شريك اوسيږي نو مونږ څه اوکړو او څنګه اوکړو رسول الله اوفرمائيل بيا هم ستاسو دپاره هر ممکن کوشش کول پکار دي چې ستاسو شرمګاه څوك اونه ګوري ما بيا اوونيل اي دالله رسوله کله چې يو کس يواځي وي نو وبي فرمائيل دخلقو په مقابل کي الله تعالي زيات حقدار دي چې حياء اوشرم ورنه اوکړي شي

امام ترمذي وايي: داحديث حسن دي.

***************

## ٤٠ـ بَابُ مَا جَاءَ أَنَّ الْفَخِذَ عَوْرَةٌ

### دورون په ستر (شرمګاه) کي د داخليدو بيان

٢٧٩٥ـ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِي النَّضْرِ مَوْلَى عُمَرَ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ زُرْعَةَ بْنِ مُسْلِمِ بْنِ جَرْهَدٍ الأَسْلَمِيِّ، عَنْ جَدِّهِ جَرْهَدٍ، قَالَ: مَرَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِجَرْهَدٍ فِي الْمَسْجِدِ وَقَدِ انْكَشَفَ فَخِذُهُ، فَقَالَ: "إِنَّ الْفَخِذَ عَوْرَةٌ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ مَا أَرَى إِسْنَادَهُ بِمُتَّصِلٍ. ([1])

**ترجمه** : جرهد وائي نبي کريم صلي الله عليه وسلم په مسجد کي دجرهد (يعني زما په خوا کي) تير شو نو دي وخت کي زما ورون ښکاريدو نو وبي فرمائيل ورون عورت دي.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن دي او ماته ددي سند متصل نه ښکاري

***************

٢٧٩٦ـ حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الْخَلاَّلُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، قَالَ: أَخْبَرَنِي ابْنُ جَرْهَدٍ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ بِهِ وَهُوَ كَاشِفٌ عَنْ فَخِذِهِ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "غَطِّ فَخِذَكَ فَإِنَّهَا مِنَ الْعَوْرَةِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. ([2])

**ترجمه** : دجرهد رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چې نبي کريم صلي الله عليه وسلم زما په خوا کي تير شو او زما ورون ښکاريدو او راته بي اوفرمائيل ورون پټ کړه ځکه چې دا دپټولو

---

[1] ـ اورده البخاري في الجامع /الصلاة ١٢ (تعليقاً في الترجمة). سنن ابي داود/ الحمام ٢ (٤٠١٠) (و مسند احمد (٣/٤٧٨)

[2] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٣٢٢٢)

ځيز دي.
امام ترمذي وايي: داحديث حسن دي

*****************

٢٧٩٧ـ حَدَّثَنَا وَاصِلُ بْنُ عَبْدِ الأَعْلَى الكُوفِيُّ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ آدَمَ، عَنْ إِسْرَائِيلَ، عَنْ أَبِي يَحْيَى، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الفَخِذُ عَوْرَةٌ".[1]

**ترجمه** : د ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي ورون دپټ ساتلو ځيز دي.
امام ترمذي وايي: دا حديث په دي سند حسن غريب دي

*****************

٢٧٩٨ـ حَدَّثَنَا وَاصِلُ بْنُ عَبْدِ الأَعْلَى، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ آدَمَ، عَنِ الحَسَنِ بْنِ صَالِحٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عَقِيلٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ جَرْهَدٍ الأَسْلَمِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الفَخِذُ عَوْرَةٌ". قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الوَجْهِ. وَفِي البَابِ، عَنْ عَلِيٍّ وَمُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ جَحْشٍ، وَلِعَبْدِ اللَّهِ بْنِ جَحْشٍ صُحْبَةٌ، وَلِابْنِهِ مُحَمَّدٍ صُحْبَةٌ.[2]

**ترجمه** : د جرهد اسلمي رضي الله عنهما نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي ورون دپټولو ځيز دي
امام ترمذي وايي: داحديث په دي سند حسن غريب دي، او په دي باب کي دعلي او محمد بن عبدالله بن جحش رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي او عبدالله بن جحش او دده ځوي محمد دواړه صحابيان دي

*****************

## ٤١ـ بَاب مَا جَاءَ فِي النَّظَافَةِ

### دپاکوالي بيان

٢٧٩٩ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عَامِرٍ العَقَدِيُّ، حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ إِلْيَاسَ، وَيُقَالُ ابْنُ إِيَاسٍ، عَنْ صَالِحِ بْنِ أَبِي حَسَّانَ، قَالَ: سَمِعْتُ سَعِيدَ بْنَ المُسَيَّبِ، يَقُولُ: "إِنَّ اللَّهَ طَيِّبٌ يُحِبُّ

---

[1] ـ انظر حديث رقم ٢٧٩٥

[2] ـ انظر حديث رقم ٢٧٩٥

الطَّيِّبَ، نَظِيفٌ يُحِبُّ النَّظَافَةَ، كَرِيمٌ يُحِبُّ الْكَرَمَ، جَوَادٌ يُحِبُّ الْجُودَ، فَنَظِّفُوا، أُرَاهُ قَالَ: أَفْنِيَتَكُمْ وَلَا تَشَبَّهُوا بِالْيَهُودِ ". قَالَ: فَذَكَرْتُ ذَلِكَ لِمُهَاجِرِ بْنِ مِسْمَارٍ فَقَالَ: حَدَّثَنِيهِ عَامِرُ بْنُ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهُ، إِلَّا أَنَّهُ قَالَ: " نَظِّفُوا أَفْنِيَتَكُمْ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، وَخَالِدُ بْنُ إِلْيَاسَ يُضَعَّفُ، وَيُقَالُ ابْنُ إِيَاسٍ. (١)

**ترجمه** : دصالح بن ابي حسان قول دي فرمائي چې مادسعيد بن مسيب نه اوريدلي دي وئيل يې چې الله تعالي پاك دي او پاكي كول خوښوي الله تعالي مهربان دي او مهرباني كول خوښوي او الله تعالي سخي دي اوسخاوت كول خوښوي پس تاسو دصفائي زيات خيال ساتئ (زما خيال دي چې هغه اووئيل دخپلو كورونو صحنونه او دكورونو مخوته خايونه پاك ساتئ او ديهودوسره مشابهت مه اختياروئ (صالح وائي) ما مهاجر بن مسمار ته ددي روايت ذكر اوكړو نو هغه اووئيل ماته دا روايت عامر بن سعد دخپل پلار سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه په واسطه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه نقل كړي دي مګر د مهاجر په روايت كې "نظفوا افنيتكم" الفاظ راغلي دي.

***************

## ٤٢ـ باب مَا جَاءَ فِي الِاسْتِتَارِ عِنْدَ الْجِمَاعِ

### د جماع وخت كې د پردي كولو بيان

٢٨٠٠ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ نَيْزَكَ الْبَغْدَادِيُّ، حَدَّثَنَا الْأَسْوَدُ بْنُ عَامِرٍ، حَدَّثَنَا أَبُو مُحَيَّاةَ، عَنْ لَيْثٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " إِيَّاكُمْ وَالتَّعَرِّيَ، فَإِنَّ مَعَكُمْ مَنْ لَا يُفَارِقُكُمْ إِلَّا عِنْدَ الْغَائِطِ، وَحِينَ يُفْضِي الرَّجُلُ إِلَى أَهْلِهِ فَاسْتَحْيُوهُمْ وَأَكْرِمُوهُمْ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَأَبُو مُحَيَّاةَ اسْمُهُ يَحْيَى بْنُ يَعْلَى. (٢)

**ترجمه** :ابن عمر رضي الله عنهما راوي دى رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي:خبردار د خان بربندولو نه خانونه وساتئ، يقينا ستاسو سره هغه څوك هر وخت موجود وي څوك چې ستاسو نه نه جدا كيږي، مګر د اودس ماتولو په وخت كې، اوپه هغه وخت كې كله

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٣٨٩٤)

[2] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٨٢١٨)

چي يو كس خپلي ښځي ته نږدي كيږي، پس ددوئ (يعني فرشتو) نه شرم وكړئ او ددوئ عزت وكړئ
امام ترمذي وايي. دا حديث غريب دي، او مونږ يي صرف په همدي سند پيژنو

******************

## ٤٣ـ بَاب مَا جَاءَ فِي دُخُولِ الْحَمَّامِ

### غسل خاني ته د داخليدو بيان

٢٨٠١ـ حَدَّثَنَا الْقَاسِمُ بْنُ دِينَارٍ الْكُوفِيُّ، حَدَّثَنَا مُصْعَبُ بْنُ الْمِقْدَامِ، عَنِ الْحَسَنِ بْنِ صَالِحٍ، عَنْ لَيْثِ بْنِ أَبِي سُلَيْمٍ، عَنْ طَاوُسٍ، عَنْ جَابِرٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ فَلَا يَدْخُلِ الْحَمَّامَ بِغَيْرِ إِزَارٍ، وَمَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ فَلَا يُدْخِلْ حَلِيلَتَهُ الْحَمَّامَ، وَمَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ فَلَا يَجْلِسْ عَلَى مَائِدَةٍ يُدَارُ عَلَيْهَا بِالْخَمْرِ".
قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ مِنْ حَدِيثِ طَاوُسٍ، عَنْ جَابِرٍ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيل، لَيْثُ بْنُ أَبِي سُلَيْمٍ صَدُوقٌ، وَرُبَّمَا يَهِمُ فِي الشَّيْءِ. قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيل، وَقَالَ أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، لَيْثٌ لَا يُفْرَحُ بِحَدِيثِهِ، كَانَ لَيْثٌ يَرْفَعُ أَشْيَاءَ لَا يَرْفَعُهَا غَيْرُهُ فَلِذَلِكَ ضَعَّفُوهُ. [1]

**ترجمه** : دجابر رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوك چې په الله تعالي او په ورځ دقيامت ايمان لري نو هغه دي دلنګ اچولو نه بغير غسل خاني ته نه داخليږي، او څوك چې په الله او په ورځ داخرت ايمان لري هغه دي خپله ښځه حمامونو ته نه ليږي (بعضي ښارونو كي نارينه او زنانه حمامونو كي غسل كوي) هغه ورته مراد دي) او څوك چې په الله او په ورځ داخرت ايمان لري هغه دي په داسي دسترخوان شركت نه كوي په كوم چې شراب ګرځولي شي.

امام ترمذي وايي. داحديث حسن غريب دي او مونږ يي صرف په همدي سند پيژنو، د امام بخاري قول دي ليث بن ابي سليم صدوق دي مګر اكثرو وختونو كي په وهم كي مبتلا كيږي امام بخاري داحمد بن حنبل قول نقل كړي دي چې دليث په حديث زړه مه خوشالوي ليث به بعضي داسي حديثونه مرفوع كول كوم چې به نورو خلقو مرفوع نه بيانول او په همدي وجوهاتو اهل علمو دده تضعيف كړي دي.

[1] ـ سنن النسائي/الغسل ٢ (٤٠١) (بعضه) (تحفة الأشراف : ٢٢٨٣) ، ومسند احمد (٣/٣٣٩)

*****************

٢٨٠٢_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ شَدَّادٍ الأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي عُذْرَةَ، وَكَانَ قَدْ أَدْرَكَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " نَهَى الرِّجَالَ وَالنِّسَاءَ عَنِ الحَمَّامَاتِ ثُمَّ رَخَّصَ لِلرِّجَالِ فِي المَيَازِرِ ".
قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ لَا نَعْرِفُهُ، إِلَّا مِنْ حَدِيثِ حَمَّادِ بْنِ سَلَمَةَ وَإِسْنَادُهُ لَيْسَ بِذَاكَ القَائِمِ. (١)

**تخريج**: سنن ابي داود/ الحمام ١ (٤٠٠٩) ، سنن ابن ماجه/الأدب ٣٨ (٣٧٤٩) (تحفة الأشراف : ١٧٧٩٨) ، و مسند احمد (٦/١٧٩)

**ترجمه** : دعائشه رضي الله عنها نه مروي دي فرمائي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم سړو او ښځو لره په حمامونو (عمومي غسل خانو) کي دغسل کولو نه منع کړي دي مګر بيا يې سړو ته دجانګي اغوستلو نه پس اجازت ورکړي دي
امام ترمذي وايي: داحديث مونږ صرف دحماد بن سلمه په روايت پيژنو او سند يې څه خاص مضبوط نه دي.

*****************

٢٨٠٣_حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، أَنْبَأَنَا شُعْبَةُ، عَنْ مَنْصُورٍ، قَالَ: سَمِعْتُ سَالِمَ بْنَ أَبِي الجَعْدِ يُحَدِّثُ، عَنْ أَبِي المَلِيحِ الهُذَلِيِّ، أَنَّ نِسَاءً مِنْ أَهْلِ حِمْصَ، أَوْ مِنْ أَهْلِ الشَّامِ دَخَلْنَ عَلَى عَائِشَةَ، فَقَالَتْ: أَنْتُنَّ اللَّاتِي يَدْخُلْنَ نِسَاؤُكُنَّ الحَمَّامَاتِ، سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: " مَا مِنَ امْرَأَةٍ تَضَعُ ثِيَابَهَا فِي غَيْرِ بَيْتِ زَوْجِهَا إِلَّا هَتَكَتِ السِّتْرَ بَيْنَهَا وَبَيْنَ رَبِّهَا ".
قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. (٢)

**ترجمه** : ابو مليح هذلي نه مروي دي چې داهل حمص يا اهل شام بعضي ښځي دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها په خوا کي تيري شوي نو هغوئ ته يې اوونيل تاسو خو هم هغه ښځي يئ کومي چې په حمامونو کي غسل کوي؟ ما درسول الله صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي دي کومه ښځه چې دخپل خاوند دکور نه علاوه خپلي جامي په کوم بل خاي کي اوباسي نو دابنځه

---

[1] ـ تفرد به المؤلف رحمه الله تعالى.

[2] ـ سنن ابي داود/ الحمام ١ (٤٠١٠) ، سنن ابن ماجه/الأدب ٣٨ (٣٧٥٠) (تحفة الأشراف : ١٧٨٠٣) ، و مسند احمد (٦/١٩٩) ، وسنن الدارمي/الاستئذان ٢٣ (٢٦٩٣)

دخپل خان اودخپل رب په مینځ کي حجاب او پرده پورته کوي يعني ختموي يې
امام ترمذي وايي: داحديث حسن دی.

***************

## ٤٤_باب مَا جَاءَ أَنَّ الْمَلَائِكَةَ لَا تَدْخُلُ بَيْتًا فِيهِ صُورَةٌ وَلَا كَلْبٌ

### فرشتي داسي كورته نه داخليږي په كوم كي چې تصوير ياسپي موجود وي

٢٨٠٤_حَدَّثَنَا سَلَمَةُ بْنُ شَبِيبٍ، وَالْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الْخَلَّالُ، وعبد بن حميد، وغير واحد، واللفظ للحسن بن علي، قَالُوا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ، أَنَّهُ سَمِعَ ابْنَ عَبَّاسٍ، يَقُولُ: سَمِعْتُ أَبَا طَلْحَةَ، يَقُولُ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "لَا تَدْخُلُ الْمَلَائِكَةُ بَيْتًا فِيهِ كَلْبٌ وَلَا صُورَةُ تَمَاثِيلَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** : دابوطلحه رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كوم كور كي چې سپي يا تصوير يابتان وي درحمت فرشتي ورته نه ورننوزي.
امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دی.

**لغات** : كلب الكلب هر ماتونكي ځناور ته ويلي شي لكه سپي ، جمع يې كلاب راځي او جمع الجمع يې اكالب او كلابات، ده .

**تشريح**: داسي كورونو ته فرشتي نه ورځي په كومو كې چې سپي يا تصوير موجود وي، دا حكم د هغه سپي دی دكوم چې ساتل حرام دي او دكومو سپو دساتلو چې اجازت شته هغه په دي كي داخل نه دي، مثلا ښكاري سپي يا دځاروو دحفاظت دپاره دداسي سپو ساتل دفرشتو دپاره ركاوټ نه جوړيږي.

او دتصوير نه مراد هغه تصوير دی دكوم ساتل او استعمالول چې حرام دي او كه داسي تصوير وي چې بالكل وړوكی وي يا دغير ذي روح ځيز تصوير وي نو دداسي تصوير موجودګي هم دفرشتو دپاره ركاوټ نه دی، ليكن بعضي علماء وائي چې دا حكم عام دی هر قسم سپي او

-----

[1] ــ اورده البخاري في الجامع الصحيح /بدء الخلق ٧ (٣٢٢٥، ٣٢٢٦) ، و١٧ (٣٣٢٢) . سنن ابي داود/ المغازي ١٢ (٤٠٠٢) . واللباس ٨٨ (٥٩٤٩) ، و ٥٣ (٥٩٥٨) . صحيح مسلم/اللباس ٢٦ (٢١٠٦) . سنن ابي داود/ اللباس ٤٨ (٤١٥٣) . سنن النسائي/الصيد والذبائح ١١ (٤٢٨٧) . والزينة ١١١ (٥٣٤٩) . سنن ابن ماجه/اللباس ٤٤ (٣٦٤٩) (تحفة الأشراف : ٣٧٧٩) . و مسند احمد (٤/٢٨)

تصویر ته شامل دی برابره خبره ده چې په کور کې یې دساتلو اجازت وي او که نه
دفرشتونه هغه فرشتې مراد دي کومې چې دانسانانو داعمالو ليكونكې او حفاظت كونكې نه
وي ځکه چې عمل ليكونكې فرشتې خو په هر حال کې دانسان سره موجودې دي

****************

٢٨٠٥_حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا رَوْحُ بْنُ عُبَادَةَ، حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، عَنْ إِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ، أَنَّ رَافِعَ بْنَ إِسْحَاقَ أَخْبَرَهُ، قَالَ: دَخَلْتُ أَنَا وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي طَلْحَةَ عَلَى أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ نَعُودُهُ، فَقَالَ أَبُو سَعِيدٍ أَخْبَرَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّ: " الْمَلَائِكَةَ لَا تَدْخُلُ بَيْتًا فِيهِ تَمَاثِيلُ أَوْ صُورَةٌ "، شَكَّ إِسْحَاقُ لَا يَدْرِي أَيُّهُمَا قَالَ: قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** : دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه مروي دي فرمائيل يې چې رسول الله صلي الله عليه وسلم مونږ ته خبر راكړې دئ چې فرشتې داسې كورونو ته نه داخليږي په كوم كې چې مجسمې يا تصويرونه موجود وي (په دي حديث كې داسحاق راوي شك دي چې دده استاذ تماثيل لفظ وئيلي دي او كه صورة لفظ يې وئيلي دي)
امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي.

****************

٢٨٠٦_حَدَّثَنَا سُوَيْدٌ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، أَخْبَرَنَا يُونُسُ بْنُ أَبِي إِسْحَاقَ، حَدَّثَنَا مُجَاهِدٌ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَبُو هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " أَتَانِي جِبْرِيلُ فَقَالَ: إِنِّي كُنْتُ أَتَيْتُكَ الْبَارِحَةَ، فَلَمْ يَمْنَعْنِي أَنْ أَكُونَ دَخَلْتُ عَلَيْكَ الْبَيْتَ الَّذِي كُنْتَ فِيهِ إِلَّا أَنَّهُ كَانَ فِي بَابِ الْبَيْتِ تِمْثَالُ الرِّجَالِ، وَكَانَ فِي الْبَيْتِ قِرَامُ سِتْرٍ فِيهِ تَمَاثِيلُ، وَكَانَ فِي الْبَيْتِ كَلْبٌ، فَمُرْ بِرَأْسِ التِّمْثَالِ الَّذِي بِالْبَابِ فَلْيُقْطَعْ، فَلْيُصَيَّرْ كَهَيْئَةِ الشَّجَرَةِ، وَمُرْ بِالسِّتْرِ فَلْيُقْطَعْ، وَيُجْعَلْ مِنْهُ وِسَادَتَيْنِ مُنْتَبَذَتَيْنِ يُوطَآنِ، وَمُرْ بِالْكَلْبِ فَيُخْرَجْ. فَفَعَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَكَانَ ذَلِكَ الْكَلْبُ جَرْوًا لِلْحَسَنِ أَوِ الْحُسَيْنِ تَحْتَ نَضَدٍ لَهُ فَأَمَرَ بِهِ فَأُخْرِجَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ

---

[1] - تفرد به المؤلف رحمه الله تعالى

حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَفِي الْبَابِ، عَنْ عَائِشَةَ، وَأَبِي طَلْحَةَ. (1)

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي جبرائيل عليه السلام ماته راغلو او ويي وئيل زه بيګا شپه تاته راغلي وم ليکن زه ستا کور ته دراتلو نه دي خبري منع کړم چې ته په کوم کور کي موجود يي دهغه کور په دروازه دسړو تصويرونه وو او دکور په پردو باندي هم تصويرونه نقش شوي وو او په دغه کور کي سپي هم وو، نو ته داسي اوکړه چې د دروازي سره دتصويرونو نه سرونه لري کړه چې دوني پشان پاتي شي او پردي اوشلوه او دوه تکيه ګاني ورنه جوړي کړه ددي دپاره چې استعمال شي او سپي دکور نه اوزغلوه چې لاړ شي، نورسول الله صلي الله عليه وسلم همداسي اوکړل او دغه سپي يو کوتري وو چې حسن يا حسين ساتلي وو کوم چې به درسول الله صلي الله عليه وسلم دکټ لاتدي يا دسامانونو لاتدي پروت وو چنانچې رسول الله دده دشړلو حکم اوکړو او دا اوشړلي شو.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي او په دي باب کي دعائشه او ابوطلحه رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي

*****************

## ٤٥_باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ لُبْسِ الْمُعَصْفَرِ لِلرَّجُلِ وَالْقَسِيِّ

### دسړو دپاره دزيړو جامواو دريشمي جامو داستعمال دممانعت بيان

٢٨٠٧_حَدَّثَنَا عَبَّاسُ بْنُ مُحَمَّدٍ الْبَغْدَادِيُّ. حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ. أَخْبَرَنَا إِسْرَائِيلُ، عَنْ أَبِي يَحْيَى، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، قَالَ: "مَرَّ رَجُلٌ وَعَلَيْهِ ثَوْبَانِ أَحْمَرَانِ فَسَلَّمَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَلَمْ يَرُدَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَيْهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. وَمَعْنَى هَذَا الْحَدِيثِ عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ، أَنَّهُمْ كَرِهُوا لُبْسَ الْمُعَصْفَرِ، وَرَأَوْا أَنَّ مَا صُبِغَ بِالْحُمْرَةِ بِالْمَدَرِ، أَوْ غَيْرِ ذَلِكَ فَلَا بَأْسَ بِهِ إِذَا لَمْ يَكُنْ مُعَصْفَرًا. (2)

**ترجمه** : دعبدالله بن عمررضي الله عنهما بيان دي چې يو کس دسور رنګ دوه جامي اغوستلي وي او تير شو او رسول الله صلي الله عليه وسلم ته يي سلام اوکړو نو رسول الله ورته

---

[1] _ سنن ابي داود/ اللباس ٣٨ (٤١٥٨) . سنن النسائي/الزينة ١١٥) (٥٣٨٠) (تحفة الأشراف : ١٤٣٣٥) . و مسند احمد (٣٠٥/٢، ٣٠٨، ٤٧٨)

[2] _ سنن ابي داود/ اللباس ٢٠ (٤٠٦٩) (تحفة الأشراف : ٨٩١٨)

دسلام جواب ورنكړو.
امام ترمذي وايي: داحديث په دي سند حسن غريب دي او ددينه مراد داهل علمو په نزد په زيړ رنګ كي رنګ كړي شوي جامي دي چې هغوئ ددي اغوستل مكروه ګنړي او كومه جامه چې په سور رنګ رنګ كړي شي دهغي په اغوستلو كي څه حرج نشته

****************

٢٨٠٨ـحَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا أَبُو الأَحْوَصِ، عَنْ أَبِي إِسْحَاق، عَنْ هُبَيْرَةَ بْنِ يَرِيمَ، قَالَ: قَالَ عَلِيُّ بْنُ أَبِي طَالِبٍ " نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ خَاتَمِ الذَّهَبِ، وَعَنِ الْقَسِّيِّ، وَعَنِ الْمِيثَرَةِ، وَعَنِ الْجِعَةِ ". قَالَ أَبُو الأَحْوَصِ: وَهُوَ شَرَابٌ يُتَّخَذُ بِمِصْرَ مِنَ الشَّعِيرِ. قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([1])

**ترجمه** : دعلي بن ابي طالب رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم دسرو زرو دګوتمي اغوستلو نه او دريشمي جامي اغوستلو نه او دريشمي زين استعمالولو نه او دمصري شرابو داستعمال نه ممانعت فرمائيلي دي
امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي.

**لغات**: مياثر، دالف نه مخكي "ي" ده او دوريسي "ث" ده د ميژه جمع ده او دا يو څيز دی چې دوريښمو دټوكي نه جوړولی شي او پكې مالوچ يابل پوست شی اچولی شي او داس يا اوښ په زين كيښوی شي چې سور وربانډي كيني.
اوقسي يوټوكی دی چې دوريښمو او تار دواړو نه جوړيږي (يعني تنسته يابوده يو تاربی ريښتم وي او يو مالوچ .

****************

٢٨٠٨ـحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، قَالاَ: حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنِ الأَشْعَثِ بْنِ سُلَيْمٍ، عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ سُوَيْدِ بْنِ مُقَرِّنٍ، عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ، قَالَ: " أَمَرَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِسَبْعٍ، وَنَهَانَا عَنْ سَبْعٍ، أَمَرَنَا: بِاتِّبَاعِ الْجَنَازَةِ، وَعِيَادَةِ الْمَرِيضِ، وَتَشْمِيتِ الْعَاطِسِ، وَإِجَابَةِ الدَّاعِي، وَنَصْرِ الْمَظْلُومِ، وَإِبْرَارِ الْقَسَمِ، وَرَدِّ السَّلاَمِ، وَنَهَانَا عَنْ سَبْعٍ: عَنْ خَاتَمِ الذَّهَبِ، أَوْ حَلْقَةِ الذَّهَبِ، وَآنِيَةِ الْفِضَّةِ، وَلُبْسِ الْحَرِيرِ، وَالدِّيبَاجِ،

[1] ـ انظر حديث رقم ٦٢٣ (تحفة الأشراف: ١٠٣٠٣)

وَالْإِسْتَبْرَقِ، وَالْقَسِّيِّ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَأَشْعَثُ بْنُ سُلَيْمٍ هُوَ أَشْعَثُ بْنُ أَبِي الشَّعْثَاءِ، وَأَبُو الشَّعْثَاءِ اسْمُهُ سُلَيْمُ بْنُ الْأَسْوَدِ. (1)

**ترجمه**: دابو عماره البراء بن عازب رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم مونږ ته داوو كارونو دكولو حكم كړی دی او دا اوو كارونو نه يی منع كړي يو مونږ ته يی حكم كړی دی. ۱جنازي سره تلل. ۲ د مريض تپوس كول۳.پرنجي كونكي ته يرحمك الله وئيل (كه هغه الحمدلله اووائي). ۴ دعوت قبلول ۵ دمظلوم امداد كول ۶ قسم پوره كول ۷ او په هر مسلمان سلام اچول

او ددي كارونو نه يی منع كړي يو:

۱، دسرو زرو گوتي اچول. ۲، دچاندئ په لوښي كې اوبه څكل.۳او په زين سری ريشمی گدی اچول.۴، اودقسي نومي ټوكي اغوستل (چې ريښمو اوتارمكس په جوړيدو،

۵، او دوريښمو استعمال. ۶، او دا طلس.۷، او بياټوكي اغوستل (كوم چې به دسوچي ريښمو نه جوړيدو) او په يو روايت كې ړومبو اووكې دي او دورك څيز اعلان كول (يعني داعلان حكم يی راته كړی وو).

امام ترمذي وايي: دا حديث حسن صحيح دی، اود اشعث بن سليم پوره نوم داسي دی: اشعث بن ابي الشعثاء، اود ابو الشعثاء نوم سليم بن اسود دی.

**لغات** مياثر، دالف نه مخكي "ي" ده او دوريسي "ث" ده د ميثره جمع ده او دا يو څيز دی چې دوريښمو دټوكي نه جوړولی شي او پكې مالوچ يابل پوست شی اچولی شي او داس يا اوښ په زين كيښوی شي چې سور ورباندي كيني.

اوقسي يوټوكی دی چې دوريښمو او تار دواړو نه جوړيږي (يعني تنسته يابوده يو تاريی ريښتم وي او يو مالوچ.

انشاد الضاله، يعني دورك څيزاعلان كول.

**تشريح**: "ابرار المقسم" دقسم كونكي قسم پوره كول ددي مطلب دادی كه چري چا په چا باندي اعتماد اوكړو او په الله يي ورته قسم وركړو چې دا كار به نه كوي نو ته به دهغه اعتماد نه مجروح كوي ددغه كار دكولو يانه كولو په باره كې به دهغه قسم پوره كوی خو په دي شرط چې حرام نه وي او ددي كار تعلق دمباحاتو يا مكارم اخلاق سروي.

"نصر المظلوم" يعني دمظلوم مدد كول مطلب دادی چرته چې په چا باندي ظلم كيږي يادچا

---

[1] انظر حديث رقم ۱۷۶۰

بې عزتي کيږي نو پدغه وخت کې دهغه مدد کول ضروري دي دمعاذ بن انس الجهني رضي الله عنه بيان دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچې کوم مومن لره دمنافق دظلم نه بچ کړو نو الله تعالي به يوه فرشته مقرر کړي چې دقيامت په ورځ به ده لره دجهنم نه بچ کوي.

"نهانا عن خواتيم" يعني رسول الله صلي الله عليه وسلم مونږ دسرو زرو دګوتي استعمالولو نه منع کړي يو مطلب دادی چې سره زر او ريښم استعمالول په سړو باندي حرام دي او دښخو دپاره حلال دي لکه چې يو ځل رسول الله صلي الله عليه وسلم پخپل يو لاس کې دريښم يوه ټکړه او په بل لاس کې دسرو زرو يو څيز نيولی وو او ويې فرمائيل خبردار دا دواړه څيزونه زما دامت په نارينوو باندي حرام دي او دښخو دپاره حلال دي ځکه چې اسلام دسړو دپاره دنسوانيت او سينګار څيزونه استعمالول حرام کړي دي.

****************

## ٤٦ـ بَاب مَا جَاءَ فِي لُبْسِ الْبَيَاضِ

### دسپينو جامو اغوستلو فضيلت

٢٨١٠ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ أَبِي ثَابِتٍ، عَنْ مَيْمُونِ بْنِ أَبِي شَبِيبٍ، عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدَبٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الْبَسُوا الْبَيَاضَ فَإِنَّهَا أَطْهَرُ، وَأَطْيَبُ، وَكَفِّنُوا فِيهَا مَوْتَاكُمْ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَفِي الْبَابِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَابْنِ عُمَرَ. [1]

**ترجمه**. دسمره رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي سپينې جامې اغوندئ ځکه چې دا پاکې او ښکلي دي او مړي ته کفن سپين ورکوئ.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي او په دي باب کې دابن عباس او ابن عمر رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

**لغات**: البياض سپينوالي، ياسپين رنګ، تبييض سپينول، بيضا هګۍ ته وئيلي شي صفت مذکر يې بائض راځي او صفت مونث يې بائضة او جمع يې بوائض راځي

**تشريح**: علامه قطب الدين دمشکوة شارح ليکلي دي چې سليم الطبع خلق دسپينو جامو اغوستلو ته زيات رغبت کوي.

---

[1] ـ سنن ابن ماجه/اللباس ٥ (٣٥٦٧) (تحفة الأشراف: ٤٦٣٥)

كفنوا فيها موتاكم، يعني خپلو مړو ته هم سپين كفنونه ورکوئ ځکه چې مړي په دغه وخت كې دفرشتو په مجلس كې حاضري توي اومجلسونو اومحفلونو ته په سپينو جامو كې تلل مستحب اوافضل دي

****************

## ٤٧_باب مَا جَاءَ فِي الرُّخْصَةِ فِي لُبْسِ الْحُمْرَةِ لِلرِّجَالِ

### دسرو دپاره دسور لباس اغوستلو داجازت بيان

٢٨١١_حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا عَبْثَرُ بْنُ الْقَاسِمِ، عَنِ الأَشْعَثِ وَهُوَ ابْنُ سَوَّارٍ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، قَالَ: " رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي لَيْلَةٍ إِضْحِيَانٍ، فَجَعَلْتُ أَنْظُرُ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَإِلَى الْقَمَرِ وَعَلَيْهِ حُلَّةٌ حَمْرَاءُ فَإِذَا هُوَ عِنْدِي أَحْسَنُ مِنَ الْقَمَرِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، لاَ نَعْرِفُهُ إِلاَّ مِنْ حَدِيثِ الأَشْعَثِ. (١)

**ترجمه** . جابر بن سمره رضي الله عنه راوي دي فرمائي چې ما په يو انتهائي روښانه شپه كې رسول الله صلي الله عليه وسلم اوليدو او بيا مي ورته مسلسل كتل او سپوږمۍ ته به مي هم كتل (مادا معلوموله چې په دوئ دواړو كې كوم يو زيات ښائسته دي) اورسول الله په دي وخت كې سور لباس اغوستلي وو او هغه ماته دسپوږمۍ نه زيات خائسته ښكاريدو

امام ترمذي وايي: داحديث حسن غريب دي او مونږ يي صرف داشعث په روايت پيژنو

**تشريح**: حلة حمراء ، يعني سره جوړه دلته دا سوال وارديږي چې شريعت خو دسرو دپاره سور رنګ استعمالول منع كړي دی لكه دعمران بن حصين رضي الله عنه په حديث كې چې دا ارشاد نبوي دی چې يو ځل يو كس سري جامي اغوستلي وي اورسول الله صلي الله عليه وسلم ته يي سلام اوكړو نورسول الله ورته دسلام جواب ورنكړو ، يوځل رسول الله دصحابي په جسم سري جامي اوليدي اوويی فرمائيل داد كفارو لباس دی دا به نه اغوندی.

علامه ابن قيم ددي په جواب كې ليكلي دي په كومو روايتونو كې چې درسول الله په باره كې دسرو ياشنو جامو ذكر راغلی دی هلته مراد پوره سري اوشني جامي نه دي بلكه كرخو والا جامي مراد دي، هدا رنګي ابن حجر ليكلي دي يمني څادرونه به مكمل رنګين نه وو بلكه رنګيني كرخي به پكې وي.

****************

---

[1] _ تفرد به المؤلف (أخرجه النسائي في الكبرى) (تحفة الأشراف : ٢٢٠٨)

وَرَوَى شُعْبَةُ، وَالثَّوْرِيُّ، عَنْ أَبِي إِسْحَاق، عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ، قَالَ: "رَأَيْتُ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حُلَّةً حَمْرَاءَ". حَدَّثَنَا بِذَلِكَ مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاق.[1]

**ترجمه** دبراء بن عازب رضي الله عنه بيان دي فرمائي چې ما رسول الله صلي الله عليه وسلم په داسي حال کي اوليدو چې سره جوړه يې اغوستلي وه . محمود بن غيلان هم دوکيع نه او هغه دسفيان نه او هغه دابي اسحاق نه ددي په مثل روايت نقل کړي دي.

******************

وَحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاق بِهَذَا، وَفِي الْحَدِيثِ كَلَامٌ أَكْثَرُ مِنْ هَذَا. قَالَ: سَأَلْتُ مُحَمَّدًا. قُلْتُ لَهُ: حَدِيثُ أَبِي إِسْحَاق، عَنِ الْبَرَاءِ أَصَحُّ، أَوْ حَدِيثُ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ؟ فَرَأَى كِلَا الْحَدِيثَيْنِ صَحِيحًا، وَفِي الْبَابِ، عَنِ الْبَرَاءِ، وَأَبِي جُحَيْفَةَ.[2]

**ترجمه** : شعبه هم دابو اسحاق نه دا روايت نقل کړي دي او په دي حديث محدثينو کلام کړي دي، امام ترمذي وائي ما دامام بخاري نه دي حديث باره کي تپوس اوکړو چې حديث دابو اسحاق دبراء نه اصح دي او که حديث دجابر بن سمره؟ نو هغه اووئيل دواړه صحيح دي. او په دي باب کي دبراء بن عازب او ابو جحيفه رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي

******************

## ٤٨_باب مَا جَاءَ فِي الثَّوْبِ الأَخْضَرِ

### دشنو جامو اغوستلو بيان

٢٨١٢_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ إِيَادِ بْنِ لَقِيطٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي رِمْثَةَ، قَالَ: "رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعَلَيْهِ بُرْدَانِ أَخْضَرَانِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ إِيَادٍ، وَأَبُو رِمْثَةَ

[1] ـ تفرد به المؤلف (أخرجه النسائي في الكبرى) (تحفة الأشراف : ٢٢٠٨)

[2] ـ تفرد به المؤلف (أخرجه النسائي في الكبرى) (تحفة الأشراف : ٢٢٠٨)

التَّيْمِيِّ يُقَالُ اسْمُهُ حَبِيبُ بْنُ حَيَّانَ، وَيُقَالُ اسْمُهُ رِفَاعَةُ بْنُ يَثْرِبِيٍّ. (1)

**ترجمه** ابو رمثه راوي دي فرمائي چې مارسول الله صلي الله عليه وسلم په داسي حال کي اوليدو چې په دوه شنو څادرونو کي ملبوس وو

امام ترمذي وايي: داحديث حسن غريب دي او مونږ دا نه پيژنو مګر صرف دعبيدالله بن ياد په روايت او دابورمثه نوم حبيب بن حيام دي او ونيلي شوي دي چې دده نوم رفاعه يثربي دي

**دابو رمثه رفاعه تيمي رضي الله عنه حالات:**

نوم رفاعه کنيه ابو رمثه قبيله بني تميم غالبا چې فتح مکي نه پس مسلمان شوی دی ددين باره کي دده دسوال په وجه رسول الله ده لره په کرسئ کينولو او ددين ضروري تعليم يي ورکړو(مسلم).

په ابو رفاعه کي د جهاد جذبه وه نو دا دعا به يي ډيره کوله چې ای الله ماته داسي مرګ راکړي کوم چې به دنورو خلقو دپاره قابل درشك وي(طبقات ابن سعد).

او بيا اوشول همداسي کله چې په ۴۴هجري کي په کابل حمله کيدله نو په سجستان کي يي ټوله شپه عبادت اوکړو په سحر کي ورباندي لږ شان پرکالي راغله فوج ورنه مخکي تير شو او دی اوده پاتي شو نو په همدي حالت کي دشمن ده لره يواخي اوموندو او ذبح يي کړو (طبقات ابن سعد).

يو څه روايات ورنه منقول دي چې په تعداد کي يي دعلماؤ اختلاف دی.

***************

## ٤٩_باب مَا جَاءَ فِي الثَّوْبِ الأَسْوَدِ

### دتورو جامواغوستلو بيان

٢٨١٣_حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ زَكَرِيَّا بْنِ أَبِي زَائِدَةَ، أَخْبَرَنِي أَبِي، عَنْ مُصْعَبِ بْنِ شَيْبَةَ، عَنْ صَفِيَّةَ بِنْتِ شَيْبَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: " خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ غَدَاةٍ وَعَلَيْهِ مِرْطٌ مِنْ شَعَرٍ أَسْوَدَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ صَحِيحٌ. (2)

**ترجمه** : عائشی رضي الله عنها نه روايت دی چې يو سحر رسول الله صلي الله عليه وسلم

---

[1] _ سنن ابي داود/ اللباس ١٩ (٤٠٦٥)، والترجل ١٨ (٤٢٠٦)، سنن النسائي/العيدين ١٦ (١٥٧١)، والزينة ٩٦ (٥٣٢٣) (تحفة الأشراف: ١٢٠٣٦)، و مسند احمد (٢/٢٢٦، ٢٢٧، ٢٢٨)، و (٤/١٦٣)

[2] _ صحيح مسلم/اللباس ٦ (٢٠٨١)، وفضائل الصحابة ٩ (٢٤٢٤) (تحفة الأشراف: ١٧٨٥٧)، و مسند احمد (٦/١٦٢)

دکوره اووتو او هغوئ دتوري وړئ څادر پسر کړي وو

**لغات** "المرط" دميم په زير څادر "المرحل" هغه شی چې وړباندې دکجاوې تصوير وي

امام ترمذي وايي. دا حديث حسن صحيح دي

****************

## ٥٠_باب مَا جَاءَ فِي الثَّوْبِ الأَصْفَرِ

### .دزیړو جامو اغوستلو بیان

٢٨١٤_حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، حَدَّثَنَا عَفَّانُ بْنُ مُسْلِمٍ الصَّفَّارُ أَبُو عُثْمَانَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ حَسَّانَ، أَنَّهُ حَدَّثَتْهُ جَدَّتَاهُ صَفِيَّةُ بِنْتُ عُلَيْبَةَ، وَدُحَيْبَةُ بِنْتُ عُلَيْبَةَ حَدَّثَتَاهُ، عَنْ قَيْلَةَ بِنْتِ مَخْرَمَةَ، وَكَانَتَا رَبِيبَتَيْهَا، وَقَيْلَةُ جَدَّةُ أَبِيهِمَا أُمُّ أُمِّهِ، أَنَّهَا قَالَتْ: " قَدِمْنَا عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَتِ الحَدِيثَ بِطُولِهِ حَتَّى جَاءَ رَجُلٌ وَقَدِ ارْتَفَعَتِ الشَّمْسُ. فَقَالَ: السَّلَامُ عَلَيْكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " وَعَلَيْكَ السَّلَامُ وَرَحْمَةُ اللَّهِ، وَعَلَيْهِ تَعْنِي النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَسْمَالُ مُلَيَّتَيْنِ كَانَتَا بِزَعْفَرَانٍ وَقَدْ نَفَضَتَا، وَمَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَسِيبُ نَخْلَةٍ". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ قَيْلَةَ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ حَسَّانَ. [1]

**ترجمه** : قيله بنت مخرمه رضي الله عنها وائي مونږ درسول الله صلي الله عليه وسلم په خدمت كي حاضر شو او بيا يي يو اوږد حديث بيان كړو (په دي كي داسي دي) دغه وخت كي يو كس راغلو چې نمر راختلو او ونيل يي السلا عليك يارسول الله نو رسول الله اوفرمائيل وعليك السلام ورحمة الله او دغه وخت درسول الله جسم په دوه زړو جامو پټ وو او په زعفران رنګ شوي وي او دډير استعمال په وجه يي رنګ پيكه شوي وو او درسول الله صلي الله عليه وسلم سره دكجوري يو خانښ وو.

امام ترمذي وايي د قيله حديث مونږ صرف دعبدالله بن حسان په سند پيژنو

****************

## ٥١_باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ التَّزَعْفُرِ وَالْخَلُوقِ لِلرِّجَالِ

### دزعفران او خلوق استعمال دسړو دپاره مکروه دي

٢٨١٥_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، قَالَ: . ح وَحَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ

[1] ـ سنن ابي داود/ الخراج والإمارة ٣٦ (٣٠٧٠) (تحفة الأشراف : ١٨٠٤٢)

الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، عَنْ حَمَّادِ بْنِ زَيْدٍ، عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ صُهَيْبٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: " نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ التَّزَعْفُرِ لِلرِّجَالِ "، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([1])

**ترجمه** دانس بن مالك رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم دسړو دپاره په زعفران د ملبوساتو رنګ کولو نه ممانعت فرمائيلي دي.
امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي.

*****************

وَرَوَى شُعْبَةُ هَذَا الحَدِيثَ عَنْ إِسْمَاعِيل ابْنِ عُلَيَّةَ، عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ صُهَيْبٍ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنِ التَّزَعْفُرِ، حَدَّثَنَا بِذَلِكَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، حَدَّثَنَا آدَمُ، عَنْ شُعْبَةَ، قَالَ أَبُو عِيسَى: وَمَعْنَى كَرَاهِيَةِ التَّزَعْفُرِ لِلرِّجَالِ أَنْ يَتَزَعْفَرَ الرَّجُلُ يَعْنِي أَنْ يَتَطَيَّبَ بِهِ. ([2])

**ترجمه** : دانس بن مالك رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم دسړو دپاره په زعفران د ملبوساتو رنګ کولو نه ممانعت فرمائيلي دي.
امام ترمذي وايي: عبدالله بن عبدالرحمن هم د ادم نه او هغه دشعبه نه دارروايت مونږ ته بيان کړي دي، امام ترمذي وائي دسړو دپاره دزعفران دکراهت معني داده چې څوك په زعفران باندي جامه خوشبوئيه کړي.

*****************

٢٨١٦ــحَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ الطَّيَالِسِيُّ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ السَّائِبِ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا حَفْصِ بْنَ عُمَرَ يُحَدِّثُ، عَنْ يَعْلَى بْنِ مُرَّةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَبْصَرَ رَجُلًا مُتَخَلِّقًا، قَالَ: " اذْهَبْ فَاغْسِلْهُ ثُمَّ اغْسِلْهُ ثُمَّ لَا تَعُدْ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. وَقَدِ اخْتَلَفَ بَعْضُهُمْ فِي هَذَا الْإِسْنَادِ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ السَّائِبِ، قَالَ عَلِيٌّ، قَالَ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ: مَنْ سَمِعَ

---

[1] ــ اورده البخاري في الجامع الصحيح /اللباس ٣٣ (٥٨٤٦). صحيح مسلم /اللباس ٢٣ (٢١٠١). سنن ابي داود/ الترجل ٨ (٤١٧٩). سنن النسائي/الحج ٤٣ (٢٧٠٧). والزينة ٧٣ (٥٢٥٨) (تحفة الأشراف: ١٠١١)

[2] ــ اورده البخاري في الجامع الصحيح /اللباس ٣٣ (٥٨٤٦). صحيح مسلم /اللباس ٢٣ (٢١٠١). سنن ابي داود/ الترجل ٨ (٤١٧٩). سنن النسائي/الحج ٤٣ (٢٧٠٧). والزينة ٧٣ (٥٢٥٨) (تحفة الأشراف: ١٠١١)

مِنْ عَطَاءِ بْنِ السَّائِبِ قَدِيمًا فَسَمَاعُهُ صَحِيحٌ، وَسَمَاعُ شُعْبَةَ، وَسُفْيَانَ مِنْ عَطَاءِ بْنِ السَّائِبِ صَحِيحٌ، إِلَّا حَدِيثَيْنِ عَنْ عَطَاءِ بْنِ السَّائِبِ، عَنْ زَاذَانَ، قَالَ شُعْبَةُ: سَمِعْتُهُمَا مِنْهُ بِآخِرَةٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: يُقَالُ إِنَّ عَطَاءَ بْنَ السَّائِبِ كَانَ فِي آخِرِ أَمْرِهِ قَدْ سَاءَ حِفْظُهُ. وَفِي الْبَابِ، عَنْ عَمَّارٍ، وَأَبِي مُوسَى، وَأَنَسٍ، وَأَبُو حَفْصٍ هُوَ أَبُو حَفْصِ بْنُ عُمَرَ. (١)

**ترجمه** : ديعلي بن مره رضي الله عنه نه مروي دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم يو كس اوليدو چې خلوق يي استعمال كړي وو او ورته يي اوفرمائيل لاړ شه او دا اووينځه، او بيا يي اووينځه، او بيا يي هيڅ كله مه لګوه

امام ترمذي وايي داحديث حسن دي، بعضي راويانو داحديث دعطاء بن سائب نه نقل كړي دي او راويانو ددي حديث په اسناد كي اختلاف كړي دي، علي بن مديني وائي ديحي بن سعيد قول دي چاچې دعطاء بن سائب نه دهغه په زندګۍ كي په سابقه زمانه كي اوريدل كړي دي نو ددوئ سماع به صحيح وي نو دشعبه او سفيان ثوري سماع دعطاء بن سائب نه صحيح ده مګر هغه احاديث كوم چې دعطاء نه د زاذان په واسطه مروي دي دا صحيح نه دي . شعبه وائي ما دا دواړه احاديث دعطاء نه دهغه په اخري عمر كي اوريدلي دي او دا حديث دهغوئ دجملي نه نه دي، ونيلي شوي دي چې دعطاء بن سائب حافظه اخري عمر كي خرابه شوي ده، په دي باب كي دعمار، ابو موسي، او انس رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

**تخريج**: سنن النسائي/الزينة ٣٣ (٥١٢٢) (تحفة الأشراف : ١١٨٣٩) ، و مسند احمد (١٤١/٤، ١٤٣)

***************

## ٥٢_باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الْحَرِيرِ وَالدِّيبَاجِ

### دسړو دپاره دريښمو او ريښمو نه جوړو شوو جامو داستعمال دحرمت بيان

٢٨١٧_حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا إِسْحَاق بْنُ يُوسُفَ الْأَزْرَقُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ أَبِي سُلَيْمَانَ، حَدَّثَنِي مَوْلَى أَسْمَاءَ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: سَمِعْتُ عُمَرَ يَذْكُرُ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " مَنْ لَبِسَ الْحَرِيرَ فِي الدُّنْيَا لَمْ يَلْبَسْهُ فِي الْآخِرَةِ ". وَفِي الْبَابِ، عَنْ عَلِيٍّ، وَحُذَيْفَةَ، وَأَنَسٍ، وَغَيْرِ وَاحِدٍ، وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ فِي كِتَابِ اللِّبَاسِ، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، قَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ، عَنْ أَبِي عُمَرَ، وَمَوْلَى أَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ اسْمُهُ عَبْدُ اللَّهِ وَيُكْنَى أَبَا عَمْرٍو،

وَقَدْ رَوَى عَنْهُ عَطَاءُ بْنُ أَبِي رَبَاحٍ، وَعَمْرُو بْنُ دِينَارٍ. [1]

**ترجمه** دانس رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچې دنيا کې ريښم اغوستل اخرت کې به يې نه اغوندي

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي او دا حديث په يو څو سندونو داسماء بنت ابي بكر دازاد کړي غلام ابوعمرو نه هم مروي دي دده نوم عبدالله او كنيه ابي عمرو ده دده نه عطاء بن ابي رباح او عمرو بن دينار نقل دروايت کړي دي. او په دي باب كي دعلي. حذيفه. او انس رضي الله عنهم او بعضي نورو راويانو نه هم احاديث وارد دي چې ذكر يې مونږ په كتاب اللباس كي كړي دي.

لغات : الخلاق:دخير يوه لويه حصه، لا خلاق له اي لا نصيب له. خلق دنصر او ضرب او كرم نه خلوقة اوخلقا الثوب معني دجامي زړيدل او نرم كيدل دي، خلق الغلام، ديو غلام نيك اخلاقو والاكيدل دي الخلق مصدر په معني دفطرت.

**تشريح**: په دي حديث کې هم سړو ته خطاب دی چې ددوئ دپاره دريښمو استعمال حرام دی په دي وجه پكار دي چې داغوستلو نه يې اجتناب اوكړي علماؤ ددي دپاره متعدد وجوهات فرمائيلي دي مثلا په ريښمو کې دزينت وصف دی او دا دښځو سره پكار وو دسړو وصف شجاعت اوبهادري ده ، دويم بعضي علماء وائي دريشمي لباس دحراموالي وجه غرور اوتكبر دی اودبعضو په نزد دمشركينو سره مشابهت دی وغيره.

****************

## ٥٣_باب مِنْهُ

### دسابقه باب متعلق يوبل باب

٢٨١٨_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ، عَنِ الْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " قَسَمَ أَقْبِيَةً، وَلَمْ يُعْطِ مَخْرَمَةَ شَيْئًا " . فَقَالَ مَخْرَمَةُ: يَا بُنَيَّ، انْطَلِقْ بِنَا إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَانْطَلَقْتُ مَعَهُ، قَالَ: ادْخُلْ فَادْعُهُ لِي، فَدَعَوْتُهُ لَهُ، فَخَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعَلَيْهِ قَبَاءٌ مِنْهَا، فَقَالَ: " خَبَأْتُ لَكَ هَذَا " . قَالَ: فَنَظَرَ إِلَيْهِ، فَقَالَ: " رَضِيَ مَخْرَمَةُ " . قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَابْنُ أَبِي مُلَيْكَةَ اسْمُهُ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُبَيْدِ اللَّهِ

---

[1] ـ مسلم/اللباس ١ (٢٠٦٩)، واحمد (٢٠/١، ٢٦، ٣٦، ٣٩) وابي داود/الصلاة ٢١٩ (١٠٤٦). واللباس ١٠ (٤٠٢٠). النسائي/الجمعة ١١ (١٣٨٣)، والزينة ٨٣ (٥١٦١). ابن ماجه/اللباس ١٦ (٣٥٩١)، والموطاء: اللباس ٨ (١٨)، ومسند احمد (٢٠/٢، ٣٩، ٤٩)

بْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ. ([1])

**ترجمه** : دمسور بن مخرمه بيان دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم يو څل يو څو چغي تقسيم کړي او مخرمه ته يي په دي کي هيڅ ورنکړل مخرمه اوويل اي خويه رسول الله صلي الله عليه وسلم ته مي بوځه ابن ابي مليکه وائي چې زه دده سره ورغلم پلار راته اوويل چې دننه ورشه او رسول الله زما دپاره راوغواړه چنانچې درسول الله دبهر راويستلو دپاره زه دننه ورغلم رسول الله صلي الله عليه وسلم په داسي حال کي راووتلو چې دتقسيم شوو قباګانو دجملي نه يي يوه قبه په لاس کي وه او بيا يي اوفرمائيل دا ما ستا دپاره ساتلي ده مسور وائي چې مخرمه رسول الله ته اوکتل او وئيل يي مخرمه په دي باندي راضي او خوشحاله دي
امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي او دابن ابي مليکه نوم عبدالله بن عبيدالله بن ابي مليکه دي

*****************

## ٥٤_بَاب مَا جَاءَ إِنَّ اللَّهَ تَعَالَى يُحِبُّ أَنْ يُرَى أَثَرُ نِعْمَتِهِ عَلَى عَبْدِهِ

### الله تعالي پخپل بنده باندي دخپل نعمت ليدل او ښکاره کيدل خوښوي

٢٨١٩_حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ مُحَمَّدٍ الزَّعْفَرَانِيُّ، حَدَّثَنَا عَفَّانُ بْنُ مُسْلِمٍ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ أَنْ يَرَى أَثَرَ نِعْمَتِهِ عَلَى عَبْدِهِ ". وَفِي الْبَابِ، عَنْ أَبِي الْأَحْوَصِ، عَنْ أَبِيهِ، وَعِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، وَابْنِ مَسْعُودٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. ([2])

**ترجمه** : عمرو بن شعيب دخپل پلار نه او هغه يي دنيکه نه روايت کوي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي بيشکه الله تعالي دا خبره خوښوي چې يواثر يانښه اوعلامه دنعمت خپل په بنده خپل باندي اووينې ، (ددينه د اهم معلومه شوه چې مالدار به بخل او کنجوسي هم نه کوي بلکه ښکاره کوي به).
امام ترمذي وايي: دعبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما بيان دي رسول الله صلي الله

[1] ـ اورده البخاري في الصحيح /الهبة ١٩ (٢٥٩٩) ، والشهادات ١١ (٢١٢٧) ، والخمس ١١ (٣١٢٧) ، واللباس ١٢ (٥٨٠٠) ، و ٤٣ (٥٨٦٢) ، والأدب ٨٢ (٦١٣٢) ، صحيح مسلم /الزكاة ٤٤ (١٠٥٨) ، سنن ابي داود/ اللباس ٢ (٤٠٢٨) ، سنن النسائي/الزينة ٩٩ (٥٣٢٦) (تحفة الأشراف : ١١٢٦٨)

[2] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ٨٧٧٤)

عليه وسلم فرمائيلي دي الله تعالي پخپل بنده باندي دخپل نعمت اثر ښکاريدل خوښوي
امام ترمذي وائي داحديث حسن دي په دي باب کي دابو الاحوص دپلار، عمران بن حصين او ابن مسعود رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

**لغات**: الاثر: نښان، حديث، سنت، موده، جمع يي اثار او اثور راځي، تاثروا منه يعني اثر يي ورنه قبول کړو

**تشريح**: کله چې الله تعالي انسان ته دنياوي نعمتونه ورکړي دي نو هغه لره يي استعمالول هم پکار دي مګر ددي په استعمال کې دي مبالغه نه کوي ترڅو چې دنعمت دکفران موجب اونه ګرځي اوچاته چې الله تعالي څه نعمتونه ورکړي وي هغه دي دخلقو په وړاندي ددي اظهار کوي ددي دپاره چې خلق ورنه فائده واخلي.

****************

## ٥٥_باب مَا جَاءَ فِي الْخُفِّ الأَسْوَدِ

### دتورو موزو اغوستلو بيان

٢٨٢٠_حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ دَلْهَمِ بْنِ صَالِحٍ، عَنْ حُجَيْرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ ابْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، "أَنَّ النَّجَاشِيَّ أَهْدَى إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خُفَّيْنِ أَسْوَدَيْنِ سَاذَجَيْنِ، فَلَبِسَهُمَا ثُمَّ تَوَضَّأَ وَمَسَحَ عَلَيْهِمَا". قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، إِنَّمَا نَعْرِفُهُ مِنْ حَدِيثِ دَلْهَمٍ، وَقَدْ رَوَاهُ مُحَمَّدُ بْنُ رَبِيعَةَ، عَنْ دَلْهَمٍ. [1]

**ترجمه**: دبريده رضي الله عنه بيان دي فرمائي چې نجاشي (دحبشي بادشاه) رسول الله صلي الله عليه وسلم ته دوه توري موزي راليږلي وي رسول الله صلي الله عليه وسلم واغوستلي او اودس يي اوکړو او په دي دواړو موزو يي مسح اوکړه.
امام ترمذي وايي. داحديث حسن دي او مونږ يي صرف د دلهم په روايت پيژنو چې محمد بن ربيعه د دلهم نه نقل کړي دي.

*****************

## ٥٦_باب مَا جَاءَ فِي النَّهْيِ عَنْ نَتْفِ الشَّيْبِ

---

[1] _ سنن ابي داود/ الطهارة ٥٩ (١٥٥). سنن ابن ماجه/الطهارة ٨٣ (٥٢٩)، واللباس ٣١ (٣٦٢٠) (تحفة الأشراف: ١٩٥٦)، و مسند احمد (٥/٣٥٢)

## دبوډاوالي دسپينو ويختو دويستلو دمما نعت بيان

۲۸۲۱ـ حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ إِسْحَاقَ الْهَمْدَانِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدَةُ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " نَهَى عَنْ نَتْفِ الشَّيْبِ، وَقَالَ: إِنَّهُ نُورُ الْمُسْلِمِ "، قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ قَدْ رُوِيَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْحَارِثِ، وَغَيْرِ وَاحِدٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ. ([1])

**ترجمه** : عمرو بن شعيب رضي الله عنه دخپل پلار نه او هغه يې دنيکه نه روايت کوي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي ، سپين ويښته مه اوباسئ دا دقيامت په ورځ دمسلمانانو نور دی.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن دي عبدالرحمن بن حارث دبعضي نورو راويانو داحديث دعمرو بن شعيب په واسطه نقل کړي دي.

**لغات** . سلم سلامة وسلاما دسمع نه نجات موندل او بري کيدل، سلمه وسلم عليه السلام عليکم ويل، سلم بالامر راضي کيدل، اليه فرمانبردار کيدل. اسلم اسلام اختيارول. بيع سلم کول، العدو دشمن پريخودل، امره الي الله الله ته خپله معامله سپارل، اسلمت وسلمت کله چې تاسو څوك پريږدئ، کله چې درته ضرر رسوي، تسلم مسلمانيدل، الشيء قبضه کول، منه بيزاره کيدل.

**تشريح** : فانه نور المسلم: سپين ويخته مه اوباسئ دابه دقيامت په ورځ دمسلمان نور وي په حديث کې راځي چې دټولو نه مخکې دابراهيم عليه السلام ويخته سپين شوي وو کله چې هغه خپل ويخته سپين اوليدل نو په تعجب سره يې تپوس اوکړو چې ای پروردګاره دا څه دي الله تعالي اوفرمائيل دا ستا وقار دی ابراهيم عليه السلام عرض اوکړو ای الله که دا زما دپاره وقار وي نو نور يې هم زيات کړې علماء وائي چې دقيامت په ورځ به دحشر په ميدان کې سخته تياره وي او هلته به ديو څو څيزونو نه رڼا حاصليږي چې په هغې به انسان جنت ته تلی شي. دپورتني حديث نه معلومه شوه چې سپين ويخته ويستل مکروه دي

****************

## ٥٧ـ بَاب إِنَّ الْمُسْتَشَارَ مُؤْتَمَنٌ

---

[1] ـ سنن ابي داود/ الطهارة ٥٩ (١٥٥) . سنن ابن ماجه/الطهارة ٨٣ (٥٢٩) . واللباس ٣١ (٣٦٢٠) (تحفة الأشراف : ١٩٥٦) . و مسند احمد (٥/٣٥٢)

## دچانه چې مشوره غوښتلې شي هغه اما نتدار کيدل پکار دي

٢٨٢٢ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا شَيْبَانُ، عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ عُمَيْرٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " الْمُسْتَشَارُ مُؤْتَمَنٌ ". قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَقَدْ رَوَى غَيْرُ وَاحِدٍ، عَنْ شَيْبَانَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ النَّحْوِيِّ، وَشَيْبَانُ هُوَ صَاحِبُ كِتَابٍ وَهُوَ صَحِيحُ الْحَدِيثِ وَيُكْنَى أَبَا مُعَاوِيَةَ. حَدَّثَنَا عَبْدُ الْجَبَّارِ بْنُ الْعَلَاءِ الْعَطَّارُ، عَنْ سُفْيَانَ بْنِ عُيَيْنَةَ، قَالَ: قَالَ عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ عُمَيْرٍ: إِنِّي لَأُحَدِّثُ الْحَدِيثَ فَمَا أَدَعُ مِنْهُ حَرْفًا. [1]

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دمستشار (چانه چې مشوره غوښتلې شي) دپاره امين كيدل پكار دي.

امام ترمذي وايي داحديث حسن دي ، متعددو راويانو دشيبان بن عبدالرحمن نحوي نه نقل كړي دي او شيبان صاحب كتاب او صحيح الحديث دي دده كنيه ابومعاويه ده مونږ ته عبدالجبار بن يعلي دعطاء نه بيان كړي دي او هغه دسفيان بن عيينه نه چې ونيل يې عبدالملك بن عمير قول دي كله چې زه حديث بيانوم نو ددي حديث يو يو لفظ (يعني پوره حديث بيانوم) .

****************

٢٨٢٣ـ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ دَاوُدَ بْنِ أَبِي عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ ابْنِ جُدْعَانَ، عَنْ جَدَّتِهِ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " الْمُسْتَشَارُ مُؤْتَمَنٌ ". وَفِي الْبَابِ، عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَابْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ مِنْ حَدِيثِ أُمِّ سَلَمَةَ. [2]

**ترجمه** دابن جدعان نيا ام سلمه رضي الله عنها په واسطه دا فرمان نبوي نقل كوي چې دچانه مشوره غوښتلې كيږي هغه امين كيدل پكار دي.

امام ترمذي وايي: او په دي باب كي دابن مسعود او ابوهريره او ابن عمر رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او دا حديث دابو سلمه په سند غريب دي.

****************

[1] ـ انظر حديث رقم ٢٣٦٩

[2] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ١٨٢٩٩)

## ٥٨_باب مَا جَاءَ فِي الشُّؤْمِ

### د نحوست او سپیره والي بیان

٢٨٢٤_حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، وَحَمْزَةَ، ابني عبد الله بن عمر، عَنْ أَبِيهِمَا، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الشُّؤْمُ فِي ثَلَاثَةٍ: فِي الْمَرْأَةِ، وَالْمَسْكَنِ، وَالدَّابَّةِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَبَعْضُ أَصْحَابِ الزُّهْرِيِّ لَا يَذْكُرُونَ فِيهِ عَنْ حَمْزَةَ، إِنَّمَا يَقُولُونَ عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

وَهَكَذَا رَوَى لَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ سُفْيَانَ بْنِ عُيَيْنَةَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، وَحَمْزَةَ، ابْنَيْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ أَبِيهِمَا، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. (١)

**ترجمه** : دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي نحوست او سپيره والي په دري ځيزونو كي وي (١) په ښځه كي (٢) په كور كي (٣) په څاروي (اس) كي.

امام ترمذي وايي: داحديث صحيح دي دزهري بعضي شاګردانو ددي حديث په سند كي حمزه راوي نه دي ذكر كړي بلكه عن سالم عن ابيه عن النبي صلي الله عليه وسلم سند يي ذكر كړي دي.

**تشريح**: بعضي علماء وائي چې په دي دري ځيزونو كې نحوست ظاهرا ښكاري ليكن حقيقتا پكې نه وي.

دكور نحوست دا وي چې تنګ وي يايي ګاونډ صحيح نه وي يا دا چې اب و هوا يې موافق نه وي.

داس نحوست دادى چې سركشه او شرير وي خوراك ډير كوي او مزل كم كوي په قيمت كې زيات وي او په كار كې سست وي او.دمالك دضرورتونو پوره كونكى نه وي.

دښځي نحوست دادى چې ژبه وره وي يا بي حيا او بدكاره وي يا دخاوند نافرماني كونكي وي په شكل هم بدرنګه وي نو ددي ټولو خرابيانو په وجه منحوسه ګڼرلی شوي ده او مطلقا ددي منحوس ګڼرل په شريعت كې جائز نه دي.

---

[1] ـ اورده البخاري في الصحيح /الجهاد ٤٧ (٢٨٥٨)، والنكاح ١٧ (٥٠٩٣، ٥٠٩٤)، والطب ٤٣ (٥٧٥٣)، مسلم/السلام ٣٤ (٢٢٥٥)، النسائي/الخيل ٥ (٣٥٤١)، (تحفة الأشراف: ٦٦٩٩، ٦٨٢٦)، موطا امام مالك/الاستئذان ٨ (٢٢)، و مسند احمد (٨/٢، ٣٦، ١١٥، ١٢٦)

***************

حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ المَخْزُومِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِنَحْوِهِ، وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ سَعِيدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ حَمْزَةَ، وَرِوَايَةُ سَعِيدٍ أَصَحُّ، لِأَنَّ عَلِيَّ بْنَ الْمَدِينِيِّ، وَالْحُمَيْدِيَّ رَوَيَا عَنْ سُفْيَانَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، وَذَكَرَا عَنْ سُفْيَانَ، قَالَ: لَمْ يَرْوِ لَنَا الزُّهْرِيُّ هَذَا الْحَدِيثَ إِلَّا عَنْ سَالِمٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ. وَرَوَى مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، وَقَالَ: عَنْ سَالِمٍ، وَحَمْزَةَ ابْنَيْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ أَبِيهِمَا، وَفِي الْبَابِ، عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ، وَعَائِشَةَ، وَأَنَسٍ، وَقَدْ رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: "إِنْ كَانَ الشُّؤْمُ فِي شَيْءٍ فَفِي الْمَرْأَةِ وَالدَّابَّةِ وَالْمَسْكَنِ ".(١)

**ترجمه** : سالم دخپل پلار په واسطه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه دماقبل هم معني روايت نقل كړي دي او په سند كي يې سعيد بن عبدالرحمن نه دي ذكر كړي چې دحمزه نه يې نقل كوي، مګر دسعيد روايت زيات صحيح دي ځكه چې علي بن مديني او حميدي دسفيان نه روايت نقل كوي او سفيان دزهري نه او زهري دسالم نه او سالم دخپل پلار نه دواړو پخپل سند كي عن سفيان ذكر كړي دي راوي وائي چې مونږ ته زهري دا حديث دسالم نه علاوه په بل سند نه دي ذكر كړي چې دابن عمر نه يې نقل كولو مالك بن انس دا حديث دزهري نه نقل كړي دي او هغه دسالم او حمزه چې دابن عمر خامن دي نه نقل كړي دي او هغوئ دخپل پلار نه نقل كړي دي

امام ترمذي وايي: او په دي باب كي دسهل بن سعد، عائشه، انس رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، او درسول الله صلي الله عليه وسلم نه مروي دي چې فرمائيل يې يو بل نه مرض لګيدل او بدفالي (دځه شي سپيره ګڼړل) نشته او كه سپيره كيدل دځه شي وى نو په كوړ كي ښځه او په اس كي به وو

***************

وَقَدْ رُوِيَ عَنْ حَكِيمِ بْنِ مُعَاوِيَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "لَا شُؤْمَ، وَقَدْ يَكُونُ الْيُمْنُ فِي الدَّارِ، وَالْمَرْأَةِ، وَالْفَرَسِ ". حَدَّثَنَا بِذَلِكَ عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيل بْنُ عَيَّاشٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ سُلَيْمٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ جَابِرٍ الطَّائِيِّ، عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ حَكِيمٍ، عَنْ

عَنْ جَدِّهِ حَكِيمِ بْنِ مُعَاوِيَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهَذَا. ([1])

**ترجمه** دحکیم بن معاویه رضي الله عنه بیان دي فرمائي چې مادرسول الله صلي الله علیه وسلم نه اوریدلي دي په اسلام کي دنحوست او سپیره والي هیڅ حقیقت نشته البته کله کله په کور کي او په ښځه کي او په اس کي برکت وي

***************

## ٥٩ـ باب مَا جَاءَ لاَ يَتَنَاجَى اثْنَانِ دُونَ ثَالِثٍ

### کله چې دري کسان یو ځاي کي موجود وي نو په دوئ کي دي دوه کسان د دریم داجازت نه بغیر خپل مینځ کي پوس پوسي نه کوي

٢٨٢٥ـ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ. ح قَالَ: وَحَدَّثَنِي ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ شَقِيقٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا كُنْتُمْ ثَلاَثَةً، فَلاَ يَتَنَاجَى اثْنَانِ دُونَ صَاحِبِهِمَا، وَقَالَ سُفْيَانُ فِي حَدِيثِهِ: لاَ يَتَنَاجَى اثْنَانِ دُونَ الثَّالِثِ فَإِنَّ ذَلِكَ يُحْزِنُهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: "لاَ يَتَنَاجَى اثْنَانِ دُونَ وَاحِدٍ، فَإِنَّ ذَلِكَ يُؤْذِي الْمُؤْمِنَ، وَاللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ يَكْرَهُ أَذَى الْمُؤْمِنِ". وَفِي الْبَابِ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ. ([2])

**ترجمه** : ابن مسعود رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلي الله علیه وسلم فرمانیلي دي څوك چې دری کسان وي نو دوه کسان دي د دریم داجازت نه بغیر خاتـه پټی خبری نه کوي سفیان پخپل حدیث کي وائي دوه کسان دي ددریم داجازت نه بغیر پخپل مینځ کي ګنګوسي نه کوي خکه چې دا دي دریم کس لره خفه کوي

امام ترمذي وايي: داحدیث حسن صحیح دي دارنګي دا مضمون هم درسول الله صلي الله علیه وسلم نه مروي دي چې فرمائیل یي دوه کسان دي د دریم داجازت نه بغیر پټي خبري نه کوي خکه چې دا مومن ته تکلیف رسوي او الله تعالي یو مومن ته تکلیف رسیدل بد ګنړي او په دي

[1] ـ سنن ابن ماجه/النكاح ٥٥ (١٩٩٣) (تحفة الأشراف: ٣٢٣٩)

[2] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /الاستئذان ٣٥ (٦٢٨٨)، و ٤٧ (٦٢٩٠)، صحيح مسلم/السلام ١٥ (٢١٨٣)، سنن ابي داود/ الأدب ٢٩ (٣٨٥١)، سنن ابن ماجه/الأدب ٥٠ (٣٧٧٥) (تحفة الأشراف: ٩٢٥٣)، والموطاء: السلام ٦ (١٣)، ومسند احمد (١/٣٢٥)

باب کي دابن عمر او ابوهريره او ابن عباس رضي الله عنهم نه هم روايتونه وارد دي

**لغات** دون معني کم لکه هو دونه يعني هغه دده نه په مرتبه کې کم دي او مشي دونه يعني هغه دده نه سست رفتار وکړو. من دون ان يفعل . بغير دکولو نه. دون معني کم او حقير لکه شيء دون، او کله کله دشريف په معني راځي لکه حال القوم دون فلان. يعني قوم دفلاني اودهغه دمطلوب په مينځ کې حائل شو.

**تشريح** په پورتني حديث کې د مجلس د ادابو بيان دی . ددينه معلومه شوه چې دېو نه دزياتو کسانو په موجودګۍ کې دوه دوه کسان پخپل مينځ کې پټې پټې خبرې کولی شي البته که څلور کسان وي او دري کسان وي او دوه کسان پخپل مينځ کې پټې پټې خبرې شروع کړي او يو لره همداسې پريږدي نو جائز نه دي ددي دناجائز کيدو وجه داده چې کوم کس يې پريږدي نو هغه به په غم او شک کې مبتلا وي او دا ګمان به کوي کيدی شي چې دوی زما خلاف منصوبه جوړوي

دابحث خود جائز جرګې په باره کې وو او که جرګه دشر دپاره وي نو بلکل ناجائز ده اګرکه هر څومره کسان وي لکه چې ارشاد الهي دي:

يا ايها الذين امنوا اذا تناجيتم فلا تناجوا بالاثم والعدوان ومعصية الرسول.

يعني اي مومنانو کله چې جرګې کوئ نودرسول په خلاف جرګې مه کوئ

***************

## ٦٠_باب مَا جَاءَ فِي الْعِدَةِ

### دوعدي او معاهدي بيان

٢٨٢٦_حَدَّثَنَا وَاصِلُ بْنُ عَبْدِ الأَعْلَى الْكُوفِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُضَيْلٍ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ أَبِي خَالِدٍ، عَنْ أَبِي جُحَيْفَةَ، قَالَ: "رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَبْيَضَ قَدْ شَابَ، وَكَانَ الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ يُشْبِهُهُ، وَأَمَرَ لَنَا بِثَلَاثَةَ عَشَرَ قَلُوصًا، فَذَهَبْنَا نَقْبِضُهَا فَأَتَانَا مَوْتُهُ فَلَمْ يُعْطُونَا شَيْئًا، فَلَمَّا قَامَ أَبُو بَكْرٍ قَالَ: مَنْ كَانَتْ لَهُ عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِدَةٌ فَلْيَجِئْ، فَقُمْتُ إِلَيْهِ فَأَخْبَرْتُهُ فَأَمَرَ لَنَا بِهَا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَقَدْ رَوَى مَرْوَانُ بْنُ مُعَاوِيَةَ هَذَا الْحَدِيثَ بِإِسْنَادٍ لَهُ، عَنْ أَبِي جُحَيْفَةَ، نَحْوَ هَذَا وَقَدْ رَوَى غَيْرُ وَاحِدٍ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ أَبِي خَالِدٍ، عَنْ أَبِي جُحَيْفَةَ، قَالَ: رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَكَانَ الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ يُشْبِهُهُ، وَلَمْ يَزِيدُوا عَلَى هَذَا. (١)

١_ اورده البخاري في الصحيح /المناقب ٢٣ (٣٥٤٤) مسلم /الفضائل ٢٩ (٢٣٤٣)

**ترجمه** دابو جحيفه رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم مې سپين او څوان ليدلي وو چې بيا وربانديې بوډاوالي راغي، حسن بن علي رضي الله عنه په شکل او صورت کې دهغه سره مشابه وو، او رسول الله صلي الله عليه وسلم مونږ ته د ديارلسو اوښانو اداء کولو حکم صادرکړي وو، او مونږ دهغوئ دراوستلو دپاره تلي وو چې يو دم درسول الله صلي الله عليه وسلم دوفات کيدو خبر راغلو چنانچې هغوئ بيا مونږ ته هيڅ رانکړل، بيا چې کله ابوبکر رضي الله عنه دخلافت ذمه واري په لاس کې اونيوله نوهغه اعلان اوکړو که درسول الله صلي الله عليه وسلم سره دچا کومه وعده يا معاهده وي نو هغوئ دې مونږ ته راشي، چنانچې زه اودريدم او دابوبکر خواته ورغلم او درسول الله صلي الله عليه وسلم دحکم نه مې خبر کړو، نوابوبکر زمونږ باره خپلو عاملينو ته داوښانو اداء کولو حکم اوکړو

امام ترمذي وايي: داحديث حسن دي، مروان بن معاويه داحديث پخپل سند دابوجحيفه په واسطه ددي هم معني نقل کړي دي، اوبعضي نورو راويانو هم داسماعيل بن ابوخالد په واسطه دابوجحيفه نه نقل کړي دي دوئ پخپل روايت کې وائي مانبي کريم صلي الله عليه وسلم ليدلي وو چې دحسن بن علي رضي الله عنه سره مشابه وو او هغه ددينه نور زيات څه بيان نکړل

*****************

٢٨٢٧_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ أَبِي خَالِدٍ، حَدَّثَنَا أَبُو جُحَيْفَةَ، قَالَ: "رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَكَانَ الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ يُشْبِهُهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَكَذَا رَوَى غَيْرُ وَاحِدٍ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ أَبِي خَالِدٍ، نَحْوَ هَذَا. وَفِي الْبَابِ، عَنْ جَابِرٍ. وَأَبُو جُحَيْفَةَ اسْمُهُ وَهْبٌ السُّوَائِيُّ. (١)

**ترجمه** : د ابو جحيفه بيان دي مارسول الله صلي الله عليه وسلم ليدلي دي چې دحسن بن علي رضي الله عنه سره مشابه دي

امام ترمذي وايي: دارنگې يو بل راوي هم داسماعيل بن ابو خالد نه ددي هم معني روايت نقل کړي دي ، او په دي باب کې دجابر رضي الله عنه نه هم حديث وارد دي او دابو جحيفه نوم وهب سوائي دي

*****************

## ٦١_باب مَا جَاءَ فِي فِدَاكَ أَبِي وَأُمِّي

١ ـ اورده البخاري في الصحيح /المناقب ٢٣ (٣٥٤٣)، مسلم /الفضائل ٢٩ (٢٣٤٣)

## د"فداك ابي وامي" ونيلو بيان

٢٨٢٨_حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعِيدٍ الْجَوْهَرِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ عَلِيٍّ، قَالَ: "مَا سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَمَعَ أَبَوَيْهِ لِأَحَدٍ غَيْرَ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ".([1])

**ترجمه** : دعلي رضي الله عنه بيان دي فرمائي چې مانبي كريم صلي الله عليه وسلم دسعد بن ابي وقاص رضي الله عنه نه علاوه دبل چا دپاره نه دي ليدلي چې خپل مور او پلار يي دهغه دپاره جمع كړي وي.

***************

٢٨٢٩_حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ الصَّبَّاحِ الْبَزَّارُ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ ابْنِ جُدْعَانَ، وَيَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، سَمِعَا سَعِيدَ بْنَ الْمُسَيَّبِ، يَقُولُ: قَالَ عَلِيٌّ: "مَا جَمَعَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَبَاهُ وَأُمَّهُ لِأَحَدٍ إِلَّا لِسَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ، قَالَ لَهُ يَوْمَ أُحُدٍ: ارْمِ فِدَاكَ أَبِي وَأُمِّي، وَقَالَ لَهُ: ارْمِ أَيُّهَا الْغُلَامُ الْحَزَوَّرُ" وَفِي الْبَابِ، عَنِ الزُّبَيْرِ، وَجَابِرٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ عَنْ عَلِيٍّ. ([2])

**ترجمه** . دسعيد بن مسيب بيان دي چې علي رضي الله عنه اوفرمائيل رسول الله صلي الله عليه وسلم خپل مور پلار دسعد بن ابي وقاص رضي الله عنه نه علاوه د بل چا دپاره جمع كړي نه دي دجنگ احد په ورځ يي ورته اوونيل غشيْ اوله زما مور او پلار دي دربانډي قربان شي او دا يي ورته هم اوونيل اي بهادر او قوي ځوانه غشي ويشتل جاري اوساته.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي، داحديث دعلي رضي الله عنه نه په ډيرو سندونو مروي دي او دا حديث متعددو راويانو ديحي بن سعيد نه او هغه دسعيد بن مسيب نه او هغه دسعد بن وقاص رضي الله عنه نه نقل كړي دي ونيل يي چې دجنگ احد په ورځ رسول الله صلي لله عليه وسلم خپل مور او پلار دواړه زما دپاره جمع كړل او ويي فرمائيل غشي اوله زما مور او پلار دي په تاقربان شي، په دي باب كي دزبير او جابر رضي الله عنهما

[1] _ اورده البخاري في الصحيح /الجهاد ٨٠ (٢٩٠٥) . والمغازي ١٨ (٤٠٥٨، ٤٠٥٩) . مسلم / فضائل الصحابة ٥١ (٢٤١١) . سنن النسائي/عمل اليوم والليلة ٧٧ (١٩٠١٩٣) . سنن ابن ماجه/المقدمة ١١ (١٢٩) . وانظر رقم ٢٨٣٠ (تحفة الأشراف : ١٠١١٩)

[2] _ اورده البخاري في الصحيح /الجهاد ٨٠ (٢٩٠٥) . والمغازي ١٨ (٤٠٥٨، ٤٠٥٩) . مسلم / فضائل الصحابة ٥١ (٢٤١١) . سنن النسائي/عمل اليوم والليلة ٧٧ (١٩٠١٩٣) . سنن ابن ماجه/المقدمة ١١ (١٢٩) . وانظر رقم ٢٨٣٠ (تحفة الأشراف : ١٠١١٦)

نه هم احاديث وارد دي.

*****************

۲۸۳۰ـ وَقَدْ رَوَى غَيْرُ وَاحِدٍ هَذَا الحَدِيثَ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ، قَالَ: " جَمَعَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَبَوَيْهِ يَوْمَ أُحُدٍ. قَالَ: ارْمِ فِدَاكَ أَبِي وَأُمِّي". حَدَّثَنَا بِذَلِكَ قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ، وَعَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ، قَالَ: " جَمَعَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَبَوَيْهِ يَوْمَ أُحُدٍ". وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَكِلَا الحَدِيثَيْنِ صَحِيحٌ. ([1])

**ترجمه** : دُسعد بن ابي وقاص رضي الله عنه بيان دي فرماني چې رسول الله صلي الله عليه وسلم دجنګ احد په ورځ زما دپاره په "فداك ابي وامي" ونيلو سره خپل مور او پلار دواړه جمع کړل.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي.

*****************

## ٦٢ـ باب مَا جَاءَ فِي يَا بُنَيَّ

### چاته دشفقت په وجه "يابني" (اي بچيه) ونيلو بيان

۲۸۳۱ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ أَبِي الشَّوَارِبِ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، حَدَّثَنَا أَبُو عُثْمَانَ شَيْخٌ لَهُ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَهُ: "يَا بُنَيَّ". وَفِي البَابِ، عَنِ الْمُغِيرَةِ، وَعُمَرَ بْنِ أَبِي سَلَمَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الوَجْهِ. وَقَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ هَذَا الوَجْهِ عَنْ أَنَسٍ، وَأَبُو عُثْمَانَ هَذَا شَيْخٌ ثِقَةٌ، وَهُوَ الجَعْدُ بْنُ عُثْمَانَ وَيُقَالُ ابْنُ دِينَارٍ وَهُوَ بَصْرِيٌّ، وَقَدْ رَوَى عَنْهُ يُونُسُ بْنُ عُبَيْدٍ، وَشُعْبَةُ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ مِنَ الأَئِمَّةِ. ([2])

**ترجمه** : دانس رضي الله عنه نه مروي دي فرماني چې نبي كريم صلي الله عليه وسلم ماته يابني اوونيل يعني اي بچيه

امام ترمذي وايي دا حديث په دي سند حسن صحيح غريب دي، او ددي حديث نه علاوه په

---

[1] ـ اورده البخاري في الصحيح /فضائل الصحابة ١٥ (٣٧٢٥) . والمغازي ١٨ (٤٠٥٨) . مسلم/فضائل الصحابة ٥١ (٢٤١٢) .
سنن ابن ماجه/المقدمة ١١ (١٣٠) (تحفة الأشراف : ٣٨٥٨)

[2] ـ مسلم/الآداب ٦ (٢١٥١) . ابي داود/الأدب ٧٢ (٤٩٦٤) . واحمد (٣/٢٨٥)

نورو سندونو هم دا حديث دانس رضي الله عنه نه مروي دي او ابو عثمان يو ثقه شيخ دي دده نوم جعد بن عثمان دي او ابن دينار ورته هم وئيلي شي اودبصري اوسيدونكي دي چې يونس بن عبيد او نورو راويانو ورنه نقل دروايت كړي دي، او په دي باب كي دمغيره او عمر بن ابي سلمه نه هم احاديث وارد دي

****************

## ٦٣ـ باب مَا جَاءَ فِي تَعْجِيلِ اسْمِ الْمَوْلُودِ

### په نوي پيداشوي ماشوم دزر نوم ايخودلو بيان

٢٨٣٢ـ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ سَعْدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ بْنِ سَعْدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ، حَدَّثَنِي عَمِّي يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ بْنِ سَعْدٍ، حَدَّثَنَا شَرِيكٌ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "أَمَرَ بِتَسْمِيَةِ الْمَوْلُودِ يَوْمَ سَابِعِهِ وَوَضْعِ الْأَذَى عَنْهُ وَالْعَقِّ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. (١)

**ترجمه** : دعبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم په اومه ورځ په نوي ماشوم دنوم ايخودلو او دده په عقيقي كولو حكم كړي دي امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي.

**تخريج**: تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ٨٧٩٠)

****************

## ٦٤ـ باب مَا جَاءَ مَا يُسْتَحَبُّ مِنَ الأَسْمَاءِ

### دبهترين نومونو بيان

٢٨٣٣ـ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ الْأَسْوَدِ أَبُو عَمْرٍو الْوَرَّاقُ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا مُعَمَّرُ بْنُ سُلَيْمَانَ الرَّقِّيُّ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ صَالِحٍ الْمَكِّيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُثْمَانَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "أَحَبُّ الْأَسْمَاءِ إِلَى اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ عَبْدُ اللَّهِ، وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ". قَالَ أَبُو عِيسَى:

---

[1] ـ صحيح مسلم/الآداب١ (٢١٣٢)، سنن ابن ماجه/الأدب٣٠ (٣٧٢٨) (تحفة الأشراف: ٧٧٢٠)، وحم (٢/٢٤، ٢٨). وسنن الدارمي/الاستئذان٦٠ (٢٧٣٧)

هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. (1)

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما بيان دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دالله تعالي په نزد په ټولو نومونو کي غوره نومونه عبدالله او عبدالرحمن دي.
امام ترمذي وايي په دي سند دا حديث غريب دي

****************

٢٨٣٤ـ حَدَّثَنَا عُقْبَةُ بْنُ مُكْرَمٍ الْعَمِّيُّ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ الْعُمَرِيِّ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ أَحَبَّ الأَسْمَاءِ إِلَى اللَّهِ عَبْدُ اللَّهِ، وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ" هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ هَذَا الْوَجْهِ. (2)

**ترجمه** : نافع دابن عمر رضي الله عنهما په واسطه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم دا فرمان نقل کوي چې يقينا بهتر په نومونو کي الله تعالي ته عبدالله او عبدالرحمن دي
امام ترمذي وايي: داحديث په دي سند حسن غريب دي.

****************

## ٦٥ـ باب مَا يُكْرَهُ مِنَ الأَسْمَاءِ

### دناكاره او ناخوښه نومونو بيان

٢٨٣٥ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا أَبُو أَحْمَدَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لأَنْهَيَنَّ أَنْ يُسَمَّى رَافِعٌ، وَبَرَكَةُ، وَيَسَارٌ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، هَكَذَا رَوَاهُ أَبُو أَحْمَدَ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، عَنْ عُمَرَ، وَرَوَاهُ غَيْرُهُ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبُو أَحْمَدَ ثِقَةٌ حَافِظٌ، وَالْمَشْهُورُ عِنْدَ النَّاسِ هَذَا الْحَدِيثُ عَنْ جَابِرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَيْسَ فِيهِ عَنْ عُمَرَ. (3)

---

1 ـ انظر ماقبله (تحفة الأشراف ٧٧٢١)

2 ـ سنن ابن ماجه/الأدب ٣١ (مسلم/الآدب ٢ (٢١٣٨) (تحفة الأشراف : ١٠٢٢٣)

3 ـ صحيح مسلم/الآداب ٢ (٢١٣٦) . سنن ابي داود/ الأدب ٧٠ (٤٩٥٨، ٤٩٥٩) . سنن ابن ماجه/الأدب ٣١ (٣٧٣٠) (تحفة الأشراف : ٣٦١٢) . وسنن الدارمي/الاستئذان ٦١ (٢٧٣٨)

**ترجمه** دعمر بن الخطاب رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كه الله تعالي زه ژوندي پريخودم نو د رافع او بركت او يسار نومونو ابخودلو نه به خلق منع كوم
امام ترمذي وايي داحديث غريب دي، دا رنګي دا روايت ابو احمد دسفيان نه او هغه دابو زبير نه او هغه دجابر نه او هغه دعمر رضي الله عنه نه هم نقل كړي دي، او دابو احمد نه علاوه سفيان دابو زبير نه او هغه دجابر نه او جابر درسول الله صلي الله عليه وسلم نه نقل كړي دي، او ابو احمد ثقه او حافظ دي په خلقو كي دا حديث عن جابر عن النبي صلي الله عليه وسلم مشهور دي او په دي حديث كي عن عمر واسطي ذكر نشته

****************

٢٨٣٦ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ هِلَالِ بْنِ يَسَافٍ، عَنِ الرَّبِيعِ بْنِ عُمَيْلَةَ الْفَزَارِيِّ، عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدَبٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " لَا تُسَمِّ غُلَامَكَ رَبَاحٌ وَلَا أَفْلَحُ وَلَا يَسَارٌ وَلَا نَجِيحٌ "، يُقَالُ: أَثَمَّ هُوَ ؟ فَيُقَالُ: " لَا ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([1])

**ترجمه** : دسمره بن جندب رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي تاسو پخپلو هلكانو باندي رباح، افلح، يسار، او نجيح نومونه مه ايږدئ او دا خكه كه تپوس اوكړي شي چې ايا هغه دلته دي نو اوبه وئيلي شي چې نشته

****************

٢٨٣٧ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مَيْمُونٍ الْمَكِّيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنِ الْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، يَبْلُغُ بِهِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " أَخْنَعُ اسْمٍ عِنْدَ اللَّهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ رَجُلٌ تَسَمَّى بِمَلِكِ الْأَمْلَاكِ ". قَالَ سُفْيَانُ: شَاهَانْ شَاهْ، وَأَخْنَعُ يَعْنِي أَقْبَحُ. هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([2])

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دالله تعالي په نزد ډير دشرم قابل دی هغه سړی چې نوم يی ملك الملوك وي.

---

[1] ـ تفرد به المؤلف رحمه الله في السنن الجامع.

[2] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /الأدب ١١٢ (٦٢٠٥) . صحيح مسلم/الآداب ٣ (٢١٤٣) . سنن ابي داود/ الأدب ٧٠ (٤٩٦١) (تحفة الأشراف: ١٣٦٧٢) . و مسند احمد (٢/٢٤٤)

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي

**لغات** ملك. الملك مصدر دي بادشاه ته ويلي شي جمع يي ملوك او املاك او ملك الاملاك دي

**تشريح**: راوي سفيان بن عيينه رضي الله عنه فرمائي ملك الملوك دشهنشاه په معنى دى يعنى دبادشاهانو بادشاه.

علماء وائي ددي حديث مطلب دادى چې الله تعالي عاجزي او تواضع ډيره خوښوي او دفخر او غرور نه بي انتهاء نفرت كوي او دشاهنشاه ونيلو په وجه دعاجزي په ځاي دانسان نه دتكبر اظهار كيږي او همدا رنګي شاهنشاه لفظ دالله تعالي وصف دى كوم چې په هغه پوري مخصوص دى نو په دي وجه په دي وصف كي دالله تعالي سره په مخلوق كي هيڅوك شريكيدى نشي.

****************

## ٦٦_باب مَا جَاءَ فِي تَغْيِيرِ الأَسْمَاءِ

### دناكاره نومونو دبدلولو بيان

٢٨٣٨_حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ الدَّوْرَقِيُّ، وَأَبُو بَكْرٍ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ، قَالُوا: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ الْقَطَّانُ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " غَيَّرَ اسْمَ عَاصِيَةَ، وَقَالَ: أَنْتِ جَمِيلَةُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَإِنَّمَا أَسْنَدَهُ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ الْقَطَّانُ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، وَرَوَى بَعْضُهُمْ هَذَا عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ نَافِعٍ، أَنَّ عُمَرَ مُرْسَلًا، وَفِي الْبَابِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَلَامٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُطِيعٍ، وَعَائِشَةَ، وَالْحَكَمِ بْنِ سَعِيدٍ، وَمُسْلِمٍ، وَأُسَامَةَ بْنِ أَخْدَرِيٍّ، وَشُرَيْحِ بْنِ هَانِئٍ، عَنْ أَبِيهِ، وَخَيْثَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِيهِ. ([1])

**ترجمه** : دعبدالله بن عمر رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چې نبي كريم صلي الله عليه وسلم عاصيه نوم بدل كړو او ويې فرمائيل ستا نوم د نن نه پس جميله دي

امام ترمذي وايي داحديث حسن غريب دي .داحديث يحي بن سعيد القطان مرفوع بيان كړى دي، يحي دعبيدالله نه او عبيدالله دنافع نه او نافع دابن عمر رضي الله عنهما نه نقل كړي

[1] _ مسلم/الآداب ٣ (٢١٣٩) . سنن ابي داود/ الأدب ٧٠ (٤٩٥٢) . ابن ماجه/الأدب ٣٢ (٣٧٣٣) (تحفة الأشراف : ٨١٥٥) . و احمد (٢/١٨) . وسنن الدارمي/الاستئذان ٦٢ (٢٧٣٩)

دي، او بعضي راويانو دا حديث دعبيدالله نه او هغه دنافع نه او نافع مرسل بيان کړي دي. او په دي باب کي عبدالرحمن بن عوف، عبدالله بن سلام، عبدالله بن مطيع، عائشه، حکم بن سعيد، مسلم، اسامه بن اخدري، شريح بن هاني، او حيثمه بن عبدالرحمن بن ابي سبره رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

***************

٢٨٣٩ـ حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ نَافِعٍ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ عَلِيٍّ الْمُقَدَّمِيُّ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "كَانَ يُغَيِّرُ الِاسْمَ الْقَبِيحَ"، قَالَ أَبُو بَكْرِ بْنُ نَافِعٍ، وَرُبَّمَا قَالَ عُمَرُ بْنُ عَلِيٍّ، فِي هَذَا الْحَدِيثِ هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرْسَلًا، وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ عَنْ عَائِشَةَ. ([1])

**ترجمه** : دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها نه مروي دي فرمائي چې نبي کريم صلي الله عليه وسلم به هر بد نوم بدلولو.

امام ترمذي وايي: ددي حديث يو راوي ابوبکر بن نافع وائي چې کله کله به عمر بن علي الفلاس دا حديث په سند د هشام بن عروه عن ابيه عن النبي صلي الله عليه وسلم مرسل بيانولو او په دي کي بي دعائشي دواسطي ذکر نه دي کړي.

***************

## ٦٧ـ باب مَا جَاءَ فِي أَسْمَاءِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

### درسول الله صلي الله عليه وسلم د نومونو بيان

٢٨٤٠ـ حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْمَخْزُومِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ لِي أَسْمَاءً أَنَا مُحَمَّدٌ، وَأَنَا أَحْمَدُ، وَأَنَا الْمَاحِي الَّذِي يَمْحُو اللَّهُ بِيَ الْكُفْرَ، وَأَنَا الْحَاشِرُ الَّذِي يُحْشَرُ النَّاسُ عَلَى قَدَمِي، وَأَنَا الْعَاقِبُ الَّذِي لَيْسَ بَعْدِي نَبِيٌّ"، وَفِي الْبَابِ، عَنْ حُذَيْفَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([2])

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٦١٢٧)

[2] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /المناقب ١٧ (٣٥٣٢) . وتفسير (الصف ١) (٤٨٩٦) . صحيح مسلم /الفضائل ٣٢ (٢٣٥٤) (تحفة الأشراف: ٣١٩١) . و مسند احمد (٤/٨٠، ٨١، ٨٤) . وسنن الدارمي/الرقاق ٥٩ (٢٨١٧)

**ترجمه** دجبیر بن مطعم رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله علیه وسلم فرمائیل زما یو څو نومونه دي زه محمدیم، زه احمد، او زه هغه ماحي یم دکوم په ذریعه چې به الله تعالي کفر ختموي او زه هغه حاشر یم دکوم په قدمونو چې به خلق راجمع کیږي او زه هغه عاقب یم دچا نه پس چې به بل نبي نه راځي.
امام ترمذي وایي: داحدیث حسن صحیح دي او په دي باب کي دحذیفه رضي الله عنه نه هم حدیث وارد دي.

*****************

## ٦٨_باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الْجَمْعِ بَيْنَ اسْمِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَكُنْيَتِهِ

**درسول الله صلي الله علیه وسلم د نوم او اسم کنیه دواړو ایخودلو دکراهت بیان**

٢٨٤١_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنِ ابْنِ عَجْلَانَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "نَهَى أَنْ يَجْمَعَ أَحَدٌ بَيْنَ اسْمِهِ وَكُنْيَتِهِ وَيُسَمِّيَ مُحَمَّدًا أَبَا الْقَاسِمِ". وَفِي الْبَابِ، عَنْ جَابِرٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ كَرِهَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ أَنْ يَجْمَعَ الرَّجُلُ بَيْنَ اسْمِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَكُنْيَتِهِ، وَقَدْ فَعَلَ ذَلِكَ بَعْضُهُمْ.[1]

**ترجمه**: دابوهریره رضي الله عنه نه مروي دي نبي کریم صلي الله علیه وسلم منع فرمائیلي ده چې څوك دهغه نوم او اسم کنیه دواړه په یو ځاي باندي د خان دپاره کیږدي
امام ترمذي وایي: داحدیث حسن صحیح دي که په دي باب کي دجابر رضي الله عنه نه هم حدیث وارد دي بعضي اهل علم دا مکروه ګڼړي چې څوك په خان باندي درسول الله نوم او اسم کنیه دواړه کیږدي لیکن بعضي خلقو بیا هم داسي کړي دي.

*****************

رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ: سَمِعَ رَجُلًا فِي السُّوقِ يُنَادِي: يَا أَبَا الْقَاسِمِ، فَالْتَفَتَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقَالَ: لَمْ أَعْنِكَ. فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تَكْتَنُوا بِكُنْيَتِي". حَدَّثَنَا بِذَلِكَ الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الْخَلَّالُ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، عَنْ حُمَيْدٍ، عَنْ أَنَسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهَذَا. وَفِي هَذَا الْحَدِيثِ مَا يَدُلُّ عَلَى كَرَاهِيَةِ أَنْ يُكَنَّى أَبَا الْقَاسِمِ.[2]

---

[1] ـ (تحفة الأشراف: ١٣١٤٣) . و مسند احمد (٢/٤٣٣) (صحيح البخاري/ في الأدب (٦١٨٨)

[3] ـ تفرد به المؤلف

**ترجمه** مروي دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم ديو كس نه په بازار كي واوريدل چې چاته يې چغه وهله يا اباالقاسم نو رسول الله صلي الله عليه وسلم ذهغه طرف ته اوكتل نو هغه اوونيل تاته مي اواز نه دي كړي رسول الله دي وخت كي اوفرمائيل زما اسم كنيه دي څوك دخان دپاره نه ايږدي

****************

٢٨٤٢_حَدَّثَنَا الْحُسَيْنُ بْنُ حُرَيْثٍ، حَدَّثَنَا الْفَضْلُ بْنُ مُوسَى، عَنِ الْحُسَيْنِ بْنِ وَاقِدٍ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا سَمَّيْتُمْ بِاسْمِي فَلَا تَكْتَنُوا بِي". قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. [1]

**ترجمه** : دجابر رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كله چې تاسو زما نوم په خان كيخودو نو بيا به زما اسم كنيه په خان نه ايږدئ
امام ترمذي وايي: دا حديث په دي سند حسن غريب دي.

****************

٢٨٤٣_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ الْقَطَّانُ، حَدَّثَنَا فِطْرُ بْنُ خَلِيفَةَ، حَدَّثَنِي مُنْذِرٌ وَهُوَ الثَّوْرِيُّ، عَنْ مُحَمَّدِ ابْنِ الْحَنَفِيَّةِ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ، أَنَّهُ قَالَ: "يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَرَأَيْتَ إِنْ وُلِدَ لِي بَعْدَكَ أُسَمِّيهِ مُحَمَّدًا وَأُكَنِّيهِ بِكُنْيَتِكَ؟ قَالَ: نَعَمْ. قَالَ: فَكَانَتْ رُخْصَةً لِي". هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [2]

**ترجمه** : دعلي بن ابي طالب رضي الله عنه نه مروي دي فرمائيل يې چې اي دالله رسوله ستاسو څه خيال دي كه ماله الله تعالي ستاسو نه پس بچي راكړي او زه وربانديي محمد نوم كيږدم او ستا اسم كنيه وربانديي كيږدم، رسول الله اوفرمائيل هيڅ حرج نشته علي رضي الله عنه وائي چې ماته ددي اجازت راكړي شو.
امام ترمذي وايي: دا حديث حسن صحيح دي.

****************

## ٦٩_بَاب مَا جَاءَ إِنَّ مِنَ الشِّعْرِ حِكْمَةً

---

[1] _ (تحفة الأشراف: ٢٦٨٦) (وأخرج أبوداود (برقم: ٢٩٦٦)

[2] _ سنن ابي داود/ الأدب ٤٦ (٤٩٦٧) (تحفة الأشراف: ١٠٢٦٨)

## بعضي شعرونو كي دحكمت خبري وي

۲۸٤٤_حَدَّثَنَا أَبُو سَعِيدٍ الأَشَجُّ. حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ عَبْدِ المَلِكِ بْنِ أَبِي غَنِيَّةَ. حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ عَاصِمٍ، عَنْ زِرٍّ، عَنْ عَبْدِ اللهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِنَّ مِنَ الشِّعْرِ حِكْمَةً ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الوَجْهِ إِنَّمَا رَفَعَهُ أَبُو سَعِيدٍ الأَشَجُّ. عَنِ ابْنِ أَبِي غَنِيَّةَ. وَرَوَى غَيْرُهُ عَنِ ابْنِ أَبِي غَنِيَّةَ هَذَا الحَدِيثَ مَوْقُوفًا. وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الحَدِيثُ مِنْ غَيْرِ هَذَا الوَجْهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَفِي البَابِ، عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَعَائِشَةَ، وَبُرَيْدَةَ، وَكَثِيرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ. [1]

**ترجمه** : دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي بعضي شعرونو كي دحكمت خبري وي.

امام ترمذي وايي: دا حديث په دي سند غريب دي او ابو سعيد الاشج مرفوع بيان كړي دي چي دابن ابي غنية نه يي نقل كوي او دده نه علاوه نورو راويانو دابن ابي غنية نه داحديث موقوف نقل كړي دي او دا حديث ددي سند نه علاوه په نورو سندونو هم په واسطه دعبدالله بن مسعود دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه مروي دي، په دي باب كي دابي بن كعب، ابن عباس، عائشه، بريده، او كثير بن عبدالله نه چي دخپل پلار نه يي نقل كوي هم احاديث وارد دي.

****************

۲۸٤٥_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ. حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِنَّ مِنَ الشِّعْرِ حُكْمًا ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [2]

**ترجمه** : دابن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي يقينا بعضي شعرونه دحكمت نه ډك وي.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي.

****************

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ۹۲۱۳)

[2] ـ سنن ابي داود/ الأدب ۹٥ (٥٠١١) . سنن ابن ماجه/الأدب ٤١ (٣٧٥٦) . (تحفة الأشراف : ٦١٠٦) . و مسند احمد (١/٢٦٩، ٣٠٩، ٣١٣)

## ٧٠_باب مَا جَاءَ فِي إِنْشَادِ الشِّعْرِ

### دشعرونو وئيلو بيان

٢٨٤٦_حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيل بْنُ مُوسَى الْفَزَارِيُّ، وَعَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ. الْمَعْنَى وَاحِدٌ. قَالَا: حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي الزِّنَادِ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: " كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَضَعُ لِحَسَّانَ مِنْبَرًا فِي الْمَسْجِدِ يَقُومُ عَلَيْهِ قَائِمًا، يُفَاخِرُ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. أَوْ قَالَ: يُنَافِحُ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَيَقُولُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ اللَّهَ يُؤَيِّدُ حَسَّانَ بِرُوحِ الْقُدُسِ مَا يُفَاخِرُ أَوْ يُنَافِحُ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ".[1]

**ترجمه** . دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها بيان دي فرمائي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم به دحسان رضي الله عنه دپاره په مسجد كي منبر ايخودلو چې په دي باندي به اودريدو او درسول الله صلي الله عليه وسلم متعلق به يې فخريه اشعار وئيل، يا هغه به دخپلو شعرونو په ذريعه درسول الله صلي الله عليه وسلم دفاع كوله او رسول الله به فرمائيل الله تعالي دجبرائيل په ذريعه دحسان مدد كوي چې څو پورې دي دخپلو اشعارو په ذريعه درسول الله دطرفه فخر كوي او يا دده دفاع كوي.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح غريب دي او دا حديث دابن ابي الزناد په سند هم مروي دي.

*****************

حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيل بْنُ مُوسَى، وَعَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي الزِّنَادِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهُ. وَفِي الْبَابِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَالْبَرَاءِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ، وَهُوَ حَدِيثُ ابْنِ أَبِي الزِّنَادِ.[2]

**ترجمه** . عروه هم دعائشه رضي الله عنها په واسطه درسول الله صلي الله عليه وسلم نه ددي پشان روايت نقل كړي دي.

امام ترمذي وايي او په دي باب كې دابوهريره او براء رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي او دا حديث حسن صحيح غريب دي او دا د ابن ابي الزناد حديث دي.

---

[1] _ سنن ابي داود/ الأدب ٩٥ (٥٠١٥) (تحفة الأشراف ١٦٣٥١ و١٧٠٢٠)

[2] _ سنن ابي داود/ الأدب ٩٥ (٥٠١٥) (تحفة الأشراف: ١٦٣٥١، و١٧٠٢٠)

*****************

٢٨٤٧_حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا جَعْفَرُ بْنُ سُلَيْمَانَ، حَدَّثَنَا ثَابِتٌ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ مَكَّةَ فِي عُمْرَةِ الْقَضَاءِ وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ رَوَاحَةَ بَيْنَ يَدَيْهِ يَمْشِي وَهُوَ يَقُولُ:

خَلُّوا بَنِي الْكُفَّارِ عَنْ سَبِيلِهِ — الْيَوْمَ نَضْرِبْكُمْ عَلَى تَنْزِيلِهِ

ضَرْبًا يُزِيلُ الْهَامَ عَنْ مَقِيلِهِ — وَيُذْهِلُ الْخَلِيلَ عَنْ خَلِيلِهِ

فَقَالَ لَهُ عُمَرُ: يَا ابْنَ رَوَاحَةَ بَيْنَ يَدَيْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَفِي حَرَمِ اللَّهِ تَقُولُ الشِّعْرَ. فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "خَلِّ عَنْهُ يَا عُمَرُ، فَلَهِيَ أَسْرَعُ فِيهِمْ مِنْ نَضْحِ النَّبْلِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَقَدْ رَوَى عَبْدُ الرَّزَّاقِ هَذَا الْحَدِيثَ أَيْضًا عَنْ مَعْمَرٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَنَسٍ، نَحْوَ هَذَا. وَرُوِيَ فِي غَيْرِ هَذَا الْحَدِيثِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ مَكَّةَ فِي عُمْرَةِ الْقَضَاءِ، وَكَعْبُ بْنُ مَالِكٍ بَيْنَ يَدَيْهِ، وَهَذَا أَصَحُّ عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْحَدِيثِ، لِأَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ رَوَاحَةَ قُتِلَ يَوْمَ مُؤْتَةَ، وَإِنَّمَا كَانَتْ عُمْرَةُ الْقَضَاءِ بَعْدَ ذَلِكَ. (١)

**ترجمه** : دانس رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چې نبي کريم صلي الله عليه وسلم دعمرة القضاء په کال مکې ته داخل شو او عبدالله بن رواحه ته دهغه په وړاندي دا اشعار وئيل اوروان به وو:

خَلُّوا بَنِي الْكُفَّارِ عَنْ سَبِيلِهِ — الْيَوْمَ نَضْرِبْكُمْ عَلَى تَنْزِيلِهِ

ضَرْبًا يُزِيلُ الْهَامَ عَنْ مَقِيلِهِ — وَيُذْهِلُ الْخَلِيلَ عَنْ خَلِيلِهِ

يعني اي دکافرانو اولاده دده (محمد صلي الله عليه وسلم) دلاري نه لري شئ نن به مو داسي قتل کړو چې سرونه به مو دځنونو نه جدا شي او داسي به مو قتل کړو چې يو دوست به دبل دوست نه غافل شي عمر رضي الله عنه ورته اووئيل اي ابن رواحه ته درسول الله صلي الله عليه وسلم په وړاندي او دالله په حرم کي شعرونه وائي؟ رسول الله ورته اوفرمائيل دي پريږده چې شعرونه وائي او ويې فرمائيل اي عمر دا شعرونه په کافرانو دغشو ورولو نه هم زيات بد اثر کوي

امام ترمذي وايي داحديث په دي سند حسن صحيح غريب دي. عبدالرزاق دا حديث دمعمرو

---

١ ـ صحيح مسلم/الحج ١٠٩ (٢٨٤٦) ، و ١٢١ (٢٨٩٦) (تحفة الأشراف : ٢٦٦)

نه او معمرو دزهري په واسطه دانس رضي الله عنه نه په همدي مضمون نقل كړي دي، ددي حديث نه علاوه په يو بل حديث كي مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دعمرة القضاء په موقعه مكي ته داخل شو او دغه وخت كعب بن مالك ورسره وو
امام ترمذي وائي دبعضي محدثينو په نزد دا حديث زيات صحيح دي خكه چي عبدالله بن رواحه په غزوه موته كي شهيد كړي شوي دي او عمرة القضاء ددينه پس شوي ده

***************

٢٨٤٨_حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا شَرِيكٌ، عَنِ الْمِقْدَامِ بْنِ شُرَيْحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَ: قِيلَ لَهَا: هَلْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَمَثَّلُ بِشَيْءٍ مِنَ الشِّعْرِ ؟ قَالَتْ: "كَانَ يَتَمَثَّلُ بِشِعْرِ ابْنِ رَوَاحَةَ وَيَتَمَثَّلُ وَيَقُولُ: وَيَأْتِيكَ بِالأَخْبَارِ مَنْ لَمْ تُزَوِّدِ وَفِي الْبَابِ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** : مروي دي چي دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها نه تپوس اوكړي شو ايا رسول الله صلي الله عليه وسلم كله كوم شعر په طور دمثال اونموني پيش كړي دي؟ نو ويي وئيل هو رسول الله به دابن رواحه اشعار په طور دمثال پيش كول "ويأتيك بالاخبار من لم تزود".
امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي، او په دي باب كي دابن عباس رضي الله عنهما نه هم حديث وارد دي.

***************

٢٨٤٩_حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا شَرِيكٌ، عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ عُمَيْرٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: أَشْعَرُ كَلِمَةٍ تَكَلَّمَتْ بِهَا الْعَرَبُ كَلِمَةُ لَبِيدٍ:
أَلَا كُلُّ شَيْءٍ مَا خَلَا اللَّهَ بَاطِلُ " [2]

قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رَوَاهُ الثَّوْرِيُّ، وَغَيْرُهُ عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ عُمَيْرٍ.

**ترجمه** . دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دعربو په شاعرانه كلامونو كي بهترين كلام دلبيد دا شعر دي " أَلَا كُلُّ شَيْءٍ مَا خَلَا اللَّهَ بَاطِلُ"

---

[1] _ سنن النسائي/عمل اليوم والليلة ٢٨٤ (٩٩٤) (تحفة الأشراف : ١٦١٣٨)

[2] _ اورده البخاري في الجامع الصحيح /مناقب الأنصار ٢٦ (٣٨٤١) ، والأدب ٩٠ (٦١٤٧) ، والرقاق ٢٩ (٦٤٨٩) ، صحيح مسلم /الشعر ح ٣ (٢٢٥٦) ، سنن ابن ماجه/الأدب ٤١ (٣٧٥٧) (تحفة الأشراف : ١٤٩٧٦) ، و مسند احمد (٢/٢٤٨، ٣٩١، ٣٩٣، ٤٤٤، ٤٥٨، ٤٧٠، ٤٨١)

يعني واورئ دالله تعالي نه علاوه هر يو ځيز ختميدونكي دي
امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح دي او دا حديث سفيان ثوري او دده نه علاوه نورو راويانو هم دعبدالملك بن عمير نه نقل كړي دي

*****************

٢٨٥٠ـ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا شَرِيكٌ، عَنْ سِمَاكٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، قَالَ: " جَالَسْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَكْثَرَ مِنْ مِائَةِ مَرَّةٍ، فَكَانَ أَصْحَابُهُ يَتَنَاشَدُونَ الشِّعْرَ وَيَتَذَاكَرُونَ أَشْيَاءَ مِنْ أَمْرِ الجَاهِلِيَّةِ، وَهُوَ سَاكِتٌ فَرُبَّمَا تَبَسَّمَ مَعَهُمْ "، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رَوَاهُ زُهَيْرٌ، عَنْ سِمَاكٍ أَيْضًا. (١)

**ترجمه** : دجابر بن سمره رضي الله عنه بيان دي چې ماته درسول الله صلي الله عليه وسلم په مجالسو كي دسلو پيرو نه زيات دكيناستو شرف حاصل دي درسول الله صحابه كرامو به اشعار وئيل هم او اوريدل به يې هم او دجاهليت ډيري خبري به يې پخپل مينځ كي ذكر كولي او رسول الله به خاموش ناست وو او كله كله به ددوئ سره مسكي شو.
امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي او دا حديث زهير هم دسماك نه نقل كړي دي.

*****************

## ٧١ـ بَاب مَا جَاءَ لأَنْ يَمْتَلِئَ جَوْفُ أَحَدِكُمْ قَيْحًا خَيْرٌ مِنْ أَنْ يَمْتَلِئَ شِعْرًا

### دګنده موادو نه دخيټې ډكيدل ددينه بهتر دي چې دچا خيټه دشعرونو نه ډكه شي

٢٨٥١ـ حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ عُثْمَانَ بْنِ عِيسَى الرَّمْلِيُّ، حَدَّثَنَا عَمِّي يَحْيَى بْنُ عِيسَى الرَّمْلِيُّ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " لأَنْ يَمْتَلِئَ جَوْفُ أَحَدِكُمْ قَيْحًا يَرِيَهُ خَيْرٌ لَهُ مِنْ أَنْ يَمْتَلِئَ شِعْرًا ". وَفِي البَابِ، عَنْ سَعْدٍ، وَابْنِ عُمَرَ، وَأَبِي الدَّرْدَاءِ، وَأَبِي سَعِيدٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (٢)

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دچا خيټه په وينو دګنده شوو موادو نه ډكيدل ددينه بهتر دي چې خيټه يې دګنده اشعارو نه

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٢١٤٦)

[2] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /الأدب ٩٢ (٦١٥٥) . صحيح مسلم /الشعر ٧ (٢٢٥٧) . سنن ابن ماجه/الأدب ٤٢ (٣٧٥٩) (تحفة الأشراف: ١٢٣٤٨) . و مسند احمد (٢/٢٨٨، ٣٣١، ٣٩١)

ډکه وي
امام ترمذي وايي په دې باب کې دسعد او ابن عمر او ابو الدرداء او ابوسعيد خدري رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او دا حديث حسن صحيح دي.

*****************

۲۸۵۲_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، أَخْبَرَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ يُونُسَ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " لَأَنْ يَمْتَلِئَ جَوْفُ أَحَدِكُمْ قَيْحًا خَيْرٌ لَهُ مِنْ أَنْ يَمْتَلِئَ شِعْرًا ". قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه** دسعد بن ابي وقاص رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دچا خيټه دبيمارۍ په سبب دقي نه ډکيدل ددينه بهتر دي چې دا دشعرونو نه ډکه شي
امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي.

*****************

## ۷۲_باب مَا جَاءَ فِي الْفَصَاحَةِ وَالْبَيَانِ

### دفصاحت او بلاغت بيان

۲۸۵۳_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الأَعْلَى الصَّنْعَانِيُّ، حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ عَلِيٍّ الْمُقَدَّمِيُّ، حَدَّثَنَا نَافِعُ بْنُ عُمَرَ الْجُمَحِيُّ، عَنْ بِشْرِ بْنِ عَاصِمٍ سَمِعَهُ يُحَدِّثُ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " إِنَّ اللَّهَ يَبْغَضُ الْبَلِيغَ مِنَ الرِّجَالِ الَّذِي يَتَخَلَّلُ بِلِسَانِهِ كَمَا تَتَخَلَّلُ الْبَقَرَةُ "، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَفِي الْبَابِ عَنْ سَعْدٍ.[2]

**ترجمه** : عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي اوږدژبي خلق دالله تعالي نه دي خوښ هغه کسان چې خپله ژبه داسی اړوي راړوي لکه غواچې وابښه په ژبه تاو راتاوکړي (ژولی خبری کوي).
امام ترمذي وايي داحديث په دې سند حسن غريب دي او په دې باب کې د سعد رضي الله عنه

---

[1] _ صحيح مسلم/الشعر ۸ (۲۲۵۸) . سنن ابن ماجه/الأدب ۳۲ (۳۷۶۰) (تحفة الأشراف : ۳۹۱۹) . و مسند احمد (۱/۱۷۵، ۱۷۷، ۱۸۱).

[2] _ سنن ابي داود/الأدب ۹۳ (۵۰۰۵) (تحفة الأشراف : ۸۸۳۳) . وابن حبان (۲/۱۶۵، ۱۸۷)

نه هم حديث وارد دى

**لغات:** بليغ جمع يي بلغاء ده ، پيغام رسانئ كولو او مبالغي كولو ته ويلى شي.

**تشريح:** ددي حديث مطلب دادى چې الله تعالي دداسي كسانو نه دنفرت اظهار كوى څوك چې خپل بلاغت ښكاره كوي مطلب دادى چې دزيات فصاحت اوبلاغت مظاهره كول او په مبالغي سره خبري كول په شريعت كې محمود نه دي او دداسي كسانو سره الله تعالي محبت نه كوي، علماء وائي بهترين كلام هغه دى كوم چې په قدر دضرورت وي او بالكل ساده وي او دخبري كونكي دباطني كيفيت عكاسي كونكى وي داسي كلام ډير اثر لري او خلق يي خوښوي

****************

٢٨٥٤ـ حَدَّثَنَا إِسْحَاق بْنُ مُوسَى الأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ وَهْبٍ، عَنْ عَبْدِ الْجَبَّارِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: " نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَنَامَ الرَّجُلُ عَلَى سَطْحٍ لَيْسَ بِمَحْجُورٍ عَلَيْهِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ. لَا نَعْرِفُهُ مِنْ حَدِيثِ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ، عَنْ جَابِرٍ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَعَبْدُ الْجَبَّارِ بْنُ عُمَرَ الأَيْلِيُّ يُضَعَّفُ. (1)

**ترجمه** : دجابر رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم په داسي چت دپريوتو نه منع فرمائيلي ده په كوم چې څه پرده وغيره نه وي.

امام ترمذي وايي: داحديث غريب دي او مونږ يي صرف دمحمد بن منكدر په روايت پيژنو چې دجابر نه يي نقل كوي او عبدالجبار بن عمر په باب دحديث كي ضعيف گڼرلي شوي دي

****************

٢٨٥٥ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو أَحْمَدَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي وَائِلٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: " كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَخَوَّلُنَا بِالْمَوْعِظَةِ فِي الأَيَّامِ مَخَافَةَ السَّآمَةِ عَلَيْنَا ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.

حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الأَعْمَشِ، حَدَّثَنِي شَقِيقُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، نَحْوَهُ. (1)

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ٣٠٥٣)

[2] ـ اورده البخاري في الصحيح /العلم ١١ (٦٨) ، و ١٢ (٧٠) ، والدعوات ٦٩ (٦٤١١) . مسلم / المنافقين ١٩

**ترجمه** دعبدالله بن مسعود بيان دي فرمائي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم به مونږ ته دوعظ او نصيحت په سلسله كي دوختونو خيال ساتلو او دا ددي ويري په وجه چې چرته په مونږ باندي ستړيا راخوره نشي.
امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي.

***************

## ٧٣_باب مِنْهُ
### دسابقه باب متعلق يوبل باب

٢٨٥٦_حَدَّثَنَا أَبُو هِشَامٍ الرِّفَاعِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ فُضَيْلٍ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، قَالَ: سُئِلَتْ عَائِشَةُ، وَأُمُّ سَلَمَةَ أَيُّ العملِ كان أحب إلى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ قَالَتَا: "مَا دِيمَ عَلَيْهِ وَإِنْ قَلَّ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الوَجْهِ. [1]

**ترجمه** : دابوصالح بيان دي چې د ام المؤمنين عائشه او ام سلمه رضي الله عنهما نه تپوس اوكړي شو چې كوم يو عمل به رسول الله صلي الله عليه وسلم ډير خوښولو؟ هغوئ دواړو په جواب كي اووئيل چې كوم عمل به چا په دائمي طور كولو اگر كه ډير به لږ هم وو.
امام ترمذي وايي: داحديث په دي سند حسن غريب دي.

****************

وَقَدْ رُوِيَ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كَانَ أَحَبُّ الْعَمَلِ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا دِيمَ عَلَيْهِ". حَدَّثَنَا بِذَلِكَ هَارُونُ بْنُ إِسْحَاقَ الْهَمْدَانِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدَةُ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ بِمَعْنَاهُ. هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [2]

**ترجمه** : دعائشه رضي الله عنها نه مروي دي فرمائيل به يي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم ته په اعمالو كي ډير محبوب عمل هغه وو كوم چې به په دائمي طور اداء كولي شو، دعبده په سند هم دعائشه رضي الله عنها نه دماقبل هم معني روايت مروي دي.

---

(٢٨٢١) (تحفة الأشراف: ٩٢٥٢)، و مسند احمد (١/٣٤٤، ٤٢٥، ٤٤٠، ٤٤٣، ٤٦٢)

[1] _ (التحة: ١٦٠٤٢)، صحيح البخاري/التهجد ٧ (١١٣٢)، مسلم/المسافرين ١٧ (٧٤١)

[2] _ انظر ماقبله (تحفة الأشراف: ١٧٠٨٩)

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي

****************

## ٧٤_باب مِنْهُ

### دسابقه باب متعلق يو بل باب

٢٨٥٧_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ كَثِيرِ بْنِ شِنْظِيرٍ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ أَبِي رَبَاحٍ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " خَمِّرُوا الآنِيَةَ، وَأَوْكِئُوا الأَسْقِيَةَ، وَأَجِيفُوا الأَبْوَابَ، وَأَطْفِئُوا المَصَابِيحَ، فَإِنَّ الفُوَيْسِقَةَ رُبَّمَا جَرَّتِ الفَتِيلَةَ فَأَحْرَقَتْ أَهْلَ البَيْتِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ، عَنْ جَابِرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. [1]

**ترجمه**: دجابر رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دشپې وخت كي دلوښو سرونه بندول او پټول ضروري دي او دمشكونو خولي بندول پكار دي او دكوررونو دروازي بندي ساتئ او چراغونه وژنئ ځكه چي كله كله داسي كيږي چې منګك دچراغ باتئ راكاږي او دكور ټول خلق اوسوزوي

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي، داحديث په ډيرو سندونو دجابر رضي الله عنه په واسطه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه مروي دي.

****************

## ٧٥_باب مِنْهُ

### دسابقه باب متعلق يو بل باب

٢٨٥٨_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ العَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ سُهَيْلِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " إِذَا سَافَرْتُمْ فِي الخِصْبِ فَأَعْطُوا الإِبِلَ حَظَّهَا مِنَ الأَرْضِ، وَإِذَا سَافَرْتُمْ فِي السَّنَةِ، فَبَادِرُوا بِنِقْيِهَا، وَإِذَا عَرَّسْتُمْ فَاجْتَنِبُوا الطَّرِيقَ، فَإِنَّهَا طُرُقُ الدَّوَابِّ وَمَأْوَى الهَوَامِّ بِاللَّيْلِ ". قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَفِي البَابِ، عَنْ جَابِرٍ، وَأَنَسٍ. [2]

---

[1] ـ انظر حديث رقم ١٨١٢ (تحفة الأشراف: ٢٤٤٦)

[2] ـ مسلم/الإمارة ٥٣ (١٩٢٦)، ابي داود/ الجهاد ٦٣ (٢٥٦٩) (تحفة الأشراف: ١٢٤٠٦)، و مسند احمد (٢/٣٣٧)

**ترجمه** ابوهريره رضي الله عنه راوي دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل چې کله تاسو په شنه او تروتازه زمکه کې سفر کوئ نو اوښ ته دهغه هغه حصه کومه چې دی زمکه کې ده پوره کړئ (يعني هغه په ښې طريقې سره اوخروئ او ماړه يې کړئ) او که چرې زمکه بنجر اوشاړه وي نو په هغه علاقه په تيزئ سره دتيريدلو کوشش کوئ (چې ددی علاقې نه زر اوځئ او دګيا والا ځاي ته زر اورسئ) چې طاقت يې برقرار وي، او که چرې دقيام اوشپې تيرولو وخت راشي نو دلارې نه يو طرف ته کوز شئ ځکه چې هغه دځاروو او حشرات الارض دتيريدلو ځايونه هم دي (چې دشپې عموما په لارو تيريږي يا په لارو کې کيني)

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي او په دي باب کي دجابر او انس رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي.

**لغات**: الخصب : دشني ګياه کثرت ، فراخه زندګي جمع يي اخصاب راځي. الجدب. خشك سالي ، عيب، جدبا دنصر او ضرب نه ، جدب: دکرم نه جدوبة وتجدب المکان دباران نه کيدو په وجه خشك سالي راتلل ، جدب فلانا يعني عيب يي ولګولو، نقيها: نقي دهډوکي مغز ته وئيلي شي نقي ينقي نقيا ، العظم: هډوکي ، عرستم: عرس واعرس په سفر کې دمه کول، الهوام: شير هوام جمع دهامة ده دزمکي حشراتو ته وئيلي شي.

**تشريح**: اعطوا الابل حظها من الارض. يعني اوښ داسې اندازه سره بوځئ چې هغه په تلو تلو کې يوخوا بل خوا خوله اووهي او څرن هم کوي او دهغه زمکې نه وښونه خپله حصه اومومي ، نقيها دنون زير دق جزم سره نلى او مغز مطلب داچې دهغه دهډوکونلى او مغزضائع کيدو نه مخکې منزل مقصود ته اورسي اودسفر دسختئ نه هغه بچ کړئ "تعريس" دشپې پړاؤ ته وائي. په سابقه زمانه کې چې کله اوښان او اسونه اوخره دسفر دپاره استعماليدل دهغوئ دپاره په پورتني حديث کې هدايات ورکړی شوي دي چې يو طرف ته خو په لاره کې ددوئ دخوراك پوره خيال ساتل پکار دي که چري په لاره کې دګيا ملاويدو امکان نه وي نو بيا سورلئ تيزه چلول پکار دي چې سفر زر ختم شي دويم هدايت دا ورکړی شوی دی که چري دسفر په دوران کې شپه راشي او دشپې پاتې کيدو ته ضرورت پيښ شي نو دعامو لارو نه لرې کيدل پکار دي ددي دپاره چې راتلونکو ته تکليف نه وي ځکه چې دشپې ځناور او چينجي او حشرات دخپلو سوړو نه راوځي تردي چې تاسو ددي دنقصان نه بچ شئ.

****************

# كتاب الأمثال عن رسول الله صلى الله عليه وسلم

## دمثالونواو متلونو بيان

### ١_باب مَا جَاءَ فِي مَثَلِ اللَّهِ لِعِبَادِهِ

### دبندګانو متعلق دالله تعالي دورکړي مثال بيان

٢٨٥٩_حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ السَّعْدِيُّ، حَدَّثَنَا بَقِيَّةُ بْنُ الْوَلِيدِ، عَنْ بَحِيرِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ خَالِدِ بْنِ مَعْدَانَ، عَنْ جُبَيْرِ بْنِ نُفَيْرٍ، عَنِ النَّوَّاسِ بْنِ سَمْعَانَ الْكِلَابِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِنَّ اللَّهَ ضَرَبَ مَثَلًا صِرَاطًا مُسْتَقِيمًا عَلَى كَنَفَيِ الصِّرَاطِ دَارَانِ لَهُمَا أَبْوَابٌ مُفَتَّحَةٌ، عَلَى الْأَبْوَابِ سُتُورٌ، وَدَاعٍ يَدْعُو عَلَى رَأْسِ الصِّرَاطِ، وَدَاعٍ يَدْعُو فَوْقَهُ وَاللَّهُ يَدْعُو إِلَى دَارِ السَّلَامِ وَيَهْدِي مَنْ يَشَاءُ إِلَى صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ (يونس :٢٥، وَالْأَبْوَابُ الَّتِي عَلَى كَنَفَيِ الصِّرَاطِ حُدُودُ اللَّهِ، فَلَا يَقَعُ أَحَدٌ فِي حُدُودِ اللَّهِ حَتَّى يُكْشَفَ السِّتْرُ، وَالَّذِي يَدْعُو مِنْ فَوْقِهِ وَاعِظُ رَبِّهِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، قَالَ: سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ يَقُولُ، سَمِعْتُ زَكَرِيَّا بْنَ عَدِيٍّ، يَقُولُ، قَالَ أَبُو إِسْحَاق الْفَزَارِيُّ: خُذُوا عَنْ بَقِيَّةَ مَا حَدَّثَكُمْ عَنِ الثِّقَاتِ، وَلَا تَأْخُذُوا عَنْ إِسْمَاعِيل بْنِ عَيَّاشٍ مَا حَدَّثَكُمْ عَنِ الثِّقَاتِ وَلَا غَيْرِ الثِّقَاتِ. (١)

**ترجمه** دنواس بن سمعان کلابي بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي الله تعالي دصراط مستقيم مثال ورکړي دي چې دصراط مستقيم دواړو طرفونو ته دوه کورونه دي او دروازي پرانيستلي دي او پردي ورته پرتي دي يو اواز کونکي دلاري په سر ولاړ وي او چغه وهي او دويم اواز کونکي دبري نه اواز کوي (او بيا يي دا ايت کريمه اولوستلو) الله تعالی بلنه کوي دخلقو کوردسلامتياته چې جنت دي اولاره ښئي هغه چاته چې اراده وشي دده هغي لاري سمي ته چې اسلام دي نو هغه دروازي کومي چې دصراط مستقيم دواړو طرفونو ته واقع دي هغه حدود الله دي پس کوم کس ته چې پرده کولاو نکړي شي هغه په حدود الله کي واقع کيدي نشي او دبري نه اواز کونکي دالله تعالي دطرفه واعظ دي

امام ترمذي وايي داحديث حسن غريب دي، ماد عبدالله بن عبدالرحمن نه اوريدلي دي ونيل يې چې ما دزکريا بن عدي نه اوريدلي دي چې ابو اسحاق فضاري ونيل بقيه راوي کوم چې ستاسونه دزيات ثقه راويانو په ذريعه روايت کوي دا قبول کړه او داسماعيل بن عياش روايت

[1] ـ تفرد به المؤلف (أخرجه النسائي في الكبرى) (تحفة الأشراف : ١١٧١٤)

مه قبلوه برابره خبره ده چې دثقه نه روايت كوي او كه دغير ثقه نه

**تشريح**:...دار السلام يعني جنت ، دقتاده قول دي جنت دالله كور دي اوسلام دالله نوم دي يعني په ايت كې د السلام نه مراد سلامتي نه ده بلكه دالله تعالي خاص نوم مراد دي اودا صيغه دصفت نه ده كه ده او مصدر مراد نه دي، دسلام لفظ په ذكر كولو سره په دي مفهوم باندي تنبيه وزكري شوه ده

دجابر رضي الله عنه نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم ته پداسي حالت كې فرشتي راغلي چې اوده وو نوهغوئ پخپل مينځ كې اوونيل ستاسو ددي ملگري يوخاص حالت دي اوددة حالت په مثال سره بيان كړئ بعضي فرشتي اوونيل دي اوده دي، بلي اوونيل ستركي ئي اودي دي زړه يي بيدار دي، بيا فرشتو اوونيل دده حالت داسي دي لكه چاچې كوم كور جوړ كړي وي او ميلمنو دخوراك دپاره يي دسترخوان غوړولي وي او دخلقو درابللو دپاره يي څوك كس ليږلي وي چاچې دعوت قبول كړو نوهغوئ دي كور ته راغلل اوپه دسترخوان چې څه وو هغه يي اوخوړل اوچاچې دعوت قبول نكړو هغوئ دي كور ته رانغلل اونه يي د دسترخوان نه څه اوخوړل نوزو فرشتو اوونيل ددي مثال تشريح اوكړئ تردي چې دا كس پوهه شي نويوي فرشتي اوونيل دي اوده دي بلي اوونيل ستركي يي اودي دي زړه يي بيدار دي، فرشتو اوونيل ددي وضاحت دادي چې كور جنت دي اودخلقو رابلونكي محمد (صلي الله عليه وسلم) دي چاچې دده وينا اومنله هغه دالله اطاعت اوكړو اوچاچې اونه منله هغه دالله نافرماني اوكړه اوپه خلقو كې مختلفي فرقي دي (رواه البخاري)

دبعضي علماؤ په نزد په ايت كې د سلام نه مراد همدا عرفي سلام دي جنتيان به په جنت كې پخپل مينځ كې سلام عليك وائي اوپه همدي وجه جنت ته دارالسلام ونيلي شوي دي اوفرشتي به هم په جنت كې سلام كوي "وَالْمَلَائِكَةُ يَدْخُلُونَ عَلَيْهِمْ مِنْ كُلِّ بَابٍ. سَلَامٌ عَلَيْكُمْ بِمَا صَبَرْتُمْ فَنِعْمَ عُقْبَى الدَّارِ".

د صراط مستقيم نه مراد دين داسلام اوسنت طريقه اوالله تعالي ته رسيدونكي عمومي دعوت او هدايت موندل دي اوداپه مشيت الهي باندي موقوف دي ، ددينه معلوميږي چې په امر او اراده كې فرق دي (دامر تعلق دتمامو خلقو سره وي اودهدايت موندلو داراد تعلق صرف دمومن سره وي) اوالله تعالي ازلي كافر ته هدايت كول نه غواړي ، (اگرچې دهدايت قبلولو حكم يي كافرته هم كړي دي) دامر الهي نه تخلف خو ممكن بلكه واقع دي ، اكثر انسانان دالله دحكم نه خلاف روان دي مگر دالله تعالي د ارادي خلاف ورزي څوك نشي كولي كفر هم دايمان پشان دالله تعالي په ارادي سره وي مگر دامر خلاف وي اوداشاعره هم دا قول دي ، معتزليان په امر او اراده كې فرق نه كوي اودهغوئ په نزد كفر اوهر قسم گناه دالله تعالي

په ارادي سره نه وي (مظهري)

## د نواس بن سمعان رضي الله عنه حالات

نوم نواس دپلار نوم سمعان بن خالد بن عمرو بن قرط دبنو کلاب سره دده تعلق وو او دشام اوسيدونکی وو په شاميانو کې شميرلی شي دده پلار دوفد په شکل کې دنبي کريم صلي الله عليه وسلم په خدمت کې حاضر شو او رسول الله ته يې يو جوړه پيزار هم په تحفه کې ورکړل او رسول الله ورنه قبول هم کړل او دعا يې ورته هم اوکړه

دده دمروياتو شمير ۱۷ دی چې دري په مسلم کې دي او باقي اصحاب سنن نقل کړي دي

*****************

۲۸۶۰ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ خَالِدِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي هِلَالٍ، أَنَّ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ الأَنْصَارِيَّ، قَالَ: خَرَجَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمًا فَقَالَ: " إِنِّي رَأَيْتُ فِي الْمَنَامِ كَأَنَّ جِبْرِيلَ عِنْدَ رَأْسِي وَمِيكَائِيلَ عِنْدَ رِجْلَيَّ، يَقُولُ أَحَدُهُمَا لِصَاحِبِهِ: اضْرِبْ لَهُ مَثَلًا. فَقَالَ: اسْمَعْ سَمِعَتْ أُذُنُكَ، وَاعْقِلْ عَقَلَ قَلْبُكَ، إِنَّمَا مَثَلُكَ وَمَثَلُ أُمَّتِكَ كَمَثَلِ مَلِكٍ اتَّخَذَ دَارًا، ثُمَّ بَنَى فِيهَا بَيْتًا، ثُمَّ جَعَلَ فِيهَا مَائِدَةً، ثُمَّ بَعَثَ رَسُولًا يَدْعُو النَّاسَ إِلَى طَعَامِهِ، فَمِنْهُمْ مَنْ أَجَابَ الرَّسُولَ، وَمِنْهُمْ مَنْ تَرَكَهُ، فَاللَّهُ هُوَ الْمَلِكُ، وَالدَّارُ الإِسْلَامُ، وَالْبَيْتُ الْجَنَّةُ، وَأَنْتَ يَا مُحَمَّدُ رَسُولٌ، فَمَنْ أَجَابَكَ دَخَلَ الإِسْلَامَ، وَمَنْ دَخَلَ الإِسْلَامَ دَخَلَ الْجَنَّةَ، وَمَنْ دَخَلَ الْجَنَّةَ أَكَلَ مَا فِيهَا ". وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِإِسْنَادٍ أَصَحَّ مِنْ هَذَا. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ مُرْسَلٌ سَعِيدُ بْنُ أَبِي هِلَالٍ لَمْ يُدْرِكْ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ، وَفِي الْبَابِ، عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ. ([1])

**ترجمه** دجابر بن عبدالله انصاري بيان دي يوه ورځ رسول الله سلي الله عليه وسلم مونږ ته تشريف راوړو او ويې فرمائيل ما په خوب کې اوکتل چې جبرائيل عليه السلام ماسره دي او ميکائيل زما دخپو سره دي په دوئ دواړو کې يو بل ته وئيل دده کوم مثال پيش کړه نو هغه رسول الله مخاطب کړو او ويې وئيل تاسو واورئ ستاسو غوږونه هميشه اوريدل کوي او تاسو پوهه شئ ستاسو زړه دحکمت نه ډکيږي ستاسو او ستاسو دامت مثال ديو داسي بادشاه پشان دي چاچې يو ښار اباد کړي وي او بيا يې په دي کې يو کور جوړ کړي وي او بيا يې دسترخوان غوړولي وي او بيا قاصد اوليږي او خلق دخوراك دپاره راوبلي او بيا څه کسان راشي او هغوئ

[1] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /الاعتصام ۲ رقم ۷۲۸۱) (تحفة الأشراف : ۲۲٦٤)

دعوت قبول كړي او بعضي كسان دبلونكي دعوت مسترد كړي ددي مثال وضاحت دادي چې الله تعالي بادشاه دي او د دار نه مراد اسلام دي او دبيت نه مراد جنت دي او ته اي محمد رسول او قاصد يي چاچې ستا دعوت قبول كړو هغه په اسلام كي داخل شو او څوك چې په اسلام كي داخل شو هغه جنت ته داخل شو او څوك چې جنت ته داخل شو نو هغه دا هر څه اوخوړل كوم چې په جنت كي دي

امام ترمذي وايي. دا حديث ددي سند نه علاوه په نورو سندونو هم دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه مروي دي او هغه سندونه ددي سند نه زيات صحيح دي دا مرسل دي، سعيد بن ابي هلال دجابر بن عبدالله زمانه نه ده موندلي او ملاقات يي ورسره ثابت نه دي په دي باب كي دابن عمر رضي الله عنهما نه هم روايت وارد دي.

****************

٢٨٦١_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ أَبِي عَدِيٍّ، عَنْ جَعْفَرِ بْنِ مَيْمُونٍ، عَنْ أَبِي تَمِيمَةَ الْهُجَيْمِيِّ، عَنْ أَبِي عُثْمَانَ، عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: " صَلَّى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعِشَاءَ ثُمَّ انْصَرَفَ فَأَخَذَ بِيَدِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ حَتَّى خَرَجَ بِهِ إِلَى بَطْحَاءِ مَكَّةَ، فَأَجْلَسَهُ ثُمَّ خَطَّ عَلَيْهِ خَطًّا، ثُمَّ قَالَ: لَا تَبْرَحَنَّ خَطَّكَ فَإِنَّهُ سَيَنْتَهِي إِلَيْكَ رِجَالٌ فَلَا تُكَلِّمْهُمْ فَإِنَّهُمْ لَا يُكَلِّمُونَكَ، قَالَ: ثُمَّ مَضَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَيْثُ أَرَادَ فَبَيْنَا أَنَا جَالِسٌ فِي خَطِّي إِذْ أَتَانِي رِجَالٌ كَأَنَّهُمُ الزُّطُّ أَشْعَارُهُمْ وَأَجْسَامُهُمْ، لَا أَرَى عَوْرَةً، وَلَا أَرَى قِشْرًا، وَيَنْتَهُونَ إِلَيَّ وَلَا يُجَاوِزُونَ الْخَطَّ، ثُمَّ يَصْدُرُونَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، حَتَّى إِذَا كَانَ مِنْ آخِرِ اللَّيْلِ لَكِنْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ جَاءَنِي وَأَنَا جَالِسٌ، فَقَالَ: لَقَدْ أَرَانِي مُنْذُ اللَّيْلَةَ، ثُمَّ دَخَلَ عَلَيَّ فِي خَطِّي، فَتَوَسَّدَ فَخِذِي، فَرَقَدَ، وَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا رَقَدَ نَفَخَ، فَبَيْنَا أَنَا قَاعِدٌ وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُتَوَسِّدٌ فَخِذِي، إِذَا أَنَا بِرِجَالٍ عَلَيْهِمْ ثِيَابٌ بِيضٌ اللَّهُ أَعْلَمُ مَا بِهِمْ مِنَ الْجَمَالِ، فَانْتَهَوْا إِلَيَّ، فَجَلَسَ طَائِفَةٌ مِنْهُمْ عِنْدَ رَأْسِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَطَائِفَةٌ مِنْهُمْ عِنْدَ رِجْلَيْهِ، ثُمَّ قَالُوا بَيْنَهُمْ: مَا رَأَيْنَا عَبْدًا قَطُّ أُوتِيَ مِثْلَ مَا أُوتِيَ هَذَا النَّبِيُّ، إِنَّ عَيْنَيْهِ تَنَامَانِ وَقَلْبُهُ يَقْظَانُ اضْرِبُوا لَهُ مَثَلًا، مَثَلُ سَيِّدٍ بَنَى قَصْرًا، ثُمَّ جَعَلَ مَأْدُبَةً، فَدَعَا النَّاسَ إِلَى طَعَامِهِ وَشَرَابِهِ، فَمَنْ أَجَابَهُ أَكَلَ مِنْ طَعَامِهِ وَشَرِبَ مِنْ شَرَابِهِ، وَمَنْ لَمْ يُجِبْهُ عَاقَبَهُ، أَوْ قَالَ عَذَّبَهُ، ثُمَّ ارْتَفَعُوا، وَاسْتَيْقَظَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِنْدَ ذَلِكَ فَقَالَ: سَمِعْتَ مَا قَالَ هَؤُلَاءِ ؟ وَهَلْ تَدْرِي مَنْ هَؤُلَاءِ ؟ قُلْتُ: اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ، قَالَ: هُمُ الْمَلَائِكَةُ، أَفَتَدْرِي مَا الْمَثَلُ الَّذِي ضَرَبُوا ؟ قُلْتُ: اللَّهُ

وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ. قَالَ: الْمَثَلُ الَّذِي ضَرَبُوا الرَّحْمَنُ تَبَارَكَ وَتَعَالَى بَنَى الْجَنَّةَ وَدَعَا إِلَيْهَا عِبَادَهُ. فَمَنْ أَجَابَهُ دَخَلَ الْجَنَّةَ، وَمَنْ لَمْ يُجِبْهُ عَاقَبَهُ أَوْ عَذَّبَهُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَأَبُو تَمِيمَةَ هُوَ الْهُجَيْمِيُّ، وَاسْمُهُ طَرِيفُ بْنُ مُجَالِدٍ، وَأَبُو عُثْمَانَ النَّهْدِيُّ اسْمُهُ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مُلٍّ، وَسُلَيْمَانُ التَّيْمِيُّ قَدْ رَوَى هَذَا الْحَدِيثَ عَنْهُ مُعْتَمِرٌ وَهُوَ سُلَيْمَانُ بْنُ طَرْخَانَ وَلَمْ يَكُنْ تَيْمِيًّا وَإِنَّمَا كَانَ يَنْزِلُ بَنِي تَيْمٍ فَنُسِبَ إِلَيْهِمْ. قَالَ عَلِيٌّ. قَالَ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ: مَا رَأَيْتُ أَخْوَفَ لِلَّهِ تَعَالَى مِنْ سُلَيْمَانَ التَّيْمِيِّ. ([1])

**ترجمه**: عبدالله بن مسعود رضي الله عنه وائي رسول الله صلي الله عليه وسلم دماخوستن مونځ اوکړو او بیا واپس شو او دابن مسعود لاس یي پخپل لاس کي اونیولو او دخان سره یي روان کړو او دمکي کاږجني زمکي طرف ته لاړو هلته یي په یو ځاي کي ابن مسعود کینولو او بیا یي دهغه نه څلور واړو طرفونو ته کرخي راښکلي او هغه ته یي اوونیل ددي کرخو نه هرګز بهر مه اوځه، ستا خواته به ډیر مخلوق راځي لیکن ته به ورسره خبري نه کوي او هغوئ پخپله هم تاسره خبري نه کوي، دابن مسعود بیان دي بیاچي رسول الله چرته تلل غوښتل هلته لاړو په داسي حال کي چي زه پخپله دائره کي دننه ناست وم څه کسان ماته راغلل چي هغوئ درنو جسمونو والا وو ددوئ ویخته او جسمونه نه ماته بربنډ ښکاریدل او نه مي ددوئ په جسمونو لباس لیدلو هغوئ چي به ماته رانژدي کیدل نواودریدل او دکرخي نه به نه راتیریدل بیا هغوئ دنبي کریم صلي الله عليه وسلم طرف ته ورغلل تردي پوري چي کله دشپي اخري حصه تیره شوه نورسول الله صلي الله عليه وسلم واپس راغلو چرته چي زه ناست وم او ویي فرمائیل زه توله شپه ویښ وم او بیا دي کرخي ته زما خواته رانژدي شو چي زما زنګون ته یي ډډه اووهله او اوده شو رسول الله صلي الله عليه وسلم چي به اوده وو نو په خوب کي به یي دسیني نه دخراري اواز راوتلو او همدغه دوران کي چي زه ناست وم او رسول الله صلي الله عليه وسلم زما په زنګون سر ایخودلي وو او اوده وو دي دوران کي څه کسان راغلل چي سپیني جامي یي اغوستلي وي ددوئ دحسن او جمال باره کي الله تعالي ښه خبردار دي چي دوئ ماته راغلل او بیا یوه ډله درسول الله صلي الله عليه وسلم سر طرف ته کیناستله او بله ډله یي خپو طرف ته کیناستله او بیا یي داسي اوونیل مونږ داسي کوم بنده نه دي لیدلي چي څه ورته ورکړي شوي وي کوم چي دي نبي ته ورکړي شوي دي دده دواړه سترګي اودي وي لیکن زړه یي بیدار وي تاسو دده باره کي مثال بیان کړئ دده مثال دیو داسي سردار پشان دي څوک چي یو محل

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٩٣٨١)، وانظر: سنن الدارمي/المقدمة ٢ (١٣)

جوړوي او بيا په دي کې دسترخوان خوروي او خلق دخوراك څښاك دپاره راغواړي پس څوك چې دده دعوت قبلړي هغه به خوراك کوي او مشروبات به څکي او څوك چې دده دعوت نه قبلوي نو سردار په هغې باندي خفه کيږي (دراوي شك دي) چې شايد داسي الفاظ يې اوفرمائيل، بيا هغه ته سزا ورکوي بيا دوئ پاڅيدل او رسول الله صلي الله عليه وسلم بيدار شو او ويې فرمائيل تا څه واوريدل؟ کوم چې دي خلقو ونيل ايا تاته معلومه ده دا څوك وو؟ ما عرض اوکړو الله او دهغه رسول بهتر پوهيږي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل دا فرشتي وي او ايا تاته معلومه ده چې هغوئ کوم مثال ورکړي دي دهغې نه څه مراد دي ما عرض اوکړو الله او دهغه رسول بهتر پوهيږي رسول الله اوفرمائيل ددوئ دمثال مفهوم دادي رحمان ذات جنت جوړ کړي دي او خپل بندګانو ته د داخليدو دعوت ورکوي نو څوك چې دعوت قبلوي هغه به جنت ته داخليږي او څوك چې دعوت نه قبلوي رحمان ذات به هغه ته سزا ورکوي

امام ترمذي وايي: داحديث په دي سند حسن صحيح غريب دي ابو تميمه هجيمي دي او دده نوم طريف بن مجالد دي او دابوعثمان مهدي نوم عبدالرحمن بن مل دي او دسليمان تيمي دچانه چې معتمر داحديث نقل کړي دي سليمان بن طرخان دي او دا اصلا تيمي نه وو ليکن بني تيم ته به يې تګ راتګ کولو چې په تيمي مشهور شو علي بن مديني وائي ديحي بن سعيد قول دي مادسليمان تيمي نه بل څوك زيات دالله نه ويريدونکي نه دي ليدلي.

**تشريح** علي بن محمد داسماعيل بن ابراهيم په سند د داود عامر قول نقل کړي دي چې دعلقمه نه مي تپوس اوکړو چې ايا په ليلة الجن کې ابن مسعود رضي الله عنه درسول الله صلي الله عليه وسلم سره موجود وو علقمه راته اوونيل ما هم دابن مسعود نه پدي باره کې تپوس کړي وو چې ايا په تاسو کې څوك دليلة الجن په شپه درسول الله سره موجود وو؟ ابن مسعود اوفرمائيل مونږ بالکل درسول الله سره ملګري وو يوه شپه رسول الله صلي الله عليه وسلم غائب شو او مونږ په خوړونو او غونډو کې دهغه تلاش اوکړو ليکن پيدا مو نکړو مونږ اوونيل ايا څوك رالوتلي دي او دي يې وړي دي او که ناڅاپه شهيد شوي دي غرض دا چې دغه شپه زمونږ دټولو دپاره بدترينه شپه وه اخر دا چې کله رسول الله راغي نو ويې فرمائيل دجناتو دطرفه ماته يو بلونکي راغلي وو او زه دهغه سره تلي وم او دتلو نه پس مي ورته قران بيان کړو بيا رسول الله مونږ دځان سره بوتلو او دجناتو علامات او دهغوئ داور نښاني يې راته اوخودلي.

دشعبي قول دي چې دغه جنات دجزيري والاوو او هغوئ دخوراکي څيزونو متعلق درسول الله نه سوال کړي وو رسول الله ورته فرمائيلي وو په کوم هډوکي چې بسم الله ونيلي شوي وي او ستاسو لاس ته درشي او يا ورپوري غوښه وي يا دڅاروو دګيا خوړلو نه پس چې هغوئ پڅي

کړي وي ليکن لمدي نه وي دا به ستاسو خوراك وي، په همدي وجه رسول الله فرمانيلي وو چې پدي دوه څيزونو به تاسو استنجاء نه کوئ ځکه چې دا ستاسو درونړو دجناتو خوراك دي
په يو روايت کي راغلي دي چې ابن مسعود رضي الله عنه دجنې قوم څه کسان اوليدل و ويې فرمائيل دا کسان دليلة الجن والاجناتو سره زيات مشابه دي زه وايم کله چې رسول الله دعکاظ بازار په اراده روان وو او دطائف نه واپس شوي وو نو پدغه خل په اوله پيره جناتو قران اوريدلي وو او په ايت کريمه "قل اوحي اليه انه استمع نفر" کې الله تعالي همدا واقعه بيان کړي ده پاتي شوه دليلة الجن واقعه کومه چې ابن مسعود رضي الله عنه بيان کړي ده هغه ددينه پس پيښه شوي وه .
بغوي د سورة احقاف په تفسير کې ددي قول نسبت ابن عباس رضي الله عنهما ته کړي دي چې د "فاستجاب لهم" نه مراد دادي کله چې په نخله مقام کې جناتو قران واوريدو او خپل قوم ته واپس شو او هغوئ ته يې تبليغ اوکړو نو داويا کسانو ديوي ډلي دجناتو تبليغي دعوت ته لبيك اوونيل او درسول الله صلي الله عليه وسلم په خدمت کې حاضر شول او په بطحاء مقام کي درسول الله سره ملاؤ شول او رسول الله ورته بيا قران بيان کړو او امر او نهي يې اوفرمائيله
.
خفاجي ذکر کړي دي چې دجناتو راتلل شپږ پيري شوي وو، ددينه معلوميږي چې درسول الله صلي الله عليه وسلم بعثت دجن او انس ټولو دپاره وو ، دمقاتل قول دي چې درسول الله نه مخکي دهيڅ يو نبي بعثت دجن او انس دواړو دپاره ندي شوي.(مظهري)

*****************

## ٢ـ بَاب مَا جَاءَ فِي مَثَلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالأَنْبِيَاءِ قَبْلَهُ

### درسول الله صلي الله عليه وسلم او دسابقه انبياؤ مثال

**٢٨٦٢ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سِنَانٍ، حَدَّثَنَا سَلِيمُ بْنُ حَيَّانَ بَصْرِيٌّ، حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مِينَاءَ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِنَّمَا مَثَلِي وَمَثَلُ الأَنْبِيَاءِ قَبْلِي، كَرَجُلٍ بَنَى دَارًا فَأَكْمَلَهَا وَأَحْسَنَهَا إِلاَّ مَوْضِعَ لَبِنَةٍ، فَجَعَلَ النَّاسُ يَدْخُلُونَهَا وَيَتَعَجَّبُونَ مِنْهَا وَيَقُولُونَ: لَوْلاَ مَوْضِعُ اللَّبِنَةِ ". وَفِي الْبَابِ، عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ.** [1]

---

[1] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /المناقب ١٨ (٣٥٣٤) . صحيح مسلم /الفضائل ٧ (٢٢٨٧) (تحفة الأشراف : ٢٣٦٠). وحم (٣/٢٥٤، ٣٩٨، ٣١٢)

**ترجمه** دجابر بن عبدالله رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي زما مثال او زما نه دمخکنو انبياؤ مثال دهغه چا پشان دي چاچې کور جوړ کړو او مکمل يې کړو او ښائسته يې کړو مګر علاوه ديوې خښتې دځاي نه خلقو دي کور ته راتلل شروع کړل او ددې په ليدو يې تعجب شروع کړو او وئيل يې چې کاش ددې يوې خښتې ځاي خالي پاتې شوي نه وي.

امام ترمذي وايي داحديث په دې سند حسن صحيح غريب دې او په دې باب کې دابيّ بن کعب او ابوهريره رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي.

***************

## ٣_باب مَا جَاءَ فِي مَثَلِ الصَّلاَةِ وَالصِّيَامِ وَالصَّدَقَةِ

### د مونځ ګذاراو روژه نيونکي او صدقه ورکونکي مومن مثال

٢٨٦٣_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا أَبَانُ بْنُ يَزِيدَ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ سَلَّامٍ، أَنَّ أَبَا سَلَّامٍ حَدَّثَهُ، أَنَّ الحَارِثَ الأَشْعَرِيَّ حَدَّثَهُ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " إِنَّ اللَّهَ أَمَرَ يَحْيَى بْنَ زَكَرِيَّا بِخَمْسِ كَلِمَاتٍ أَنْ يَعْمَلَ بِهَا، وَيَأْمُرَ بَنِي إِسْرَائِيلَ أَنْ يَعْمَلُوا بِهَا، وَإِنَّهُ كَادَ أَنْ يُبْطِئَ بِهَا، فَقَالَ عِيسَى: إِنَّ اللَّهَ أَمَرَكَ بِخَمْسِ كَلِمَاتٍ لِتَعْمَلَ بِهَا وَتَأْمُرَ بَنِي إِسْرَائِيلَ أَنْ يَعْمَلُوا بِهَا، فَإِمَّا أَنْ تَأْمُرَهُمْ وَإِمَّا أَنْ آمُرَهُمْ، فَقَالَ يَحْيَى: أَخْشَى إِنْ سَبَقْتَنِي بِهَا أَنْ يُخْسَفَ بِي أَوْ أُعَذَّبَ، فَجَمَعَ النَّاسَ فِي بَيْتِ المَقْدِسِ فَامْتَلَأَ المَسْجِدُ وَقَعَدُوا عَلَى الشُّرَفِ، فَقَالَ: إِنَّ اللَّهَ أَمَرَنِي بِخَمْسِ كَلِمَاتٍ أَنْ أَعْمَلَ بِهِنَّ وَآمُرَكُمْ أَنْ تَعْمَلُوا بِهِنَّ، أَوَّلُهُنَّ: أَنْ تَعْبُدُوا اللَّهَ وَلَا تُشْرِكُوا بِهِ شَيْئًا، وَإِنَّ مَثَلَ مَنْ أَشْرَكَ بِاللَّهِ كَمَثَلِ رَجُلٍ اشْتَرَى عَبْدًا مِنْ خَالِصِ مَالِهِ بِذَهَبٍ أَوْ وَرِقٍ، فَقَالَ: هَذِهِ دَارِي، وَهَذَا عَمَلِي فَاعْمَلْ وَأَدِّ إِلَيَّ، فَكَانَ يَعْمَلُ وَيُؤَدِّي إِلَى غَيْرِ سَيِّدِهِ، فَأَيُّكُمْ يَرْضَى أَنْ يَكُونَ عَبْدُهُ كَذَلِكَ، وَإِنَّ اللَّهَ أَمَرَكُمْ بِالصَّلَاةِ فَإِذَا صَلَّيْتُمْ فَلَا تَلْتَفِتُوا، فَإِنَّ اللَّهَ يَنْصِبُ وَجْهَهُ لِوَجْهِ عَبْدِهِ فِي صَلَاتِهِ مَا لَمْ يَلْتَفِتْ، وَآمُرُكُمْ بِالصِّيَامِ، فَإِنَّ مَثَلَ ذَلِكَ كَمَثَلِ رَجُلٍ فِي عِصَابَةٍ، مَعَهُ صُرَّةٌ فِيهَا مِسْكٌ، فَكُلُّهُمْ يَعْجَبُ، أَوْ يُعْجِبُهُ رِيحُهَا، وَإِنَّ رِيحَ الصَّائِمِ أَطْيَبُ عِنْدَ اللَّهِ مِنْ رِيحِ المِسْكِ، وَآمُرُكُمْ بِالصَّدَقَةِ فَإِنَّ مَثَلَ ذَلِكَ كَمَثَلِ رَجُلٍ أَسَرَهُ العَدُوُّ، فَأَوْثَقُوا يَدَهُ إِلَى عُنُقِهِ وَقَدَّمُوهُ لِيَضْرِبُوا عُنُقَهُ، فَقَالَ: أَنَا أَفْدِيهِ مِنْكُمْ بِالقَلِيلِ وَالكَثِيرِ فَفَدَى نَفْسَهُ مِنْهُمْ، وَآمُرُكُمْ أَنْ تَذْكُرُوا اللَّهَ، فَإِنَّ مَثَلَ ذَلِكَ كَمَثَلِ رَجُلٍ خَرَجَ العَدُوُّ فِي أَثَرِهِ سِرَاعًا حَتَّى إِذَا أَتَى عَلَى

حِصْنٍ حَصِينٍ فَأَحْرَزَ نَفْسَهُ مِنْهُمْ. كَذَلِكَ العَبْدُ لَا يُحْرِزُ نَفْسَهُ مِنَ الشَّيْطَانِ إِلَّا بِذِكْرِ اللَّهِ. قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: وَأَنَا آمُرُكُمْ بِخَمْسٍ اللَّهُ أَمَرَنِي بِهِنَّ: السَّمْعُ، وَالطَّاعَةُ، وَالجِهَادُ، وَالهِجْرَةُ، وَالجَمَاعَةُ، فَإِنَّهُ مَنْ فَارَقَ الجَمَاعَةَ قِيدَ شِبْرٍ فَقَدْ خَلَعَ رِبْقَةَ الإِسْلَامِ مِنْ عُنُقِهِ إِلَّا أَنْ يَرْجِعَ، وَمَنِ ادَّعَى دَعْوَى الجَاهِلِيَّةِ فَإِنَّهُ مِنْ جُثَا جَهَنَّمَ. فَقَالَ رَجُلٌ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، وَإِنْ صَلَّى وَصَامَ؟ قَالَ: وَإِنْ صَلَّى وَصَامَ، فَادْعُوا بِدَعْوَى اللَّهِ الَّذِي سَمَّاكُمُ المُسْلِمِينَ المُؤْمِنِينَ عِبَادَ اللَّهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ، قَالَ: مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ الحَارِثُ الأَشْعَرِيُّ لَهُ صُحْبَةٌ وَلَهُ غَيْرُ هَذَا الحَدِيثِ. (1)

**ترجمه** : دحارث اشعري رضي الله عنه نه مروي دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي الله تعالي يحي بن زكريا عليه السلام ته دپنځو خبرو حكم اوكړو چې دي به پخپله په دي باندي عمل كوي او بني اسرائيلو ته به هم په دي باندي دعمل كولو حكم كوي ډيره نزدي وه چې هغه ددي حكم په تعميل كي سستي او تاخير كړي وي عيسي عليه السلام اووئيل الله تعالي تاته دپنځو خبرو حكم كړي دي چې ته به ورباندي پخپله هم عمل كوي او بني اسرائيلو ته به هم په دي حكم كوي چې عمل به ورباندي كوي نو ياخو به ته دوئ ته حكم كوي او يا به يي ورته زه كوم، يحي عليه السلام اووئيل زه ويريږم كه چري تا په دي امورو زما نه مخكي والي اوكړو نو زه په زمكه كي ځړته خښ نشم او يا په عذاب كي مبتلا نشم او بيا هغوئ خلق په بيت المقدس كي راجمع كړل مسجد دخلقو نه ډك شو خلق په كانړو هم كيناستل او بيا يي قوم ته اووئيل الله تعالي مونږ ته دپنځو خبرو حكم كړي دي چې زه به ورباندي پخپله هم عمل كوم او تاسو ته به هم په دي باندي دعمل كولو حكم كوم، اولني څيز دا دي تاسو به دالله تعالي عبادت كوئ او بل هيڅ څيز به ورسره نه شريكوئ او دهغه چا مثال چاچې دالله تعالي سره شرك اوكړو دهغه چا پشان دي چاچې دخان دپاره يو غلام په خالص سرو او سپينو زرو اخستلي وي او ورته اووائي دا زما كور دي او دا زما روزګار دي ته به كار كوي او منافع به ماته راكوي نو هغه كار كوي او نفع دمالك نه علاوه بل چاته وركوي نو څوك به داسي غلام خوښ كړي، دويم الله تعالي تاسو ته دمونځ كولو حكم كړي دي كله چې تاسو مونځ كوئ نو په مونځ كي اخواديخوا مه ګورئ ځكه چې الله تعالي دمونځ كولو په وخت كي خپل مخ بنده ته مخامخ كړي وي ترڅو چې هغه اخوا ديخوا كتلي نه وي، دريم او تاسو ته يي دروژي نيولو حكم كړي دي ددي مثال دهغه انسان پشان دي څوك چې ديو جماعت سره وي او دده سره يوه

---

1- تفرد به المؤلف (أخرجه النسائي في الكبرى) (التحفة: ٣٢٤٢)، ومسند احمد (٤/٢٠٢)

بوجۍ وي په کومه کي چې مشك وي او هر يو ددينه خوشبو حاصلوي او دروژه دار دخولي بوي دمشکو دخوشبو نه زيات دي څلورم او تاسو ته يي دصدقي او زکوٰة ورکولو حکم کړي دي ددي مثال دهغه چا پشان دي څوك چې دشمن قيد کړي وي او دده لاسونه يي دده په څټ پوري تړلي وي او دي دخان سره روان کړي تردي چې دده څټ اووهي او دا قيدي ورته اووائي ماسره چې څومره مال دي زه يي په فديه کي درکوم او دهغي په بدل کي ما پريږده نو دي هغه مال په فديه کي ورکړي او خان ازاد کړي، پنځم او الله تعالي تاسو ته دذکر کولو حکم کړي دي ددي مثال دهغه چا پشان دي په چا پسي چې دشمن په تيزئ ورپسي وي او يوي مضبوطي قلعه ته ورسيږي او خپل خان د دشمنانو نه بچ کړي دارنګي انسان هم خپل خان دشيطان دشر نه دالله تعالي دذکر نه بغير بچ کولي نشي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل زه هم تاسو ته دپنځه څيزونو حکم کوم دکومو چې ماته الله تعالي حکم کړي دي اولني کار خبره اوريدل دي. دويم داوريدو نه پس منل دي، دريم جهاد کول دي، څلورم هجرت کول دي، پنځم دجماعت سره اوسيدل دي او داځکه څوك چې دجماعت نه يو لويشت هم جدا شو نو هغه داسلام حلقه دخپلي غړئ نه اوويستله مګر دا چې اسلام ته واپس راداخل شي او چاچې دجاهليت اواز پورته کړو نو دي به دجهنم په خشاکو کي يو خشاك اوګرځي ددي خبري اوريدو وخت کي يو کس تپوس اوکړو اي دالله رسوله اګر که هغه مونځ کوي او روژه هم نيسي رسول الله اوفرمائيل هو اګر که مونځ کوي او اګر که روژي نيسي تاسو خو دالله بندګان يئ دهغه الله رابللو ته دعوت ورکړئ چاچې په تاسو باندي مسلمان او مومن نوم ايخودلي دي.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح غريب دي، امام بخاري وائي حارث اشعر صحابي دي او ددي حديث نه علاوه نور احاديث ورنه هم مروي دي. په مذکوره سند هم دحارث اشعري په واسطه دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه ددي هم معني روايت مروي دي

***************

٢٨٦٤ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ الطَّيَالِسِيُّ، حَدَّثَنَا أَبَانُ بْنُ يَزِيدَ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ سَلَّامٍ، عَنْ أَبِي سَلَّامٍ، عَنِ الحَارِثِ الأَشْعَرِيِّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ بِمَعْنَاهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ، وَأَبُو سَلَّامٍ الحَبَشِيُّ اسْمُهُ مَمْطُورٌ، وَقَدْ رَوَاهُ عَلِيُّ بْنُ المُبَارَكِ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ. ([1])

**ترجمه**: په مذکوره سند هم دحارث اشعري په واسطه دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه ددي

[1] ـ تفرد به المؤلف (أخرجه النسائي في الكبرى) (التحفة: ٣٢٧٤)، ومسند احمد (٣/٢٠٢)

هم معنى روايت مروي دي
امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح غريب دي او دابوسلام حبشي نوم ممطور دي او دا حديث علي بن مبارك هم ديحي بن ابي كثير نه نقل كړي دي

****************

## ٤ـ باب مَا جَاءَ فِي مَثَلِ الْمُؤْمِنِ الْقَارِئِ لِلْقُرْآنِ وَغَيْرِ الْقَارِئِ

**دقران لوستونكي او نه لوستونكي مومن مثال**

**٢٨٦٥ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ، عَنْ أَبِي مُوسَى الأَشْعَرِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَثَلُ الْمُؤْمِنِ الَّذِي يَقْرَأُ الْقُرْآنَ كَمَثَلِ الأُتْرُجَّةِ رِيحُهَا طَيِّبٌ وَطَعْمُهَا طَيِّبٌ. وَمَثَلُ الْمُؤْمِنِ الَّذِي لَا يَقْرَأُ الْقُرْآنَ كَمَثَلِ التَّمْرَةِ لَا رِيحَ لَهَا وَطَعْمُهَا حُلْوٌ. وَمَثَلُ الْمُنَافِقِ الَّذِي يَقْرَأُ الْقُرْآنَ كَمَثَلِ الرَّيْحَانَةِ رِيحُهَا طَيِّبٌ وَطَعْمُهَا مُرٌّ. وَمَثَلُ الْمُنَافِقِ الَّذِي لَا يَقْرَأُ الْقُرْآنَ كَمَثَلِ الْحَنْظَلَةِ رِيحُهَا مُرٌّ وَطَعْمُهَا مُرٌّ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رَوَاهُ شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ أَيْضًا. (1)**

**ترجمه** ابوموسي اشعري رضي الله عنه بيان كوي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل چې دهغه مسلمان مثال چې قران لولي ترنج پشان دی چې بوئي يی هم بنائسته دی اوخوندیی هم خوږ دی اودقران مجيد نه لوستونكي مسلمان مثال د كهجورى پشان دی چې خوشبوئي خو پكې نشته ليكن خونديی خوږ وي اود منافق قران مجيد لوستونكي مثال دكشمالي پشان دی چې په هغې كې خوشبوئي خو وي ليكن خوند يی تريخ وي اود قران مجيد نه لوستونكي منافق مثال دمرغوني پشان دی چې په دی كې خوشبوئي هم نه وي او خونديی ډير تريخ وي
امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي او دا حديث شعبه هم دقتاده نه نقل كړي دي
**لغات:** الاترجة: الاترج و الاترنج دليمو ونه : الحنظلة د مرغوني ونه دا په تريخ والي كې ضرب المثل دي
**تشريح** : دپورتني حديث باره كې شيخ الحديث مولانا زكريا ليكلي دي چې دحديث مقصد

---

[1] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /فضائل القرآن ١٧ (٥٠٢٠) . و ٣٦ (٥٠٥٩) . والأطعمة ٣٠ (٥٤٢٧) . التوحيد ٥٧ (٧٥٦٠) . صحيح مسلم /المسافرين (٢٧ (٧٩٧) . سنن ابي داود/ الأدب ١٩ (٤٨٣٠) . سنن النسائي/الإيمان ٣٢ (٥٠٤١) . سنن ابن ماجه/المقدمة ١٦ (٢١٤) (تحفة الأشراف : ٨٩٨١) . و مسند احمد (٤/ ٣٩٧ ، ٤٠٨)

دمخصوص ځيز مشابهت دى دغير محصوص سره تردي چې دقران مجيد لوستلو والاو نه لوستلو والا فرق واضح شي او كه داسي نه وي نو ظاهره ده چې دكلام پاك دحلاوت څه نسبت دى قران كريم حافظ او په دي عمل كونكى مسلمان خو ښائسته رنګ او ښائسته زانقي ميوي پشان دى دالله په نزد او دخلقو په نزد هم عزتمند دى او كوم مومن چې حافظ نه وي ليكن په قران عمل كونكى وي نو داسي كس هم دالله په نظر كې او دخلقو په نظر كې بهتر وي او هغه منافق ځوك چې قران لولي او دهغه ظاهر دقران په لوستلو په وجه ښه وي ليكن باطن يې ګند او تياره وي او كوم منافق چې بالكل لولي نه وي دهغه باطن او ظاهر دواړه ناپاك وي

*****************

٢٨٦٦_حَدَّثَنَا الحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الخَلَّالُ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ، قَالُوا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ المُسَيِّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَثَلُ الْمُؤْمِنِ كَمَثَلِ الزَّرْعِ لَا تَزَالُ الرِّيَاحُ تُفَيِّئُهُ وَلَا يَزَالُ الْمُؤْمِنُ يُصِيبُهُ بَلَاءٌ، وَمَثَلُ الْمُنَافِقِ مَثَلُ شَجَرَةِ الأَرْزِ لَا تَهْتَزُّ حَتَّى تُسْتَحْصَدَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([1])

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دمومن مثال دهغه فصل پشان دي كوم لره چې هواګاني اخوا ديخوا خوزوي (داسي مومن هم دي) په مومن باندي مصيبتونه لګاتار راځي ، او دمنافق مثال خو دصنوبر دوني پشان وي چې دځپل ځاي نه نه خوزيږي مګر چې كله پري كړي شي

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي.

*****************

٢٨٦٧_حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مُوسَى الأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا مَعْنٌ، حَدَّثَنَا مَالِكٌ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " إِنَّ مِنَ الشَّجَرِ شَجَرَةً لَا يَسْقُطُ وَرَقُهَا، وَهِيَ مَثَلُ المُؤْمِنِ، حَدِّثُونِي مَا هِيَ؟ قَالَ عَبْدُ اللَّهِ: فَوَقَعَ النَّاسُ فِي شَجَرِ البَوَادِي، وَوَقَعَ فِي نَفْسِي أَنَّهَا النَّخْلَةُ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: هِيَ النَّخْلَةُ، فَاسْتَحْيَيْتُ أَنْ أَقُولَ، قَالَ عَبْدُ اللَّهِ: فَحَدَّثْتُ عُمَرَ بِالَّذِي وَقَعَ فِي نَفْسِي، فَقَالَ: لَأَنْ تَكُونَ قُلْتَهَا أَحَبُّ إِلَيَّ مِنْ أَنْ يَكُونَ لِي كَذَا وَكَذَا ".

---

[1] _ صحيح مسلم/المنافقين ١٤(٢٨٠٩) (تحفة الأشراف : ١٣٢٤٩) (وراجع ماعند صحيح البخاري/ في المرضى ١(٥٦٤٤)، والتوحيد ٣١(٧٤٦٦)، ومسند احمد (٢/٢٣٤، ٢٨٣، ٥٢٣)

قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَفِي الْبَابِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ. [1]

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په اونو کي يوه ونه داسي ده چې پاڼري يي نه رژيږي دا دمومن مثال دي پس ماته اووائي چې دا کومه ونه ده عبدالله وائي چې خلقو په خنګلونو کي ددي وني لټول شروع کړل مګر زما په زړه کي دا راغلل چې دا دکجوري ونه ده بيا رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل دا کجوره ده، زه شرميدم (چې زه يو ماشوم دمشرانو مخکي خبري اوکړم او نور خلق خاموش وي مګر بيا ما خپل پلار عمر رضي الله عنه ته هغه خبره اوکړه کومه چې زما زړه کي تيره شوي وه هغه راته اووئيل بچيه که دا خبره دي کړي وي نو په دي به زه دومره خوشحاله شوي وم لکه چې زما سره دومره او دومره مال وي دا حديث حسن صحيح دي او په دي باب کي دابوهريره رضي الله عنه نه هم روايت وارد دي

***************

## ٥_باب مَثَلُ الصَّلَوَاتِ الْخَمْسِ

## دپنځه مونځونو مثال

٢٨٦٨_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنِ ابْنِ الْهَادِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "أَرَأَيْتُمْ لَوْ أَنَّ نَهَرًا بِبَابِ أَحَدِكُمْ يَغْتَسِلُ مِنْهُ كُلَّ يَوْمٍ خَمْسَ مَرَّاتٍ، هَلْ يَبْقَى مِنْ دَرَنِهِ شَيْءٌ؟" قَالُوا: لَا يَبْقَى مِنْ دَرَنِهِ شَيْءٌ، قَالَ: "فَذَلِكَ مَثَلُ الصَّلَوَاتِ الْخَمْسِ، يَمْحُو اللَّهُ بِهِنَّ الْخَطَايَا" وَفِي الْبَابِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا بَكْرُ بْنُ مُضَرَ الْقُرَشِيُّ، عَنِ ابْنِ الْهَادِ نَحْوَهُ. [2]

**ترجمه** . دابوهريره رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي ستاسو څه خيال دي که ديو کس دکور مخي ته يو نهر روان وي او هره ورځ په هغي کي پنځه

---

[1] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /العلم ٣ (٦١) ، و٥ (٦٢) ، و ٥٠ (١٣١) ، وتفسير (ابراهيم ١ (٤٦٩٨) ، والأدب ٧٩ (٦١٢٢) و ٨٩ (٦١٤٤) . مسلم /المنافقين ١٥ (٢٨١١) (تحفة الأشراف : ٧٢٣٤) ، ومسند احمد (٣١/٢، ٦١)

[2] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /المواقيت ٦ (٥٢٨) . صحيح مسلم /المساجد ٥١ (٦٦٧) . سنن النسائي/الصلاة ٧ (٤٦٣) (تحفة الأشراف : ٤٩٩٨) . ومسند احمد (٣٧٩/٢، ٤٢٦ ٥٤٢٦) وسنن الدارمي/الصلاة ١ (١٢٢١)

پيري غسل کوي ايا دده په بدن به خيري پاتي شي؟ صحابه کرامو اووئيل هيڅ خيري به پاتي نشي رسول الله اوفرمائيل همدا مثال دپنځه مونځونو دي چې محوه کوي الله تعالي په دي باندي ګناهونه
امام ترمذي وايي او په دي باب کي دجابر رضي الله عنه نه هم حديث وارد دي او دا حديث حسن صحيح دي، دا رنګي قتيبه هم دبکر بن مضر قرشي په واسطه دابن الهاد نه ددي هم معني روايت نقل کړي دي.

****************

## ٦_باب مِنْهُ

### دسابقه باب متعلق يو بل باب

٢٨٦٩_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ يَحْيَى الأَبَحُّ، عَنْ ثَابِتٍ الْبُنَانِيِّ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَثَلُ أُمَّتِي مَثَلُ الْمَطَرِ لَا يُدْرَى أَوَّلُهُ خَيْرٌ أَمْ آخِرُهُ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عَمَّارٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَابْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. قَالَ: وَرُوِيَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ مَهْدِيٍّ، أَنَّهُ كَانَ يُثَبِّتُ حَمَّادَ بْنَ يَحْيَى الأَبَحَّ، وَكَانَ يَقُولُ هُوَ مِنْ شُيُوخِنَا.[1]

**ترجمه** : دانس رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي زما د امت مثال د باران پشان دي څوك دا نشي وئيلي چې ددي اول بهتر دي او که ددي اخر.
امام ترمذي وايي: داحديث په دي سند حسن غريب دي او په دي باب کي دعمار، عبدالله بن عمرو، او ابن عمر رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، عبدالرحمن بن مهدي په دي باره کي دحماد بن يحي تائيد او تصديق کولو او وئيل يي چې هغه زمونږه داستاذانو نه دي

****************

## ٧_باب مَا جَاءَ فِي مَثَلِ ابْنِ آدَمَ وَأَجَلِهِ وَأَمَلِهِ

### دبني ادم دمرګ او ارمانونو او ارزوګانو مثال

٢٨٧٠_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا خَلَّادُ بْنُ يَحْيَى، حَدَّثَنَا بَشِيرُ بْنُ الْمُهَاجِرِ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " هَلْ تَدْرُونَ مَا هَذِهِ وَمَا هَذِهِ؟ وَرَمَى

[1] _ اورده البخاري في الصحيح / (تحفة الأشراف: ٣٩١)، و مسند احمد (٣/١٣٠، ١٤٣، ٣١٩)

بِحَصَاتَيْنِ ". قَالُوا: اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ. قَالَ: " هَذَاكَ الأَمَلُ وَهَذَاكَ الأَجَلُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. (1)

**ترجمه** بريده رضي الله عنه راوي دي فرمائي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم دوه ګيټي اوويشتلي او ويې فرمائيل ايا تاسو ته معلومه ده چې دا څه دي او دا څه دي؟ خلقو اووئيل الله او دهغه رسول بهتر پوهيږي رسول الله اوفرمائيل دا دبني ادم ارزوګاني دي او دا دبني ادم مرګ دي.
امام ترمذي وايي: داحديث په دي سند حسن غريب دي

***************

٢٨٧١_حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا مَعْنٌ، حَدَّثَنَا مَالِكٌ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " إِنَّمَا أَجَلُكُمْ فِيمَا خَلَا مِنَ الأُمَمِ، كَمَا بَيْنَ صَلاَةِ الْعَصْرِ إِلَى مَغَارِبِ الشَّمْسِ، وَإِنَّمَا مَثَلُكُمْ وَمَثَلُ الْيَهُودِ، وَالنَّصَارَى كَرَجُلٍ اسْتَعْمَلَ عُمَّالاً، فَقَالَ: مَنْ يَعْمَلُ لِي إِلَى نِصْفِ النَّهَارِ عَلَى قِيرَاطٍ قِيرَاطٍ؟ فَعَمِلَتِ الْيَهُودُ عَلَى قِيرَاطٍ قِيرَاطٍ، فَقَالَ: مَنْ يَعْمَلُ لِي مِنْ نِصْفِ النَّهَارِ إِلَى صَلاَةِ الْعَصْرِ عَلَى قِيرَاطٍ قِيرَاطٍ، فَعَمِلَتِ النَّصَارَى عَلَى قِيرَاطٍ قِيرَاطٍ، ثُمَّ أَنْتُمْ تَعْمَلُونَ مِنْ صَلاَةِ الْعَصْرِ إِلَى مَغَارِبِ الشَّمْسِ عَلَى قِيرَاطَيْنِ قِيرَاطَيْنِ، فَغَضِبَتِ الْيَهُودُ، وَالنَّصَارَى، وَقَالُوا: نَحْنُ أَكْثَرُ عَمَلاً وَأَقَلُّ عَطَاءً، قَالَ: هَلْ ظَلَمْتُكُمْ مِنْ حَقِّكُمْ شَيْئًا؟ قَالُوا: لاَ، قَالَ: فَإِنَّهُ فَضْلِي أُوتِيهِ مَنْ أَشَاءُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (2)

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه مروي دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي تاسو دتيرو شوو امتونو په مقابل کي داسي يئ لکه دمازيګر نه دمابنام پوري چې وخت دي (يعني ډير لږ) ستاسو مثال او ديهودو او نصاري مثال دهغه چا پشان دي چاچې يو څو مزدوران ساتلي وي او ورته اووائي زما سره په يو يو قيراط دماسپخينه پوري څوك كار كول غواړي؟ نو يهوديانو په يو يو قيراط كار اوكړو بيا هغه اووئيل ما سره څوك مزدوري كول غواړي دماسپخين نه تر مازيګر پوري په يو يو قيراط باندي؟ نو نصاري په يو يو قيراط كار اوكړو بيا تاسو دمازيګر نه ترنمر پريوتو پوري په دوه دوه قيراطه كار اوكړو ددي په ليدو يهود

---

1 ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٩٥٠)

2 ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /الإجارة ٩ (٢٢٦٩)، وأحاديث الأنبياء ٥٠ (٣٤٥٩)، وفضائل القرآن ١٧ (٥٠٢١) (تحفة الأشراف: ٧٢٣٥)، ومسند احمد (٢/٦، ١١١)

او نصاري غصه شول او ونيل يي زمونږ كار زيات دي او مزدوري مو كمه دد الله تعالي اوفرمائيل ايا ما ستاسو دحق په كمولو په تاسو ظلم كړي دي؟ هغوئ اوونيل نه نو الله تعالي اوفرمائيل دا زما فضل او انعام دي چې چاته يي وركوم
امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي.

***************

٢٨٧٢_حَدَّثَنَا الحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الخَلَّالُ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ، قَالُوا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِنَّمَا النَّاسُ كَإِبِلٍ مِائَةٍ لَا يَجِدُ الرَّجُلُ فِيهَا رَاحِلَةً ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه** : دعبدالله بن عمر رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي خلق د هغه سلو اوښانو پشان دي چې يو سري په دي كي لټول اوكړي او دسورلۍ قابل ښكي يو هم بيانه مومي
امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي.

***************

٢٨٧٣_حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ المَخْزُومِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ بِهَذَا الْإِسْنَادِ نَحْوَهُ، وَقَالَ: "لَا تَجِدُ فِيهَا رَاحِلَةً". أَوْ قَالَ: "لَا تَجِدُ فِيهَا إِلَّا رَاحِلَةً".[2]

**ترجمه** : سفيان بن عيينه دزهري نه په همدي سند ددي هم معني روايت نقل كوي او وائي چې تاسو په هغوئ كي يو هم دسورلۍ قابل بيانه مومئ او كه داسي يي اوونيل چې تاسو په دوئ كي صرف يو دسورلۍ قابل بيامومئ.

***************

٢٨٧٤_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا المُغِيرَةُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنِ الأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " إِنَّمَا مَثَلِي وَمَثَلُ أُمَّتِي كَمَثَلِ رَجُلٍ اسْتَوْقَدَ نَارًا فَجَعَلَتِ الذُّبَابُ وَالفَرَاشُ يَقَعْنَ فِيهَا، وَأَنَا آخُذُ بِحُجَزِكُمْ وَأَنْتُمْ تَقَحَّمُونَ فِيهَا ". قَالَ أَبُو عِيسَى:

---

[1] _ اورده البخاري في الجامع الصحيح /الرقاق ٣٥ (٦٤٩٨) . صحيح مسلم/فضائل الصحابة ٦٠ (٢٥٤٧) سنن ابن ماجه/الفتن ١٦(٣٩٩٠) (تحفة الأشراف : ٦٩٣٥) ، ومسند احمد (٢/٧، ٤٤، ٧٠، ١٠٩، ١٢١، ١٢٢، ١٢٣، ١٣٠)

[2] _ انظر ماقبله (تحفة الأشراف ٦٨٣٨٠)

هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَقَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ.[1]

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي زما او زما دامت مثال دهغه چا پشان دي چاچې اور بل كړي وي او ماشي او يتنګان وړباندي راغورځيږي (همداحال زمونږ او ستاسو دي)، چې ما ستاسو ملانيولي وي او بچ كول مو غواړم او تاسو په دي باندي ځانونه ورغورځوئ او بغير سوچې ورپريوځئ.
امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي او دا حديث په يو بل سند هم مروي دي.

*******************

# ابواب فضائل القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم

## دقران دفضائلو تفصيل

دعثمان رضي الله عنه روايت دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي غوره پتاسو كي هغه كس دي څوك چې قران زده كړي او نوروته يي تعليم وركړي(رواه البخاري ومسلم)، ليكن دبيهقي په روايت كي دومره اضافه ده چې د الله دكلام فضيلت په نورو كلامونو داسي دي لكه دالله فضيلت چې په مخلوق دي.
دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه مروي دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي حسد صرف ددوه كسانو سره جائز دي يوهغه كس دي چې الله ورته دقران علم وركړي وي اوهروخت يي لولي . دويم هغه كس دي چې الله ورته مال وركړي وي اوهغه يي شپه او ورځ دالله په لار كي خرچ كوي(بخاري ومسلم).
بغوي او حكيم او محمد بن نضر دعبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه نه روايت بيان كړي دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل دقيامت په ورځ به دري څيزونه دعرش دلاندي وي قران مجيد ، امانت، رحم، قران مجيد به (دبندګانو دپاره يادبندګانو دطرف نه) حجت وي اوددي يوظاهر دي اويو باطن اورحم به اواز اوكړي په غور سره واورئ چاچې زه پيوست كړم الله تعالي به دهغه سره خپل تعلق مضبوط كړي اوچاچې زه مات كړم الله تعالي به ورسره تعلق پريږدي.

[1] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /أحاديث الأنبياء ۴۰ (۳۴۲۶) . صحيح مسلم / الفضائل ۶ (۲۲۸۴) (تحفة الأشراف ۱۳۸۶۹) . و مسند احمد (۲/۳۶۱، ۳۹۲)

دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه مروي دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي قران لوستونكي ته به اووئيلي شي چې لوله او ختل كوه او لوستل په ترتيل سره كوه ستا منزل دهغه اخري ايت سره دي كوم چې ته لولي (رواه احمد . ترمذي . ابو داود . نسائي)
په حديث قدسي كي وارد دي چې الله تعالي فرمايلي دي څوك چې په قران مجيد كي مشغول وي او ددي مشغوليت په وجه باندي ده ته زما ذكر اوزمانه دحاجت غوښتلو فرصت نه وي نوزه ده ته دسائلينونه زيات وركوم او وني فرمائيل چې دكلام الله فضيلت په نورو كلامونو داسي دي لكه دالله تعالي فضيلت په نور مخلوق باندي (ترمذي ، دارمي عن ابي سعيد الخدري رضي الله عنه)
دابن مسعود رضي الله عنه بيان دي څوك چې دكتاب الله يوحرف ولولي دده دپاره يوه نيكي ده اوديوي نيكۍ ثواب لس چنده زيات وركولي شي ، زه دا نه وايم چې "الم" يو حرف دي بلكه الف يوحرف او لام بل حرف دي او ميم بل حرف دي (رواه الترمذي في سننه والدارمي) ترمذي داحديث دحسن غريب درجي ګڼلي دي.
دحارث اعور بيان دي چې د مسجد په خوا كي تيريدم چې وامي اوريدل چې خلقو داحاديثو مفهوم دخپل خيال مطابق بيانولو نو زه دعلي رضي الله عنه په خدمت كي حاضر شوم او واقعه مي ورته بيان كړه نو راته يي ووئيل چې په غور سره واوره درسول الله صلي الله عليه وسلم نه مي اوريدلي دي چې فرمائيل يي هوښيار اوسه عنقريب فتنه راتلونكي ده ما عرض وكړو چې اي دالله رسوله ددينه به دخلاصون لاره څه وي؟ نو وئي فرمائيل چې دالله كتاب كي ستاسو نه دمخكنو قومونو واقعات هم دي او وروستنو خلقو حالات هم دي اوستاسو باهمي فيصلي پكي هم دي.
قران قطعي فيصله ده، ټوقي نه دي، كه څوك دي لره دكوم ظالم په وجه پريږدي نو الله به ده لره پريږدي (يعني تباه به يي كړي) اوكه څوك دي لره پريږدي اودكوم بل چانه دهدايت طلب كوي نو الله به هغه لره ګمراه كړي ، داد الله مضبوطه رسۍ ده او همدا دنصيحت نه ډك حكمت دي او همدا صراط مستقيم دي او دا هغه كتاب دي دكوم په وجه چې په ميلاناتو كي كوږوالي نه راځي، اوپه ژبو كي به اشتباه نه وي، اونه عالمان ددي په بيانولو مړيږي اونه بار بار لوستل دي لره زړولي شي، اونه ددي عجائبات په بيانولو ختميږي اوهمدا هغه كتاب دي چې په جناتو كي دغفلت نه بيداري دهغه وخته پوري نه وه ترڅو چې هغوۍ دا كلمات نه وو وئيلي چې مونږ يو ناشنا قران واوريدو چې نيغه لار خلقو ته ښايي او مونږ ورباندي ايمان راوړو ، پس څوك چې ددي سره موافقي خبري كوي هغه به رښتوني وي او كه څوك ورباندي عمل كوي اجربه ورته ملاو شي اوكه څوك ددي مطابق فيصله كوي نو فيصلي به يي انصافي وي اوكه څوك دينه رابلل وكړي نو صراط مستقيم ته به رابلل وكړي (رواه الترمذي والدارمي)

دمعاذ جهني رضي الله عنه نه روايت دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچې قران ولوستو او عمل يي وربانديوکړو نو دقيامت په ورځ به دده مور اوپلار ته داسې يوتاج ور په سر کړي شي چې رڼا به يي دنمر درڼا نه بهتره وي (هرکله چې دده دمور پلار دا حالت وي) نو ستا څه خيال دي چې دهغه کس به څه حال وي چاچې پخپله قران لوستلي وي (رواه احمد وابوداود).

دعقبه بن عامر فرمائي چې په خپله مي اوريدلي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيل که چري قران په کومه څرمن کي کيخودلي شي اوبيا اور ته ور وغورځولي شي نو قران به ونه سوزي يابه هغه څرمن ونه سوزي (يعني په کومه سينه کي چې قران وي او دي دوزخ ته وغورځولي شي نو دي به ونه سوزي) والله اعلم(رواه الدارمي).

دعلي رضي الله عنه نه روايت دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوک چې قران ولولي اوياد يي کړي اوددي بيان کړو حلالو لره حلال اوحرامو لره يي حرام وګڼړي نو الله تعالي به دي جنت ته داخل کړي اودده په کورني کي به دده پشان دده شفاعت دهغه لسو کسانو په حق کي قبول کړي دچا دپاره چې جهنم واجب شوي وي، (رواه الترمذي واحمد وابن ماجه والدارمي).

دعائشه رضي الله عنها نه روايت دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په مونځ کي قران لوستل دهغه قران لوستلو نه افضل دي کوم چې بغير دمونځ ولوستلي شي اودمونځ نه بهر قران لوستل دتسبيح او تکبير(سبحان الله ،او ، الله اکبر) ونيلو نه افضل دي اوروژه نيول ددوزخ نه دبچ کيدو دپاره ډال دي.

داوس ثقفي بيان دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي بغير دکتلو نه مصحف ته دقران لوستونکي دپاره زر مرتبي دي اوپه مصحف کي دکتو په حال کي دتلاوت کونکي دپاره دوچنده مراتب دي ، يعني دوه زره،

دابن عمر رضي الله عنهما نه منقول دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي زړونه هم داسي زنګ نيسي لکه چې لمده وسپنه زنګ کيږي ، عرض وکړي شو چې ددي دصفا کولو به څه طريقه وي؟ نو وئي فرمائيل چې مرګ ډير يادول اوقران لوستل، پورتني دري واړه احاديث بيهقي په شعب الايمان کي کي نقل کړي دي

دابو هريره رضي الله عنه نه روايت دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي الله هيڅ يو کلام په دومره توجه سره نه اوري په څومره توجه سره چې په خوش اوازئ سره دنبي تلاوت اوري(متفق عليه من حديث ابي هريرة رضي الله عنه).

دابو هريره رضي الله عنه نه روايت دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي هغه کس زمونږ نه نه دي څوك چې قران په ښکلي لهجي سره نه لولي(بخاري)

دجابر رضي الله عنه بيان دي فرمائي چې موږ قران لوستلواويوباندچې عجمي هم په موږ کي موجود وو چې ناڅاپه رسول الله تشريف راوړو او وئي فرمائيل چې خپل لوستل جاري وساتئ په تاسو کي دهريو لوستل ښه دي اوډيره نژدي ده چې داسي خلق به راپيدا شي قران لره به داسي درست اونيغ لولي لکه څنګه چې غشي نيغ وي مګر په لوستو کي به يي جلتي کوي يعني دتلاوت عوض به په دنيا کي غواړي اود اخرت دثواب دپاره به يي نه لولي(رواه ابوداود والبيهقي).

دحذيفه رضي الله عنه نه روايت دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي قران لره دعربو په لهجو او اوازونو کي لولئ او داهل عشق او يهود او نصاري دلهجي نه پرهيز اوکړئ زما نه پس به بعضي خلق داسي راشي چې قران به دګانو او دوير په لهجه کي لولي قران به ددوئ دحلقونو نه نه تيريږي د دوئ زړونه او ددوئ کيفيت لره دخوښونکو زړونه به فتني وهلي وي (رواه البيـهقي في شعب الايمان).

دعبيد ملکي صحابي نه روايت دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي اي اهل قران قران لره به بالخ نه ګرځوئ او دشپي او دورځي يي تلاوت کوئ داسي تلاوت به کوئ څنګه چې دتلاوت کولو حق وي، قران لره په خلقو کي خور کړئ او په خوش اوازئ سره يي وايئ او په مضامينو يي غور وکړئ تردي چې کامياب شئ او په جلتئ جلتئ سره يي مه لولئ ددي په تلاوت کي ثواب دي (بيهقي شعب الايمان).

دعلي رضي الله عنه نه روايت دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي بهترين علاج قرآن دي(رواه ابن ماجه) اوبه روايت کي راغلي دي قران اهم ترين علاج دي(کنز العمال).

د ابن مسعود رضي الله عنه بيان دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دوه شفاګانو لره اختيار کړئ چې شهد او قران کريم دي (په اول کي جسماني شفاء ده اوپه دويم کي روحاني او اخلاقي شفاء ده) (رواه ابن ماجه والحاکم بسند صحيح) ددي حديث نه معلوميږي چې په شهدو کي شفاء غالبه ده .

د واثله بن اسقع رضي الله عنه نه روايت دي چې يو کس درسول الله په خدمت کي حاضر شو اود مرئ ددرد شکايت يي وکړو ورته يي اوفرمائيل چې لازم دي په تاباندي دقران لوستل ، دا حديث هم بيهقي په شعب الايمان کي نقل کړي دي.

ابن مردويه دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه روايت بيان کړي چې يو کس درسول الله په خدمت کي حاضر شو اوعرض يي وکړو چې اي دالله رسوله زما سينه درد کوي نو وئي فرمائيل چې قران لوله الله تعالي فرمائيلي دي: "وَشِفَآءٌ لِّمَا فِي الصُّدُورِ "

دطلحه بن مطرف رضي الله عنه روايت دي چې كله چې دمريض په وړاندي قران ولوستلي شي نو ضرور ورباندي په مرض كي اساني راځي(رواه ابوعبيده) والله اعلم

## ١ـ بَاب مَا جَاءَ فِي فَضْلِ فَاتِحَةِ الْكِتَابِ منه

## دسورة فاتحې دفضيلت بيان

٢٨٧٥ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنِ الْعَلَاءِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ عَلَى أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَا أُبَيُّ وَهُوَ يُصَلِّي فَالْتَفَتَ أُبَيٌّ وَلَمْ يُجِبْهُ وَصَلَّى أُبَيٌّ فَخَفَّفَ ثُمَّ انْصَرَفَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: السَّلَامُ عَلَيْكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: وَعَلَيْكَ السَّلَامُ مَا مَنَعَكَ يَا أُبَيُّ أَنْ تُجِيبَنِي إِذْ دَعَوْتُكَ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنِّي كُنْتُ فِي الصَّلَاةِ، قَالَ: أَفَلَمْ تَجِدْ فِيمَا أَوْحَى اللَّهُ إِلَيَّ أَنِ اسْتَجِيبُوا لِلَّهِ وَلِلرَّسُولِ إِذَا دَعَاكُمْ لِمَا يُحْيِيكُمْ (الأنفال: ٢٤، قَالَ: بَلَى، وَلَا أَعُودُ إِنْ شَاءَ اللَّهُ، قَالَ: أَتُحِبُّ أَنْ أُعَلِّمَكَ (لَمْ يَنْزِلْ فِي التَّوْرَاةِ وَلَا فِي الْإِنْجِيلِ وَلَا فِي الزَّبُورِ وَلَا فِي الْفُرْقَانِ مِثْلُهَا، قَالَ: نَعَمْ، يَا رَسُولَ اللَّهِ، قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: كَيْفَ تَقْرَأُ فِي الصَّلَاةِ، قَالَ: فَقَرَأَ أُمَّ الْقُرْآنِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ مَا أُنْزِلَتْ فِي التَّوْرَاةِ وَلَا فِي الْإِنْجِيلِ وَلَا فِي الزَّبُورِ وَلَا فِي الْفُرْقَانِ مِثْلُهَا، وَإِنَّهَا سَبْعٌ مِنَ الْمَثَانِي، وَالْقُرْآنُ الْعَظِيمُ الَّذِي أُعْطِيتُهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَفِي الْبَابِ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، وَفِيهِ عَنْ أَبِي سَعِيدِ بْنِ الْمُعَلَّى. [1]

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم دابئ بن كعب رضي الله عنه په خوا كي تير شو او هغه په مونځ كي مشغول وو رسول الله اوونيل اي ابئ (واوره)، اواز اوريدو سره ابئ متوجه شو ليكن جواب يي ورنكړو او مونځ يي زر زر پوره كړو بيا درسول الله په خدمت كي حاضر شو او ونيل يي السلام عليك يا رسول الله رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل وعليك السلام ، رسول الله اوفرمائيل اي ابئ كله چې ما راوغوبنتلي نو ته ماته ولي حاضر نشوي ؟ هغه اوونيل دالله رسوله په مونځ كي مشغول وم، رسول الله اوفرمائيل اوسه پوري چې كومه وحي په ماباندي نازل شوي ده ايا په هغي كي تا دا ايت نه دي اوريدلي "استجيبوا لله وللرسول اذادعاكم لما يحييكم " يعني اي مومنانو

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٤٠٤٠)

دالله او درسول دحکم تعمیل اوکړو او خاصکر چې کله رسول تاسو دکوم ځیز دپاره راغواړي (الانفال) هغه اوونیل هو اوریدلي مي دي انینده کي به انشاء الله داسي نه کوم رسول الله اوفرمائیل ایا خوښه دي نه ده چې یو داسي سورت درته بیان کړم دکوم پشان چې نه په تورات کي نازل شوي وي او نه په انجیل کي او نه په زبور کي او نه په قران کي تردي چې په قران کي هم ددي پشان سورت نه دي نازل شوي او دا سبع المثاني (اوه ایتونه) دي او همدا هغه قران عظیم دي کوم چې ماته راکړي شوي دي.

امام ترمذي وايي: داحدیث حسن صحیح دي، او په دي باب کي دانس بن مالك او ابوسعید بن معلي رضي الله عنهم نه هم احادیث وارد دي.

****************

## ٢ـ باب مَا جَاءَ فِي فَضْلِ سورة الْبَقَرَةِ وَ:الْكُرْسِيِّ

### دسورة بقره او اية الکرسي دفضیلت بیان

٢٨٧٦ـ حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الْحُلْوَانِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْحَمِيدِ بْنُ جَعْفَرٍ، عَنْ سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ عَطَاءٍ مَوْلَى أَبِي أَحْمَدَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: " بَعَثَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْثًا وَهُمْ ذُو عَدَدٍ فَاسْتَقْرَأَهُمْ، فَاسْتَقْرَأَ كُلَّ رَجُلٍ مِنْهُمْ مَا مَعَهُ مِنَ الْقُرْآنِ، فَأَتَى عَلَى رَجُلٍ مِنْهُمْ مِنْ أَحْدَثِهِمْ سِنًّا، فَقَالَ: مَا مَعَكَ يَا فُلَانُ؟ قَالَ: مَعِي كَذَا وَكَذَا وَ سورة الْبَقَرَةِ، قَالَ: أَمَعَكَ سورة البقرة؟ فَقَالَ: نَعَمْ، قَالَ: فَاذْهَبْ فَأَنْتَ أَمِيرُهُمْ، فَقَالَ رَجُلٌ مِنْ أَشْرَافِهِمْ: وَاللَّهِ يَا رَسُولَ اللَّهِ، مَا مَنَعَنِي أَنْ أَتَعَلَّمَ سورة البقرة إِلَّا خَشْيَةَ أَلَّا أَقُومَ بِهَا، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: تَعَلَّمُوا الْقُرْآنَ وَاقْرَءُوهُ، فَإِنَّ مَثَلَ الْقُرْآنِ لِمَنْ تَعَلَّمَهُ فَقَرَأَهُ وَقَامَ بِهِ، كَمَثَلِ جِرَابٍ مَحْشُوٍّ مِسْكًا يَفُوحُ رِيحُهُ فِي كُلِّ مَكَانٍ، وَمَثَلُ مَنْ تَعَلَّمَهُ فَيَرْقُدُ وَهُوَ فِي جَوْفِهِ، كَمَثَلِ جِرَابٍ وُكِئَ عَلَى مِسْكٍ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَقَدْ رَوَاهُ اللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ عَطَاءٍ مَوْلَى أَبِي أَحْمَدَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرْسَلًا نَحْوَهُ، حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، عَنِ اللَّيْثِ بن سَعْدٍ، عَنْ سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ عَطَاءٍ مَوْلَى أَبِي أَحْمَدَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى الله عليه وسلم مرسلا نَحْوَهُ بِمَعْنَاهُ، وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ وفي الباب عن أبي ابن كعب.[1]

**ترجمه** : دابوهریره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله علیه وسلم په شمیر

---

[1] ـ سنن ابن ماجه/المقدمة ١٦ (٢١٧) (تحفة الأشراف: ١٣٣٢٢)

شميرلي لښکر اوليږلو او دليږلو وخت کي يي دهغوئ نه قران واوريدلو په دوئ کي چي هر يو ته څومره قران ياد وو هغه يي واورولو. کله چې ديو نوجوان نمبر راغي نو هغه اوونيل اي فلانيه تاته کوم کوم سورتونه ياد دي؟ هغه اوونيل ماته فلاني فلاني سورة او سورة بقره ياد دي ورته يي اوفرمائيل ايا سورة بقره درته ياد ده؟ هغه اوونيل هو ورته يي اوفرمائيل ورځه ته دټولو امير مقرر شوې دلښکر په مشرانو کي يو کس اوونيل اي دالله رسوله په الله مي دي قسم وي ماسورة بقره صرف ددي ويري په وجه نه ده ياده کړي چې زه دا مسلسل دتهجد په مونځ کي نشم لوستلي رسول الله اوفرمائيل قران ياد کړه او لوله يي او خلقو ته يي بيانوه ځکه چي دقران دلوستونکي مثال دهغه چا پشان دي چاچې دا ياد کړي وي او لوستلي يي وي او په دي يي عمل کړي وي او موتي يي دمشکو نه ډک وي او ځلور واړو طرفونو ته يي خوشبو خوريږي او دهغه چا مثال چاچې دا ياد کړو او اوده شو او دقران علم يي په سينه کي بند پاتي شو دهغه موتي پشان دي کوم چي دمشکو نه ډک وي او بند پروت وي.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن دي داحديث ليث بن سعد دسعيد مقبري نه او هغه د ابوسعيد خدري ازاد کړي غلام عطاء نه او هغه درسول الله صلي الله عليه وسلم نه مرسل نقل کړي دي او هغوئ په دي کي دابوهريره واسطه نه ده ذکر کړي.

***************

۲۸۷۷ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ سُهَيْلِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا تَجْعَلُوا بُيُوتَكُمْ مَقَابِرَ، وَإِنَّ الْبَيْتَ الَّذِي تُقْرَأُ فِيهِ الْبَقَرَةُ لَا يَدْخُلُهُ الشَّيْطَانُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي خپلو کورونو نه قبرستان مه جوړوئ په کوم کور کي چې سورة بقره لوستلي کيږي هغي ته شيطان نه داخليږي.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي

***************

۲۸۷۸ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا حُسَيْنٌ الْجُعْفِيُّ، عَنْ زَائِدَةَ، عَنْ حَكِيمِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لِكُلِّ شَيْءٍ سَنَامٌ، وَإِنَّ سَنَامَ الْقُرْآنِ سورة الْبَقَرَةِ، وَفِيهَا: هِيَ سَيِّدَةُ آيِ الْقُرْآنِ هِيَ: الْكُرْسِيِّ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا

[1] ـ صحيح مسلم/المسافرين ۲۹ (۲۸۰)، سنن ابي داود/ المناسک ۱۰۰

حَدِيثٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ حَكِيمِ بْنِ جُبَيْرٍ، وَقَدْ تَكَلَّمَ شُعْبَةُ فِي حَكِيمِ بْنِ جُبَيْرٍ وَضَعَّفَهُ. (1)

**ترجمه**: دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دهر يو څيز دپاره يوه غونډۍ وي او دقران غونډۍ سورة البقره ده په دي سورة کي يو ايت دي چې دقران دټولو ايتونو سردار دي او هغه ايت اية الكرسي ده

امام ترمذي وايي: داحديث غريب دي مونږ يي صرف دحكيم بن جبير په روايت پيژنو او په حكيم بن جبير شعبه كلام كړي دي او په باب دحديث كي يي ضعيف ګڼلي دي.

***************

٢٨٧٩_حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ الْمُغِيرَةِ أَبُو سَلَمَةَ الْمَخْزُومِيُّ الْمَدَنِيُّ. حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي فُدَيْكٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ الْمُلَيْكِيِّ، عَنْ زُرَارَةَ بْنِ مُصْعَبٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ قَرَأَ" حم الْمُؤْمِنَ إِلَى إِلَيْهِ الْمَصِيرُ "، وَ:الْكُرْسِيِّ حِينَ يُصْبِحُ، حُفِظَ بِهِمَا حَتَّى يُمْسِيَ، وَمَنْ قَرَأَهُمَا حِينَ يُمْسِي حُفِظَ بِهِمَا حَتَّى يُصْبِحَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ. وَقَدْ تَكَلَّمَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ فِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي بَكْرِ بْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ الْمُلَيْكِيِّ مِنْ قِبَلِ حِفْظِهِ، وَزُرَارَةُ بْنُ مُصْعَبٍ هُوَ ابْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ، وَهُوَ جَدُّ أَبِي مُصْعَبٍ الْمَدَنِيِّ. (2)

**ترجمه**: دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچې دسورة مومن (ابتدائي دري ايتونه) په حم نه تر اليه المصير پوري او اية الكرسي سحر وخت کي دبيداريدو نه پس اولوستله نو ددي دواړو په ذريعه به دماښام پوري ددي لوستونكي محفوظ وي او چاچې دا دواړه ماښام وخت کي اولوستل نو ددي په ذريعه به ددي لوستونكي دسحر كيدو پوري محفوظ ي.

امام ترمذي وايي: داحديث غريب دي، بعضي اهل علمو په عبدالرحمن بن ابي بكر بن ابي مليكه دحافظي په اعتبار كلام كړي دي، دزراره بن مصعب پوره نوم زراره بن مصعب بن عبدالرحمن بن عوف دي او دي د ابومصعب مدني نيكه دي

***************

## ٣_باب مِنْهُ

1 _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٣٢١٣)

2 _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٤٩٥)

## دسابقه باب متعلق يوبل باب

۲۸۸۰_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا أَبُو أَحْمَدَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ ابْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ أَخِيهِ عِيسَى، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ أَبِي أَيُّوبَ الأَنْصَارِيِّ، "أَنَّهُ كَانَتْ لَهُ سَهْوَةٌ فِيهَا تَمْرٌ فَكَانَتْ تَجِيءُ الغُولُ فَتَأْخُذُ مِنْهُ. قَالَ: فَشَكَا ذَلِكَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ: فَاذْهَبْ فَإِذَا رَأَيْتَهَا، فَقُلْ: بِسْمِ اللَّهِ أَجِيبِي رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ: فَأَخَذَهَا. فَحَلَفَتْ أَنْ لَا تَعُودَ فَأَرْسَلَهَا. فَجَاءَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: مَا فَعَلَ أَسِيرُكَ. قَالَ: حَلَفَتْ أَنْ لَا تَعُودَ. فَقَالَ: كَذَبَتْ وَهِيَ مُعَاوِدَةٌ لِلْكَذِبِ. قَالَ: فَأَخَذَهَا مَرَّةً أُخْرَى فَحَلَفَتْ أَنْ لَا تَعُودَ فَأَرْسَلَهَا. فَجَاءَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: مَا فَعَلَ أَسِيرُكَ؟ قَالَ: حَلَفَتْ أَنْ لَا تَعُودَ. فَقَالَ: كَذَبَتْ وَهِيَ مُعَاوِدَةٌ لِلْكَذِبِ. فَأَخَذَهَا فَقَالَ: مَا أَنَا بِتَارِكِكِ حَتَّى أَذْهَبَ بِكِ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقَالَتْ: إِنِّي ذَاكِرَةٌ لَكَ شَيْئًا. :الكُرْسِيِّ اقْرَأْهَا فِي بَيْتِكَ فَلَا يَقْرَبُكَ شَيْطَانٌ وَلَا غَيْرُهُ. قَالَ: فَجَاءَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقَالَ: مَا فَعَلَ أَسِيرُكَ؟ قَالَ: فَأَخْبَرَهُ بِمَا قَالَتْ: قَالَ: صَدَقَتْ، وَهِيَ كَذُوبٌ". قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَفِي البَابِ، عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ. (١)

**ترجمه** : دابوايوب انصاري رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چې دده يو باغ وو دكجورو چې پيريان به ورته راتلل او ددينه به يې ورته ميوه اوړله رسول الله صلي الله عليه وسلم ته يې ددې شكايت اوكړو ورته يې اوفرمائيل ورشه او اوګوره چې اوس راغلي دي او كنه او بيا اووايه بسم الله (دالله په نوم) درسول الله خبره اومنه ابوذر رضي الله عنه ده لره اونيولو او قسمونه يې خوړل او وئيل يې چې ماپريږده دوباره به داسې نه كوم چنانچې هغه پريخودو او بيا درسول الله په خدمت كې حاضر شو رسول الله ورنه تپوس اوكړو چې ستا قيدي څه اوكړل ابوذر اووئيل هغه قسمونه خوړل چې بيا به داسې كار نه كوم رسول الله اوفرمائيل دروغژن دي دروغ يې وئيلي دي او دروغ وئيل يې عادت دي راوي وائي چې هغه بيا دوباره اونيولو او بيا يې قسمونه خوړل چې ما پريږده زه به دلته دوباره نه راځم نو ابوذر هغه پريخودو او بيا درسول الله په خدمت كې حاضر شو او تپوس يې ورنه اوكړو ستا قيدي څه اوكړل هغه اووئيل په الله يې قسم اوخوړلو چې بيا به واپس نه راځم رسول الله اوفرمائيل دروغ يې وئيلي دي او دروغ وئيل يې عادت دي بيا چې كله دوباره راغلو نو هغه اونيولو او ورته يې اووئيل رسول الله صلي الله عليه وسلم ته دبوتلو نه بغير دې نه پريږدم هغه اووئيل ماپريږده زه به درته يو څيز

---

(١) ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ۳۴۷۳)، وانظر مسند احمد (۵/۴۲۳)

اوښايم يعني اية الكرسي ته يي پخپل كور كي لوله شيطان به تاته نږدي نه راځي او نه به بل كوم مضر څيز تاته راځي ابوزر رضي الله عنه درسول الله په خدمت كي حاضر شو او تپوس يي ورنه اوكړو ستا قيدي څه اوكړل نوابوذر ورته داهر څه بيان كړل كوم چې جن وئيلي وو رسول الله اوفرمائيل خبره خو يي درسته كړي ده ليكن پوخ دوغژن دي.
امام ترمذي وايي داحديث حسن غريب دي او په دي باب كي دابي بن كعب رضي الله عنه نه هم حديث وارد دي

****************

## ٤_باب مَا جَاءَ فِي آخِرِ سورة الْبَقَرَةِ

### دسورة بقري داخري ايت فضيلت

٢٨٨١_حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا جَرِيرُ بْنُ عَبْدِ الْحَمِيدِ، عَنْ مَنْصُورِ بْنِ الْمُعْتَمِرِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ أَبِي مَسْعُودٍ الأَنْصَارِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ قَرَأَ الآيَتَيْنِ مِنْ آخِرِ سورة الْبَقَرَةِ فِي لَيْلَةٍ كَفَتَاهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** ابومسعود بدري رضي الله عنه روايت كړی دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل چې څوك دشپی (په څه وخت كي) دسورة بقره اخري دوه ايتونه (دامن الرسول نه تر سورة ختيميدو پوری) اولولي هغه به دده دپاره كافي شي.
امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي.

**لغات** كفتاه كفي يكفي كفاية. معني كافي كيدل

**تشريح** كفتاه څوك چې دشپي دپريوتو نه مخكې دسورة بقري اخري دوه ايتونه لولي نو دا دده دپاره كافي دي اخري دوه ايتونه دادي د امن الرسول بما انزل اليه نه دسورة تراخره پوري، دكافي كيدلو په توضيح كې څنی حضراتو وئيلي دي چې ددی شپی دتولو ناخوښه خبرونه به لوستونكی محفوظ وي او بعضو دا مطلب بيان كړی دی چې داايتونه به دشپی دعبادت بدل اوګرخي كه چرې دشپی عبادت يی اونكړی شو نو ددی ايتونو دتلاوت اجر به ورته دومره ملاؤ

[1] _ اورده البخاري في الجامع الصحيح /فضائل القرآن ١٠ (٥٠٠٩) . صحيح مسلم / المسافرين ٤٣ (٨٠٧) . سنن ابي داود/ الصلاة ٣٢٦ (١٣٩٧) . سنن ابن ماجه/الإقامة ١٨٣ (١٣٦٩) (تحفة الأشراف . ٩٩٩٩) . و مسند احمد (٤/١١٨) سنن الدارمي/الصلاة ١٧٠ (١٥٢٨)

شي خومره چې دشپې په عبادت کې ملاويدو
امام نووي دکافي کيدو دوه مطلبونه بيان کړي دي يو خو دادی چې دشيطانانو دشرارتونو نه انسان ددي په وجه بچ کيږي دشپې عبادت خاصکر دتهجدو مونځ ددي قائم مقام ګرځي ليکن بعضي علماؤ ددي دوو اضافه هم کړي ده چې دا ايتونه دايمان دتجديد دپاره کافي دي (علامه محمد حسين صديقي استاذ الحديث جامعه بنوريه)
دسورة بقري اخري دوه ايتونه دادي آمَنَ الرَّسُولُ بِمَا أُنْزِلَ إِلَيْهِ مِنْ رَبِّهِ وَالْمُؤْمِنُونَ كُلٌّ آمَنَ بِاللَّهِ وَمَلَائِكَتِهِ وَكُتُبِهِ وَرُسُلِهِ لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ أَحَدٍ مِنْ رُسُلِهِ وَقَالُوا سَمِعْنَا وَأَطَعْنَا غُفْرَانَكَ رَبَّنَا وَإِلَيْكَ الْمَصِيرُ (٢٨٥) لَا يُكَلِّفُ اللَّهُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا لَهَا مَا كَسَبَتْ وَعَلَيْهَا مَا اكْتَسَبَتْ رَبَّنَا لَا تُؤَاخِذْنَا إِنْ نَسِينَا أَوْ أَخْطَأْنَا رَبَّنَا وَلَا تَحْمِلْ عَلَيْنَا إِصْرًا كَمَا حَمَلْتَهُ عَلَى الَّذِينَ مِنْ قَبْلِنَا رَبَّنَا وَلَا تُحَمِّلْنَا مَا لَا طَاقَةَ لَنَا بِهِ وَاعْفُ عَنَّا وَاغْفِرْ لَنَا وَارْحَمْنَا أَنْتَ مَوْلَانَا فَانْصُرْنَا عَلَى الْقَوْمِ الْكَافِرِينَ.

****************

٢٨٨٢_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ. حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ. حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ. عَنْ أَشْعَثَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْجَرْمِيِّ. عَنْ أَبِي قِلَابَةَ. عَنْ أَبِي الْأَشْعَثِ الْجَرْمِيِّ. عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِنَّ اللَّهَ كَتَبَ كِتَابًا قَبْلَ أَنْ يَخْلُقَ السَّمَوَاتِ وَالْأَرْضَ بِأَلْفَيْ عَامٍ أَنْزَلَ مِنْهُ آيَتَيْنِ خَتَمَ بِهِمَا سورة الْبَقَرَةِ. وَلَا يُقْرَآنِ فِي دَارٍ ثَلَاثَ لَيَالٍ فَيَقْرَبُهَا شَيْطَانٌ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.[1]

**ترجمه** : دنعمان بن بشير رضي الله عنه نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي الله تعالي دزمکي او اسمان پيداکولو نه دوه زره کاله مخکي يو کتاب ليکلي دي او په دي کتاب کي يي دوه ايتونه نازل کړي دي او په هم هغه دوه ايتونو سورة البقره ختمه شوي ده په کوم کور کي چې دا دوه ايتونه مسلسل دري شپې اولوستلي شي ممکن نه ده چې شيطان دغه کور ته داخل شي
امام ترمذي وايي داحديث حسن غريب دي.

****************

[1] ـ سنن النسائي/عمل اليوم والليلة ٢٤٩ (٩٦٧) (تحفة الأشراف : ١١٦٢٢)

## ٥_باب مَا جَاءَ فِي سورة آلِ عِمْرَانَ

### دسورة ال عمران فضيلت

٢٨٨٣_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيل، أَخبَرَنَا هِشَامُ بْنُ إِسْمَاعِيل أَبُو عَبْدِ المَلِكِ العَطَّار، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ شُعَيْبٍ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنِ الوَلِيدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ أَنَّهُ حَدَّثَهُمْ، عَنْ جُبَيْرِ بْنِ نُفَيْرٍ، عَنْ نَوَّاسِ بْنِ سَمْعَانَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "يَأْتِي القُرْآنُ وَأَهْلُهُ الَّذِينَ يَعْمَلُونَ بِهِ فِي الدُّنْيَا تَقْدُمُهُ سورة البَقَرَةِ، وَآلُ عِمْرَانَ، قَالَ نَوَّاسٌ: وَضَرَبَ لَهُمَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثَةَ أَمْثَالٍ، مَا نَسِيتُهُنَّ بَعْدُ، قَالَ: تَأْتِيَانِ كَأَنَّهُمَا غَيَابَتَانِ وَبَيْنَهُمَا شَرْقٌ، أَوْ كَأَنَّهُمَا غَمَامَتَانِ سَوْدَاوَانِ، أَوْ كَأَنَّهُمَا ظُلَّةٌ مِنْ طَيْرٍ صَوَافَّ تُجَادِلَانِ عَنْ صَاحِبِهِمَا" وَفِي البَابِ: عَنْ بُرَيْدَةَ، وَأَبِي أُمَامَةَ، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الوَجْهِ، وَمَعْنَى هَذَا الحَدِيثِ عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ: أَنَّهُ يَجِيءُ ثَوَابُ قِرَاءَتِهِ كَذَا، فَسَّرَ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ هَذَا الحَدِيثَ وَمَا يُشْبِهُ هَذَا مِنَ الأَحَادِيثِ أَنَّهُ يَجِيءُ ثَوَابُ قِرَاءَةِ القُرْآنِ، وَفِي حَدِيثِ النَّوَّاسِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا يَدُلُّ عَلَى مَا فَسَّرُوا، إِذْ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "وَأَهْلُهُ الَّذِينَ يَعْمَلُونَ بِهِ فِي الدُّنْيَا"، فَفِي هَذَا دَلَالَةٌ أَنَّهُ يَجِيءُ ثَوَابُ العَمَلِ.[1]

**ترجمه** : دنواس بن سمعان رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په قيامت كي به قران او قران والاچاچې په دنيا كي په دي باندي عمل كړي وي دواړه راشي او مشري به يې سورة البقره او سورة ال عمران كوي رسول الله صلي الله عليه وسلم ددي دواړو سورتونو دري مثالونه وركړي دي راوي وائي بيا ددينه پس ما دا دواړه سورتونه هير نكړل رسول الله اوفرمائيل ګويا كي دا دواړه سورتونه چترئ دي چې په مينځ كي يې سوري او درز دي او كه داسي يې اوفرمائيل دا دواړه سورتونه توري وريځي دي او كه داسي يې اوفرمائيل دا دمرغو لښكر دي دا دواړه سورتونه به دخپلو لوستونكو دپاره جنګيږي او دده دفاع او حفاظت به كوي

امام ترمذي وايي داحديث په دي سند غريب دي . او محدثينو ددي حديث دا معني كړي ده چي ددي د لوستلو ثواب به راشي، دنواس بن سمعان رضي الله عنه په حديث كي د رسول الله نه داسي مروي څه شته چي د مذكورينو په تفسير دلالت وكړي، ځكه چي ارشاد نبوي دي اهل

---

[1] _ صحيح مسلم /المسافرين ٢٢ (٨٠٥) (تحفة الأشراف: ١١٧١٣) . و مسند احمد (٤/١٨٣)

قران هغه څوك دي چاچي ورباندي په دنيا كي عمل كولو ،پس په دي حديث د دعمل د ثواب په مراد كيدو دلالت موجود دى.

**تشريح**: دبعضي اهل علمو په نزد ددي حديث مطلب دادي چي دقران لوستلو ثواب به په قيامت كي راشي، په دي حديث كي او ددي پشان نورو احاديثو كي بعضي اهل علمو همدا تفسير كړي دي چي دقران لوستلو ثواب به راشي، دنواس بن سمعان په حديث كي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه مروي دي او په دي كي دمفسرينو ددي تفسير او تاويل ثبوت دي او په "واهله الذين يعملون به في الدنيا" كي ديته اشاره ده چي دقران دراتلو نه مراد دقران دلوستلو دثواب راتلل دي.

******************

٢٨٨٤_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيل، قَالَ: حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ فِي تَفْسِيرِ حَدِيثِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: " مَا خَلَقَ اللَّهُ مِنْ سَمَاءٍ، وَلَا أَرْضٍ أَعْظَمَ مِنْ الْكُرْسِيِّ ". قَالَ سُفْيَانُ: لِأَنَّ الْكُرْسِيَّ هُوَ كَلَامُ اللَّهِ، وَكَلَامُ اللَّهِ أَعْظَمُ مِنْ خَلْقِ اللَّهِ مِنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ. [1]

**ترجمه**: سفيان بن عيينه په دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه دمذكوره حديث په تفسير كي فرمائيل داية الكرسي فضيلت په دي وجه دي چي دا دالله تعالي كلام دي او دالله كلام دالله په مخلوق كي يعني دزمكي او اسمان تولو نه لوي دي.

******************

## ٦_باب مَا جَاءَ فِي فَضْلِ سورة الْكَهْفِ

### دسورة كهف فضيلت

٢٨٨٥_حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، أَنْبَأَنَا شُعْبَةُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاق، قَال: سَمِعْتُ الْبَرَاءَ بْنَ عَازِبٍ، يَقُولُ: بَيْنَمَا رَجُلٌ يَقْرَأُ سورة الْكَهْفِ إِذْ رَأَى دَابَّتَهُ تَرْكُضُ، فَنَظَرَ فَإِذَا مِثْلُ الْغَمَامَةِ أَوِ السَّحَابَةِ، فَأَتَى رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَ ذَلِكَ لَهُ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " تِلْكَ السَّكِينَةُ نَزَلَتْ مَعَ الْقُرْآنِ أَوْ نَزَلَتْ عَلَى الْقُرْآنِ ". وَفِي الْبَابِ، عَنْ أُسَيْدِ بْنِ

[1] ـ صحيح مسلم/المسافرين ٤٢ (٨٠٥) (تحفة الأشراف : ١١٤١٣) ، و مسند احمد (٤/١٨٣)

حُضَيْرٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([1])

**ترجمه** براء بن عازب رضي الله عنه فرمائي چې يو كس سورة كهف لوستلو چې دي دوران كې خپل خاروي اوليدو چې توپونه يې وهل نو ده ديخوا او اخوا نظر اوزغلولو نو يوه وريځ يې اوليده او بيا درسول الله صلي الله عليه وسلم په خدمت كې حاضر شو او واقعه يې ورته بيان كړه ورته يې اوفرمائيل دا هغه سكينت دي كوم چې دقران په وجه يا دقران دلوستلو په وجه نازل شوي دي

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي، په دي باب كې داسيد بن حضير رضي الله عنه نه هم حديث وارد دي

****************

٢٨٨٦ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ. حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ. حَدَّثَنَا شُعْبَةُ. عَنْ قَتَادَةَ. عَنْ سَالِمِ بْنِ أَبِي الْجَعْدِ. عَنْ مَعْدَانَ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ. عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ. عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ: "مَنْ قَرَأَ ثَلَاثَ آيَاتٍ مِنْ أَوَّلِ الْكَهْفِ عُصِمَ مِنْ فِتْنَةِ الدَّجَّالِ".

حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ. حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ هِشَامٍ. حَدَّثَنِي أَبِي. عَنْ قَتَادَةَ بِهَذَا الْإِسْنَادِ نَحْوَهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([2])

**ترجمه** : دابوالدرداء رضي الله عنه نه روايت دى چې رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل چې چا دسورت كهف رومبي دري ايتونه حفظ تلاوت كړل هغه به د دجال دفتنى نه محفوظ وي.

امام ترمذي وايي. داحديث حسن صحيح دي

**لغات** عصم يعصم عصما دسمع يسمع باب نه په معني دبچ كيدو دي

**تشريح** . ددجال ظهور به قيامت ته نزدي كيږي الله تعالي به هغه ته داسي خارق عادتونه وركړي چې كمزوري ايمان والا به ددي په ليدو سره مرتد شي، او ددجال فتنه به په ټولو فتنو كې ډيره سخته وي همدا وجه ده چې هر يو نبي ددجال دفتني نه خپل امت ويرولى دى اوزمونږ نبي هم ددجال په باره كې تفصيلي وضاحت كړى دى چې څوك دسورة كهف لس ايتونه په

---

[1] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /المناقب ٢٥ (٣٦١٤) . وتفسير سورة الفتح ٢ (٤٨٣٩) . وفضائل القرآن ١١ (٥٠١١) . صحيح مسلم/المسافرين ٣٦ (٧٩٥) (تحفة الأشراف : ١٨٤٢)

[2] ـ صحيح مسلم/المسافرين ٤٢ (٨٠٩) . سنن ابي داود/الملاحم ١٤ (٤٣٢٣) (تحفة الأشراف : ١٠٩٦٣)

امنمام سره لولي نو الله تعالي به يي د دجال دشر نه محفوظ كړي

**************

## ٧ـ باب مَا جَاءَ فِي فَضْلِ يس

### دسورة يس فضيلت

٢٨٨٧ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، وَسُفْيَانُ بْنُ وَكِيعٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا حُمَيْدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الرُّؤَاسِيُّ، عَنِ الحَسَنِ بْنِ صَالِحٍ، عَنْ هَارُونَ أَبِي مُحَمَّدٍ، عَنْ مُقَاتِلِ بْنِ حَيَّانَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " "إِنَّ لِكُلِّ شَيْءٍ قَلْبًا وَقَلْبُ القُرْآنِ يس، وَمَنْ قَرَأَ يس كَتَبَ اللَّهُ لَهُ بِقِرَاءَتِهَا قِرَاءَةَ القُرْآنِ عَشْرَ مَرَّاتٍ " ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ. لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، وَبِالْبَصْرَةِ لَا يَعْرِفُونَ مِنْ حَدِيثِ قَتَادَةَ إِلَّا مِنْ هَذَا الوَجْهِ. وَهَارُونُ أَبُو مُحَمَّدٍ شَيْخٌ مَجْهُولٌ. حَدَّثَنَا أَبُو مُوسَى مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ سَعِيدٍ الدَّارِمِيُّ، حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بِهَذَا، وَفِي البَابِ، عَنْ أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ، وَلَا يَصِحُّ حَدِيثُ أَبِي بَكْرٍ مِنْ قِبَلِ إِسْنَادِهِ، وَإِسْنَادُهُ ضَعِيفٌ، وَفِي البَابِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. (١)

**ترجمه** . دانس رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دهر يو څيز دپاره زړه وي او دقران زړه سورة يس دي، چاچې سورة يس اولوستلو الله تعالي دده دپاره ددي لوستلو په بدل كي دلس پيري قران لوستلو ثواب وركوي په پورتني سند هم دسابقه حديث هم معني مروي دي.

امام ترمذي وايي داحديث غريب دي مونږ يي صرف دحميد بن عبدالرحمن په روايت پيژنو او اهل بصره دقتاده روايت صرف په همدي سند پيژني او هارون ابومحمديو مجهول شيخ دي، او په دي باب كي دابوبكر صديق رضي الله عنه نه هم روايت وارد دي، او دا روايت دسند په اعتبار درست نه دي، او سند يي ضعيف دي او په دي باب كي دابوهريره نه هم روايت وارد دي

**************

## ٨ـ باب مَا جَاءَ فِي فَضْلِ حم الدُّخَانِ

### دسورة الدخان فضيلت

---

١ ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٣٥٠)

٢٨٨٨_حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ وَكِيعٍ، حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ حُبَابٍ، عَنْ عُمَرَ بْنِ أَبِي خَثْعَمٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَنْ قَرَأَ حم الدُّخَانَ فِي لَيْلَةٍ أَصْبَحَ يَسْتَغْفِرُ لَهُ سَبْعُونَ أَلْفَ مَلَكٍ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَعُمَرُ بْنُ أَبِي خَثْعَمٍ يُضَعَّفُ. قَالَ مُحَمَّدٌ: وَهُوَ مُنْكَرُ الْحَدِيثِ. ([1])

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوك چې سورة حم الدخان دشپې وخت کې اولولي دي به په داسې حالت کې صبا کوي چې اويا زره فرشتې به دده دپاره دمغفرت دعا غواړي

امام ترمذي وايي داحديث غريب دي مونږ يې صرف په همدې سند پيژنو او محدثينو دعمر بن ابي خثعم تضعيف کړي دي، امام بخاري وائي چې عمر بن ابي خثعم منکر الحديث دي

*****************

٢٨٨٩_حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْكُوفِيُّ، حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ حُبَابٍ، عَنْ هِشَامٍ أَبِي الْمِقْدَامِ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَنْ قَرَأَ حم الدُّخَانَ فِي لَيْلَةِ الْجُمُعَةِ غُفِرَ لَهُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَهِشَامٌ أَبُو الْمِقْدَامِ يُضَعَّفُ، وَلَمْ يَسْمَعْ الْحَسَنُ مِنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. هَكَذَا قَالَ أَيُّوبُ، وَيُونُسُ بْنُ عُبَيْدٍ، وَعَلِيُّ بْنُ زَيْدٍ. ([2])

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوك چې سورة حم الدخان دجمعې په شپه اولولي دي به په داسې حالت کې صبا کوي چې اويا زره فرشتې به دده دپاره دمغفرت دعا غواړي

امام ترمذي وايي داحديث مونږ صرف په همدې سند پيژنو او هشام ابو المقدام دمحدثينو په نزد ضعيف دي او همدا رنګې دابوهريره رضي الله عنه نه دحسن بصري سماع هم ثابت نه ده يونس بن عبيد او علي بن زيد هم په دې باندې قول کړي دي

*****************

## ٩_باب مَا جَاءَ فِي فَضْلِ سُورَةِ الْمُلْكِ

---

[1] _ تفرد به المؤلف

[2] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٢٢٥٢)

## دسورة الملك فضيلت

٢٨٩٠_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ أَبِي الشَّوَارِبِ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ عَمْرِو بْنِ مَالِكٍ النُّكْرِيُّ، عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي الْجَوْزَاءِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: ضَرَبَ بَعْضُ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خِبَاءَهُ عَلَى قَبْرٍ، وَهُوَ لَا يَحْسِبُ أَنَّهُ قَبْرٌ، فَإِذَا فِيهِ إِنْسَانٌ يَقْرَأُ سُورَةَ تَبَارَكَ الَّذِي بِيَدِهِ الْمُلْكُ حَتَّى خَتَمَهَا، فَأَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنِّي ضَرَبْتُ خِبَائِي عَلَى قَبْرٍ، وَأَنَا لَا أَحْسِبُ أَنَّهُ قَبْرٌ فَإِذَا فِيهِ إِنْسَانٌ يَقْرَأُ سُورَةَ تَبَارَكَ الْمُلْكُ حَتَّى خَتَمَهَا، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " هِيَ الْمَانِعَةُ هِيَ الْمُنْجِيَةُ تُنْجِيهِ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَفِي الْبَابِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ.[1]

**ترجمه** دابن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي فرمائي چې په صحابه كرامو كې يو كس ديو قبر دپاسه خيمه اووهله او هغه ته دا معلومه نه وه چې دلته قبر دي نوبو اواز يې واووريدو چې په قبر كې يو انسان سورة الملك لوستلو تردي پورې چې پوره سورة يې ختم كړونو دغه صحابي دنبي كريم صلي الله عليه وسلم خدمت كې حاضر شو اوعرض يې اوكړو اې دالله رسوله ما په يو قبردپاسه خيمه وهلې وه او زما دا خيال نه وو چې دلته به قبر وي مګر ناڅاپه ما هلته ديو انسان اواز واوريدو چې سورة الملك يې لوستلو تردې چې ختم يې كړو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل "هي المانعة" يعني دا سورة مانعه دي او دا سورة نجات وركونكي دي خپل لوستونكي لره دقبر دعذاب نه.

امام ترمذي وايي: دا حديث په دې سند حسن غريب دي او په دې باب كې دابوهريره رضي الله عنه نه هم حديث وارد دي

***************

٢٨٩١_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ عَبَّاسٍ الْجُشَمِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " إِنَّ سُورَةً مِنَ الْقُرْآنِ ثَلَاثُونَ آيَةً: شَفَعَتْ لِرَجُلٍ حَتَّى غُفِرَ لَهُ، وَهِيَ سُورَةُ تَبَارَكَ الَّذِي بِيَدِهِ الْمُلْكُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ

---

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٥٣٦٤)

حَسَنٌ. (۱)

**ترجمه** ابوهريره رضي الله عنه روايت كوي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل چې په قران كې دديرشو ايتونو يو سورت دى چې هغه به دومره زيات سفارش دځپل ويونكي دپاره كوي چې هغه به اوبخښلى شي او هغه سورة ملك دى.
امام ترمذي وايي: دا حديث حسن صحيح دى.

**لغات** شفعت لرجل: شفع شفاعة: معني سفارش كول.

**تشريح:** ثلاثون اية شفعت لرجل: ديريشت ايتونو والا سورة دى چې سفارش يي كړى دى سورة ملك دډيرو فضائلو والا سورة دى په يو روايت كې دا ارشاد نبوي وارد دى زما زړه غواړي چې دا سورة دي دهر مومن په زړه كې وي په يو بل روايت كې راځي چې دا سورة دالله تعالي عذاب منع كوي او نجات وركونكى دى دپورتني حديث مطلب دادى چې دا سورة به دقيامت په ورځ دځپل لوستونكي دالله تعالي په دربار كې دمغفرت سفارش كوي.
شفعت: سفارش يي اوكړو دماضي صيغه ده ليكن ترجمه يي دمضارع ده دماضي وقوع يقيني او محقق وي نو دا رنګي سفارش هم يقيني دى او په بعضي روايتونو كې دمضارع صيغه راغلي ده.

***************

٢٨٩٢ـ حَدَّثَنَا هُرَيْمُ بْنُ مِسْعَرٍ تِرْمِذِيٌّ، حَدَّثَنَا الْفُضَيْلُ بْنُ عِيَاضٍ، عَنْ لَيْثٍ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "كَانَ لَا يَنَامُ حَتَّى يَقْرَأَ" الم تَنْزِيلُ "وَ" تَبَارَكَ الَّذِي بِيَدِهِ الْمُلْكُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ رَوَاهُ غَيْرُ وَاحِدٍ، عَنْ لَيْثِ بْنِ أَبِي سُلَيْمٍ، مِثْلَ هَذَا، وَرَوَاهُ مُغِيرَةُ بْنُ مُسْلِمٍ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَ هَذَا. وَرَوَى زُهَيْرٌ، قَالَ: قُلْتُ لِأَبِي الزُّبَيْرِ سَمِعْتَ مِنْ جَابِرٍ، فَذَكَرَ هَذَا الْحَدِيثَ، فَقَالَ أَبُو الزُّبَيْرِ: إِنَّمَا أَخْبَرَنِيهِ صَفْوَانُ، أَوِ ابْنُ صَفْوَانَ، وَكَأَنَّ زُهَيْرًا أَنْكَرَ أَنْ يَكُونَ هَذَا الْحَدِيثُ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ.
حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو الأَحْوَصِ، عَنْ لَيْثٍ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ.

---

[1] ـ سنن ابي داود/ الصلاة ٣٢٦ (١٤٠٠)، النسائي/عمل اليوم والليلة ٢٠٤ (٧١٠)، ابن ماجه/ الأدب ٥٢ (٣٧٨٦) (تحفة الأشراف: ١٣٥٥٠)، والدارمي/فضائل القرآن ٢٣ (٣٤٥٢)

قَالَ: حَدَّثَنَا هُرَيْمٌ بْنُ مِسْعَرٍ، حَدَّثَنَا فُضَيْلٌ، عَنْ لَيْثٍ، عَنْ طَاوُسٍ، قَالَ: تَفْضُلَانِ عَلَى كُلِّ سُورَةٍ فِي الْقُرْآنِ بِسَبْعِينَ حَسَنَةً. (1)

**ترجمه** دجابر رضي الله عنه بيان دي فرمائي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم به سورة الف لام ميم السجده او سورة الملك څو پوري لوستلي نه وو تر هغي پوري به نه اوده کيدو
امام ترمذي وايي دا حديث يو څو راويانو دليث بن سليم نه په همدي مضمون نقل کړي دي.
مغيره بن مسلم دابوزبير نه او هغه دجابر رضي الله عنه په واسطه دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه دماقبل هم معني نقل کړي دي زهير دروايت کولو په حال کي وائي ما ابو زبيرته اوونيل ايا تا کوم حديث درسول الله صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي؟ نو همدا حديث يي راته بيان کړو ابو زبير اوونيل ماته صفوان يا ابن صفوان خبر راکړي دي نو زهير دابو زبير نه دجابر په واسطه ددي حديث دنقل کولو نه انکار اوکړو.

*****************

## ١٠_باب مَا جَاءَ فِي إِذَا زُلْزِلَتْ

### دسورة الزلزال فضيلت

٢٨٩٣_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُوسَى الْحَرَشِيُّ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ سَلْمِ بْنِ صَالِحٍ الْعِجْلِيُّ، حَدَّثَنَا ثَابِتٌ الْبُنَانِيُّ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ قَرَأَ "إِذَا زُلْزِلَتْ" عُدِلَتْ لَهُ بِنِصْفِ الْقُرْآنِ، وَمَنْ قَرَأَ "قُلْ يَأَيُّهَا الْكَافِرُونَ" عُدِلَتْ لَهُ بِرُبُعِ الْقُرْآنِ، وَمَنْ قَرَأَ "قُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ" عُدِلَتْ لَهُ بِثُلُثِ الْقُرْآنِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ هَذَا الشَّيْخِ الْحَسَنِ بْنِ سَلْمٍ، وَفِي الْبَابِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ. (2)

**ترجمه** دانس بن مالك رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوك چې سورة زلزال اولولي هغه ته به دنيم قران لوستلو برابر ثواب ملاويږي، او څوك چې سورة الكافون اولولي نو هغه ته به دقران دڅلورمي حصي برابر ثواب ملاويږي او څوك چې سورة اخلاص اولولي هغه ته به دقران د دريمي حصي دتلاوت کولو برابر ثواب ورکولي شي
امام ترمذي وايي داحديث غريب دي او دا حديث مونږ صرف دحسن بن سلم په سند پيژنو، او په دي باب کي دابن عباس نه هم حديث وارد دي.

---

1 ـ النسائي/عمل اليوم والليلة ٢٠٦ (٤٠٨) (تحفة الأشراف: ٢٩٢١). واحمد (٣/٣٤٠)

2 ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف ٢٨٣)

*****************

٢٨٩٤_حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا يَمَانُ بْنُ الْمُغِيرَةِ الْعَنَزِيُّ، حَدَّثَنَا عَطَاءٌ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِذَا زُلْزِلَتْ " تَعْدِلُ نِصْفَ الْقُرْآنِ، " وَقُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ " تَعْدِلُ ثُلُثَ الْقُرْآنِ، " وَقُلْ يَاأَيُّهَا الْكَافِرُونَ " تَعْدِلُ رُبُعَ الْقُرْآنِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ يَمَانِ بْنِ الْمُغِيرَةِ. (1)

**ترجمه** دابن عباس رضي الله عنهما بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي سورة زلزال په ثواب كي دنيم قران لوستلو سره برابر دي او سورة اخلاص دقران د دريمي حصي دلوستلو سره په ثواب كي برابر دي او سورة كافرون دقران دخلورمي حصي دلوستلو سره په ثواب كي برابر دي

امام ترمذي وايي: داحديث غريب دي او مونږ يي صرف ديمان بن مغيره په سند پيژنو

*****************

٢٨٩٥_حَدَّثَنَا عُقْبَةُ بْنُ مُكْرَمٍ الْعَمِّيُّ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنِي ابْنُ أَبِي فُدَيْكٍ، أَخْبَرَنَا سَلَمَةُ بْنُ وَرْدَانَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ لِرَجُلٍ مِنْ أَصْحَابِهِ: " هَلْ تَزَوَّجْتَ يَا فُلَانُ ؟ قَالَ: لَا وَاللَّهِ يَا رَسُولَ اللَّهِ، وَلَا عِنْدِي مَا أَتَزَوَّجُ بِهِ، قَالَ: أَلَيْسَ مَعَكَ " قُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ " ؟ قَالَ: بَلَى، قَالَ: ثُلُثُ الْقُرْآنِ، قَالَ: أَلَيْسَ مَعَكَ " إِذَا جَاءَ نَصْرُ اللَّهِ وَالْفَتْحُ " ؟ قَالَ: بَلَى، قَالَ: رُبُعُ الْقُرْآنِ. قَالَ: أَلَيْسَ مَعَكَ " قُلْ يَاأَيُّهَا الْكَافِرُونَ " ؟ قَالَ: بَلَى، قَالَ: رُبُعُ الْقُرْآنِ، قَالَ: أَلَيْسَ مَعَكَ " إِذَا زُلْزِلَتِ الْأَرْضُ " ؟ قَالَ: بَلَى، قَالَ: رُبُعُ الْقُرْآنِ، قَالَ: تَزَوَّجْ تَزَوَّجْ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. (2)

**ترجمه** دانس بن مالك رضي الله عنه نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم خپل يو صحابي ته اوفرمائيل اي فلان ايا واده دي كړي دي؟ هغه اووئيل په الله قسم اي دالله رسوله نه مي دي كړي او نه زما سره داسي څه شته چي واده ورباندي اوكړي شم رسول الله اوفرمائيل ايا تاسره قل هو الله احد نشته؟ هغه اووئيل ولي نه ما سره شته رسول الله اوفرمائيل قل هوالله احد په ثواب كي دقران د دريمي حصي دلوستلو سره برابر دي او بيا يي اوفرمائيل ايا تاسره

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٥٩٤٠)

[2] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٨٤٠)

سورة نصر نشته؟ هغه اووئيل ولي نه رسول الله اوفرمائيل دا سورة په ثواب كي دقران دڅلورمي حصي سره برابر دي او بيا يي اوفرمائيل ايا تاسره سورة الكافرون نشته هغه اووئيل ولي نه رسول الله اوفرمائيل دا سورة په ثواب كي دقران دڅلورمي حصي سره برابر دي بيا يي اوفرمائيل ايا تاسره سورة الزلزال نشته هغه اووئيل ولي نه رسول الله اوفرمائيل دا سورة په ثواب كي دقران دڅلورمي حصي سره برابر دي او واده اوكړه او واده اوكړه
امام ترمذي وايي. داحديث حسن دي

***************

## ١١ـ باب مَا جَاءَ فِي سُورَةِ الإِخْلاَصِ

### دسورة اخلاص فضيلت

د ابو الدرداء رضي الله عنه نه روايت دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي. ايا تاسو هره شپه ديوثلث قران لوستلو نه عاجز يئ؟ صحابه كرامو عرض وكړو چې هره شپه يوثلث قران لوستلو څوك طاقت لري؟ نو وئي فرمائيل چې قل هو الله احد لوستل په (ثواب كي) دقران ديوثلث لوستلو سره برابر دي(رواه مسلم).

دعائشه رضي الله عنها نه روايت دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم يوكس ديوي فوجي دستي سره وليږلو او دي كس به هميشه خپلو ملګرو ته په قل هوالله احد باندي مونځ وركولو ، پس كله چې دوئ واپس راغلل نو رسول الله صلي الله عليه وسلم ته يي ددي ذكر وكړو ، رسول الله او فرمائيل دهغه نه تپوس وكړئ چې داسي يي ولي كول؟ هغه په جواب كي ووئيل چې په دي سورت كي سراسر درحمن صفات دي ځكه يي زه بار بار لوستل خوښوم . رسول الله اوفرمائيل هغه ته اووايئ چې الله تعالي هم دده سره محبت لري(متفق عليه).

د انس رضي الله عنه نه روايت دي چې يوكس عرض وكړو اي دالله رسوله زما دذي سورت يعني قل هو الله احد سره ډير زيات محبت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل همدي عمل ته جنت ته رسولي يي (رواه الترمذي) بخاري هم ددي يو هم معني روايت نقل كري دي

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم ديوكس نه قل هوالله احد لوستل واوريدل نو ويي فرمائيل چې واجب شو ، عرض وكړي شو څه واجب شول؟ ورته يي اوفرمائيل جنت (رواه مالك والترمذي والنسايي).

د انس رضي الله عنه نه روايت دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي: څوك چې دپريوتلو په وخت په ښي اړخ څملي او سل پيري قل هو الله احد ولولي كله چې دقيامت ورځ

راشي نوپروردګار عالم به ده ته اوفرمائي اي زما بنده په خپل ښي اړخ جنت ته داخل شه (رواه الترمذي في سننه وقال حديث حسن غريب)

په يو روايت کي راغلي دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي. څوک چې سل پيري قل هو الله احد ولولي نو دده دپنځوسو کلونو ګناه معاف کړي شي مګر که په ده باندي دچا قرض وي.نو هغه نه معاف کيږي) رواه الترمذي والدارمي

په يو روايت کي دپنځوسو پيرو ذکر راغلي دي اود قرض استثناء پکي نه ده ذکر شوي .

دسعيد بن المسيب رحمة الله عليه نه يو مرسل روايت مروي دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي. څوك چې يولس پيري قل هو الله احد ولولي نو دده دپاره په جنت کي يومحل جوړ کړي شي او څوك چې يي شل پيري ولولي دده دپاره په جنت کي دوه کورونه جوړولي شي اوڅوك چې يي ديرش پيري ولولي دهغه دپاره به په جنت کي دري کورونه جوړيږي، ددي په اوريدو سره عمر رضي الله عرض وکړو اي دالله رسوله بيا خو به زمونږ کورونه ډير زيات وي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل دالله عطيات ددينه هم زيات وسيع دي، والله اعلم

٢٨٩٦ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، وَمُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، حَدَّثَنَا زَائِدَةُ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ هِلَالِ بْنِ يَسَافٍ، عَنْ رَبِيعِ بْنِ خُثَيْمٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مَيْمُونٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنِ امْرَأَةِ أَبِي أَيُّوبَ، عَنْ أَبِي أَيُّوبَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَيَعْجِزُ أَحَدُكُمْ أَنْ يَقْرَأَ فِي لَيْلَةٍ ثُلُثَ القُرْآنِ؟ مَنْ قَرَأَ اللَّهُ الوَاحِدُ الصَّمَدُ فَقَدْ قَرَأَ ثُلُثَ القُرْآنِ". وَفِي البَابِ، عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَقَتَادَةَ بْنِ النُّعْمَانِ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَأَنَسٍ، وَابْنِ عُمَرَ، وَأَبِي مَسْعُودٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَلَا نَعْرِفُ أَحَدًا رَوَى هَذَا الحَدِيثَ أَحْسَنَ مِنْ رِوَايَةِ زَائِدَةَ، وَتَابَعَهُ عَلَى رِوَايَتِهِ إِسْرَائِيلُ، وَالفُضَيْلُ بْنُ عِيَاضٍ، وَقَدْ رَوَى شُعْبَةُ وَغَيْرُ وَاحِدٍ مِنَ الثِّقَاتِ هَذَا الحَدِيثَ، عَنْ مَنْصُورٍ، وَاضْطَرَبُوا فِيهِ. (1)

**ترجمه** دابو ايوب انصاري رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي ايا په تاسو کي څوك ددي خبري نه هم عاجز شته چې په شپه کي دقران دريمه حصه اولولي او چاچې الله الواحد الصمد اولوستلو (يعني سورة اخلاص يي اولوستلو نو يقينا هغه دقران دريمه حصه اولوستله.

---

[1] ـ سنن النسائي/الافتتاح ٦٩ (تحفة الأشراف : ٣٥٠٢) . و مسند احمد (٥/٤١٩) . وسنن الدارمي/فضائل القرآن ٢٣

(٣٣٨٠)

امام ترمذي وايي داحديث حسن دي او مونږ ته هيڅوك نه دي معلوم چاچې دزانده دسند نه دا روايت په بهتر سند بيان كړي وي او دده په دي روايت كي دده متابعت اسرائيل، فضيل بن عياض كړي دي، شعبه او دده نه علاوه بعضي نورو راويانو داحديث دمنثور نه نقل كړي دي او دوئ ټول په دوئ كي په اضطراب كي مبتلا شوي دي، او په دي باب كي دابو الدرداء، او ابوسعيد خدري قتاده بن نعمان ، ابوهريره، انس، ابن عمر، او ابو مسعود رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

**************

٢٨٩٧ـحَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنِ ابْنِ حُنَيْنٍ مَوْلًى لِآلِ زَيْدِ بْنِ الْخَطَّابِ أَوْ مَوْلَى زَيْدِ بْنِ الْخَطَّابِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: أَقْبَلْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَسَمِعَ رَجُلًا يَقْرَأُ قُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ اللَّهُ الصَّمَدُ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " وَجَبَتْ. قُلْتُ: وَمَا وَجَبَتْ ؟ قَالَ: الْجَنَّةُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، وَابْنُ حُنَيْنٍ هُوَ عُبَيْدُ بْنُ حُنَيْنٍ.[1]

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه بيان دي فرماني چې زه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم سره راغلم او هلته يي ديو كس نه قل هوالله احد الله الصمد واوريدل رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمانيل واجب شو ما اوونيل څه واجب شو؟ ويي فرمانيل جنت واجب شو.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن غريب دي او مونږ دا حديث صرف دمالك بن انس په سند پيژنو.

**************

٢٨٩٨ـحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مَرْزُوقٍ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا حَاتِمُ بْنُ مَيْمُونٍ أَبُو سَهْلٍ، عَنْ ثَابِتٍ الْبُنَانِيِّ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " مَنْ قَرَأَ كُلَّ يَوْمٍ مِائَتَيْ مَرَّةٍ " قُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ " مُحِيَ عَنْهُ ذُنُوبُ خَمْسِينَ سَنَةً إِلَّا أَنْ يَكُونَ عَلَيْهِ دَيْنٌ".[2]

**ترجمه** دانس بن مالك رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي څوك چې هره ورځ دوه سوه ځلي قل هوالله احد لولي نو دقرض نه علاوه دپنځوسو كالو پوري ګناهونه به يي محوه شي

---

[1] ـ سنن النسائي/الافتتاح ٦٩ (٩٩٥) (تحفة الأشراف: ١٤١٢٤)، والموطأ: القرآن ٦ (١٨)، ومسند احمد (٢/٥٣٦)

[2] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٣٨١)

***************

وَبِهَذَا الإِسْنَادِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ أَرَادَ أَنْ يَنَامَ عَلَى فِرَاشِهِ فَنَامَ عَلَى يَمِينِهِ، ثُمَّ قَرَأَ "قُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ" مِائَةَ مَرَّةٍ فَإِذَا كَانَ يَوْمُ القِيَامَةِ يَقُولُ لَهُ الرَّبُّ تَبَارَكَ وَتَعَالَى يَا عَبْدِيَ ادْخُلْ عَلَى يَمِينِكَ الجَنَّةَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ مِنْ حَدِيثِ ثَابِتٍ، عَنْ أَنَسٍ، وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الحَدِيثُ مِنْ غَيْرِ هَذَا الوَجْهِ أَيْضًا عَنْ ثَابِتٍ. [1]

**ترجمه** : په مذكوره سند دا روايت هم دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه مروي دي چې فرمائيل يې څوك چې پخپله بستره پريوتل غواړي نو په ښي اړخ دي څملي او بيا دي قل هوالله احد سل پيري اولولي (ددي فائده به دا وي) كله چې دقيامت ورځ راشي الله تعالي به اوفرمائي اي زما بنده په ښي طرف باندي جنت ته داخل شه.

امام ترمذي وايي داحديث دثابت په سند دانس رضي الله عنه نه غريب دي او دا رنګي دا حديث ددي سند نه علاوه په نورو سندونو هم دثابت نه مروي دي.

***************

٢٨٩٩_حَدَّثَنَا العَبَّاسُ بْنُ مُحَمَّدٍ الدُّورِيُّ، حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ مَخْلَدٍ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ بِلَالٍ، حَدَّثَنَا سُهَيْلُ بْنُ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "قُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ "تَعْدِلُ ثُلُثَ القُرْآنِ". هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [2]

**ترجمه** : ابوهريره رضي الله عنه وائي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم دسورة قل هو الله احد په باره كې اوفرمائيل چې دا دقران ددريمى حصى برابر دى.

امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح دى

**لغات** . ثلث معني دريمه حصه .

**تشريح** : په دي روايت كې هم ددي خبري وضاحت دى چې سورة اخلاص داسرار او بلاغت او كمالاتو اواجر او ثواب په اعتبار سره دقران كريم د دريمي حصي سره برابر دى

پدي يو سوال وارديږي كله چې سورت اخلاص ثواب دقران د دريمي حصي سره برابر دى نو بيا كه دري خله سورة اخلاص اولوستلى شي نو پوره قران لوستلو ته څه ضرورت دى؟ بس همدا كافي دى كنه؟

---

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ٢٨١)

[2] _ سنن ابن ماجه/الأدب ٥٢ (٣٧٨٣) (تحفة الأشراف : ١٢٦٧١)

جواب. سورة اخلاص ته ثلث دقران ونيلى شوي وي دا دمضامينو په اعتبار سره او په همدي وجه چې خوك دا يوځل اولولي نو دقران د دريمي حصي ثواب ورته ملاويږي او چې په دريم ځل يې اولولي نو بيا هم ورته د دريمي حصي ثواب ملاويږي، هرځومره پيرې چې يې لولي په هره پيره به ورته دقران د دريمي حصي ثواب ملاويږي ځكه چې په قران شريف كې دري مضامين بيان شوي دي، اول قصص، دويم احكام، دريم دالله تعالي اوصاف او په سورة اخلاص كې صرف ديو مضمون بيان دى يعني دالله تعالي دصفاتو بيان

***************

۲۹۰۰ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ كَيْسَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو حَازِمٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " احْشُدُوا فَإِنِّي سَأَقْرَأُ عَلَيْكُمْ ثُلُثَ الْقُرْآنِ. قَالَ: فَحَشَدَ مَنْ حَشَدَ، ثُمَّ خَرَجَ نَبِيُّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَرَأَ " قُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ " ثُمَّ دَخَلَ. فَقَالَ بَعْضُنَا لِبَعْضٍ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: فَإِنِّي سَأَقْرَأُ عَلَيْكُمْ ثُلُثَ الْقُرْآنِ إِنِّي لَأَرَى هَذَا خَبَرًا جَاءَ مِنَ السَّمَاءِ، ثُمَّ خَرَجَ نَبِيُّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقَالَ: إِنِّي قُلْتُ: سَأَقْرَأُ عَلَيْكُمْ ثُلُثَ الْقُرْآنِ، أَلَا وَإِنَّهَا تَعْدِلُ ثُلُثَ الْقُرْآنِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَأَبُو حَازِمٍ الْأَشْجَعِيُّ اسْمُهُ سَلْمَانُ. (1)

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل تاسو ټول راټول شئ ځكه چې زه تاسوته دقران دريمه حصه لوستل غواړم چنانچې درسول الله صلي الله عليه وسلم په بلنه چې ځوك هم خبر شول هغوئ راجمع شول او بيا رسول الله بهر تشريف راوړو او قل هوالله احد يي اولوستلو او بيا خپلي هجري ته واپس داخل شو بعضي صحابه كرامو ګنګوسي شروع كړل رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل ډيره نزدي ده چې زه تاسو ته دقران دريمه حصه واوروم، زما خيال دي دا كار په دي وجه اوشو چې داسمان نه ورته كوم خبر راغي او بيا رسول الله صلي الله عليه وسلم دخپلي كمري نه خارج شو او ويي فرمائيل ما تاسو ته ونيلي وو چې تاسوته به دقران دريمه حصه اوروم نو واورئ هغه دا سورة دي قل هوالله احد دا سورة د قران د دريمي حصي سره برابر دي

امام ترمذي وايي داحديث په دي سند حسن صحيح غريب دي

***************

(1) ـ صحيح مسلم/المسافرين ۴۵ (۸۱۲) (تحفة الأشراف: ۱۳۴۲۱)، و مسند احمد (۲/۴۲۹)

٢٩٠١_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيل، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيل بْنُ أَبِي أُوَيْسٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ ثَابِتٍ الْبُنَانِيِّ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: كَانَ رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ يَؤُمُّهُمْ فِي مَسْجِدِ قُبَاءَ. فَكَانَ كُلَّمَا افْتَتَحَ سُورَةً يَقْرَأُ لَهُمْ فِي الصَّلَاةِ فَقَرَأَ بِهَا افْتَتَحَ بِ قُلْ هُوَ اللهُ أَحَدٌ حَتَّى يَفْرُغَ مِنْهَا، ثُمَّ يَقْرَأُ بِسُورَةٍ أُخْرَى مَعَهَا، وَكَانَ يَصْنَعُ ذَلِكَ فِي كُلِّ رَكْعَةٍ. فَكَلَّمَهُ أَصْحَابُهُ فَقَالُوا: إِنَّكَ تَقْرَأُ بِهَذِهِ السُّورَةِ ثُمَّ لَا تَرَى أَنَّهَا تُجْزِيكَ حَتَّى تَقْرَأَ بِسُورَةٍ أُخْرَى. فَإِمَّا أَنْ تَقْرَأَ بِهَا وَإِمَّا أَنْ تَدَعَهَا وَتَقْرَأَ بِسُورَةٍ أُخْرَى. قَالَ: مَا أَنَا بِتَارِكِهَا، إِنْ أَحْبَبْتُمْ أَنْ أَؤُمَّكُمْ بِهَا فَعَلْتُ، وَإِنْ كَرِهْتُمْ تَرَكْتُكُمْ. وَكَانُوا يَرَوْنَهُ أَفْضَلَهُمْ وَكَرِهُوا أَنْ يَؤُمَّهُمْ غَيْرُهُ. فَلَمَّا أَتَاهُمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَخْبَرُوهُ الْخَبَرَ فَقَالَ: "يَا فُلَانُ، مَا يَمْنَعُكَ مِمَّا يَأْمُرُ بِهِ أَصْحَابُكَ وَمَا يَحْمِلُكَ أَنْ تَقْرَأَ هَذِهِ السُّورَةَ فِي كُلِّ رَكْعَةٍ". فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ، إِنِّي أُحِبُّهَا. فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ حُبَّهَا أَدْخَلَكَ الْجَنَّةَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ صَحِيحٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ مِنْ حَدِيثِ عُبَيْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ ثَابِتٍ. (١)

**ترجمه** : دانس بن مالك رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چې ماپه مسجد قبا كي يو انصاري ته امامت وركولو او دهغه عادت دا وو چې كله به يي هم اراده كوله چې كوم سورة په مونځ كي اولولي نو همدا سورة به يي اولوستلو ليكن ددغه سورة نه به يي مخكي قل هوالله احد پوره لوستلو او بيا به يي ورسره يو بل سورة اولوستلو او هغه به دا عمل په هر ركعات كي كولو دمونځ ملګرو ورسره په دي باره كي خبري اوكړي نو هغه اووئيل ته دا سورة لولي نو ګني ستا دا خيال وي چې دا سورة كافي نه دي تردي پوري چې بيا ورسره يو بل سورة هم اولولي ستا دپاره پكار دي چې يا خو صرف همدا سورة اولولي او يا دا سورة پريږدي او كوم بل سورة اولولي (دواړو ته څه ضرورت دي) نو هغه اووئيل زه خو هرګز ددي پريخودونكي نه يم كه ستاسو خوښه وي چې زه دړته مونځ دركړم نو په همدي به درته امامت دركوم او كه تاسو يي نه خوښوئ نو زه به ستاسو امامت پريږدم، او دخلقو حال دا وو چې انس هغوئ دخان نه بهتر ګڼړلو او دا يي بده ګڼړله چې دهغه نه علاوه بل څوك امامت وركړي چنانچې كله رسول الله صلي الله عليه وسلم دوئ ته تشريف راوړو نو دوئ ورته ټوله واقعه بيان كړه رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل اي فلانيه ستاسو دا ملګري چې څه وائي په دي باندي دعمل كولو نه څه څيز تاسو لره منع كوي او ستاسو څه مجبوري ده چې په دي عمل نشئ كولي هغوئ

---

[1] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /الأذان ١٠٦(٧٧٤/مسلم)

اوونيل اي دالله رسوله مونږ ده لره خوښوو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل دده محبت به تاسو جنت ته داخل كړي

امام ترمذي وايي داحديث په دي سند حسن غريب صحيح دي او دا حديث دعبيدالله بن عمر په روايت چې دثابت نه يي نقل كوي مروي دي

*****************

وَرَوَى مُبَارَكُ بْنُ فَضَالَةَ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ رَجُلًا، قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنِّي أُحِبُّ هَذِهِ السُّورَةَ " قُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ " فَقَالَ: " إِنَّ حُبَّكَ إِيَّاهَا يُدْخِلُكَ الْجَنَّةَ ". حَدَّثَنَا بِذَلِكَ أَبُو دَاوُدَ سُلَيْمَانُ بْنُ الْأَشْعَثِ، حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ، حَدَّثَنَا مُبَارَكُ بْنُ فَضَالَةَ، بِهَذَا. (1)

**ترجمه** : مبارك بن فضاله دثابت په واسطه دانس رضي الله عنه نه روايت نقل كوي چې يو كس اوونيل اي دالله رسوله زما ددي سورة سره ډير محبت دي يعني قل هوالله احد سره رسول الله اوفرمائيل دي سورة سره ستا محبت به تالره جنت ته داخل كړي، ابو داود سليمان بن اشعث دابو الوليد په واسطه هم دمبارك بن فضاله نه دا روايت نقل كړي دي.

*****************

## ١٢_ بَاب مَا جَاءَ فِي الْمُعَوِّذَتَيْنِ

### دمعوذتينو دفضيلت بيان

كلبي دابوصالح په روايت دابن عباس رضي الله عنهما قول بيان كړي دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم سخت بيمار شو او په خوب كي ورته دوه فرشتي راغلي چې يوه يي سر ته اودريده او دويمه يي خپو ته دخپو والا سر والاته اوونيل په ده باندي څه شوي دي؟ سر والا اوونيل بيمار دي خپو والا اوونيل څه بيماري يي ده، سر والا اوونيل جادو ورباندي شوي دي، خپو والا اوونيل چا ورباندي كړي دي، سر والا اوونيل لبيد بن اعصم يهودي . خپو والا وونيل چرته يي كړي دي، او چې كوم جادو يي كړي دي هغه چرته دي، سر والا فرشتي اوونيل په يوه تسمه كي شوي دي كوم چې په كوهي كي يي دكاڼي لاندي ايخودلي شوي دي كوهي ته ورشه او تولي اوبه راوباسه او كاڼي به راپورته كړي او دكجوري پټ ورنه لري كړي او اوبه يي سوزوي كله چې سحر شو نو رسول الله صلي الله عليه وسلم عمار بن ياسر ديوڅو كسانو سره اوليږل دوئ چې كوهي ته ورغلل نو ويي ليدل چې دكوهي اوبه دنكريزو درنګ پشان سري شوي دي نو دوئ كاڼي اوچت كړو او دكجورو پټ يي راوويستلو او ويي سوزولو پدي

---

1 ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ٢٦٣/١)

كي يو تار اوموندلي شو چې يولس غوټې وركړي شوي وي نو پدي باره كي دا دواړه سورتونه قل اعوذ برب الفلق او قل اعوذ برب الناس نازل شو رسول الله صلي الله عليه وسلم چې به هر يو ايت لوستلو نو يوه غوټه به پرانيستلي كيدله (رواه البيهقي في دلائل النبوة).

ابو نعيم په دلائل كي دابو جعفر رازي په واسطه دانس رضي الله عنه قول بيان كړي دي چې يهوديانو په رسول الله صلي الله عليه وسلم څه كړي وو دكوم په وجه چې ورته سخت تكليف رسيدلي وو صحابه كرام چې يي عيادت ته ورغلل نو دا گمان يي اوكړو چې رسول الله صلي الله عليه وسلم بيمارشوي دي ليكن جبرائيل پدغه وخت كي مغوذتين نازل كړل او خان يي وړباندي دم كړو او تندرست شو او بيا صحابه كرامو ته تشريف فرما شو په صحيحينو كي ددي تائيدي شاهد د سورة دنزول نه علاوه هم موجود دي (يعني په دعا سره تعوذ جائز دي).

بغوي دعائشه او ابن عباس رضي الله عنهما قول نقل كړي دي چې يو يهودي هلك به درسول الله صلي الله عليه وسلم خدمت كولو يهوديانو ورته خفيه سفارش اوكړو او د خان سره يي په خبره كي شامل كړو او دده په ذريعه يي د رسول الله صلي الله عليه وسلم ويخته او دگمنز يو څو غابښونه حاصل كړل او بيايي وړباندي جادو اوكړو ، ددي كار ذمه وار لبيد بن اعصم يهودي وو نو پدي باره كي دا دواړه سورتونه نازل شوي دي.

بغوي پخپل سند سره دعائشه رضي الله عنها قول نقل كړي دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم بيمار شو او مخالفينو يي دا گمان اوكړو چې پس مونږ دده كار تمام كړو ليكن رسول الله صلي الله عليه وسلم دالله تعالي نه دعا غوښتل شروع كړل او بيايي اوفرمائيل ما چې دالله تعالي نه څه غوښتلي وو هغه يي راته اوخودل ما عرض اوكړو اي دالله رسوله هغه څه خبره ده؟ وې فرمائيل په خوب كي راته دوه كسان راغلي وو چې يو مي سر ته ولاړ وو او بل خپو ته يو بل ته اوونيل ده ته څه تكليف دي دويم اوونيل سحر وړباندي شوي دي اول تپوس اوكړو چا وړباندي كړي دي دويم اوونيل لبيد بن اعصم اولني اوونيل په څه شي يي كړي دي دويم اوونيل په گمنز او په ويختو او دكجورو په پټ اول اوونيل دا څيزونه چرته دي دويم ورته اوونيل دبني زريق په زروان كوهي كي.

دعائشه رضي الله عنها بيان دي چې ددي خوب بيانولو نه پس رسول الله صلي الله عليه وسلم مذكوره كوهي ته لاړو او واپس چې راغي نؤ وې فرمائيل په الله تعالي قسم ددي كوهي اوبه خو د نكريزو پشان وي او ددغه ځاي دكجورو وني داسي وي لكه دشيطانانو دسرونو پشان ما عرض اوكړو اي دالله رسوله بيا دي ولي راونه ويستل وې فرمائيل ماته خو الله تعالي شفا راكړي ده او مانه غوښتل چې په خلقو كي فتنه راپيدا كړم.

دبغوي بيان دي په يو روايت کي راغلي دي چې دا څيزونه په کوهي کي ديو کاڼي لاندي وو خلقو چې کاڼي پورته کړو نو دلاندي ورنه دکجوري پټ اوموندلي شو چې په هغي کي د رسول الله صلي الله عليه وسلم ويخته او دګمنز يو څو غاښونه موجود وو
بغوي پخپل سند سره ديزيد بن ارقم نه روايت نقل کړي دي چې په رسول الله صلي الله عليه وسلم يو يهودي جادو کړي وو دکوم په وجه چې رسول الله صلي الله عليه وسلم بيمار شوي وو جبرائيل راغي او ورته يي اووئيل چې يو يهودي درباندي جادو کړي دي او په يو تار کي يي يو څو غوټي اچولي دي، نو رسول الله صلي الله عليه وسلم علي رضي الله عنه لره اوليږلو اوهغه يي راوويستل څنګه چې به يي يوه بوه غوټه پرانيستله نو مرض به سپکيدو اخر دا چې رسول الله صلي الله عليه وسلم بالکل تندرست شو او پاڅيدو ګويا کي داسي ښکاريده لکه چې تړلي شوي زنګون يي پرانيستلي شئ لیکن ددي ذکر يي دغه يهودي ته اونکړو او نه يي دهغه په مخامخ څه اووئيل.
بيهقي په دلائل کي او ابن مردويه ددي روايت نسبت عائشه رضي الله عنها ته کړي دي چې يو يهودي په رسول الله صلي الله عليه وسلم جادو کړي وو چې په يو تار کي يي غوټي اچولي وي او تار يي په کوهي کي دکاڼي لاندي پټ ايخودلي وو رسول الله صلي الله عليه وسلم چې بيمار شو نو معوذتين نازل شو او جبرائيل ورته دسحر خاي اوخودو رسول الله صلي الله عليه وسلم علي رضي الله عنه اوليږلو نو هغه دا تار راوړو رسول الله صلي الله عليه وسلم وربانديدا دواړه سورتونه اولوستل څنګه چې به يي يو يو ايت لوستلو نو يوه يوه غوټه به پرانيستلي کيدله او مرض به يي رفتة رفتة سپکيدو.
په يو روايت کي راغلي دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم پدي مرض کي دشپږو مياشتو پوري کي مبتلا وو او دري شپي خو ورته ډير سخت تکليف وو ترديچې معوذتين نازل شو.
مسلم دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه روايت بيان کړي دي چې جبرائيل عليه السلام راغي او وېي وئيل اي محمد (صلي الله عليه وسلم) ايا بيمار يي؟ وېي فرمائيل هو، نو جبرائيل عليه السلام اووئيل دا کلمات وايه ": «بِاسْمِ اللهِ أَرْقِيكَ. مِنْ كُلِّ شَيْءٍ يُؤْذِيكَ، مِنْ شَرِّ كُلِّ نَفْسٍ أَوْ عَيْنِ حَاسِدٍ، اللهُ يَشْفِيكَ بِاسْمِ اللهِ أَرْقِيكَ»".

*****************

۲۹۰۲ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ أَبِي خَالِدٍ، أَخْبَرَنِي قَيْسُ بْنُ أَبِي حَازِمٍ، عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ الْجُهَنِيِّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ: " قَدْ أَنْزَلَ اللَّهُ عَلَيَّ آيَاتٍ لَمْ يُرَ مِثْلُهُنَّ قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ النَّاسِ إِلَى آخِرِ السُّورَةِ وَقُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ

إِلَى آخِرِ السُّورَةِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَأَبُو حَازِمٍ أَبُو قَيْسِ بْنِ حَازِمٍ يُسَمَّى عَبْدُ عَوْفٍ، وَقَدْ رَأَى النَّبِيَّ وَرَوَى عَنْهُ. [1]

**ترجمه** عقبه بن عامر رضي الله عنه راوي دى چې رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمايل چې تاسو ته څه پته شته چې نن شپه كوم ايتونه نازل شوي دي دهغې پشان به تاسو بالكل نه وي ليدلي يعني معوذتين ﴿ قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ ﴾ او ﴿ قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ النَّاسِ ﴾)).

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي او ابوحازم ابوقيس بن حازم دي چې نوم يې عبد عوف دي چې دنبي كريم صلي الله عليه وسلم سره يې ملاقات شوي دي او نقل دروايت يې ورنه كړي دي

**لغات** لم ير يري په اصل يرأي وو او ددي استعمال نادر كيږي اودمضارع صيغه دگمان په معني مجهوله اوريدلي شوي ده.

**تشريح** مثلهن قط : ددي پشان مطلب دادى چې ددي دوه سورتونو پشان بل سورة نشته چې په تمام سورت كې صرف دپناه طلب كولو ذكر وي او په همدي وجه دي سورتونو ته معوذتين ونيلى شي يعني پناه وركونكي يعني ددي په ذريعه پناه طلب كولى شي

### دعقبه بن عامر رضي الله عنه حالات

نوم عقبه كنيه ابوعمرو دپلار نوم عامر رسول الله صلي الله عليه وسلم چې كله مديني ته راغى نو عقبه په اسلام مشرف شو علامه ذهبي ليكلي دي چې عقبه فقيه او دكتاب الله قاري وو او دفرائضو ماهر او فصيح اللسان شاعر وو (تذكرة الحفاظ)

دقران كريم سره يې خصوصي مينه وه يوه نسخته دقران كريم يې پخپل لاس هم ليكلي وه (تهذيب التهذيب)

دنبي كريم صلي الله عليه وسلم ښه خدمت يې كرى دى په سفر كې به درسول الله سورلئ رابنكل دده متعلق وو لكه چې په روايتونو كې راځي كان صاحب بغلة رسول الله صلي الله عليه وسلم الشهباء.

دده دوفات دتاريخ باره كې مختلف اقوال مروي دي صحيح قول دادى چې په ۵۸هجري كې وفات شوى دى. او دده دمروياتو شمير ۵۵ دى چې يو په دي كې متفق عليه دى او يو په بخاري كې دى او اوه په مسلم كې دي (تهذيب الكمال)

---

[1] ـ صحيح مسلم/المسافرين ۴۶ (۸۱۴). سنن النسائي/الافتتاح ۳۶ (۹۵۵) (تحفة الأشراف : ۹۹۴۸). و مسند احمد (۱۵۲.۱۵۱.۱۵۰.۴/۱۴۴)

داكابرو صحابه كرامو نه نقل درروايت كوي ترديږي چې صرف ديو حديث اوريدو دپاره مصر ته دابوايوب انصاري سره دملاويدو دپاره تلى وو خو چې هغه يې واوريدو نو فورا واپس لاړو

****************

۲۹۰۳_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا ابْنُ لَهِيعَةَ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ رَبَاحٍ، عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ، قَالَ: "أَمَرَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ أَقْرَأَ بِالْمُعَوِّذَتَيْنِ فِي دُبُرِ كُلِّ صَلَاةٍ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. [1]

**ترجمه** دعقبه بن عامر رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم ماته حكم اوكړو چې زه به په هر مونځ پسې معوذتين لولم

امام ترمذي وايي: او دا حديث حسن غريب دي

****************

## ۱۳_بَاب مَا جَاءَ فِي فَضْلِ قَارِئِ الْقُرْآنِ

### دقران دلوستونكي دفضيلت بيان

۲۹۰٤_حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ الطَّيَالِسِيُّ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، وَهِشَامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ زُرَارَةَ بْنِ أَوْفَى، عَنْ سَعْدِ بْنِ هِشَامٍ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الَّذِي يَقْرَأُ الْقُرْآنَ وَهُوَ مَاهِرٌ بِهِ مَعَ السَّفَرَةِ الْكِرَامِ الْبَرَرَةِ، وَالَّذِي يَقْرَؤُهُ" قَالَ هِشَامٌ: "وَهُوَ شَدِيدٌ عَلَيْهِ". قَالَ شُعْبَةُ: "وَهُوَ عَلَيْهِ شَاقٌّ، فَلَهُ أَجْرَانِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [2]

**ترجمه** عائشه صديقه رضي الله عنها فرمائي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل چې مهارت سره دبنديدلو نه صفا قران لوستونكى به دمعززو اوفرمانبردارو فرشتو سره يوځاى وي او څوك چې په لوستلو كې انخلي او صفا لوستلو دپاره هغه ته مشقت

---

[1] ـ سنن ابي داود/ الصلاة ٣٦١ (١٥٢٣) . سنن النسائي/السهو ٨٠ (١٣٣٤) . سنن ابي داود/ الاستعاذة ١ (٥٤٣١) (تحفة الأشراف : ٩٩٢٠) . و مسند احمد (٤/٢٠١)

[2] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /تفسير ٧٩ (٤٩٣٧) . صحيح مسلم/المسافرين ٣٨ (٧٩٨) . سنن ابي داود/ الصلاة ٣٤٩ (١٤٥٤) . سنن ابن ماجه/الأدب ٥٢ (٣٧٧٩) (تحفة الأشراف : ١٦١٠٢) . و مسند احمد (٦/٤٨، ٩٤، ١١٠، ١٩٢) . وسنن الدارمي/فضائل القرآن ١١ (٣٣١١)

اوسختي مخی ته راځي هغه ته دوه چنده اجر ملاویږي.
امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي

**تشريح** ،ماهر به: يعني چې دقران ماهر وي مطلب دادی چې چاته قران ښه ياد وي اوتلاوت هم کوي.

مع السفرة الكرام البررة، يعني دهغه فرشتو سره به وي كومي چې نيكي كونكي دي دفرشتو نه مراد هغه فرشتي دي كومي چې دلوح محفوظ نه قران لره نقل كونكي دي يا هغه فرشتي مراد دي كومي چې دانسانانو عمل نامي ليكي مطلب دادی چې دقران ماهر دعظيمو فرشتو سره مشابهت لري كومي چې قران لره دلوح محفوظ نه نقل كوي نو دقيامت په ورځ به هم الله تعالي ماهر دقران لره دفرشتو ملګری اوګرځوي.

څوك چې په قران لوستلو كې انخلي يعني په مشقت سره يي لولي دده فضيلت دادی چې دده دپاره دوچنده ثواب دی يو ثواب دتلاوت كولو دی او دويم ثواب دمشقت برداشت كولو دی علماء وائي چې په انختلو سره دقران لوستونكی به دقران دماهر نه مخكې شي ماهر دقران ته د مخصوصو فرشتو سره دملګرتيا بشارت وركړی شوی دی خواصل مقصود دادی چې دانختو په وجه قران لوستل پري نږدي نو په دي وجه ده ته هم فضيلت اوروليّ شي

****************

٢٩٠٥ـ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا حَفْصُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ كَثِيرِ بْنِ زَاذَانَ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ ضَمْرَةَ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَنْ قَرَأَ الْقُرْآنَ وَاسْتَظْهَرَهُ فَأَحَلَّ حَلَالَهُ وَحَرَّمَ حَرَامَهُ أَدْخَلَهُ اللَّهُ بِهِ الْجَنَّةَ، وَشَفَّعَهُ فِي عَشْرَةٍ مِنْ أَهْلِ بَيْتِهِ كُلُّهُمْ قَدْ وَجَبَتْ لَهُ النَّارُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَلَيْسَ إِسْنَادُهُ بِصَحِيحٍ وَحَفْصُ بْنُ سُلَيْمَانَ يُضَعَّفُ فِي الْحَدِيثِ. (1)

**ترجمه** علي بن ابي طالب رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچې قران اولوستلو او پوره يي حفظ كړو او كوم څيز چې قران حلال كړي دي هغه يي حلال اوګڼړلو او كوم يي حرام كړي دي هغه يي حرام اوګڼړلو نو الله تعالي به ددي قران په ذريعه ده لره جنت ته داخل كړي او دده د خاندان دداسي لسو كسانو په باره كې به دده سفارش قبلوي په چاچې به جهنم واجب شوي وي

امام ترمذي وايي داحديث غريب دي مونږ دا صرف په همدي سند پيژنو او ددي سند صحيح نه دي، حفص بن سليمان په باب دحديث كي ضعيف گڼلي شوي دي.

***************

## ١٤_باب مَا جَاءَ فِي فَضْلِ الْقُرْآنِ

### دقران دفضيلت بيان

٢٩٠٦_حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، حَدَّثَنَا حُسَيْنُ بْنُ عَلِيٍّ الْجُعْفِيُّ، قَالَ: سَمِعْتُ حَمْزَةَ الزَّيَّاتَ، عَنْ أَبِي الْمُخْتَارِ الطَّائِيِّ، عَنِ ابْنِ أَخِي الْحَارِثِ الأَعْوَرِ، عَنِ الْحَارِثِ، قَالَ: مَرَرْتُ فِي الْمَسْجِدِ فَإِذَا النَّاسُ يَخُوضُونَ فِي الأَحَادِيثِ، فَدَخَلْتُ عَلَى عَلِيٍّ، فَقُلْتُ: يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ، أَلاَ تَرَى أَنَّ النَّاسَ قَدْ خَاضُوا فِي الأَحَادِيثِ، قَالَ: وَقَدْ فَعَلُوهَا؟، قُلْتُ: نَعَمْ. قَالَ: أَمَا إِنِّي قَدْ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "أَلاَ إِنَّهَا سَتَكُونُ فِتْنَةٌ، فَقُلْتُ: مَا الْمَخْرَجُ مِنْهَا يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ قَالَ: كِتَابُ اللَّهِ فِيهِ نَبَأُ مَا كَانَ قَبْلَكُمْ، وَخَبَرُ مَا بَعْدَكُمْ، وَحُكْمُ مَا بَيْنَكُمْ، وَهُوَ الْفَصْلُ لَيْسَ بِالْهَزْلِ، مَنْ تَرَكَهُ مِنْ جَبَّارٍ قَصَمَهُ اللَّهُ، وَمَنِ ابْتَغَى الْهُدَى فِي غَيْرِهِ أَضَلَّهُ اللَّهُ، وَهُوَ حَبْلُ اللَّهِ الْمَتِينُ، وَهُوَ الذِّكْرُ الْحَكِيمُ، وَهُوَ الصِّرَاطُ الْمُسْتَقِيمُ، هُوَ الَّذِي لاَ تَزِيغُ بِهِ الأَهْوَاءُ وَلاَ تَلْتَبِسُ بِهِ الأَلْسِنَةُ، وَلاَ يَشْبَعُ مِنْهُ الْعُلَمَاءُ وَلاَ يَخْلَقُ عَلَى كَثْرَةِ الرَّدِّ، وَلاَ تَنْقَضِي عَجَائِبُهُ، هُوَ الَّذِي لَمْ تَنْتَهِ الْجِنُّ إِذْ سَمِعَتْهُ حَتَّى قَالُوا: إِنَّا سَمِعْنَا قُرْآنًا عَجَبًا يَهْدِي إِلَى الرُّشْدِ، مَنْ قَالَ بِهِ صَدَقَ، وَمَنْ عَمِلَ بِهِ أُجِرَ، وَمَنْ حَكَمَ بِهِ عَدَلَ، وَمَنْ دَعَا إِلَيْهِ هَدَى إِلَى صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ" خُذْهَا إِلَيْكَ يَا أَعْوَرُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ لاَ نَعْرِفُهُ إِلاَّ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَإِسْنَادُهُ مَجْهُولٌ وَفِي الْحَارِثِ مَقَالٌ. [1]

**ترجمه** . دحارث بيان دي فرماني چې مسجد ته ورغلم اومي كتل چې خلق په گف شف او قصو كي مشغول دي نو زه علي رضي الله عنه ته ورغلم او ورته مي اووئيل اي اميرالمؤمنين ايا ته نه ويني چې خلق په بې فائدي خبرو كي مشغول دي؟ هغه اووئيل ايا واقعي هغوئ داسي كوي؟ ما اووئيل هو هغه اوفرمائيل مگر ما خو درسول الله صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي دي ډيره نزدي ده چې يوه فتنه پيدا شي ما عرض اوكړو ددينه به دبچ كيدو څه صورت وي اي دالله رسوله رسول الله اوفرمائيل دالله كتاب، په دي كي ستاسو نه دمخكنو خلقو او قومونو خبرونه دي او دراتلونكو خلقو خبرونه هم دي او ستاسو په مينځ كي دمعاملاتو فيصلي هم په

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٠٠٥٤)

دي کي موجود دي او هغه قطعي فيصله کونکي دي توقي او مذاق پکي نشته چاچې دسرکشۍ په وجه پريخودو الله تعالي به هغه لره مات کړي او څوك چې دي لره پريږدي او بل چرته هدايت لټوي الله تعالي به هغه لره ګمراه کړي او دا قران دالله تعالي مضبوطه رسۍ ده او دا دحکمت نه ډك ذکر دي او دا هغه نيغه لاره ده دکومي په وجه چې خواهشونه اخوا دېخوا نه بې لاري کيږي او دکومي په وجه چې ژبي نه مضطرب کيږي ددي په وئيلو څوك نه مړيږي او ددي په بار بار وئيلو څوك نه ستړي کيږي او ددي عجائبات نه ختميږي او دا هغه کتاب دي چې څوك يې واوري نو خاموش پاتي کيدي نشي بلکه اواز به پورته کوي (لکه چې جناتو وئيل يقينا مونږ يو نا اشنا قران اوريدلي دي چې دنيکۍ طرف ته رهنمائي کوي مونږ وربانذي ايمان راوړي دي څوك چې ددي مطابق وينا کوي هغه به دهغې مطابق اجراو ثواب حاصلوي او چاچې ددي مطابق فيصله اوکړه هغه انصاف اوکړو او چاچې دي طرف ته دعوت ورکړو هغه دنيغي لاري رهنمائي اوکړه، اي اعور دنيکو خبرو خيال ساته.

امام ترمذي وايي: دا حديث غريب دي دا مونږ ته صرف په همدي سند رارسيدلي دي، او ددي سند مجهول دي حارث يو متکلم فيه راوي دي.

***************

## ١٥_بَاب مَا جَاءَ فِي تَعْلِيمِ الْقُرْآنِ

### دقران دعلم حاصلولو دفضيلت بيان

**٢٩٠٧_حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، أَنْبَأَنَا شُعْبَةُ، أَخْبَرَنِي عَلْقَمَةُ بْنُ مَرْثَدٍ، قَالَ: سَمِعْتُ سَعْدَ بْنَ عُبَيْدَةَ يُحَدِّثُ، عَنْ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " خَيْرُكُمْ مَنْ تَعَلَّمَ الْقُرْآنَ وَعَلَّمَهُ ". قَالَ أَبُو عَبْدِ الرَّحْمَنِ: فَذَاكَ الَّذِي أَقْعَدَنِي مَقْعَدِي هَذَا، وَعَلَّمَ الْقُرْآنَ فِي زَمَنِ عُثْمَانَ حَتَّى بَلَغَ الْحَجَّاجَ بْنَ يُوسُفَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.** [1]

**ترجمه**: اميرالمؤمنين عثمان غني رضي الله عنه فرمائي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل چې په تاسو کې بهترين سړی هغه دی چې په خپله هم دقران تعليم حاصل کړي او نورو ته هم ددې تعليم ورکړي ابو عبد الرحمن وايي داد هغه کوشش نتيجه ده چې زه يې نن ورځ دلته کينولی يم، راوي وايي چې ابو عبد الرحمن د عثمان رضي الله عنه په زمانه کې د

---

[1] _ اورده البخاري في الجامع الصحيح /فضائل القرآن ٢١ (٥٠٢٧) ، سنن ابي داود/ الصلاة ٣٤٩ (١٤٥٢) ، سنن ابن ماجه/المقدمة ١٦ (٢١١) (تحفة الأشراف : ٩٨١٣)

قران علم حاصل کړي وو ترڅو چې حجاج بن يوسف ته یي ورسولو.
امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي.
**لغات** خيركم خار يخير خيرا صاحب خير كيدل. جمع يي خيور راخي خير داسم تفضيل صيغه ده د اخير نه مخفف دي
**تشريح** دلته مراد قراني علوم زده کول دي علماء واني دقيامت په ورځ به دعرش دسوري لاندې هغه کسان وي څوك چې خلقو ته دقران تعليم ورکوي يعني څوك چې په دي غور او فكر کوي اوددي معاني او حقائق زده کوي او نورو ته يي بيانوي دا هر څه په دي وجه بهتر دي چې قران مجيد په ټولو کتابونو فوقيت لري نو ددي زده کونکي او خودونکي به هم په نور مخلوق فوقيت لري علماء واني په پورتني حديث کې وعلمه دواو سره هم راخي مطلب دادی چې قران زده کړي او بيايي نوروته اوښايي دده عمل به دنورو ټولو عملونونه اعلي او افضل وي ليکن په بعضو روايتونو کې او لفظ هم راغلی دی مطلب به دا وي چې بهتري او فضيلت به عام وي زده کونکي دپاره به وي او دخودونکو دپاره به هم وي دټولو دپاره به دمستقل خير او بهتری په شکل کې وي دقيامت په ورځ به دعرش دسوري دلاندي وي څوك چې خلقو ته دقران كريم تعليم ورکوي.

***************

٢٩٠٨ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ. حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ السَّرِيِّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ. عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ مَرْثَدٍ. عَنْ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ السُّلَمِيِّ. عَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ. قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " خَيْرُكُمْ أَوْ أَفْضَلُكُمْ مَنْ تَعَلَّمَ الْقُرْآنَ وَعَلَّمَهُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. هَكَذَا رَوَى عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ. عَنْ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ. عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ مَرْثَدٍ. عَنْ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ. عَنْ عُثْمَانَ. عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَسُفْيَانُ لَا يَذْكُرُ فِيهِ عَنْ سَعْدِ بْنِ عُبَيْدَةَ. وَقَدْ رَوَى يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ الْقَطَّانُ هَذَا الْحَدِيثَ عَنْ سُفْيَانَ، وَشُعْبَةَ. عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ مَرْثَدٍ. عَنْ سَعْدِ بْنِ عُبَيْدَةَ. عَنْ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ. عَنْ عُثْمَانَ. عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. (1)

**ترجمه** امير المؤمنين عثمان غني رضي الله عنه فرماني چې رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمانيل چې په تاسو کې بهترين يا افضل سړی هغه دی چې په خپله هم دقران تعليم حاصل

---

1 ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /فضائل القرآن ٢١ (٥٠٢٧) . سنن ابي داود/ الصلاة ٣٤٩ (١٤٥٢) . سنن ابن ماجه/المقدمة ١٦ (٢١١) (تحفة الأشراف: ٩٨١٣)

کړي او نورو ته هم ددی تعلیم ورکړي.
امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي، عبدالرحمن بن مهدي او بعضي نورو دماقبل پشان په سند دسفيان ثوري عن علقمه بن مرثد عن ابي عبدالرحمن عن عثمان عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل کړي دي، سفيان ددي په سند کي سعد بن عبيده نه ذکرکوي، او يحي بن سعيد القطان دا حديث په سند دسفيان او شعبه عن علقمه بن مرثد عن سعد بن عبيدة عن ابي عبدالرحمن عن عثمان عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل کړي دي.

****************

حَدَّثَنَا بِذَلِكَ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ سُفْيَانَ، وَشُعْبَةَ. قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ: وَهَكَذَا ذَكَرَهُ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ سُفْيَانَ، وَشُعْبَةَ غير مرة، عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ مَرْثَدٍ، عَنْ سَعْدِ بْنِ عُبَيْدَةَ، عَنْ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ عُثْمَانَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، وَأَصْحَابُ سُفْيَانَ لَا يَذْكُرُونَ فِيهِ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ سَعْدِ بْنِ عُبَيْدَةَ. قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ. وَهُوَ أَصَحُّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَقَدْ زَادَ شُعْبَةُ فِي إِسْنَادِ هَذَا الحَدِيثِ سَعْدَ بْنَ عُبَيْدَةَ. وَكَأَنَّ حَدِيثَ سُفْيَانَ أَصَحُّ. قَالَ عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ. قَالَ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ: مَا أَحَدٌ يَعْدِلُ عِنْدِي شُعْبَةَ. وَإِذَا خَالَفَهُ سُفْيَانُ أَخَذْتُ بِقَوْلِ سُفْيَانَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: سَمِعْتُ أَبَا عَمَّارٍ يَذْكُرُ، عَنْ وَكِيعٍ. قَالَ: قَالَ شُعْبَةُ: سُفْيَانُ أَحْفَظُ مِنِّي، وَمَا حَدَّثَنِي سُفْيَانُ عَنْ أَحَدٍ بِشَيْءٍ فَسَأَلْتُهُ إِلَّا وَجَدْتُهُ كَمَا حَدَّثَنِي، وَفِي البَابِ. عَنْ عَلِيٍّ وَسَعْدٍ. [1]

**ترجمه** . دا روايت مونږ ته محمد بن بشار هم ديحي نه نقل کړي دي او يحي دسفيان او شعبه په واسطه دماقبل مطابق.د ابو عبدالرحمن دعثمان رضي الله عنه په واسطه هم دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه دماقبل هم معني روايت نقل کړي دي، محمد بن بشار او دسفيان نور شاګردان په دي کي دسفيان واسطه نه ذکر کوي دارنګي دا روايت سفيان دسعد بن عبيده په واسطه هم ذکر کړي دي محمد بن بشار وائي داصحيح ترين سند دي
امام ترمذي وايي: او شعبه ددي حديث په سند کي دسعد بن عبيده اضافه کړي ده مګر دسفيان سند زيات صحيح دي، علي بن عبدالله ديحي بن سعيد قول نقل کوي چي فرمائيل

[1] اورده البخاري في الجامع الصحيح /فضائل القرآن ٢١ (٥٠٢٧) . سنن ابي داود/ الصلاة ٣٤٩ (١٤٥٢) . سنن ابن ماجه/المقدمة ١٦ (٢١١) (تحفة الأشراف : ٩٨١٣)

بي زما په نزد د شعبه سره هيڅوك برابر نه دي مګر كله چې شعبه دسفيان خلاف اوكړي نو زه به دسفيان قول اخلم امام ترمذي وائي دابو عماره نه مي اوريدلي دي چې دوكيع نه يي ذكر كولو چې دشعبه قول دي سفيان زما نه زيات حافظ دي او سفيان چرته ماته دچانه حديث نه دي بيان كړي مګرواقعي يي صحيح صحيح بيان كړي وي څنګه چې وي، او په دي باب كي دعلي او سعد رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي.

***************

٢٩٠٩ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ بْنُ زِيَادٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "خَيْرُكُمْ مَنْ تَعَلَّمَ الْقُرْآنَ وَعَلَّمَهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا حَدِيثٌ لَا نَعْرِفُهُ مِنْ حَدِيثِ عَلِيٍّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ إِسْحَاقَ. ([1])

**ترجمه** : اميرالمؤمنين علي بن ابي طالب رضي الله عنه فرمائي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل چې په تاسو كې بهترين سړى هغه دى چې په خپله هم دقران تعليم حاصل كړي او نورو ته هم ددى تعليم وركړي.

امام ترمذي وايي: دا حديث مونږ ته صرف په همدي سند دعلي رضي الله عنه په واسطه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه راراسيدلي دي په واسطه دعبدالرحمن بن اسحاق.

***************

## ١٦ـ باب مَا جَاءَ فِيمَنْ قَرَأَ حَرْفًا مِنَ الْقُرْآنِ مَا لَهُ مِنَ الأَجْرِ

### دقران ديو حرف دلوستلو داجر بيان

٢٩١٠ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرٍ الْحَنَفِيُّ، حَدَّثَنَا الضَّحَّاكُ بْنُ عُثْمَانَ، عَنْ أَيُّوبَ بْنِ مُوسَى، قَالَ: سَمِعْتُ مُحَمَّدَ بْنَ كَعْبٍ الْقُرَظِيَّ، قَالَ: سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ مَسْعُودٍ، يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ قَرَأَ حَرْفًا مِنْ كِتَابِ اللَّهِ فَلَهُ بِهِ حَسَنَةٌ، وَالْحَسَنَةُ بِعَشْرِ أَمْثَالِهَا، لَا أَقُولُ الم حَرْفٌ، وَلَكِنْ أَلِفٌ حَرْفٌ وَلَامٌ حَرْفٌ وَمِيمٌ حَرْفٌ" وَيُرْوَى هَذَا الْحَدِيثُ مِنْ غَيْرِ هَذَا الْوَجْهِ، عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، وَرَوَاهُ أَبُو الأَحْوَصِ، عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، رَفَعَهُ بَعْضُهُمْ وَوَقَفَهُ بَعْضُهُمْ، عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، سَمِعْت قُتَيْبَةَ بْنَ

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٠٢٩٩)

سَعِيدٍ، يَقُولُ: بَلَغَنِي أَنَّ مُحَمَّدَ بْنَ كَعْبٍ الْقُرَظِيَّ وُلِدَ فِي حَيَاةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَمُحَمَّدُ بْنُ كَعْبٍ يُكْنَى أَبَا حَمْزَةَ. (1)

**ترجمه** عبدالله بن مسعود رضي الله عنه بيان كوي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل چې څوك دقران يو حرف لولي نو هغه ته يوه نيكي ملاويږي چې دلسو نيكو برابر به وي زه دا نه وايم چې الم يو حرف دى بلكه الف يو حرف دى لام يو حرف دى او ميم يو حرف دى ،گويا الم د درى حرفونو مجموعه ده چې دى باندى ديرش نيكۍ ملاويږي.

امام ترمذي وايي داحديث دابن مسعود نه ددي سند نه علاوه په نورو سندونو هم مروي دي او دا حديث ابوالاحوث هم د ابن مسعود رضي الله عنه نه نقل كړي دي بعضي راويانو مرفوع بيان كړي دي او بعضو دابن مسعود موقوف كړي دي او دا حديث په دي سند حسن صحيح غريب دي دقتيبه بن سعد نه مي اوريدلي دي وئيل يې چې ماته دا خبر رارسيدلي دي چې محمد بن كعب قرظي دنبي كريم صلي الله عليه وسلم په زندگۍ كي پيداشوي دي او دده اسم كنيه ابوحمزه وه

**لغات** حسنة : نيكي جمع حسنات راځي ، احسن او حسَن او حِسُن خائسته كيدل، صفت يې حسن راځي جمع يې حِسان او حُسان ده مونث يې حسنة او حسناء اوحسنات راځي.

**تشريح** : فله حسنة والحسنة بعشر امثالها: دقران كريم ديو حرف په عوض كې يوه نيكي ده او ديوي نيكۍ بدله دلسو نيكو سره برابر ده همدا مضمون په قران كريم كې هم راغلى دى من جاء بالحسنة فله عشر امثالها ، څوك چې يوه نيكي راوړي هغه ته به دلسو نيكو په مقدار ثواب وركړى شي او دا دټولو نه كمه درجه ده يو بل قراني ارشاد دى والله يضاعف لمن يشاء يعني الله تعالي ډبل كوي دچا دپاره چې اوغواري ثواب لره په پورتني حديث كې الف لام ميم باره كې وئيلى شوي دي چې دايوحرف نه دى بلكه الف ، لام، ميم، جدا جدا شميرلى شوي وي او په دي باندي ديرشت نيكۍ ملاويږي همدا رنگې په يو روايت كې راځي چې بسم الله هم يو حرف نه دى بلكه ب سين ميم جدا جدا حروف دي

****************

## ١٧_باب مِنْهُ

### دسابقه باب متعلق يوبل باب

٢٩١١_حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا أَبُو النَّضْرِ، حَدَّثَنَا بَكْرُ بْنُ خُنَيْسٍ، عَنْ لَيْثِ بْنِ أَبِي سُلَيْمٍ،

---

1_ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ٩٥٢٤)

عَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْطَاةَ، عَنْ أَبِي أُمَامَةَ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَا أَذِنَ اللَّهُ لِعَبْدٍ فِي شَيْءٍ أَفْضَلَ مِنْ رَكْعَتَيْنِ يُصَلِّيهِمَا، وَإِنَّ الْبِرَّ لَيُذَرُّ عَلَى رَأْسِ الْعَبْدِ مَا دَامَ فِي صَلَاتِهِ، وَمَا تَقَرَّبَ الْعِبَادُ إِلَى اللَّهِ بِمِثْلِ مَا خَرَجَ مِنْهُ ". قَالَ أَبُو النَّضْرِ: يَعْنِي الْقُرْآنَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَبَكْرُ بْنُ خُنَيْسٍ قَدْ تَكَلَّمَ فِيهِ ابْنُ الْمُبَارَكِ وَتَرَكَهُ فِي آخِرِ أَمْرِهِ، وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ عَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْطَاةَ، عَنْ جُبَيْرِ بْنِ نُفَيْرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرْسَلٌ. ([1])

**ترجمه** : دابو امامه رضي الله عنه بيان دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي الله تعالي د كوم بنده خبره په دومره كامله توجه نه اوري څومره چې د دوه ركعاتونو اداء كونكي بنده خبره اوري او بنده چې څو پوري په مونځ كي مشغول وي دهغه په سر دنيكو باران كيږي او بنده الله تعالي ته په بل څيز دومره نه نزدي كيږي څومره چې په هغه څيز نزدي كيږي كوم چې دهغه دذات نه وتلي وي، ابو نضر وائي رسول الله به ددي قول نه قران مراد كولو
امام ترمذي وايي: داحديث حسن غريب دي او دا مونږ ته صرف په همدي سند رارسيدلي دي دبكر بن خنيس باره كي ابن مبارك وائي چې دا متكلم فيه راوي دي او دهغه په اخر عمر كي دهغه دضعيف كيدو په وجه دهغه نه روايت كول پريخودلي شوي دي دا حديث دزيد بن ارطات په واسطه دجبير بن نفير نه مروي دي او هغه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه په مرسل سند نقل كړي دي.

***************

٢٩١٢ـ حَدَّثَنَا بِذَلِكَ إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، عَنْ مُعَاوِيَةَ، عَنِ الْعَلَاءِ بْنِ الْحَارِثِ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْطَاةَ، عَنْ جُبَيْرِ بْنِ نُفَيْرٍ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِنَّكُمْ لَنْ تَرْجِعُوا إِلَى اللَّهِ بِأَفْضَلَ مِمَّا خَرَجَ مِنْهُ ". يَعْنِي الْقُرْآنَ. ([2])

**ترجمه** دجبير بن نفير بيان دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي تاسو الله تعالي ته درجوع كولو دپاره دقران نه زياته بله كومه ذريعه نشئ موندلي

***************

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٤٨٦٢) . وانظر مسند احمد (٥/٢٦٨)

[2] ـ سنن ابي داود/ المراسيل (١٠٣) (تحفة الأشراف: ١٨٤٧١)

## ١٨_باب مِنْهُ

### دسابقه باب متعلق یو بل باب

٢٩١٣_حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ قَابُوسَ بْنِ أَبِي ظَبْيَانَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ الَّذِي لَيْسَ فِي جَوْفِهِ شَيْءٌ مِنَ الْقُرْآنِ كَالْبَيْتِ الْخَرِبِ". قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (١)

**ترجمه** عبدالله بن عباس رضي الله عنهما بيان كوي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل چې دچا په سينه کې دقران کريم نه څه حصه هم نه وي هغه داسې دی لکه وران کنډر.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي.

**لغات** : الجوف: خيټه جمع يې اجواف راځي ، من البيت: اندروني حصه، الخرب. دسمع نه خربا وخرابا ورانيدل صفت خرب راځي اومونث يې خربة راځي.

**تشريح** يعني دچا زړه چې دقران نه خالي وي نو دا زړه دوران کور پشان دی دکور رونق په اوسيدونکو سره کيږي کور که هر څومره ښکلی او لوی وي ليکن چې اوسيدونکي پکې نه وي نو ددې هيڅ حيثيت نه وي نو همدا رنګې معامله دانسان هم ده چې که زړه يې د ايمان او قران دنور نه خالي وي نو بيا هيڅ اهميت نه لري.

*****************

٢٩١٤_حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ الْحَفَرِيُّ، وَأَبُو نُعَيْمٍ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ أَبِي النَّجُودِ، عَنْ زِرٍّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "يُقَالُ لِصَاحِبِ الْقُرْآنِ: اقْرَأْ وَارْتَقِ وَرَتِّلْ كَمَا كُنْتَ تُرَتِّلُ فِي الدُّنْيَا، فَإِنَّ مَنْزِلَتَكَ عِنْدَ آخِرِ آيَةٍ تَقْرَأُ بِهَا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.

حَدَّثَنَا بُنْدَارٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ عَاصِمٍ، بِهَذَا الْإِسْنَادِ نَحْوَهُ. (٢)

**ترجمه** : عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما راوي دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل چې قران لوستونکي مسلمان ته به دقيامت په ورځ اووئيلی شي چې لوله

---

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٥٤٠٢)

[2] _ سنن ابي داود/ الصلاة ٣٥٥ (١٤٦٤) (تحفة الأشراف: ٨٦٢٤)، ومسند احمد (٢/١٩٢)

(اودجنت په درجوباندي) خيژه او په دنيا کې دي چې څنګه په ترتيل سره (په قلاره قلاره) لوستلو اوس يې هم هغسې لوله (چې ډيرې درجې طې کړې شي) ځکه چې په جنت کې ستا اخري کور هغه دی چرته چې ته اخري ايت ختم کړې ، ابو داود او ترمذي دا روايت کړی دی او وئيلي يې دي چې دا حديث حسن صحيح دی .

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي.

**لغات** : ارتق: ارتقا يرتقي ارتقاء وترقي وترقيا معني ختل ، رتل: خبروته ښه ترتيب ورکول، يا قران خائسته لوستل صفت يې رتّل راځي .

**تشريح** : په دې روايت کې دصاحب القران نه مراد حافظ القران دی يادې مطلب دادی چې څوك هميشه قران لره په اهتمام سره لولي.

ملا علي قاري وايي چې ددينه هغه لوستونکي مراد ندي په چاچې قران لعنت وائي مثلا الالعنة الله علي الظالمين: او پخپل دظالم کيدو په وجه په دې وعيد کې داخل دی او همدا رنګې لعنة الله علي الکاذبين او پخپله د دروغژن کيدو په وجه ددې مستحق وي.

اقراء وارتق: لوله او خيژه، يعني څومره ايتونه چې دی اولولي نو دومره درجې به يې په جنت کې لوړې شي دبعضو روايتونو نه معلوميږي چې دجنت درجې دقران دايتونو برابر دي څوك چې څومره لوستلي شي دومره به اوچتيږي مولا علي قاري وائي چې دقران دلوستونکي د درجو نه نورې پورته درجې نشته.

ورتل : په وقفي وقفي سره لوله مطلب دادی چې دقران په لوستو کې دلهجې او سکون او وقار خيال ساته ددې تائيد دام سلمه رضي الله عنها دروايت نه کيږي فرمائي چې دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه چا تپوس اوکړو چې تاسو قران څرنګه لوستلو ورته يې اوفرمائيل چې ټول حرکتونه به مې ادا کول يعني زير اوزور وغيره او هر يو حرف به جدا جدا وو

***************

٢٩١٥_حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ بْنُ عَبْدِ الوَارِثِ، أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَاصِمٍ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "يَجِيءُ القُرْآنُ يَوْمَ القِيَامَةِ فَيَقُولُ: يَا رَبِّ حَلِّهِ، فَيُلْبَسُ تَاجَ الكَرَامَةِ، ثُمَّ يَقُولُ: يَا رَبِّ زِدْهُ، فَيُلْبَسُ حُلَّةَ الكَرَامَةِ، ثُمَّ يَقُولُ: يَا رَبِّ ارْضَ عَنْهُ، فَيَرْضَى عَنْهُ، فَيُقَالُ لَهُ: اقْرَأْ وَارْقَ، وَتُزَادُ بِكُلِّ آيَةٍ حَسَنَةً". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (1)

---

[1] ــ مسند احمد (٢/٤٧١) . وسنن الدارمي/فضائل القرآن (٣٣٢١)

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي دقيامت په ورځ به قران الله تعالي ته پيش كړي شي او عرض به اوكړي اي زما ربه صاحب قران ته جوړه واغوندوه نو دې ته به دعزت او شرافت تاج واغوستولي شي بيا به عرض اوكړي اي زما ربه نوري ورته وركړه نو ده ته به دعزت جوړه واغوستلي شي بيا به اوفرمائي اي زما ربه دده نه راضي شه نو الله تعالي به دهغه نه راضي شي او صاحب قران ته به اوونيلي شي قران لوله او پورته خيژه ستا دپاره به دهر ايت سره يوه نيكي زياتولي شي.
امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي.

*****************

حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ بَهْدَلَةَ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ نَحْوَهُ وَلَمْ يَرْفَعْهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ عَبْدِ الصَّمَدِ عَنْ شُعْبَةَ.[1]

**ترجمه** : عاصم بن بهدله هم دابوصالح په واسطه دابوهريره رضي الله عنه نه دماقبل هم معني روايت نقل كړي دي او مرفوع يي نه دي بيان كړي.
امام ترمذي وايي: داحديث دعبدالصمد عن شعبه دحديث نه زيات صحيح دي

*****************

## ١٩_باب مِنْهُ

### دسابقه باب متعلق يوبل باب

٢٩١٦_حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ بْنُ الْحَكَمِ الْوَرَّاقُ الْبَغْدَادِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَجِيدِ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنِ الْمُطَّلِبِ بْنِ حَنْطَبٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " عُرِضَتْ عَلَيَّ أُجُورُ أُمَّتِي حَتَّى الْقَذَاةُ يُخْرِجُهَا الرَّجُلُ مِنَ الْمَسْجِدِ، وَعُرِضَتْ عَلَيَّ ذُنُوبُ أُمَّتِي فَلَمْ أَرَ ذَنْبًا أَعْظَمَ مِنْ سُورَةٍ مِنَ الْقُرْآنِ أَوْ آيَةٍ أُوتِيهَا رَجُلٌ ثُمَّ نَسِيَهَا ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. قَالَ: وَذَاكَرْتُ بِهِ مُحَمَّدَ بْنَ إِسْمَاعِيلَ، فَلَمْ يَعْرِفْهُ وَاسْتَغْرَبَهُ. قَالَ مُحَمَّدٌ: وَلَا أَعْرِفُ لِلْمُطَّلِبِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ حَنْطَبٍ سَمَاعًا مِنْ أَحَدٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَّا قَوْلَهُ: حَدَّثَنِي مَنْ شَهِدَ خُطْبَةَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ:

---

[1] _ مسند احمد(٢/٤٧١) . وسنن الدارمي/فضائل القرآن(٣٣٢٩)

وَسَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، يَقُولُ: لَا نَعْرِفُ لِلْمُطَّلِبِ سَمَاعًا مِنْ أَحَدٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ عَبْدُ اللَّهِ: وَأَنْكَرَ عَلِيُّ بْنُ الْمَدِينِيِّ أَنْ يَكُونَ الْمُطَّلِبُ سَمِعَ مِنْ أَنَسٍ. (1)

**ترجمه** دانس رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي زما دامت دنيكو عملونو ثوابونه ماته پيش كړي شول تردي پوري چې دهغه بوس دډكې ثواب هم ماته پيش كړي شو چې يو بنده يي دمسجد نه بهر اوغورځوي ، او ماته زما دامت گناهونه هم پيش كړي شول نو ما هيڅ يوه گناه ددينه زياته لويه اونه ليدله چې چاته دقران كوم سورت يا كوم ايت ياد وي او دا هغه هير كړي وي.

امام ترمذي وايي: داحديث غريب دي داحديث مونږ ته صرف په همدي سند معلوم دي ما امام بخاري ته ددي حديث ذكر اوكړو نو هغه ته ددي باره كي علم نه وو او غريب يي اوگڼړلو امام بخاري دا هم اوونيل ماته نه ده معلومه چې مطلب بن عبدالله دكوم صحابي نه اوريدل كړي وي مگر علاوه دمطلب دهغه قول نه كوم چې ماته دهغه كس نه رارسيدلي دي څوك چې درسول الله په حاضرينو كي موجود وو، ما د عبدالله بن عبدالرحمن دارمي نه اوريدلي دي چې دكوم صحابي نه دمطلب سماع باره كي مونږ ته علم نشته عبدالله بن عبدالرحمن دارمي وائي علي بن مديني ددي خبري نه انكار كولو چې مطلب دانس نه سماع كړي ده.

****************

## ٢٠_باب مِنْهُ

### دسابقه باب متعلق يو بل باب

٢٩١٧_حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو أَحْمَدَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ خَيْثَمَةَ، عَنِ الحَسَنِ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، أَنَّهُ مَرَّ عَلَى قَاصٍّ يَقْرَأُ، ثُمَّ سَأَلَ فَاسْتَرْجَعَ، ثُمَّ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: " مَنْ قَرَأَ القُرْآنَ فَلْيَسْأَلِ اللَّهَ بِهِ فَإِنَّهُ سَيَجِيءُ أَقْوَامٌ يَقْرَءُونَ القُرْآنَ يَسْأَلُونَ بِهِ النَّاسَ ". وَقَالَ مَحْمُودٌ: وَهَذَا خَيْثَمَةُ البَصْرِيُّ الَّذِي رَوَى عَنْهُ جَابِرٌ الجُعْفِيُّ، وَلَيْسَ هُوَ خَيْثَمَةَ بْنَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، وَخَيْثَمَةُ هَذَا شَيْخٌ بَصْرِيٌّ يُكْنَى أَبَا نَصْرٍ قَدْ رَوَى عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ أَحَادِيثَ، وَقَدْ رَوَى جَابِرٌ الجُعْفِيُّ عَنْ خَيْثَمَةَ هَذَا أَيْضًا أَحَادِيثَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ لَيْسَ إِسْنَادُهُ بِذَاكَ. (2)

---

1 ـ سنن ابي داود/ الصلاة ١٦ (٤٦١) (تحفة الأشراف : ١٥٩٢)

2 ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف . ١٠٨٩٥) . وانظر مسند احمد (٤٣٢/٤، ٤٣٦، ٤٣٩)

**ترجمه** دعمران بن حصين رضي الله عنه نه مروي دي چې هغه ديو قصه ګو په خوا کي تير شو چې قران يي لوستلو او بيا يي سوال اوکړو نو عمران انا لله وانا اليه راجعون اووئيل او بيايي اوفرمائيل مادرسول الله صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي دي څوك چې قران اولولي نو ده لره صرف دالله تعالي نه غوښتل پکار دي او دا خکه ډيره نزدي ده چې داسي خلق به پيدا شي چې قران به ددي دپاره لولي چې خلقو نه په دي باندي سوال اوکړي.
امام ترمذي وايي داحديث حسن دي او ددي سند څه خاص دقوت حامل نه دي، محمود بن غيلان وائي دا خيثمه دبصري اوسيدونكي دي چې جابر جعفي ورنه نقل دروايت كوي او دا خيثمه بن عبدالرحمن نه دي او خيثمه يو بصري شيخ دي چې كنيه يي ابونصر ده او هغه دانس بن مالك رضي الله عنه نه يو څو احاديث نقل كړي دي او جابر جعفي هم دخيثمه نه يو څو احاديث اوريدلي دي.

***************

## ٢١_باب مِنْهُ

### دسابقه باب متعلق يوبل باب

٢٩١٨_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيل الْوَاسِطِيُّ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا أَبُو فَرْوَةَ يَزِيدُ بْنُ سِنَانٍ، عَنْ أَبِي الْمُبَارَكِ، عَنْ صُهَيْبٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَا آمَنَ بِالْقُرْآنِ مَنِ اسْتَحَلَّ مَحَارِمَهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ لَيْسَ إِسْنَادُهُ بِالْقَوِيِّ، وَقَدْ خُولِفَ وَكِيعٌ فِي رِوَايَتِهِ، وَقَالَ مُحَمَّدٌ أَبُو فَرْوَةَ: يَزِيدُ بْنُ سِنَانٍ الرُّهَاوِيُّ لَيْسَ بِحَدِيثِهِ بَأْسٌ إِلَّا رِوَايَةَ ابْنِهِ مُحَمَّدٍ عَنْهُ فَإِنَّهُ يَرْوِي عَنْهُ مَنَاكِيرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَقَدْ رَوَى مُحَمَّدُ بْنُ يَزِيدَ بْنِ سِنَانٍ، عَنْ أَبِيهِ هَذَا الْحَدِيثَ فَزَادَ فِي هَذَا الْإِسْنَادِ عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيِّبِ، عَنْ صُهَيْبٍ، وَلَا يُتَابَعُ مُحَمَّدُ بْنُ يَزِيدَ عَلَى رِوَايَتِهِ وَهُوَ ضَعِيفٌ، وَأَبُو الْمُبَارَكِ رَجُلٌ مَجْهُولٌ.[1]

**ترجمه** دصهيب رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچې دقران كريم حرام كړي څيزونه حلال اوګڼل نو دهغه په قران ايمان نشته.
امام ترمذي وايي: ددي حديث سند قوي نه دي، دوكيع په روايت كي دوكيع سره اختلاف شوي دي، امام بخاري وائي دابو فروه قول دي چې ديزيد بن سنان رهاوي نه په روايت نقل كولو كي هيڅ حرج نشته، علاوه دهغه روايتونو نه كوم چې دده خوي محمد دده نه نقل كوي

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٤٩٧٢)

خکه چې هغه دده نه مناکير نقل کوي، محمد بن يزيد بن ثنان هم دخپل پلار نه دا حديث نقل کړي دي مګر په سند کې يې دومره اضافه ده عن مجاهد عن سعيد بن المسيب عن صهيب محمد بن يزيد په روايت کې دده سره هيڅوك متابع نشته او هغه ضعيف دي او ابو المبارك يو مجهول راوي دي

********************

٢٩١٩ـ حَدَّثَنَا الحَسَنُ بْنُ عَرَفَةَ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيل بْنُ عَيَّاشٍ، عَنْ بَحِيرِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ خَالِدِ بْنِ مَعْدَانَ، عَنْ كَثِيرِ بْنِ مُرَّةَ الحَضْرَمِيِّ، عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "الجَاهِرُ بِالقُرْآنِ كَالجَاهِرِ بِالصَّدَقَةِ، وَالمُسِرُّ بِالقُرْآنِ كَالمُسِرِّ بِالصَّدَقَةِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَمَعْنَى هَذَا الحَدِيثِ: أَنَّ الَّذِي يُسِرُّ بِقِرَاءَةِ القُرْآنِ أَفْضَلُ مِنَ الَّذِي يَجْهَرُ بِقِرَاءَةِ القُرْآنِ، لِأَنَّ صَدَقَةَ السِّرِّ أَفْضَلُ عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ صَدَقَةِ العَلَانِيَةِ، وَإِنَّمَا مَعْنَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ لِكَيْ يَأْمَنَ الرَّجُلُ مِنَ العُجْبِ لِأَنَّ الَّذِي يُسِرُّ العَمَلَ، لَا يُخَافُ عَلَيْهِ العُجْبُ مَا يُخَافُ عَلَيْهِ مِنْ عَلَانِيَتِهِ. [1]

**ترجمه** دعقبه بن عامر الجهني﷛ نه روايت دي فرمائي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په تيزه قران لوستل پشان دښکاره صدقي دي اوخفيه تلاوت کول پشان دپټي صدقي دي.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن غريب دي ددي معني او مطلب دادي چې څوك په پټه قران لولي دا دهغه چانه افضل دي چې څوك يې په تيز اواز لولي خکه چې داهل علمو په نزد پټه صدقه ورکول دښکاره صدقي ورکولو نه افضل دي ددي مفهوم دادي چې داهل علمو په نزد داسي کس دنمود او نمائش نه محفوظ وي خکه چې څوك په پټه عمل کوي هغه ته درياکارئ دومره خطره نه وي څومره چې په ښکاره عمل کولو کې وي

## دعقبه بن عامر رضي الله عنه حالات

نوم عقبه کنيه ابوعمرو دپلار نوم عامر رسول الله صلي الله عليه وسلم چې کله مديني ته راغی نو عقبه په اسلام مشرف شو علامه ذهبي ليکلي دي چې عقبه فقيه او دکتاب الله قاري وو او دفرائضو ماهر او فصيح اللسان شاعر وو (تذکرة الحفاظ)

دقران کريم سره يې خصوصي مينه وه يوه نسخته دقران کريم يې پخپل لاس هم ليکلي وه

---

[1] ـ سنن ابي داود/الصلاة ٣١٥ (١٣٣٣)، سنن النسائي/قيام الليل ٢٢ (١٦٦٤)، والزكاة ٦٨ (٢٥٦٠) (تحفة الأشراف: ٩٩٤٩). ومسند احمد (١٥١/٤، ١٥٨)

(تهذيب التهذيب)
دنبي كريم صلي الله عليه وسلم ښه خدمت يي کړی دی په سفر کي به درسول الله سورلۍ رابنکل دده متعلق وو لکه چې په روايتونو کي راځي کان صاحب بغلة رسول الله صلي الله عليه وسلم الشهباء.
دده دوفات دتاريخ باره کي مختلف اقوال مروي دي صحيح قول دادی چې په ۵۸هجري کي وفات شوی دی، او دده دمروياتو شمير ۵۵ دی چې يو په دي کي متفق عليه دی او يو په بخاري کي دی او اوه په مسلم کي دي (تهذيب الكمال).
داکابرو صحابه کرامو نه نقل دروايت کوي تردي چې صرف ديو حديث اوريدو دپاره مصر ته دابوايوب انصاري سره دملاويدو دپاره تلی وو خو چې هغه يي واوريدو نو فورا واپس لاړو

*****************

## ۲۲_باب مِنْهُ

### دسابقه باب متعلق يو بل باب

۲۹۲۰_حَدَّثَنَا صَالِحُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ أَبِي لُبَابَةَ، قَالَ: قَالَتْ عَائِشَةُ " كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَنَامُ عَلَى فِرَاشِهِ حَتَّى يَقْرَأَ بَنِي إِسْرَائِيلَ، وَالزُّمَرَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَأَبُو لُبَابَةَ شَيْخٌ بَصْرِيٌّ، قَدْ رَوَى عَنْهُ حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ غَيْرَ حَدِيثٍ وَيُقَالُ اسْمُهُ مَرْوَانُ، أَخْبَرَنِي بِذَلِكَ مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ فِي كِتَابِ التَّارِيخِ. [1]

**ترجمه** دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها بيان دي فرمائي چې نبي کريم صلي الله عليه وسلم به څو پوري سورة بني اسرائيل او سورة الزمر لوستلي نه وو تر هغي پوري به په بستره نه پريوتلو
امام ترمذي وائي داحديث حسن غريب دي، ابو لبابه يو بصري شيخ دي. حماد بن زيد دده نه يوڅو احاديث نقل کړي دي، او ونيلي شوي دي چې دده نوم مروان دي. دا خبره امام بخاري په کتاب التاريخ کي ذکر کړي ده

*****************

۲۹۲۱_حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا بَقِيَّةُ بْنُ الْوَلِيدِ، عَنْ بَحِيرِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ خَالِدِ بْنِ مَعْدَانَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي بِلَالٍ، عَنْ عِرْبَاضِ بْنِ سَارِيَةَ، أَنَّهُ حَدَّثَهُ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "

---

[1] _ سنن النسائي/عمل اليوم والليلة ۲۰۵ (۷۱۲)، ويأتي عند المؤلف في الدعوات (برقم ۳۴۰۵) (تحفة الأشراف: ۱۷۶۰۱)

كَانَ يَقْرَأُ الْمُسَبِّحَاتِ قَبْلَ أَنْ يَرْقُدَ، وَيَقُولُ: إِنَّ فِيهِنَّ آيَةً خَيْرٌ مِنْ أَلْفِ آيَةٍ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. (1)

**ترجمه** دعرباض بن ساريه رضي الله عنه نه روايت دي فرماني چې رسول الله صلي الله عليه وسلم به اوده كيدونه مخكې مسبحات ونيل اوفرمائيل به ني چې پدي كې يو ايت دي كوم چې دزرو اياتونونه بهتردي (مسبحات هغه سورتونه دي كوم چې په سبح يسبح سره شروع شوي دي).
امام ترمذي وايي: دا حديث حسن غريب دي

*****************

## ٢٣_باب

### دسابقه باب متعلق يوبل باب

٢٩٢٢_حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو أَحْمَدَ الزُّبَيْرِيُّ، حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ طَهْمَانَ أَبُو الْعَلَاءِ الْخَفَّافُ، حَدَّثَنِي نَافِعُ بْنُ أَبِي نَافِعٍ، عَنْ مَعْقِلِ بْنِ يَسَارٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " مَنْ قَالَ حِينَ يُصْبِحُ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ أَعُوذُ بِاللَّهِ السَّمِيعِ الْعَلِيمِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ، وَقَرَأَ ثَلَاثَ آيَاتٍ مِنْ آخِرِ سُورَةِ الْحَشْرِ، وَكَّلَ اللَّهُ بِهِ سَبْعِينَ أَلْفَ مَلَكٍ يُصَلُّونَ عَلَيْهِ حَتَّى يُمْسِيَ، وَإِنْ مَاتَ فِي ذَلِكَ الْيَوْمِ مَاتَ شَهِيدًا، وَمَنْ قَالَهَا حِينَ يُمْسِي، كَانَ بِتِلْكَ الْمَنْزِلَةِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. (2)

**ترجمه**: دمعقل بن يسار رضي الله عنه نه مروي دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي څوك چې دسحر وخت كي "اعوذبالله السميع العليم من الشيطان الرجيم" دري پيري اوواني او دري پيري دسورة الحشر اخري ايتونه اولولي نو الله تعالي دده دمغفرت غوښتلو دپاره اويا زره فرښتي مقرروي چې دماښام پوري به همدا كار كوي او كه چري دي په همدي ورځ مړ شي نو شهيد به مړ شي او څوك چې دماښام وخت كي دا كلام وائي دهغه هم دا درجه ده.
امام ترمذي وايي: داحديث غريب دي او دا مونږ ته صرف په همدي سند معلوم دي

*****************

[1] ـ سنن ابي داود/ الأدب ١٠٧ (٥٠٥٤) (تحفة الأشراف: ٩٨٨٨)

[2] ـ سنن ابي داود/ الأدب ١٠٧ (٥٠٥٤) (تحفة الأشراف: ٩٨٨٨)

## ٢٤_ باب مَا جَاءَ كَيْفَ كَانَ قِرَاءَةُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
### دنبي كريم صلي الله عليه وسلم قراءت به څنګه وو

٢٩٢٣_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ، عَنْ يَعْلَى بْنِ مَمْلَكٍ، أَنَّهُ سَأَلَ أُمَّ سَلَمَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ قِرَاءَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَصَلَاتِهِ، فَقَالَتْ: مَا لَكُمْ وَصَلَاتَهُ. "كَانَ يُصَلِّي ثُمَّ يَنَامُ قَدْرَ مَا صَلَّى، ثُمَّ يُصَلِّي قَدْرَ مَا نَامَ، ثُمَّ يَنَامُ قَدْرَ مَا صَلَّى حَتَّى يُصْبِحَ، ثُمَّ نَعَتَتْ قِرَاءَتَهُ فَإِذَا هِيَ تَنْعَتُ قِرَاءَةً مُفَسَّرَةً حَرْفًا حَرْفًا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ لَيْثِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ، عَنْ يَعْلَى بْنِ مَمْلَكٍ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، وَقَدْ رَوَى ابْنُ جُرَيْجٍ هَذَا الْحَدِيثَ عَنْ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ يُقَطِّعُ قِرَاءَتَهُ"، وَحَدِيثُ لَيْثٍ أَصَحُّ.[1]

**ترجمه** . ديعلي بن مملك نه روايت دی فرماني چې دام سلمه نه مي درسول الله صلي الله عليه وسلم دقراءت اودمونځ په باره کې تپوس اوکړوچې څنګه تلاوت به يی کولو اوڅنګه مونځ به يی کولو؟ نوهغي اووئيل چرته ستاسو مونځونه اوچرته دهغه مونځ. هغه به مونځ اوکړو اوخومره مونځ چې به يی کړي وو هغه هومره به اوده شو اوخومره چې به اوده شوی وو هغه هومره به يی بيا مونځ اوکړو اودمونځ هومره به بياخملاستو تردي چې سحربه شو بيايی دقراءت اوصاف بيان کړل چې يو يو حرف به يی لوستلو

امام ترمذي وايي دا حديث حسن غريب دي مونږ يي صرف دليث په سعد په روايت پيژنو کوم چې هغه دابن ابي مليکه نه او هغه ديعلي بن مملك په واسطه دام سلمه رضي الله عنها نه نقل کړي دي. ابن جريج دا حديث دابن ابي مليکه نه او هغه دام سلمه په واسطه دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه نقل کړي دي چې دهغه دقراءت هر حرف به جدا جدا وو، مګر دليث حديث زيات حديث دي

***************

٢٩٢٤_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ صَالِحٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي قَيْسٍ هُوَ رَجُلٌ بَصْرِيٌّ، قَالَ: سَأَلْتُ عَائِشَةَ عَنْ وِتْرِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَيْفَ كَانَ يُوتِرُ مِنْ أَوَّلِ اللَّيْلِ أَوْ مِنْ آخِرِهِ؟ فَقَالَتْ: "كُلُّ ذَلِكَ قَدْ كَانَ يَصْنَعُ، رُبَّمَا أَوْتَرَ مِنْ أَوَّلِ اللَّيْلِ وَرُبَّمَا أَوْتَرَ مِنْ آخِرِهِ، فَقُلْتُ:

---
[1] _ سنن ابي داود/ الصلاة ٣٥٥ (١٤٦٦) (تحفة الأشراف: ١٨٢٢٦)

الحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي جَعَلَ فِي الأَمْرِ سَعَةً. فَقُلْتُ: كَيْفَ كَانَتْ قِرَاءَتُهُ ؟ أَكَانَ يُسِرُّ بِالقِرَاءَةِ أَمْ يَجْهَرُ ؟ قَالَتْ: كُلُّ ذَلِكَ قَدْ كَانَ يَفْعَلُ، قَدْ كَانَ رُبَّمَا أَسَرَّ وَرُبَّمَا جَهَرَ. قَالَ: فَقُلْتُ: الحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي جَعَلَ فِي الأَمْرِ سَعَةً. قُلْتُ: فَكَيْفَ كَانَ يَصْنَعُ فِي الجَنَابَةِ ؟ أَكَانَ يَغْتَسِلُ قَبْلَ أَنْ يَنَامَ أَوْ يَنَامُ قَبْلَ أَنْ يَغْتَسِلَ ؟ قَالَتْ: كُلُّ ذَلِكَ قَدْ كَانَ يَفْعَلُ، فَرُبَّمَا اغْتَسَلَ فَنَامَ وَرُبَّمَا تَوَضَّأَ فَنَامَ. قُلْتُ: الحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي جَعَلَ فِي الأَمْرِ سَعَةً". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الوَجْهِ. [1]

**ترجمه** دعبدالله بن ابي قيس ﷺ چې دبصري اوسيدونكي دي نه روايت دی فرمائي چې دام المؤمنين عائشه رضي الله عنهانه مي درسول الله صلي الله عليه وسلم دوتروباره كې تپوس اوكړو هغې اوونيل ډيركرته يې وتر دشپې په اوله حصه كې كړي دي، او ډيركرته يې وتر دشپې په درميانه حصه كې كړي دي، او ډيركرته يې وتر دشپې په اخري حصه كې كړي دي مابياتپوس اوكړو چې قراءت يې څنګه وو ايا پټ به وو اوكه په تيزه هغې اوونيل هررنګه يې كړی دی ډيركرته يې رو رو ونيلی دی اوډيركرته په جهرسره اوډيركرته دغسل كولونه پس اوده شوی دی اوډيركرته داودس كولونه پس اوده شوی دی.ما وونيل ثنا ده هغه ذات لره چا چې په دي معامله كي وسعت پيدا كړی دی

امام ترمذي وايي: دا حديث په دي سند حسن غريب دي.

****************

## ٢٥_باب
## دسابقه باب متعلق يوبل باب

٢٩٢٥_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيل، قَالَ: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا إِسْرَائِيلُ، حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ المُغِيرَةِ، عَنْ سَالِمِ بْنِ أَبِي الجَعْدِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: " كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعْرِضُ نَفْسَهُ بِالمَوْقِفِ، فَقَالَ: أَلَا رَجُلٌ يَحْمِلُنِي إِلَى قَوْمِهِ فَإِنَّ قُرَيْشًا قَدْ مَنَعُونِي أَنْ أُبَلِّغَ كَلَامَ رَبِّي ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ صَحِيحٌ. [2]

**ترجمه** : دجابر رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چې نبي كريم صلي الله عليه وسلم به په موقف (عرفات) كي دخلقو په وړاندي دخپل ځان دپيش كولو په حال كي فرمائيل داسي څوك

[1] ـ سنن ابي داود/ الصلاة ٣٥٥ (١٤٣٦) (تحفة الأشراف : ١٨٢٢٦)

[2] ـ ابي داود/ السنة ٢٢ (٤٧٣٤) . ابن ماجه/المقدمة ١٣ (٢٠١) (تحفة الأشراف : ٢٢٤١)

شته چې ما خپل قوم ته بوځي ځکه چې قریشو زه دخپل رب د کلام دتبلیغ نه منع کړي یم
امام ترمذي وایي دا حدیث غریب صحیح دي

***************

## ٢٦_باب مِنْهُ

### دسابقه باب متعلق یو بل باب

٢٩٢٦_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيل، حَدَّثَنَا شِهَابُ بْنُ عَبَّادٍ العَبْدِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْحَسَنِ بْنِ أَبِي يَزِيدَ الْهَمْدَانِيُّ، عَنْ عَمْرِو بْنِ قَيْسٍ، عَنْ عَطِيَّةَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " يَقُولُ الرَّبُّ عَزَّ وَجَلَّ: مَنْ شَغَلَهُ الْقُرْآنُ وَذِكْرِي عَنْ مَسْأَلَتِي أَعْطَيْتُهُ أَفْضَلَ مَا أُعْطِي السَّائِلِينَ، وَفَضْلُ كَلَامِ اللهِ عَلَى سَائِرِ الْكَلَامِ كَفَضْلِ اللهِ عَلَى خَلْقِهِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. ([1])

**ترجمه** د ابو سعید خدري رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله علیه وسلم فرمائیي الله تعالي فرمائیلي دي: چاله چې قران کریم او زما ذکر زما نه دسوال کولو نه منع کړي نو زه به ورته هغه څیز ورکړم کوم چې غوښتونکو ته ورکوم بلکه دهغي نه به ورته بهتر ورکړم اود الله د کلام فضیلت په نورو کلامونو داسي دي لکه څنګه چې د الله تعالي فضیلت دی په نورو مخلوقاتو باندي.
امام ترمذي وایي: داحدیث حسن غریب دي

***************

# کتاب القراءات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم

### دقران کریم قراءة او تلاوت

## ١_باب فِي فَاتِحَةِ الْكِتَابِ

### دسورة فاتحي دقراءة بیان

٢٩٢٧_حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ الأُمَوِيُّ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، قَالَتْ: " كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُقَطِّعُ قِرَاءَتَهُ، يَقُولُ: الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ

---

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٤٢١٦)

الْعَالَمِينَ ثُمَّ يَقِفُ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ ثُمَّ يَقِفُ، وَكَانَ يَقْرَؤُهَا مَالِكِ يَوْمِ الدِّينِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، وَبِهِ يَقْرَأُ أَبُو عُبَيْدٍ وَيَخْتَارُهُ، وَهَكَذَا رَوَى يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ الْأُمَوِيُّ، وَغَيْرُهُ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، وَلَيْسَ إِسْنَادُهُ بِمُتَّصِلٍ، لِأَنَّ اللَّيْثَ بْنَ سَعْدٍ رَوَى هَذَا الْحَدِيثَ عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ، عَنْ يَعْلَى بْنِ مَمْلَكٍ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، أَنَّهَا وَصَفَتْ قِرَاءَةَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَرْفًا حَرْفًا، وَحَدِيثُ اللَّيْثِ أَصَحُّ، وَلَيْسَ فِي حَدِيثِ اللَّيْثِ وَكَانَ يَقْرَأُ مَالِكِ يَوْمِ الدِّينِ.([1])

**ترجمه** دام المؤمنين ام سلمه رضي الله عنها بيان دي فرمائي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم به وقفه وقفه قراءت كولو، چې الحمدلله رب العالمين به يې اولوستلو نو بيا به اودريدو، بيا به يې الرحمن الرحيم اولوستلو نو اودريدلو به او چې مالك يوم الدين يې لوستلو نو هم اودريدو.

امام ترمذي وايي: داحديث غريب دي ابو عبيده به هم داسي لوستل او همدا طريقه به يې خوښوله. يحي بن سعيد اموي او دده نه علاوه نورو راويانو دابن جريج نه او هغه دابن ابي مليكه په واسطه دام سلمه رضي الله عنها نه ددي هم معني روايت نقل كړي دي مګر سند يې متصل نه دي . څكه چې ليث بن سعد دا حديث دابن ابي مليكه نه او هغه ديعلي بن مملك نه او هغه دام سلمه په واسطه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم دقراء ة كيفيت يو يو حرف جدا جدا ونيلو سره بيان كړي دي، مګر دليث حديث زيات صحيح دي او دليث په حديث كې دا نه دي ذكر شوي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم به مالك يوم الدين لوستلو

****************

٢٩٢٨ـحَدَّثَنَا أَبُو بَكْرٍ مُحَمَّدُ بْنُ أَبَانَ، حَدَّثَنَا أَيُّوبُ بْنُ سُوَيْدٍ الرَّمْلِيُّ، عَنْ يُونُسَ بْنِ يَزِيدَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَأَبَا بَكْرٍ، وَعُمَرَ، وَأُرَاهُ قَالَ: وَعُثْمَانَ: " كَانُوا يَقْرَءُونَ مَالِكِ يَوْمِ الدِّينِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ مِنْ حَدِيثِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ هَذَا الشَّيْخِ أَيُّوبَ بْنِ سُوَيْدٍ الرَّمْلِيِّ، وَقَدْ رَوَى بَعْضُ أَصْحَابِ الزُّهْرِيِّ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبَا بَكْرٍ، وَعُمَرَ: " كَانُوا يَقْرَءُونَ مَالِكِ يَوْمِ الدِّينِ وَرَوَى عَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيِّبِ،

---

[1] ـ سنن ابي داود/ الحروف والقراءات (٤٠٠١) (تحفة الأشراف: ١٨١٨٢)

أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَأَبَا بَكْرٍ، وَعُمَرَ "كَانُوا يَقْرَءُونَ مَالِكِ يَوْمِ الدِّينِ (الفاتحة: ٤)".(١)

**ترجمه** دانس رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چې نبي كريم صلي الله عليه وسلم او ابو بكر اوعمر رضي الله عنهما (زهري راوي وائي) زما خيال دي چې انس رضي الله عنه دعثمان نوم هم واخستلو چې دوئ به مالك يوم الدين لوستلو

امام ترمذي وايي. داحديث غريب دي دا مونږ ته صرف دزهري په روايت رارسيدلي دي چې دانس بن مالك نه يې نقل كوي دا روايت مونږ صرف ددې شيخ يعني ايوب بن سويد رملي په سند پيژنو، دزهري بعضې شاګردانو داحديث دزهري نه مرسل نقل كړي دي چې نبي كريم صلي الله عليه وسلم او ابوبكر او عمر مالك يوم الدين لوستل، او عبدالرزاق دمعمرو نه او هغه دزهري نه او هغه دسعيد بن مسيب نه مرسل روايت نقل كړي دي چې رسول الله او ابوبكر او عمر رضي الله عنهما مالك يوم الدين لوستلو (يعني دا روايت صرف ايوب بن سعيد مرفوع ذكر كړي دي او ايوب په باب دحديث كې ضعيف دي.

*****************

٢٩٢٩ـ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ يُونُسَ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ أَبِي عَلِيِّ بْنِ يَزِيدَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "قَرَأَ أَنَّ النَّفْسَ بِالنَّفْسِ وَالْعَيْنَ بِالْعَيْنِ (المائدة: ٤٥)". (٢)

**ترجمه** . دانس بن مالك رضي الله عنه بيان دي فرمائي چې مونږ رسول الله صلي الله عليه وسلم دا ايت داسې اولوستلو "ان النفس بالنفس والعين بالعين".

امام ترمذي وايي. داحديث حسن غريب دي، ابو علي بن يزيد ديونس بن يزيد ورور دي، امام بخاري وائي ددې حديث په نقل كولو كې دابن مبارك نه يونس بن يزيد منفرد دي، او ابو عبيده (قاسم بن سلام) ددې حديث په اتباع كې دارنګې العين بالعين لوستلي دي

*****************

حَدَّثَنَا سُوَيْدُ بْنُ نَصْرٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ يُونُسَ بْنِ يَزِيدَ بِهَذَا الإِسْنَادِ نَحْوَهُ، قَالَ أَبُو عِيسَى بن يزيد: وهذا حديث حسن غريب. قَالَ مُحَمَّدٌ: تَفَرَّدَ ابْنُ الْمُبَارَكِ بِهَذَا الْحَدِيثِ عَنْ

---

1 _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٥٤٠)

2 _ سنن ابي داود/ الحروف (٣٩٧٦) (تحفة الأشراف: ١٥٤٣)

يُونُسَ بْنِ يَزِيدَ، وَهَكَذَا قَرَأَ أَبُو عُبَيْدٍ، وَالعَيْنَ بِالعَيْنِ ،اتِّبَاعًا لِهَذَا الحَدِيثِ. (1)

**ترجمه** عبدالله بن مبارك هم ديونس بن زيد نه په مذكوره اسناد دماقبل هم معني روايت نقل كړي دي.

امام ترمذي وايي داحديث حسن غريب دي امام بخاري وائي ددي حديث په بيانولو كي ابن مبارك چې ديونس بن يزيد نه يي نقل كوي منفرددي او همدارنګي ابو عبيده والعين بالعين ددي حديث داتباع په وجه لوستل.

****************

٢٩٣٠_حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا رِشْدِينُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ زِيَادِ بْنِ أَنْعُمَ، عَنْ عُتْبَةَ بْنِ حُمَيْدٍ، عَنْ عُبَادَةَ بْنِ نُسَيٍّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ غَنْمٍ، عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " قَرَأَ " هَلْ تَسْتَطِيعُ رَبَّكَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ. لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ رِشْدِينَ، وَلَيْسَ إِسْنَادُهُ بِالقَوِيِّ، وَرِشْدِينُ بْنُ سَعْدٍ، وَالأَفْرِيقِيُّ يُضَعَّفَانِ فِي الحَدِيثِ. (2)

**ترجمه** دمعاذ بن جبل رضي الله عنه نه مروي دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم دا ايت داسي لوستلو "هل تستطيع ربك".

امام ترمذي وايي: داحديث غريب دي مونږ يي صرف درشدين په سند پيژنو او ددي سند دقوت حامل نه دي رشدين بن سعد او عبدالرحمن بن زياد بن انعم افريقي دواړه په باب دحديث كي ضعيف دي.

****************

## ٢_بَاب وَمِنْ سُورَةِ هُودٍ

## دسورة هود دقراءت بيان

٢٩٣١_حَدَّثَنَا الحُسَيْنُ بْنُ مُحَمَّدٍ البَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ حَفْصٍ، حَدَّثَنَا ثَابِتٌ البُنَانِيُّ، عَنْ شَهْرِ بْنِ حَوْشَبٍ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " كَانَ يَقْرَؤُهَا إِنَّهُ عَمَلٌ غَيْرُ صَالِحٍ (هود :٤٦)". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ قَدْ رَوَاهُ غَيْرُ وَاحِدٍ عَنْ ثَابِتٍ البُنَانِيِّ نَحْوَ هَذَا. وَهُوَ حَدِيثُ ثَابِتٍ البُنَانِيِّ. وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الحَدِيثُ أَيْضًا عَنْ شَهْرِ بْنِ حَوْشَبٍ، عَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ يَزِيدَ قَالَ:

---

[1] ـ سنن ابي داود/ الحروف (٣٩٨٦) (تحفة الأشراف : ١٥٤٢)

[2] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ١١٣٢٤)

وَسَمِعْتُ عَبْدَ بْنَ حُمَيْدٍ، يَقُولُ: أَسْمَاءُ بِنْتُ يَزِيدَ هِيَ أُمُّ سَلَمَةَ الأَنْصَارِيَّةُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: كِلَا الحَدِيثَيْنِ عِنْدِي وَاحِدٌ، وَقَدْ رَوَى شَهْرُ بْنُ حَوْشَبٍ غَيْرَ حَدِيثٍ عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ الأَنْصَارِيَّةِ وَهِيَ أَسْمَاءُ بِنْتُ يَزِيدَ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ عَائِشَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوُ هَذَا. [1]

**ترجمه** دام سلمه رضي الله عنها بيان دي فرمائي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم به دا ايت داسي لوستلو "انه عمل غيرصالح".

امام ترمذي وايي دا رنګي يو څو نورو راويانو هم دثابت بناني نه دا حديث نقل کړي دي دا حديث شهر بن حوشب داسماء بنت يزيد په واسطه هم نقل کړي دي، ما دعبد بن حميد نه اوريدلي دي چې اسماء بنت يزيد ام سلمه انصاريه ده او دا دواړه احاديث زما په نزد يو دي شهر بن حوشب ډير احاديث دام سلمه نه نقل کړي دي او دام سلمه انصاريه نه همدا اسماء بنت يزيد مراد ده، عائشه رضي الله عنها هم دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه ددي هم معني روايت بيان کړي دي.

****************

٢٩٣٢_حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، وَحَبَّانُ بْنُ هِلَالٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا هَارُونُ النَّحْوِيُّ، عَنْ ثَابِتٍ البُنَانِيِّ، عَنْ شَهْرِ بْنِ حَوْشَبٍ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "قَرَأَ هَذِهِ الآيَةَ إِنَّهُ عَمَلٌ غَيْرُ صَالِحٍ (هود:٤٦)". [2]

**ترجمه** شهر بن حوشب دام سلمه رضي الله عنها په واسطه دنبي کريم صلي الله عليه وسلم دا ارشاد نقل کوي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم دا ايت اولوستلو "انه عمل غير صالح"

*****************

## ٣_باب وَمِنْ سُورَةِ الكَهْفِ

## دسورة کهف دقراءت بيان

٢٩٣٣_حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ نَافِعٍ بَصْرِيٌّ، حَدَّثَنَا أُمَيَّةُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا أَبُو الجَارِيَةِ العَبْدِيُّ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ: "قَرَأَ قَدْ بَلَغْتَ مِن لَدُنِّي عُذْرًا (الكهف:٧٦) مُثَقَّلَةً". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ

---

[1] _ ابي داود/الحروف (٣٩٨٢، و ٣٩٨٣) و مسند احمد (٦/٣٥٩)

[2] _ ابي داود/الحروف (٣٩٨٢، و ٣٩٨٣). و مسند احمد (٦/٣٥٩)

غَرِيبٌ. لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. وَأُمَيَّةُ بْنُ خَالِدٍ ثِقَةٌ. وَأَبُو الْجَارِيَةِ الْعَبْدِيُّ شَيْخٌ مَجْهُولٌ وَلَا نَعْرِفُ اسْمَهُ. (1)

**ترجمه** دابي بن كعب رضي الله عنه نه روايت دي فرماني چې رسول الله صلي الله عليه وسلم اولوستل "قد بلغت من لدني عذرا" يعني لدني يې دنون ثقيله سره اولوستلو

امام ترمذي وايي داحديث غريب دي دا مونږ ته صرف په همدي سند معلوم دي. اميه بن خالد ثقه دي. ابو الجاريه عبدي يو مجهول شيخ دي چې مونږ ته يې نوم نه دي معلوم

****************

٢٩٣٤ـ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا مُعَلَّى بْنُ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ دِينَارٍ، عَنْ سَعْدِ بْنِ أَوْسٍ، عَنْ مِصْدَعٍ أَبِي يَحْيَى، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "قَرَأَ فِي عَيْنٍ حَمِئَةٍ (الكهف :٨٦) ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ. لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. وَالصَّحِيحُ مَا رُوِيَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قِرَاءَتُهُ وَيُرْوَى أَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ، وَعَمْرَو بْنَ الْعَاصِ اخْتَلَفَا فِي قِرَاءَةِ هَذِهِ الْآيَةِ وَارْتَفَعَا إِلَى كَعْبِ الْأَحْبَارِ فِي ذَلِكَ. فَلَوْ كَانَتْ عِنْدَهُ رِوَايَةٌ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَاسْتَغْنَى بِرِوَايَتِهِ وَلَمْ يَحْتَجْ إِلَى كَعْبٍ وَمِنْ سُورَةِ الرُّومِ. (2)

**ترجمه** : دابي بن كعب رضي الله عنه نه مروي دي چې نبي كريم صلي الله عليه وسلم دا ايت داسي لوستلو "في عين حمئة " امام ترمذي وائي دا حديث غريب دي او مونږ يې صرف په همدي سند پيژنو صحيح دابن عباس قراءت دي كوم چې دهغه نه مروي دي. مروي دي چې ابن عباس او عمرو بن العاص رضي الله عنهما دواړو ددي ايت په قرائت كي اختلاف كولو او خپله معامله يې كعب بن احبار ته پيش كړه كه چري ددوی سره دنبي كريم صلي الله عليه وسلم كلام روايت موجود وي نو هغه به ددي دپاره كافي وو او كعب احبار ته د رجوع كولو ضرورت به نه وو پاتي شوي.

****************

## ٤ـ باب وَمِنْ سُورَةِ الرُّومِ

## دسورة روم دشان نزول بيان

---

1 ـ سنن ابي داود/ الحروف (٣٩٨٥) (تحفة الأشراف : ٣٢)

2 ـ سنن ابي داود/ الحروف (٣٩٨٦) (تحفة الأشراف : ٣٢)

٢٩٣٥_حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ الجَهْضَمِيُّ، حَدَّثَنَا المُعْتَمِرُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ سُلَيْمَانَ الأَعْمَشِ، عَنْ عَطِيَّةَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، قَالَ: " لَمَّا كَانَ يَوْمُ بَدْرٍ ظَهَرَتْ الرُّومُ عَلَى فَارِسَ، فَأَعْجَبَ ذَلِكَ المُؤْمِنِينَ، فَنَزَلَتْ الم غُلِبَتِ الرُّومُ إِلَى قَوْلِهِ يَفْرَحُ المُؤْمِنُونَ (الروم :١-٤) ، قَالَ: يَفْرَحُ المُؤْمِنُونَ بِظُهُورِ الرُّومِ عَلَى فَارِسَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الوَجْهِ، وَيُقْرَأُ غَلَبَتْ وَغُلِبَتْ، يَقُولُ: كَانَتْ غُلِبَتْ ثُمَّ غَلَبَتْ، هَكَذَا قَرَأَ نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ غَلَبَتْ. [1]

**ترجمه** دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه مروي دي چې دجنګ بدر په موقعه روميان (اهل كتاب نصاري) په اهل فارس (مجوسيانو) باندي غالب شول او په دي كار مسلمانان ډير زيات خوشحاله شول او په همدي موقعه الله تعالي "الم غلبت الروم" تر "يفرح المؤمنون" پوري نازل كړوچنانچې مسلمانان درروميانو په غلبي باندي خوشحاله شول چې په فارس والا غالب شوي وو

امام ترمذي وايي: داحديث په دي سند حسن غريب دي، غَلبت او غُلبتْ دواړه لوستل جائز دي ونيلي شوي دي روميان اول مغلوب شول بيا غالب شول او همدا لفظ نصر بن علي غلبت لوستلي شي.

*****************

٢٩٣٦_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حُمَيْدٍ الرَّازِيُّ، حَدَّثَنَا نُعَيْمُ بْنُ مَيْسَرَةَ النَّحْوِيُّ، عَنْ فُضَيْلِ بْنِ مَرْزُوقٍ، عَنْ عَطِيَّةَ الْعَوْفِيِّ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّهُ: " قَرَأَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَلَقَكُمْ مِنْ ضَعْفٍ (الروم :٥٤) فَقَالَ: مِنْ ضُعْفٍ ". [2]

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهمابيان دي فرمائي چې مادنبي كريم صلي الله عليه وسلم په وړاندي خلقكم من ضعف (ضاد په فتح سره) اولوستلو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمانيل من ضَعف نه دي من ضُعف دي.

امام ترمذي وايي داحديث حسن غريب دي او مونږ يي صرف دفضيل بن مرزوق په سند پيژنو

*****************

حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، عَنْ فُضَيْلِ بْنِ مَرْزُوقٍ، عَنْ عَطِيَّةَ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ،

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ٤٢٠٨)

[2] _ سنن ابي داود/ الحروف (٣٩٧٨) (تحفة الأشراف : ٧٣٣٤)

عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، نَحْوَهُ، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ فُضَيْلِ بْنِ مَرْزُوقٍ. (1)

**ترجمه** عطيه دابن عمر رضي الله عنهما په واسطه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه دماقبل هم معني روايت نقل كړي دي .

امام ترمذي وايي داحديث حسن غريب دي او صرف دفضيل بن مرزوق په سند مونږ ته رارسيدلي دي او ددينه علاوه په بل سند مونږ ته معلوم نه دي.

*****************

## ٥_باب وَمِنْ سُورَةِ الْقَمَرِ

### دسورة قمر دقراءت بيان

٢٩٣٧_حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو أَحْمَدَ الزُّبَيْرِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنِ الْأَسْوَدِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "كَانَ يَقْرَأُ فَهَلْ مِنْ مُدَّكِرٍ (القمر :١٥)". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (2)

**ترجمه** : دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم به داسي لوستل "فهل من مدكر"

امام ترمذي وايي داحديث صحيح دي.

*****************

## ٦_باب وَمِنْ سُورَةِ الْوَاقِعَةِ

### دسورة واقعه دقراءت بيان

٢٩٣٨_حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ هِلَالٍ الصَّوَّافُ، حَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ سُلَيْمَانَ الضُّبَعِيُّ، عَنْ هَارُونَ الْأَعْوَرِ، عَنْ بُدَيْلِ بْنِ مَيْسَرَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ شَقِيقٍ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "كَانَ يَقْرَأُ فَرُوحٌ وَرَيْحَانٌ وَجَنَّةُ نَعِيمٍ (الواقعة :٨٩)". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. لَا

---

1 ـ سنن ابي داود/ الحروف (٣٩٨٨) (تحفة الأشراف : ٤٢٣٢)

2 ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /احاديث الأنبياء ٣ (٣٣٤١) . وتفسير سورة القمر ٢ (٤٨٦٩ ـ ٤٨٧٤) . صحيح مسلم/المسافرين ٥٠ (٨٢٣) . سنن ابي داود/ الحروف (٣٩٩٤) (تحفة الأشراف : ٩١٧٩)

نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ هَارُونَ الأَعْوَرِ. (1)

**ترجمه** : دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها نه مروي دي فرمائي چې نبي كريم صلي الله عليه وسلم به دا ايت داسې لوستلو "فروح وريحان وجنة نعيم"

امام ترمذي وايي: داحديث حسن غريب دي او مونږ يې صرف دهارون اعور په سند پيژنو

***************

## ٧_باب وَمِنْ سُورَةِ اللَّيْلِ

### دسورة الليل دقراءت بيان

٢٩٣٩_حَدَّثَنَا هَنَّادٌ. حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ. عَنِ الأَعْمَشِ. عَنْ إِبْرَاهِيمَ. عَنْ عَلْقَمَةَ. قَالَ: قَدِمْنَا الشَّامَ فَأَتَانَا أَبُو الدَّرْدَاءِ. فَقَالَ: "أَفِيكُمْ أَحَدٌ يَقْرَأُ عَلَيَّ قِرَاءَةَ عَبْدِ اللَّهِ؟ قَالَ: فَأَشَارُوا إِلَيَّ. فَقُلْتُ: نَعَمْ. قَالَ: كَيْفَ سَمِعْتَ عَبْدَ اللَّهِ يَقْرَأُ هَٰذِهِ الآيَةَ وَاللَّيْلِ إِذَا يَغْشَى (الليل :١ ؟ قَالَ: قُلْتُ: سَمِعْتُهُ يَقْرَؤُهَا وَاللَّيْلِ إِذَا يَغْشَى وَالذَّكَرِ وَالأُنْثَى. فَقَالَ أَبُو الدَّرْدَاءِ: وَأَنَا وَاللَّهِ هَكَذَا سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَؤُهَا. وَهَؤُلَاءِ يُرِيدُونَنِي أَنْ أَقْرَأَهَا وَمَا خَلَقَ (الليل :٣) فَلَا أُتَابِعُهُمْ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَهَكَذَا قِرَاءَةُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ. وَاللَّيْلِ إِذَا يَغْشَى وَالنَّهَارِ إِذَا تَجَلَّى وَالذَّكَرِ وَالأُنْثَى.. (2)

**ترجمه** : دعلقمه نه مروي دي فرمائي چې كله مونږ شام ته ورسيدو نو ابو الدرداء رضي الله عنه مونږ ته راغي چې وئيل يې ايا په تاسو كې داسې څوك شته چې دعبدالله بن مسعود دقراءت پشان لوستل كوي نو خلقو دي وخت كې زما طرف ته اشاره اوكړه نو ما اووئيل هو. زه يې دهغه دقراءت مطابق لولم نو ابو الدرداء اووئيل تا دا ايت والليل اذا يغشي دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه څنګه اوريدلي دي ما اووئيل ما ورنه داسې اوريدلي دي "والليل اذا يغشي والذكر والانثي " ابو الدرداء رضي الله عنه اووئيل قسم په الله چې ماهم درسول الله صلي الله عليه وسلم نه داسې اوريدلي دي مګر دا خلق غواړي چې زه "وماخلق" اولولم خو زه ددوئ خبره نه منم.

امام ترمذي وايي. داحديث حسن صحيح دي او دعبدالله بن مسعود قراءة هم داسې دي

---

[1] _ سنن ابي داود/الحروف (٣٩٩١) (تحفة الأشراف : ١٦٢٠٣)

[2] _ اورده البخاري في الجامع الصحيح /تفسير سورة الليل ١ (٣٩٤٣) . صحيح مسلم/المسافرين ٥٠ (٨٢٤) (تحفة الأشراف: ١٠٩٥٥)

"والليل اذا يغشي والنهار اذا تجلي والذكر والانثي".

****************

## ٨_باب وَمِنْ سُورَةِ الذَّارِيَاتِ

**دسورة الذاريات دقراءت بيان**

٢٩٤٠_حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللهِ بْنُ مُوسَى، عَنْ إِسْرَائِيلَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: " أَقْرَأَنِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "إِنِّي أَنَا الرَّزَّاقُ ذُو الْقُوَّةِ الْمَتِينُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** : دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه بيان دي فرمائي چې رسول الله سلي الله عليه وسلم ماته دا ايت داسي اولوستلو "اني انا الرزاق ذوالقوة المتين"
امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي.

****************

## ٩_باب وَمِنْ سُورَةِ الْحَجِّ

**دسورة حج دقراءت بيان**

٢٩٤١_حَدَّثَنَا أَبُو زُرْعَةَ، وَالْفَضْلُ بْنُ أَبِي طَالِبٍ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ، قَالُوا: حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ بِشْرٍ، عَنِ الْحَكَمِ بْنِ عَبْدِ الْمَلِكِ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " قَرَأَ وَتَرَى النَّاسَ سُكَارَى وَمَا هُمْ بِسُكَارَى (الحج :٢)". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَلَا نَعْرِفُ لِقَتَادَةَ سَمَاعًا مِنْ أَحَدٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَّا مِنْ أَنَسٍ، وَأَبِي الطُّفَيْلِ، وَهَذَا عِنْدِي حَدِيثٌ مُخْتَصَرٌ. إِنَّمَا يُرْوَى عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، قَالَ: " كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي السَّفَرِ فَقَرَأَ يَأَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوا رَبَّكُمْ (الحج :١)". الْحَدِيثَ بِطُولِهِ، وَحَدِيثُ الْحَكَمِ بْنِ عَبْدِ الْمَلِكِ عِنْدِي مُخْتَصَرٌ مِنْ هَذَا الْحَدِيثِ. [2]

**ترجمه** عمران بن حصين رضي الله عنه وائي دا ايت رسول الله صلي الله عليه وسلم داسي اولوستلو "وتري الناس سكاري وماهم بسكاري".

---

[1] _ سنن ابي داود/ الحروف (٣٩٩٣) (تحفة الأشراف : ٩٣٨٩)

[2] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ١٠٨٣٤)

امام ترمذي وايي داحديث حسن دي دانس او ابو طفيل نه علاوه په صحابه كرامو كي دبل چانه دقتاده سماع مونږ ته نه ده معلومه. دا روايت زما په نزد مختصر دي پوره روايت داسي دي قتاده دحسن بصري نه روايت نقل كړي دي او هغه دعمران بن حصين نه چي مونږ درسول الله صلي الله عليه وسلم سره په سفر كي موجود وو او هغوئ دا ايت "يا ايهالناس اتقوا ربكم" اولوستلو او بيا يي وړاندي پوره حديث بيان كړو. دحكم بن عبدالملك حديث زما په نزد ددي حديث نه مختصر دي

***************

## ١٠ـ باب مِنْهُ

### دسابقه باب مطابق يو بل باب

٢٩٤٢ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، قَالَ: أَنْبَأَنَا شُعْبَةُ، عَنْ مَنْصُورٍ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا وَائِلٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "بِئْسَمَا لِأَحَدِهِمْ أَوْ لِأَحَدِكُمْ أَنْ يَقُولَ: نَسِيتُ: كَيْتَ وَكَيْتَ بَلْ هُوَ نُسِّيَ، فَاسْتَذْكِرُوا الْقُرْآنَ، فَوَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَهُوَ أَشَدُّ تَفَصِّيًا مِنْ صُدُورِ الرِّجَالِ مِنَ النَّعَمِ مِنْ عُقُلِهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه بيان دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په دوئ كي ديو كس يا په تاسو كي ديو كس دا خبره ډيره بده ده چي اووائي دقران فلاني ايت مي هير كړو، بلكه داسي به وائي دقران فلاني ايت رانه هير شو پس تاسو قران ياد ساتئ او تكرار يي كوئ زما دي په هغه ذات قسم وي دچا په قبضه كي چي زما روح دي قران دخلقو دسينو نه په تختيدو كي دځاروو دتختيدو نه چي دخپلي رسئ نه خلاص شي زيات تيز دي

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي

***************

## ١١ـ باب مَا جَاءَ أُنْزِلَ الْقُرْآنُ عَلَى سَبْعَةِ أَحْرُفٍ

### قران په اوه حرفونو نازل كړي شوي دي

---

[1] ـ اورده البخاري في الجامع /فضائل القرآن ٢٢ (٥٠٣٢)، و ٢٦ (٥٠٣٩) صحيح مسلم / المسافرين ٣٣ (٧٩٠). سنن النسائي/الافتتاح ٣٧ (٩٤٣) (تحفة الأشراف: ٩٢٩٥). و مسند احمد (١/٣٨٢، ٤١٧، ٤٢٣، ٤٢٩، ٤٦٣). وسنن الدارمي/فضائل القرآن ٤ (٣٣٩٠). والرقاق ٣٢ (٢٧٨٧)

٢٩٤٣_حَدَّثَنَا الحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الخَلَّالُ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ، قَالُوا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنِ المِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ، وَعَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَبْدٍ القَارِيِّ أَخْبَرَاهُ، أَنَّهُمَا سَمِعَا عُمَرَ بْنَ الخَطَّابِ، يَقُولُ: مَرَرْتُ بِهِشَامِ بْنِ حَكِيمِ بْنِ حِزَامٍ وَهُوَ يَقْرَأُ سُورَةَ الفُرْقَانِ فِي حَيَاةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاسْتَمَعْتُ قِرَاءَتَهُ، فَإِذَا هُوَ يَقْرَأُ عَلَى حُرُوفٍ كَثِيرَةٍ، لَمْ يُقْرِئْنِيهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكِدْتُ أُسَاوِرُهُ فِي الصَّلَاةِ، فَنَظَرْتُ حَتَّى سَلَّمَ فَلَمَّا سَلَّمَ لَبَّبْتُهُ بِرِدَائِهِ، فَقُلْتُ: مَنْ أَقْرَأَكَ هَذِهِ السُّورَةَ الَّتِي سَمِعْتُكَ تَقْرَؤُهَا ؟ فَقَالَ: أَقْرَأَنِيهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قُلْتُ لَهُ: كَذَبْتَ، وَاللَّهِ إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَهُوَ أَقْرَأَنِي هَذِهِ السُّورَةَ الَّتِي تَقْرَؤُهَا. فَانْطَلَقْتُ أَقُودُهُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنِّي سَمِعْتُ هَذَا يَقْرَأُ سُورَةَ الفُرْقَانِ عَلَى حُرُوفٍ لَمْ تُقْرِئْنِيهَا وَأَنْتَ أَقْرَأْتَنِي سُورَةَ الفُرْقَانِ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَرْسِلْهُ يَا عُمَرُ. اقْرَأْ يَا هِشَامُ". فَقَرَأَ عَلَيْهِ القِرَاءَةَ الَّتِي سَمِعْتُ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "هَكَذَا أُنْزِلَتْ". ثُمَّ قَالَ لِي النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اقْرَأْ يَا عُمَرُ". فَقَرَأْتُ بِالقِرَاءَةِ الَّتِي أَقْرَأَنِي النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "هَكَذَا أُنْزِلَتْ. ثُمَّ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ هَذَا القُرْآنَ أُنْزِلَ عَلَى سَبْعَةِ أَحْرُفٍ فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنْهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رَوَى مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ بِهَذَا الإِسْنَادِ نَحْوَهُ، إِلَّا أَنَّهُ لَمْ يَذْكُرْ فِيهِ المِسْوَرَ بْنَ مَخْرَمَةَ.[1]

**ترجمه** دمسور بن مخرمه او عبدالرحمن بن عبدالقاري رضي الله عنهما نه روايت دي فرمائي چې مونږ دامیرالمؤمنين عمر رضي الله عنه نه اوريدلي دي چې زه په شام کي دحکیم بن حزام رضي الله عنه سره تير شوم او هغه سورة الفرقان لوستلو او په هغه وخت کي رسول الله صلي الله عليه وسلم ژوندي وو ما دده قراءة واوريدلو چې په داسي حرفونو يي لوستلو په کومو چې رسول الله صلي الله عليه وسلم ماته نه وو لوسنلي، دېره نزدي ده چې ما وربانديحمله کړي وي مګر ما ورته دمونځ ختميدو پوري مهلت ورکړو څنګه چې هغه سلام اوګرځولو نو ما دهغه په مرئ کي څادر واچولو او خان ته مي رابنکلو او تپوس مي ورنه اوکړو کوم سورة

---

[1] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /الخصومات ٤ (٢٤١٩)، وفضائل القرآن ٥ (٤٩٩٢)، و ٢٧ (٥٠٤١)، والمرتدين ٩ (٦٩٣٦)، والتوحيد ٥٣ (٧٥٥٠)، صحيح مسلم /المسافرين ٤٨ (٨١٨)، سنن ابي داود/ الصلاة ٣٥٧ (١٤٧٥)، سنن النسائي/الإفتتاح ٣٧ (٩٣٩، ٩٤٠) (تحفة الأشراف: ١٠٥٩١ و ١٠٦٣٢)، والموطأ: القرآن ٤ (٥)

چې اوس ما ستا نه واوریدلو دا درته چا لوستلي دي؟ حزام اووئیل رسول الله صلي الله علیه وسلم راته لوستلي دي ما ورته اوونیل دروغ دي اوونیل زما دي په الله قسم رسول الله صلي الله علیه وسلم ماته هم دا سورة لوستلي دي کوم چې تا اولوستلو او بیا ما حزام په رابنکلو رابنکلو نبي کریم صلي الله علیه وسلم ته راوستلو ما عرض اوکړو اي دالله رسوله ما دده نه سورة الفرقان په داسي حرفونو دلوستلو په حال کي اوریدلي دي په کومو چې تا مونږ ته نه دي خودلي څه وخت چې تاسو ماته سورة الفرقان خودلو، بیا رسول الله اوفرمائیل اي عمر دي پریږده او ماته یې اووئیل اي هشام ته لوله حزام وائي هشام هغه قراءة اوکړو کوم چې ورنه ما اوریدلي وو رسول الله صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل همداسي نازل شوي دي او بیا رسول الله ماته اوفرمائیل اي عمر ته اولوله نو ما هغه شان اولوستلو څنګه چې ماته رسول الله لوستلي وو نو وبي فرمائیل همداسي نازل شوي دي او بیا رسول الله صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل دا قران په اوه حرفونو نازل شوي دي هر قراءة چې تاسو ته اسان ښکاري په هم هغه باندي قران لولئ.

امام ترمذي وایي: داحدیث حسن صحیح دي، مالك بن انس دزهري نه په همدي سند ددي هم معني روایت نقل کړي دي لیکن هغه خپل روایت کي دمخرمه واسطه نه ده ذکر کړي.

***************

٢٩٤٤_حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا شَيْبَانُ، عَنْ عَاصِمٍ، عَنْ زِرِّ بْنِ حُبَيْشٍ، عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، قَالَ: لَقِيَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جِبْرِيلَ فَقَالَ: "يَا جِبْرِيلُ، إِنِّي بُعِثْتُ إِلَى أُمَّةٍ أُمِّيِّينَ، مِنْهُمُ الْعَجُوزُ وَالشَّيْخُ الْكَبِيرُ، وَالْغُلَامُ وَالْجَارِيَةُ وَالرَّجُلُ الَّذِي لَمْ يَقْرَأْ كِتَابًا قَطُّ. قَالَ: "يَا مُحَمَّدُ، إِنَّ الْقُرْآنَ أُنْزِلَ عَلَى سَبْعَةِ أَحْرُفٍ" وَفِي الْبَابِ، عَنْ عُمَرَ، وَحُذَيْفَةَ بْنِ الْيَمَانِ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَأُمِّ أَيُّوبَ وَهِيَ امْرَأَةُ أَبِي أَيُّوبَ الأَنْصَارِيِّ، وَسَمُرَةَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَأَبِي جُهَيْمِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ الصِّمَّةِ، وَعَمْرِو بْنِ الْعَاصِ، وَأَبِي بَكْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ. ([1])

**ترجمه** دابي بن کعب رضي الله عنه نه مروي دي فرماني چې رسول الله صلي الله علیه وسلم دجبرائیل علیه السلام سره مخامخ شو رسول الله اوفرمائیل اي جبرائیل زه یو امي (کوم چې لوستل نشي کولي) قوم ته رالیږلي شوي یم چې په دي کي بوډاګان سړي او بوډۍ ګاني ښځي هلکان او جینکۍ هم دي او په دوی کي داسي خلق هم دي چاچې هیڅ کله کوم کتاب نه دي

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٢٠). وانظر: مسند احمد (٥/١١٣، ١٢٢، ١٢٥)

لوستلي جبرائيل عليه السلام اوفرمائيل اي محمد (صلي الله عليه وسلم) قران په اوه حرفونو نازل کړي شوي دي.
امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي او په دي باب کي دعمر، حذيفه بن يمان، ابوهريره، او ام ايوب رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي (ام ايوب دابو ايوب انصاري رضي الله عنه ښځه ده) او دا رنګي دسمره، ابن عباس، ابوجهيم بن حارث بن صمه ، عمرو بن العاص، او ابوبکر رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او دابيّ بن کعب نه دا حديث په متعددو سندونو مروي دي

*****************

## ١٢_باب مِنْهُ

### دسابقه باب متعلق يوبل باب

٢٩٤٥_حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَنْ نَفَّسَ عَنْ أَخِيهِ كُرْبَةً مِنْ كُرَبِ الدُّنْيَا نَفَّسَ اللَّهُ عَنْهُ كُرْبَةً مِنْ كُرَبِ يَوْمِ الْقِيَامَةِ، وَمَنْ سَتَرَ مُسْلِمًا سَتَرَهُ اللَّهُ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ، وَمَنْ يَسَّرَ عَلَى مُعْسِرٍ يَسَّرَ اللَّهُ عَلَيْهِ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ، وَاللَّهُ فِي عَوْنِ الْعَبْدِ مَا كَانَ الْعَبْدُ فِي عَوْنِ أَخِيهِ، وَمَنْ سَلَكَ طَرِيقًا يَلْتَمِسُ فِيهِ عِلْمًا سَهَّلَ اللَّهُ لَهُ طَرِيقًا إِلَى الْجَنَّةِ، وَمَا قَعَدَ قَوْمٌ فِي مَسْجِدٍ يَتْلُونَ كِتَابَ اللَّهِ وَيَتَدَارَسُونَهُ بَيْنَهُمْ إِلَّا نَزَلَتْ عَلَيْهِمُ السَّكِينَةُ، وَغَشِيَتْهُمُ الرَّحْمَةُ، وَحَفَّتْهُمُ الْمَلَائِكَةُ، وَمَنْ أَبْطَأَ بِهِ عَمَلُهُ لَمْ يُسْرِعْ بِهِ نَسَبُهُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَكَذَا رَوَى غَيْرُ وَاحِدٍ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَ هَذَا الْحَدِيثِ، وَرَوَى أَسْبَاطُ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنِ الْأَعْمَشِ، قَالَ: حُدِّثْتُ عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَ بَعْضَ هَذَا الْحَدِيثِ. [1]

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچې ديو مسلمان نه ددنيا په سختيو کې يوه سختي لرې کړه الله تعالي به ورنه دقيامت په سختيو کې يوه سختي لرې کړي او چاچې يو تنګدست قرضدار سره نرمي اوکړه الله تعالي به يې ددنيا او اخرت مشکلات اسانه کړي او چاچې په مسلمان پرده واچوله الله تعالي به

---

[1] ـ انظر حديث رقم ٢٦٤٦

ورباندي په دنيا او اخرت کې پرده واچوي او الله تعالي دبنده امداد کوي تر څو چې هغه دبل مسلمان په امداد کې لګيا وي او چاچې دعلم دين په طلب کې سفر اوکړو الله تعالي به ورته دجنت لاره اسانه کړي او څوک چې دالله تعالي په کورونو کې په يو کور کې (جومات) کې راجمع شي دقران شريف تلاوت کوي او دقران شريف درس ورکوي (يوبل ته ښايي) الله تعالي ورباندي اطمينان نازل کړي او په خپل رحمت کې پټ کړي او فرشتې ورباندي دخپلو وزرو سورى اوکړي او څوک چې خپل عمل وروستو پاتي کړو نسب يى نه شي وړاندی کولی (مسلم شريف)

امام ترمذي وايي همدارنګي يو څو راويانو ددي حديث پشان روايت داعمش نه او هغه دابو صالح نه او هغه دابو هريره په واسطه هم دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه نقل کړي دي.

اسباط بن محمد هم داعمش نه نقل کړي دي مګر داسباط په روايت کې داسي دي اعمش وائي ماته محمد روايت بيان کړي دي دابوصالح نه او ابو صالح دابوهريره په واسطه دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه نقل کړي دي او بيا يي ددي حديث بعضي حصه ذکر کړه.

**لغات** غشيتهم غشي غشيا دسمع نه په معني دپټولو دي.

خفتهم خفّ خفًا دنصر او ضرب نه په معني داحاطي کولو دي

بطا بطو بطاء دکرم نه په معني دموخر کولو دي.

**تشريح** : "من نفس عن مومن کربة من کرب الدنيا" يعني څوک چې ديومسلمان نه ددنيا په تکليفونو کې يو تکليف لري کړي نو الله تعالي به په قيامت کې دده نه داخرت په تکليفونو کې يو لوي تکليف لري کړي ، دمشکوة په يو روايت کې دا مضمون په زيات وضاحت سره راغلی دی چې څوک دمصيبت وهلو ښځو امداد کوي او يا دغريب امداد کوي نو دی داسي دی لکه څوک چې په جهاد کې کوشش کوي او که داسي يي اوفرمائيل چې تمامه شپه نفلونه کوي او يوه ذره سستي نه کوي او داسي دی لکه څوک چې هميشه روژي نيسي او افطار نه کوي

"ومن يسر علي معسر يسره الله عليه في الدنيا والاخره" څوک چې ديو تنګدست سره اساني اوکړي نو الله تعالي به دهغه سره په اخرت کې اساني اوکړي

محدثين وايي چې دلته دعمل بدله دخپل جنس نه ده ، الله تعالي يي دورکولو وعده کړي ده ، په قران کريم کې هم داسي مضمون راغلی دی "فذلك يومئذ يوم عسير"

"وما اجتمع قوم في بيت من بيوت الله تعالي" يعني څوک چې دالله دکورونو نه په يو کور کې راجمع کيږي په يو بل روايت کې راغلي دي په کومو کورونو کې چې تلاوت کيږي هغه کور اسمان والانه داسي پرقيږي لکه زمکي والاته چې داسمان ستوري پرقيږي.

"الانزلت عليهم السكينة"دسكينه نه مراد څه دي په دي کې متعدد اقوال دي اول داچي سکينه دالله رحمت ته ونيلی شي، دويم سکون، دريم وقار. څلورم طمانيت، پنځم فرشتي داتول مراد کيدی شي او دا تمام انعامات به دقران لوستونکي ته ملاويږي

"وغيشتهم الرحمة" يعني رحمت به دوی لره پټ کړي رحمت نه مراد دالله فضل او احسان دی

وحفتهم الملائکة. يعني فرشتي به ورنه احاطه وکړي، يو مشهور او بړد روايت دي چې دتلاوت کونکو او ذکر کونکو نه فرشتي ګيره اچوي تردي چې اسمان ته ورسيږي

وذکرهم الله فيمن عنده. د عنده نه مراد فرشتي دي لکه چې په يو بل روايت کې هم راغلي دي فان ذکرني في نفسه ذکرته في نفسه وان ذکرني في ملاء ذکرته في ملاء خير منهم

پس که چرې ما په زړه کې يادوي نو زه يي هم په زړه کې يادوم اوکه په ډله کې مي يادوي نو زه يي په داسي ډله کې يادوم چې دده دډلي نه به بهتره وي

ومن بطأ به عمله لم يسرع به نسبه. چالره چې خپل عمل شاته پريخودو نو دد لره دده نسب وراندي نشي مخکې کولي ، په دي کې په دي خبره باندي تنبيه ده څوك چې صرف په خپل خاندان او شرافت اعتماد کوي نو دقيامت په ورځ به يي هيڅ پکار رانشي ، پکار راتلونکي څيزونه به په قيامت کې اعمال صالحه وي ، ان اکرمکم عندالله اتقاکم.

لکه چې په يو بل روايت کې راغلي دي. يا فاطمة بنت محمد سليني ماشئت لااغني من الله شيئا يعني اي فاطمي څه چې غواړي اوغواړه خکه چې زه ستا نه دالله په عذاب کې هيڅ شي نشم دفع کولي.(روضة)

***************

## ١٣_باب مِنْهُ

### دسابقه باب متعلق يو بل باب

٢٨٤٦_حَدَّثَنَا عُبَيْدُ بْنُ أَسْبَاطِ بْنِ مُحَمَّدٍ الْقُرَشِيُّ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ مُطَرِّفٍ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ أَبِي بُرْدَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، فِي كَمْ أَقْرَأُ الْقُرْآنَ؟ قَالَ: "اخْتِمْهُ فِي شَهْرٍ". قُلْتُ: إِنِّي أُطِيقُ أَفْضَلَ مِنْ ذَلِكَ، قَالَ: "اخْتِمْهُ فِي عِشْرِينَ". قُلْتُ: إِنِّي أُطِيقُ أَفْضَلَ مِنْ ذَلِكَ، قَالَ: "اخْتِمْهُ فِي خَمْسَةَ عَشَرَ". قُلْتُ: إِنِّي أُطِيقُ أَفْضَلَ مِنْ ذَلِكَ، قَالَ: "اخْتِمْهُ فِي عَشْرٍ". قُلْتُ: إِنِّي أُطِيقُ أَفْضَلَ مِنْ ذَلِكَ، قَالَ: اخْتِمْهُ فِي خَمْسٍ، قُلْتُ: إِنِّي أُطِيقُ أَفْضَلَ مِنْ ذَلِكَ، قَالَ: فَمَا رَخَّصَ لِي". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، يُسْتَغْرَبُ مِنْ حَدِيثِ

أَبِي بُرْدَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الحَدِيثُ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَرُوِي عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَمْ يَفْقَهْ مَنْ قَرَأَ القُرْآنَ فِي أَقَلَّ مِنْ ثَلَاثٍ"، وَرُوِي عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ لَهُ: "اقْرَأِ القُرْآنَ فِي أَرْبَعِينَ"، وَقَالَ إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ: وَلَا نُحِبُّ لِلرَّجُلِ أَنْ يَأْتِيَ عَلَيْهِ أَكْثَرُ مِنْ أَرْبَعِينَ يَوْمًا، وَلَمْ يَقْرَأِ القُرْآنَ لِهَذَا الحَدِيثِ، وَقَالَ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ لَا يُقْرَأُ القُرْآنُ فِي أَقَلَّ مِنْ ثَلَاثٍ لِلْحَدِيثِ الَّذِي رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَرَخَّصَ فِيهِ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ، وَرُوِي عَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ أَنَّهُ كَانَ يَقْرَأُ القُرْآنَ فِي رَكْعَةٍ يُوتِرُ بِهَا، وَرُوِي عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، أَنَّهُ قَرَأَ القُرْآنَ فِي رَكْعَةٍ فِي الكَعْبَةِ، وَالتَّرْتِيلُ فِي القِرَاءَةِ أَحَبُّ إِلَى أَهْلِ العِلْمِ.[1]

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما بيان دي فرمائي چې ماعرض اوکړو اي داالله رسوله ما ديباره په څومره ورځو کي قران ختمول پکار دي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل په مياشت کي يو ځل ختم کوه ما عرض اوکړو زه ددينه په کمه موده کي دختم کولو طاقت لرم رسول الله اوفرمائيل په شلو ورځو کي ختم کوه ما اوونيل ددينه هم په زياته کمه موده کي دختم کولو طاقت لرم نو وبي فرمائيل په پنځلس ورځو کي ختم کوه ما عرض اوکړو ددينه هم په کمه موده کي په ختم کولو قادر يم نو راته يي اوفرمائيل په لسو ورځو کي ختم کوه نو ما اوونيل ددينه هم په کمه موده کي په ختم کولو قدرت لرم نو وبي فررمائيل په پنځو ورځو کي ختم کوه نو ما اوونيل ددينه هم په کمه موده کي ختم کولي شم نو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل دپنځو ورځو نه په کمه موده کي دقران ختمولو اجازت نشته.

امام ترمذي وايي. داحديث په دي سند حسن صحيح غريب دي، او داحديث په سند دابي برده عن عبدالله بن عمرو غريب ګڼرلي شوي دي داحديث په يو څو سندونو دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه مروي دي، دعبدالله بن عمر نه مروي دي نبي کريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچې قران د دري ورځو نه په کمه موده کي اولوستلو دي دقران په مطلب پوهه نشو. دعبدالله بن عمرو نه دا هم مروي دي چې رسول الله ورته فرمائيلي دي قران په څلويښتو ورځو کي ختموه، اسحاق بن ابراهيم بن راهويه وائي مونږ ددي حديث په بنا هيچاته دا اجازت نه ورکوو چې په هغه باندي څلويښت ورځي تيري شي او هغه په څلويښتو ورځو کي دقران ختم نه وي کړي، ددي حديث په بنا کوم چې درسول الله صلي الله عليه وسلم نه مروي دي بعضي اهل علم وائي چې د دري ورځو نه په کمه موده کي قران ختمول پکار نه دي او بعضي اهل

[1] ـ تفرد به المؤلف (وأخرجه النسائي في الكبرى) (تحفة الأشراف: ٨٩٥٦)

علمو اجازت ورکړي دي، او دعثمان بن عفان رضي الله عنه متعلق مروي دي چې هغه به دوترو په يو رکعات کي يو قران ختمولو، دسعيد بن جبير نه مروي دي چې هغه په کعبه کي په يو رکعات کي پوره قران اولوستلو ، په قراءة کي ترتيل (په وقفه وقفه لوستل داهل علمو په نزد مستحب دي

**تشريح**: په دي حديث کي دصحابه کرامو ددين سره دشوق اندازه خودلي شوي ده او بل طرف ته ورنه دصحابه کرامو په عبادت کي اعتدال پسندي هم معلوميږي.

اعتدال دي داسي وکړي شي چې ده ددنيا او اخرت تقاضي پوره شي . ددينه داهم معلومه شوه چې انسان دي دومره عبادت کوي چې په دي په دنيا کي دده جسماني طاقت بلکل مړ نشي ، دا هم معلومه شوه چې انسان دي داسي عبادت وکړي چې تر مرګه پوري يي په عبادت کي کمي رانشي دطاقت په زمانه کي دي داسي اعتدال اختيار کړي چې بيا يي په بوډاوالي کي هم کولي شي لکه چې په يو حديث کي راغلي دي.

بله دا خبره هم معلومه شوه چې دښځو دپاره دسړو په نسبت دشرم اوحياء خيال ساتل زيات پکار دي، اوکه څه خبره کوي نو په طور دکنايه دي کوي.

****************

٢٩٤٧ـ حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي النَّضْرِ الْبَغْدَادِيُّ، حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الْحَسَنِ هُوَ ابْنُ شَقِيقٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْمُبَارَكِ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ الْفَضْلِ، عَنْ وَهْبِ بْنِ مُنَبِّهٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ لَهُ: "اقْرَأِ الْقُرْآنَ فِي أَرْبَعِينَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَقَدْ رَوَى بَعْضُهُمْ عَنْ مَعْمَرٍ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ الْفَضْلِ، عَنْ وَهْبِ بْنِ مُنَبِّهٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَمْرٍو أَنْ يَقْرَأَ الْقُرْآنَ فِي أَرْبَعِينَ. [1]

**ترجمه** : دابن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي فرمائي چې يو کس عرض اوکړو اي دالله رسوله کوم يو عمل دالله تعالي په نزد زيات محبوب دي؟ رسول الله اوفرمائيل "الحال" او "المرتحل" (يعني تلونکي او راتلونکي) عمل ما اووئيل دحال او مرتحل نه څه مراد دي رسول الله اوفرمائيل څوک چې قران دشروع نه اخره پوري اولولي بيا چې هر کله کوزيږي نو روانيږي

[1] ـ سنن ابي داود/ الصلاة ٣٢٦ (١٣٩٥) (تحفة الأشراف: ٨٩٢٢)

امام ترمذي وايي داحديث غريب دي مونږ يي صرف دابن عباس په روايت پيژنو چې په دي سند زارسيدلي دي او سند يي څه خاص قوي نه دي.

*****************

٢٩٤٨ـ حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ الْجَهْضَمِيُّ، حَدَّثَنَا الْهَيْثَمُ بْنُ الرَّبِيعِ، حَدَّثَنَا صَالِحٌ الْمُرِّيُّ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ زُرَارَةَ بْنِ أَوْفَى، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَجُلٌ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَيُّ الْعَمَلِ أَحَبُّ إِلَى اللَّهِ؟، قَالَ: " الْحَالُّ الْمُرْتَحِلُ "، قَالَ: وَمَا الْحَالُّ الْمُرْتَحِلُ؟، قَالَ: " الَّذِي يَضْرِبُ مِنْ أَوَّلِ الْقُرْآنِ إِلَى آخِرِهِ، كُلَّمَا حَلَّ ارْتَحَلَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ مِنْ حَدِيثِ ابْنِ عَبَّاسٍ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَإِسْنَادُهُ لَيْسَ بِالْقَوِيِّ. ([1])

**ترجمه** : دعبدالله بن عمرو رضي الله عنهما بيان دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوك چې د دري ورځو نه په كمه موده كي قران ختم كړي هغه د قران په مطلب هډو پوهه شوي نه دي.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي.

*****************

حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا صَالِحٌ الْمُرِّيُّ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ زُرَارَةَ بْنِ أَوْفَى، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ بِمَعْنَاهُ، وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا عِنْدِي أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ نَصْرِ بْنِ عَلِيٍّ، عَنِ الْهَيْثَمِ بْنِ الرَّبِيعِ. ([2])

**ترجمه** : قتاده دزراره بن اوفي رضي الله عنه په واسطه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه دماقبل هم معني روايت نقل كړي دي مګر قتاده پخپل روايت كي دابن عباس واسطه نه ده ذكر كړي

امام ترمذي وايي: داحديث زما په نزد دنضر بن علي دحديث نه چې دهيثم بن ربيع نه يې نقل كوي زيات صحيح دي.

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ٥٣٢٩)

[2] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ١٨٦٥٣)

*****************

٢٩٤٩_حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلانَ، حَدثَنَا النَّضْرُ بْنُ شُمَيْلٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ الشِّخِّيرِ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَمْ يَفْقَهْ مَنْ قَرَأَ الْقُرْآنَ فِي أَقَلَّ مِنْ ثَلاثٍ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([1])

**ترجمه** : دعبدالله بن عمرو رضي الله عنهما نه روايت دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچې د دريو ورځو نه په كمه موده كي قران ختم كړو نو هغه دقران په مفهوم پوهه نشو.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي.

*****************

حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، حَدثَنَا شُعْبَةُ، بِهَذَا الإِسْنَادِ نَحْوَهُ. ([2])

**ترجمه** : محمد بن بشار دمحمد بن جعفر په واسطه دشعبه نه په مذكوره سند دماقبل هم معني روايت نقل كړي دي.

****************

[1] ـ سنن ابي داود/ الصلاة ٣٢٦ (١٣٩٣) . سنن ابن ماجه/الإقامة ١٧٨ (١٣٤٧) (تحفة الأشراف : ٨٩٥٠) و مسند احمد (١٨٩،٢/١٣٦)

[2] ـ سنن ابي داود/ الصلاة ٣٢٦ (١٣٩٣) . سنن ابن ماجه/الإقامة ١٧٨ (١٣٤٧) (تحفة الأشراف : ٨٩٥٠) . و مسند احمد (١٨٩،٢/١٣٦)

# كتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم

## د قران كريم د تفسيراحكام او مسائل د رسول الله (ص) نه

## ١_ باب مَا جَاءَ فِي الَّذِي يُفَسِّرُ الْقُرْآنَ بِرَأْيِهِ

## پخپله رايي د قران دتفسير كولو د مما نعت بيان

### دقران دتفسير ليكلو اداب

، شيخ الاسلام مولانا محمد يوسف لدهيانوي شهيد په "اپ كى مسائل" كي د قران دتفسير اداب ذكر كړي دي چي ستاسو د فائدي دپاره نقل كوو

دتفسير معني دكوم څيز پرانستل، ظاهرول، بيانول، اود علماؤ په اصطلاح كي دتفسير معني دقران معاني بيانول اومراد الهيه لره معين كول دي، دتاويل معني داهل علمو په اصطلاح كي دقران كريم الفاظو جملو لره دهغوئ اصل مراد طرف ته ګرځول دي . دتفسير او تاويل الفاظ عموما هم معني استعماليږي ليكن بعضي علماء ددوئ په مينځ كي دا فرق كوي چې تفسير لفظ اكثر دمفرد الفاظو دتشريح دپاره استعماليږي او تاويل لفظ دجملو دمفهوم دبيانولو دپاره استعماليږي . دبعضي علماؤ قول دي دكومي جملي مفهوم چې په قطعي طور متعين وي او په دي كي دكوم بل مفهوم ګنجائش نه وي دداسي مفهوم بيانولوته تفسير وئيلي شي اوچرته چې دمتعددو معانيو احتمال وي او هلته غور او فكر كولو نه پس ديو طرف معين كولو ته ضرورت وي نو ديته تاويل وئيلي شي دبعضو قول دي چې كوم مفهوم منقول وي دهغي نوم تفسير دي او كوم مفهوم چې داجتهاد سره تعلق لري هغه ته تاويل وئيلي شي (ددي زيات تفصيل دسيوطي په الاتقان كي كتلي شي).

خلاصه دكلام داده چې علم تفسير هغه علم ته وئيلي شي په كوم كي چې دقران كريم معاني بيانيږي او ددي داحكامو او حكمتونو وضاحت كوي

### يوه نازكترينه ذمه واري

دقران كريم تفسير او تشريح يو سخت او انتهائي نازك ترينه ذمه واري ده ځكه چې قران كريم دالله تعالي مقدس كلام دي او دقران كريم تفسير په حقيقت كي دالله تعالي ترجماني ده كله چې مونږ دقران كريم دكوم لفظ يا دكومي جملي او يادكوم ايت تفسير بيانوو نو ګويا كي مونږ دا دعوه كوو چې دالله تعالي مراد همدا دي او بيا په دي شان سره دخپل بيان كړي مفهوم نسبت الله تعالي ته كوو . او ظاهره داده چې په دي سلسله كي لږ شان لغزش او تساهل هم دافتراء علي الله سبب جوړيدي شي لهذا افتراء علي الله انتهائي سنګين جرم دي الله تعالي

فرمائيلي دي. وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرَى عَلَى اللَّهِ كَذِبًا أَوْ كَذَّبَ بِآيَاتِهِ إِنَّهُ لَا يُفْلِحُ الظَّالِمُونَ(الانعام/٢١).

يعني دهغه چا نه به لوي ظالم څوك وي څوك چې په الله تعالي پوري بهتان تړي او يا دالله تعالي دايتونو تكذيب كوي يقينا چې داسي ظالمان به هيڅ كله كامياب نشي.

دمملكت سربراهان او شاهان دعالم دترجمانئ دفرائضو په ادا كولو پوهيږي چې دا څومره نازكه ذمه واري ده او څوك چې په دي ذمه وارئ فائز وي دهغه دپاره څومره لياقت او مهارت شرط دي؟ دده دپاره دشاهانه رسومو او ادابو او ژبي او محاوراتو نه باخبر كيدل ضروري دي ، او بيا دترجمانئ دفرائضو د ادا كولو په حال كي دده دپاره دڅومره احتياط او بيدار مغزئ نه كار اخستل پكار دي او بيا سره دپوهي يا په ناپوهئ سره دغلطي ترجمانئ په سبب دڅومره شاهي عتاب خطره ده؟ هر كله چې ددنيا دبادشاهانو ترجماني دومره نازكه ده نو ددينه اندازه لګيدلي شي چې دشهنشاه مطلق او احكم الحاكمين ترجماني به څومره مشكل تريه او څومره نازكه وي ؟ دقران كريم تفسير يو قسم نزاكت لره متضمن دي او هغه دادي چې خاص دقران كريم په سبب دانسانيت د سترو لارو نشان ديهي كيږي او هم ددي په ذريعه دعقائدو او عباداتو شكلونه متعين كيږي اوهم ددينه دمعاملاتو او معاشرت تشكيل كيږي او هم ددينه دالله تعالي دمحبوب او نامحبوبو جائزو او ناجائزو حلالو او حرامو حدبندي كيږي او هم ددينه اخلاقي اقدار په وجود كي راځي او هم ددينه دانسانيت او عبديت پيماني مرتب كيږي او هم ددينه داسلام عالم ګير قانون په وجود كي راغلي دي ، الغرض ددين او مذهب ، عقائدو او اعمالو، اخلاقو او معاشرت، سياسيت او تمدن او دعدل او انصاف قانون مدار په قران كريم دي او ظاهره ده چې دقران كريم په تفسير او تشريح كي لږه شان بي احتياطي هم دڅومره عظيم الشان مفاسدو سبب جوړيدي شي او دداسي بي احتياطه مفسر او پده باندي داعتماد كونكي دپاره شديده خطره ده چې دا كتاب چرته دهدايت په ځاي دګمراهئ منظر پيش نكړي.

**دقران په تفسير كي دسلف صالحينو احتياط**

دقران كريم دعظمت او نزاكت پيش نظر ډيرو سلفو صالحينو صحابه كرامو او تابعينو دتفسير په باب كي دګفتګو كولو نه ډډه كړي ده چنانچې دانبياء عليهم السلام نه پس په تمام انسانيت كي دافضل ترين شخصيت ابوبكر صديق رضي الله عنه په باره كي منقول دي چې دده نه دقران كريم ديو لفظ دمعني په باره كي تپوس اوكړي شو نو ويي فرمائيل : "اي ارض تقلعني واي سماء تظلني اذا قلت في كتاب الله ما لا اعلم".

يعني كومه زمكه به مالره پورته كړي او كوم اسمان به په ماباندي سوري اوكړي كه چري زه دالله تعالي دكتاب په باره كي داسي څه اووايم دكوم چې ماته علم نه وي.

دتابعينو دسردار سعيد بن مسيب په باره كي منقول دي كله چې به دده نه دقران كريم دكوم ايت دتفسير په باره كي سوال اوكړي شو نو ونيل به يي " انا لا نقول في القران شيئا" يعني مونږ دقران كريم په تفسير كي دخپله طرفه هيڅ نه وايو.
ديحي بن سعيد قول دي چې سعيد بن مسيب به په قران كريم كي صرف دهغه ايتونو تشريح بيانوله دكومو مفهوم چې به ورته په قطعي طور معلوم وو ، ديزيد بن ابي يزيد قول دي چې كله به د سعيد بن مسيب نه دحلال او حرام جائز او ناجائز په باره كي تپوس اوكړي شو نو داسي به معلوميده چې دي په دنيا كي دټولو نه لوي عالم دي ليكن چې كله به ورنه مونږ دقران كريم دكوم ايت په باره كي سوال اوكړو نو دي به خاموش شو لكه چې هيڅ يي نه وي اوريدلي
ابوبكر صديق رضي الله عنه اعلم الصحابه دي او سعيد بن مسيب اعلم التابعين دي ليكن علم او فضل دانش او بصيرت تقوي او طهارت كي په لوړه مرتبه دفائز كيدو باوجود يي دقران كريم دتشريح بيانولو نه ډډه كوله څكه چې هغه ددي كلام دنزاكت نه خبردار وو او دا ورته معلومه وه چې په قران كريم كي معمولي بي احتياطي څومره سنګين جرم دي.

## دمفسر شرائط

دقران كريم دتفسير دپاره څومره لياقت ته ضرورت دي اودقران په مفسر كي دكومو اوصافو اوشرائطو موجوديدل ضروري دي؟ د امت علماؤ وربانديي تفصيلي ګفتګو كړي ده. حافظ جلال الدين سيوطي په الاتقان كي ددي مبحث خلاصه ذكر كړي ده ، امام سيوطي فرماني بعضي اهل علم خو ددي قائل دي چې دچا دپاره اګركه هغه هرڅنګه عالم او فاضل وي دقران كريم تفسير كول جائز نه دي بلكه څه چې درسول الله صلي الله عليه وسلم نه منقول دي په هغي اكتفاء كول ضروري دي (مګر دده داقول دعلماؤ په نزد صحيح نه دي)
ليكن دعلماؤ يوه ډله ددي قائل دي چې څوك په هغه علومو كي مهارت لري كوم چې دتفسير دپاره ضروري دي دهغه دپاره دقران تفسير كول جائز دي اوهغه علوم مندرجه ذيل دي
(۱) علم لغت (۲) علم صرف (۳) علم نحو (۴) علم اشتقاق (۵) علم معاني (۶) علم بيان (۷) علم بديع (۸) علم قراءت (۹) علم اصول الدين (۱۰) علم اصول فقه (۱۱) علم اسباب النزول (۱۲) علم ناسخ ومنسوخ (۱۳) علم فقه (۱۴) علم حديث (۱۵) وهبي علوم.

## دتفسير اداب

دتفسير په ماخذ كي دټولو نه اولني ماخذ قران كريم دي . پس په دي وجه دمفسر دپاره ضروري دي چې د قران دكوم ايت دتفسير كولو په حال كي د زير بحث ايت سياق او سباق اوددي مضمون مطابق نور ايتونه هم پيش نظر وساتي ، څكه چې په قران كريم كي يو مضمون

په مختلفو اندازرونو اوعنواناتو سره بيانولي شي ، يو مضمون چې په يومقام کي مجمل وي نو په بل مقام کي مفصل وي اوچې په يوخاي کي مختصر وي نوپه بل خاي کي مطول وي. اوکه په يومقام کي مطلق وي نو په بل مقام کي مقيد وي ، پس دقران کريم دکوم ابت داسي مضمون بيانول چې بل ايت خلاف وي جائز نه دي

دويم همدارنګي دمفسر قران په فرائضو کي داهم شامل دي چې دکوم ايت دتفسير کولو په حال کي درسول الله قول او عمل پيش نظر ولري اودقران دتفسير متعلق کومه داسي خبرد ونکري کومه چې درسول الله دسنت خلاف وي، داځکه لکه څنګه چې الله تعالي دقران کريم الفاظ په خپل رسول نازل کړي دي نوهمدارنګي يي ددي تشريح هم په خپله ذمه اخستلي ده .

چنانچې الله تعالي فرمائيلي دي "ثم انّ علينا بيانه " يعني بيا ددي بيانول هم زمونږ ذمه واري ده

ددي ايت کريمه نه معلوميږي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم ته به دقراني ايتونو مراد دالله تعالي دطرفه وئيلي کيدلو نوپه دي وجه دقران کريم مفسر او شارح په خپله الله تعالي دي، چونکه رسول الله دوحي جلي اوخفي اود نبوت دنور په ذريعه په قراني مطالبو پوهيدو نو په دي وجه دقران کريم په تفسير او تشريح کي تلميذ الرحمٰن هم وو اود امت دپاره دقراني مطالبو دبيانولو معلم هم وو چنانچې الله تعالي فرمائيلي دي " وَأَنْزَلْنَا إِلَيْكَ الذِّكْرَ لِتُبَيِّنَ لِلنَّاسِ مَا نُزِّلَ إِلَيْهِمْ وَلَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُونَ" (۴۴/النحل).

يعني نازل کړي دي مونږ تاته قران ددي دپاره چې بيان کړي خلقو ته هغه څه چې دوئ ته نازل شوي دي ددي دپاره چې دوئ فکر وکړي.

ارشاد الهي دي "وَمَا أَنْزَلْنَا عَلَيْكَ الْكِتَابَ إِلَّا لِتُبَيِّنَ لَهُمُ الَّذِي اخْتَلَفُوا فِيهِ وَهُدًى وَرَحْمَةً لِقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ" (٦٤/النحل). يعني مونږ په تاباندي داکتاب صرف ددي دپاره نازل کړي دي چې په کومو امورو کي دوئ اختلاف کوي چې ته ددوئ په مينځ کي ددي موافق فيصله وکړي ، يقينا په دي کي هدايت او رحمت دي دمومنانو دپاره

ارشاد الهي دي " إِنَّا أَنْزَلْنَا إِلَيْكَ الْكِتَابَ بِالْحَقِّ لِتَحْكُمَ بَيْنَ النَّاسِ بِمَا أَرَاكَ اللَّهُ وَلَا تَكُنْ لِلْخَائِنِينَ خَصِيمًا"(النساء/١٠٥).

مونږ نازل کړي دي په تا باندي کتاب په رښتيا چې ته فيصلي وکړي په خلقو کي دهغه علم مطابق چې الله درته درکړي . پس ته دخيانت ګرو دطرفه جګړه ماري ونکړي

پس دامت دپاره دقران دتولو اولني شارح رسول الله صلي الله عليه وسلم وو. پس درسول الله تمام اقوال او افعال او احکام او سيرت اوسنت دقران کريم شرح اوتفصيل دي، او همدا

حقيقت ام المؤمنين عائشه صديقه رضي الله عنها په دي الفاظو بيان كړي دي چې "كان خلقه القران" يعني درسول الله صلي الله عليه وسلم اخلاق قران وو
مطلب داچې د رسول الله صلي الله عليه وسلم اخلاق او عادات ، سيرت او كردار او اطوار دقران كريم په سانچې كي اچولي شوي وو او رسول الله صلي الله عليه وسلم چې به هرڅه فرمائيل هغه به يي يادول هم اوهغه ټول دقران كريم تعليم وو ، پس په دي وجه د رسول الله صلي الله عليه وسلم هر حكم دقران كريم شرحه وه ، همدا مفهوم امام شافعي په وضاحت سره داسي بيان كړي دي: "كل ماحكم به رسول الله صلي الله عليه وسلم فهو مما فهمه من القران قال تعالي: " إِنَّآ أَنزَلْنَآ إِلَيْكَ ٱلْكِتَٰبَ بِٱلْحَقِّ لِتَحْكُمَ بَيْنَ ٱلنَّاسِ بِمَآ أَرَىٰكَ ٱللَّهُ ۚ وَلَا تَكُن لِّلْخَآئِنِينَ خَصِيمًا"(النساء/١٠٥)" يعني رسول الله صلي الله عليه وسلم هرڅومره فيصلي كړي وي هغه يي دقران كريم نه معلومي كړي وي ، چنانچې الله تعالي فرمائيلي دي : يقينا مونږ تاته كتاب درليګلي دي چې ته ددي مطابق په خلقو كي فيصلي وكړي ، زمونږ شيخ مولانا محمد يوسف بنوري به دخپل شيخ امام العصر مولانا محمد انور شاه كشميري قول نقل كولو
كه چري دبصيرت په نور سره په احاديثو غور وكړي شي نو معلومه به شي چې زيات احاديث دقران كريم دصافي چيني نه راوتلي دي تردي پوري چې په ډيرو حاديثو كي دقران كريم لطيفو تعبيراتو اشارات هم موندلي كيږي.
دقران كريم دتشريح اوتفسير دپاره دقران كريم شارح اول محمد رسول الله صلي الله عليه وسلم وضاحت دڅومره اهميت حامل دي ددي اندازه دمندرجه ذيل مثالونو نه لګيدلي شي:
١- په قران كريم كي په باره داقامت صلاة حكم شوي دي ، دكوم وخت څومره ركعتونه دي، اود مونځ څه څه شرائط او اركان دي؟ مونځ دكوم خاي نه شروع كيږي اوپه كوم خاي ختميږي؟ دا ټول شل سوالات دي چې جوابونه يي رسول الله صلي الله عليه وسلم په خپل قول عمل سره وركړي دي او ددي تشريحات نبويه نه علاوه دهيڅا دپاره ممكن نه ده چې دقران كريم دحكم "اقامت صلاة كيفيت متعين كړي شي.
٢- په قران كريم كي په متعددو مقاماتو دزكوة دفرضيت حكم شوي دي ليكن په څومره مال اوپه كوم مال كي زكوة فرض دي؟ دزكوة نصاب څومره دي اوپه څومره مقدار كي زكوة وركول فرض دي؟ دا او ددي پشان تمام امور دنبي كريم صلي الله عليه وسلم په تشريح سره امت ته معلوم شوي دي ورنه هيڅا دالله تعالي مراد معلومولي نشو
٣- په قران كريم كي دبيت الله دحج كولو حكم شوي دي ليكن دحج څه طريقه ده او اركان اولوازم يي څه دي؟ ددي تمامو امورو تفصيل د رسول الله صلي الله عليه وسلم دعملي اوقولي تشريح نه معلوميږي اوددينه علاوه هيڅوك دقراني حج طريقه متعين كولي نشي، دا يوڅو

مثالونه داسلام اهم ترين اركان پيش كړي شوي دي ددينه اندازه لګيدلي شي چې دقران كريم مراد د رسول الله صلي الله عليه وسلم په قول اوعمل سره متشكل كيږي
دريم . دا چې مفسر په تفسير كي د رسول الله صلي الله عليه وسلم دصحابه كرامو درنړا رهنماني حاصله كړي اود هيڅ يو ايت داسي تفسير ونكړي كوم چې دصحابه كرامو دتفسير خلاف وي ځكه چې صحابه كرام دنبوت دمدرسي بلاواسطه شاګردان دي او رسول الله صلي الله عليه وسلم دالله تعالي دطرفه معلم اورهنما دانسانيت راليږلي شوي دي چې مثال يي نشته لكه چې په يوځو مقاماتو كي يي فرمائيلي دي
"وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ" (البقرة/ ١٢٩).
ظاهره ده چې دكتاب اوحكمت دتعليم نه پس دقران كريم په تفسير كي څوك دصحابه كرامو سره برابريدي شي ، صحابه كرام خودوحي دنزول عيني شاهدان وو . علامه سيوطي په الاتقان كي د امير المؤمنين علي رضي الله عنه قول نقل كړي دي چه
" والله ما انزلت اية الا وقد علمت في ما انزلت واين انزلت ان ربي وهب لي قلبا عقولا ولسانا سؤلا" (الاتقان:٢/٨٠ ).يعني په الله قسم هريو ايت چې نازل شوي دي ماته دهغه په باره كي معلومه ده چې په څه باره كي نازل شوي دي اوچرته نازل شوي دي زما رب ماته پوهيدونكي زړه اوتپوس كونكي ژبه راكړي ده.
په يوبل روايت كي راغلي دي چې علي كرم الله وجهه فرمائيلي دي: "سلوني فوالله لاتسألوني عن شيء الا اخبرتكم. وسلوني عن كتاب الله. فوالله مامن اية الا وانا اعلم ابليل انزلت ام بنهار. ام في سهل ام في جبل(الاتقان:٢/٨٠).
زمانه سوال وكړئ په الله قسم زما نه چې دهري خبري متعلق تپوس كوئ زه به يي جواب دركوم اوكه دكتاب الله په باره كي رانه تپوس وكړئ نو په الله قسم په قران كريم كي هيڅ يو ايت داسي نشته دكوم په باره كي چې ماته دا علم نه وي چې داد ورځي نازل شوي دي اوكه دشپې په ميدان كي نازل شوي دي اوكه په غر كي
همدارنګي دفقيه الامة عبدالله بن مسعود رضي الله عنه بيان دي فرمائي چه
" والذي لا اله غيره مانزلت اية من كتاب الله الا وانا اعلم فيمن نزلت واين نزلت ولو اعلم مكان احد اعلم بكتاب الله مني تناله المطايا لاتيته (الاتقان:٢/٨٠ )
يعني په هغه ذات مي دي قسم وي دچانه علاوه چې بل معبود نشته دقران هر يو ايت چې نازل شوي دي ددي په باره كي ماته معلومه ده چې دچا په حق كي نازل شوي دي او كله نازل شوي

دي او كه ماته معلومه شي چې فلاني ک .. زما نه دالله تعالي په كتاب زيات پوهيږي او دغه كس ته رسيدل ممكن وي نو زه به ضرور ددغه كس په خدمت كي حاضر شوي وي
او صحابه كرامو په دومره محنت او مشقت سره دقران په فهم كي مهارت حاصل كړي وو چې ددينه علاوه بل څوك ددي تصور هم نشي كولي په دي سلسله كي دصحابه كرامو نه ډيري عجيب او غريب واقعات نقل كړي شوي دي چې نقل كول يي موجب دطوالت كرخي . پس دلته به صرف دابو عبدالرحمن اسلمي رضي الله عنه يوه جمله نقل كول كافي وي فرمائيلي يي دي چې :" حَدَّثَنَا الذين كانوا يقرؤون الْقُرْآنَ كَعُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ وَعَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ وَغَيْرِهِمَا أَنَّهُمْ كَانُوا إِذَا تَعَلَّمُوا مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَشْرَ آيَاتٍ لَمْ يَتَجَاوَزُوهَا حَتَّى يَعْلَمُوا مَا فِيهَا مِنَ الْعِلْمِ وَالْعَمَلِ قَالُوا: فَتَعَلَّمْنَا الْقُرْآنَ وَالْعِلْمَ وَالْعَمَلَ جَمِيعًا وَلِهَذَا كَانُوا يَبْقَوْنَ مُدَّةً فِي حِفْظِ السُّورَةِ "(الاتقان:٢ / ٧٨).
يعني كوم علماء چې دقران درس وركوي لكه عثمان بن عفان ، عبدالله بن مسعودرضي الله عنهما. او بعضي نور هغوئ مونږ ته وئيلي دي چې دوئ به كله درسول الله صلي الله عليه وسلم نه دقران كريم لس ايتونه ياد كړل نو ددينه به مخكي نور نه تلل تردي پوري چې چرته په ايتونو كي دعلم او عمل څه خبره وي هغه حاصل كړي ، فرمائيل به يي چې مونږ قران كريم او دقران علم او عمل دري واړه يو ځاي زدكړي دي په همدي بنا هغوئ به داوږدي زماني پوري ديو سورة په زدكړه كي مشغول وو.
الغرض دتفسير نبوي نه پس دصحابه كرامو تفسير دهرچانه مقدم دي او په حقيقت كي دا هم درسول الله صلي الله عليه وسلم دتعليم ثمره ده نو په دي وجه ديو مفسر دپاره ددي شانه غورخول په هيڅ شان سره ممكن نه دي او ددي په ضمن كي داكابرينو تابعينو تفسير هم راځي چاچې دصحابه كرامونه دقران كريم باقاعده تعليم حاصل كړي وو ، پس په دي وجه په مفسر لازم دي چې دي به دصحابه كرامو او تابعينو دتفسير نه خلاف نه كوي.
څلورم دمفسر دپاره دا هم ضروري دي چې دي به داهل حق دعقائدو او اعمالو او اخلاقو پابند وي، په الاتقان كي امام سيوطي دابو طالب طبري قول نقل كړي دي چې :"أَنَّ مِنْ شَرْطِهِ صِحَّةُ الِاعْتِقَادِ أَوَّلًا وَلُزُومُ سُنَّةِ الدِّينِ فَإِنَّ مَنْ كَانَ مَغْمُوصًا عَلَيْهِ فِي دِينِهِ لَا يُؤْتَمَنُ عَلَى الدُّنْيَا فَكَيْفَ عَلَى الدِّينِ ثُمَّ لَا يُؤْتَمَنُ مِنَ الدِّينِ عَلَى الْإِخْبَارِ عَنْ عَالِمٍ فَكَيْفَ يُؤْتَمَنُ فِي الْإِخْبَارِ عَنْ أَسْرَارِ اللهِ تَعَالَى وَلِأَنَّهُ لَا يُؤْمَنُ إِنْ كَانَ مُتَّهَمًا بِالْإِلْحَادِ أَنْ يَبْغِيَ الْفِتْنَةَ وَيُغِرَّ النَّاسَ بِلَيِّهِ وَخِدَاعِهِ " (الاتقان:٣ /١٧٦).

يعني دمفسر په شرائطو کي يو شرط داهم دي چې اول خو به دده عقيده صحيح وي دويم دا چې دي به په دين کي دسنتو تابع وي او پابند به وي ځکه چې څوك په دين کي مخدوش وي نو په دنيوي معاملاتو کي ورباندي هم اعتماد نشي کيدي هر کله چې داسي ده نو ددين په معامله کي ورباندي څنګه اعتماد اوکړي ؟او بيا داسي کس که دکوم عالم دين په باره کي کومه خبره نقل کړي نو په دي کي هم دي داعتماد لايق نه وي . داسرار الهيه په خبر ورکولو کي به هغه څنګه داعتماد لايق اوګرځي او په چا باندي چې دالحاد الزام وي نو دهغه په باره کي دا ويره ده هسي نه چې دي دتفسير په ليکلو سره په خلقو کي فتنه قائمه کړي او خلقو لره دخپلي ژبي په تيزئ او مکارئ سره ګمراه کړي

پنځم: همدا رنګي دمفسر دپاره دهر قسم کجروئ او بدعاتو نه دذهن پاکول ضروري دي ورنه دده تفسير به داعتماد لايق پاتي نشي ځکه چې دي به قران کريم لره دخپلو بدعاتو په رنګ کي رنګ کول شروع کړي نوم خو به يي دتفسير وي ليکن څه چې ليکي هغه به دقران کريم تفسير نه وي بلکه دده دبدعتي ذهن براس به وي الله تعالي په داسي خلقو دقران دپوهي حاصلول حرام کړي دي چاچې دبدعاتو او نفساني خواهشاتو ډيوه بله کړي وي او دقران کريم مطالعه کوي سيوطي په الاتقان کي دامام زرکشي د البرهان عبادت نقل کړي دي چه.

"اعْلَمْ أَنَّهُ لَا يَحْصُلُ لِلنَّاظِرِ فَهْمُ مَعَانِي الْوَحْيِ وَلَا يَظْهَرُ لَهُ أَسْرَارُهُ وَفِي قَلْبِهِ بِدْعَةٌ أَوْ كِبْرٌ أَوْ هَوًى أَوْ حُبُّ الدُّنْيَا أَوْ وَهُوَ مُصِرٌّ عَلَى ذَنْبٍ أَوْ غَيْرُ مُتَحَقِّقٍ بِالْإِيمَانِ أَوْ ضَعِيفُ التَّحْقِيقِ أَوْ يَعْتَمِدُ عَلَى قَوْلِ مُفَسِّرٍ لَيْسَ عِنْدَهُ عِلْمٌ أَوْ رَاجِعٌ إِلَى مَعْقُولِهِ وَهَذِهِ كُلُّهَا حُجُبٌ وَمَوَانِعُ بَعْضُهَا آكَدُ مِنْ بَعْضٍ" (الاتقان:۲/۱۸۱).

په دي پوهيدل پکار دي چې دقران کريم مطالعه کونکي ته دهغه وخته پوري دوحي معاني نه ظاهريږي ترڅو چې دده په زړه کي بدعت وي يا تکبر وي يا نفساني خواهش وي يا دنيا محبت وي او يا دي په ګناه باندي اصرار کونکي وي او ياپي ايمان پوخ نه وي او يا په ده کي دتحقيق ماده کمزوري وي او يا دکوم داسي مفسر په قول اعتماد اوکړي کوم چې دعلم نه روند وي او يا دقران کريم په تفسير کي محض عقلي اسونه زغلوي. غرض داچې دا تمام څيزونه دقران دتعليم نه حجاب او موانع دي چې بعضي په دوئ کي دبعضو نورو نه زيات قوي دي

شپږم تفسير بالراي لکه څنګه چې په مفسر دا لازم وو چې هغه به دخيالاتو او افکارو نه ذهن پاکوي او په دي خبره دپوهيدو کوشش به کوي چې په دي ايت کي قران کريم دڅه خبري دعوت ورکوي او په دي کي په کومو کومو مسائلو رڼا اچولي شوي ده؟پخپله دي په قران کريم کي دخپلو خيالاتو او افکارو داخلولو کوشش نه کوي نو همدا رنګي پده باندي دا هم لازم دي چې

د تفسير بالرائي نه اجتناب اوکړي ځکه چې دا کار حرام دي او په دي سخت سخت وعيدونه راغلي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي
" من قال في القران برأيه فليتبوأ مقعده من النار... وفي رواية: من قال في القران بغير علم فليتبوأ مقعده من النار " (رواه الترمذي و مشكواة ص/٣٥).
يعني چاچې پخپله مرضئ دقران متعلق څه خبره اوکړه نو ده دخان دپاره په دوزخ کي کور تيار کړو، او په يو روايت کي راغلي دي چې څوك دقوان متعلق دخپله طرفه کومه خبره اوکړي نو دي دي په دوزخ کي دخان دپاره کور جوړ کړي
په يو بل حديث کي راغلي دي " من قال في القران برأيه فاصاب فقد اخطأ " (رواه ابوداود والترمذي). چاچې په قران کريم کي خپله نظريه استعمال کړه نو که ده درسته خبره يې هم کړي وي نو بيا يې هم غلطي اوکړه.

## دتفسير بالراې نه څه مراد دي

امام سيوطي په الاتقان کي دابن النقيب په حواله ليکلي دي دتفسير بالرائي نه څه مراد دي په دي کي دعلماؤ پنځه اقوال دي.
اول دا چې دقران دتفسير دپاره چې دکومو علومو ضرورت دي دهغه علومو دحاصلولو نه بغير څوك تفسير ليکل شروع کړي.
دويم دا چې څوك دهغه متشابهاتو تفسير شروع کړي دکومو په مراد چې دالله تعالي نه علاوه بل څوك نه پوهيږي.
دريم داچې دغلط مذهب حاصلولو دپاره څوك تفسير کوي يعني څوك چې خپل فاسد مذهب لره اصل اوګرځوي او تفسير لره دهغه تابع کړي او په هر شان سره چې ممکن وي قران لره په راښکلو سره پخپل مذهب باندي چسپان کړي
څلورم د دليل نه بغير دکوم ايت په باره کي دا دعوه کول چې ددي ايت نه واقعي دالله تعالي مراد دادي پنځم محض دخپل خواهش او خوښي مطابق تفسير کول

## تحريف معنوي

خلاصه داده چې مذکوره تمام صورتونه دتفسير بالرائي لاندي داخل دي زمونږ په زمانه کي قاديانيان او فرويزيان وغيره ګمراهانو فرقو دتفسيرونو همدا حال دي ، ددوئ تفسيرونه دتفسير بالرائي نه بالاتر بلکه په تحريف معنوي مشتمل دي ځکه چې دقران کريم په حائل کولو سره ددين دقطعياتو نه انکار کوي او درسول الله صلي الله عليه وسلم سنت متواتره لره شاته غورځوي او داسلام قطعي او اجتماعي عقائد دروغ ګڼړي او دعلماؤ دڅوارلس سوه کالو دمسلسل اجماع نه انحراف کوي او دلغت او دژبي دقواعدو نه بي خبره وي او جاهلانه

تحريفات کوي ضروري ده چې دداسي تحريفاتو يوڅو مثالونه پيش شوي وي ليکن افسوس چې په دي مختصر مضمون کي ددي ګنجائش نشته

## دقران کريم دترجمي اداب

دقران کريم ترجمه هم دتفسير او ترجمانۍ يو صورت دي لهذا دقران کريم په ترجمه کي هم مذکوره اصول ملحوظ کول اشد ضروري دي بلکه واقعيت دا دي چې دقران کريم صحيح ترجمه کول ددي دتفسير نه هم مشکل او نازک کار دي پس په دي وجه په دي کي داحتياط کولو ضرورت نورهم زيات دي، دترجمي کولو په وخت کي دقران کريم دالفاظو او اسلوب رعايت کول پکار دي او دا يو داسي مشکل او ګران کندو دي چې بنه بنه خلق ددينه رغيتلي دي دلته دمؤرخ اسلام علامه سيد سليمان ندوي رحمة الله عليه نه اقتباس کوم کوم چې مولانا قاضي محمد زاهد دمعارف القران په ماهناما العلم کي نقل کړي دي فرمائي چې زه په دي سلسله کي دوه خبري عرض کوم يود خو داده چې دقران کريم په ترجمه کي دي دبې احتاطۍ نه اجتناب اوکړي شي څکه چې دا کار تحريف ته مفضي کول کوي. چې دسزا حال يې تاسو ته معلوم دي ترجمه بالکل لفظي کول پکار دي او بيايي تشريح دهغي دضروري مطلب په بنا کولي شئ او داسي په هيڅ شان سره درست نه دي چې په ترجمه کي دالفاظو درعايت نه بغير دمطلوب مطابق کوشش اوکړي شي څکه چې دا شديد تحريف دي تاسو به کتلي وي چې بيا کچرته په بل وخت کي تاسو ددي ايت ترجمه کوئ نو بيابه يې بل شان کوئ نو په هغه وخت کي به دا ثابته شي چې دا دخواهش پرستۍ اثر دي ، دويمه خبره داده جمهوري اسلام چې په کومه مسئله کي اعتقادا او عملا متفق وي هغي لره پريخودل او دتحقيق نوي لار اختيارول نه دي پکار . دا طريقه دتواتر او دتوارث دبيخکنۍ مترادفه ده، ددي ګناه مرتکب کله کله زه پخپله ګرځيدلي يم او ددي اعتقادي او عملي سزا مي څکلي ده نو په دي وجه زما قلبي خواهش دي چې زما عزيزان او دوستان هيڅ کله دخپلي لاري نه کوز نشي ددي دپاره چې دوئ دهغي سزا نه محفوظ پاتي شي کومه چې ددوئ نه مخکنو څکلي ده.

## دقران دتفسير په اصولو کي بنيادي اصل دسلفو دمخالفت نه اجتناب کول

الله تعالي دي عمرفاروق رضي الله عنه ته اجر جزيل ورکړي چې د "کلاله" په تفسير کي يې يوه تفسيري قاعده بيان کړي ده . يعني دقران په تفسير کي دداسي نظريه داختراع کولو نه دانسان دپاره حياء کول پکار دي کومه چې دسلفو د دنظرياتو سره مزاحمه وي . پس په دي وجه به صرف هغه تفسير داعتماد لائق وي کوم چې دصحابه کرامو اوتابعينو نه منقول وي اود اهل علمو دذوق سره هم اهنګ وي . خليفه راشد عمر بن عبد العزير رحمة الله عليه فرمائيلي دي

"خذوا من الراي مايصدق من كان قبلكم ولاتاخذوا ماهو خلاف لهم فانهم خير منكم واعلم.
(ازالةالخفاء للسيوطي/١٦٦).يعني صرف هغه نظريه اختيار كړئ كومه چې ستاسو نه دمخكنو خلقو (يعني صحابه كرامو او تابعينو) وه، داسي نظريه مه اختياروئ كومه چې دهغوئ خلاف وي ځكه چې هغوئ ستاسو نه بهتر وو او زيات علم والا هم وو . يقينا دخان نه دمخكنو خلقو متعلق د "هم خيرواعلم" نظريه لرل دهغه وخته پورې ضروري ده تر څو چې جهان قائم وي تر هغي به په امت كي دهغي خير باقي وي او ولي به داسي نه وي ځكه چې دهغوئ په وړاندي وحي نازليدله او دوحي دنزول دكيفياتو او حالاتو دمشاهدي مواقع ورته نصيب شوي وو چې دقران كوم ايت او په كوم وخت كي او په كوم ځاي كي نازل شوي دي او ولي نازل شوي دي او دچا په حق كي نازل شوي دي په سفر كي نازل شوي دي او كه په اقامت كي؟يا دعائشه رضي الله عنها په حجره كي نازل شوي دي او كه دتبوك نه په واپسئ كي غرض دا چې داسي امور يو يو دهغوئ په ذهن كي منقوش وو دقران كريم په يو يو حرف دوئ ته د عملي مشق سعادت ميسر وو او بيا خو ددوئ دعلم او فضل او كمال او زهد او ورع او فهم او ذكا شهادت خو قران وركړي دي او ددوئ پشان دسربازئ او ايسار او قربانئ نه اولين او اخرين عاجز وو تردي چې ددوئ عفت او توكل او قناعت دجبرائيل او ميكائيل دپاره دغبطي سبب اوګرځيدو كه چري ددوئ او ددوئ دشاګردانو په تفسير اعتماد اونكړي شي نو ددينه پس به د الله په كتاب دپوهي سليقه چاته نصيب شي فقيه الامة عبدالله بن مسعود رضي الله عنه به فرمائيل " والذي لا اله غيره ما نزلت اية من كتاب الله الا وانا اعلم فيمن نزلت واين نزلت ولو اعلم احدا اعلم بكتاب الله مني وتناله المطايا لاتيته" (تاريخ الخلفاء للسيوطي ص/١٦٦).

په معبود حقيقي مي دي قسم وي دقران كريم هر يو ايت چې نازل شوي دي ماته دهغي په باره كي علم دي چې دچا په حق كي نازل شوي دي او چرته نازل شوي دي او كه چري زما په فكر كي دالله تعالي په كتاب زما نه زيات پوهيدونكي ماته معلوم شي او رسيدل ورته ممكن وي نو زه به يي ضرور په خدمت كي حاضر شم
غرض دا چې دا قسم مضمون دعلي رضي الله عنه نه هم منقول دي چې زه يي دقران دتفسير په سلسله كي پيش كوم كوم چې دصديق اكبر رضي الله عنه دطرز عمل متعلق مروي دي كه چري دا دخان په وړاندي كيخودي شي نو د بي لاري كيدو نه د ډيره حده پوري حفاظت كيدي شي

**دتفسير اصل سرمايه دصحابه كرامو او تابعينو اثار دي**

دلته په يوه بله نکته تنبيه ورکول ضروري دي او هغه داده هسي خو دکتاب الله داسرارو سلسله غير متناهي ده ديو عام سړي نه واخله ديو اعلي درجي مفکر ، فلسفي، اديب او عالم پوري تول په دي کي غور کوي او کوي به يي او په دوئ کي به هر يو دخپل استعداد په مقدار ددي خزاني نه استفاده کوي ليکن دکوم خاي پوري چې ددي مفهوم تعلق دي او ددي وضاحت چې څومره پوري دانساني وسعت په دائره کي راتلي شي دهغي نه دصحابه کرامو او تابعينو علمونو دوروستنو تمامو راتلونکو انسانانو نه استغناء لازمه کړي ده په دي وجه دقران کريم په شرح او تفسير کي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه پس دصحابه کرامو او ددوئ دشاګردانو دهغه اثارو کوم چې په صحيح او مقبول اسناد سره مروي دي اصل سرمايه ده ، هيڅ يو داسي ايت نشته کوم چې دوئ درسول الله دمنشاء مطابق زدکړي نه وي او دقران دمطالعي په اشکالاتو کي هيڅ يو داسي مشکل نشته کوم چې دوئ په کلي يا جزي انداز کي حل کړي نه وي او دقران نه پيداکيدونکو علومو ته يي اشاره کړي نه وي

الغرض لکه څنګه چې دي اهل علمو امت ته دقران الفاظ بغير دکمي او زيات نه رارسولي دي چې نه يي پکي دبخل نه کار اخستلي دي او نه دخواهش پرستئ دګډون نه او نه يي داوهام اوظنون په تيارو کي کمي او زيادت کړي دي يقينا چې هغوئ ددي قران امانت په کامل طور سره محفوظ کړي دي بهرحال دصحابه کرامو او تابعينو نه چې کومه تفسيري سرمايه منقول ده هغه دقراني پوهي دپاره قطعا کافي ده دوروستنو خلقو کار ددي قيمتي سرمايي حفاظت او پرورش کول دي

حکيم الامت مولانا اشرف علي تهانوي په ملفوظاتو کي مي کتلي دي چې ذهن ته کله کوم تازه مضمون راشي نو هغه اتفاقا چرته بيا وروسته ماته دکوم عالم په اقوالو کي ملاؤ شي نو په دي وخت کي مي په زړه کي يوه عجيب انشراح پيدا شي چې الحمدلله مافقير ته هم داکابرو دعلومو سره موافقت نصيب شو کوم چې دذهن دسلامتئ دليل دي ، که غور اوکړئ نو دوروسته راتلونکي اختلاف او احزابي جنګ بنيادي نقطه دسلفو نه انکار کول او دکتاب الله د مطالبو په بيانولو کي دخودفهمئ جزبه ده ددي تمامو ډلو مشترکه سرمايه داهل حق سره عناد کول او په صلحاء امت بي اعتمادي ده، دا ظلم دپاسه ظلم دادي چې دا طاغيان راپورته کيږي او دوئ دټولو نه مخکي دامت داختلاف ډول لره ټنګ ورکوي او دخپل الحادي ذهن نه يو نوي دين او نوي فکر او جديده فرقه پيدا کوي

*************

۲۹۵۰ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ السَّرِيِّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَبْدِ الأَعْلَى، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "

مَنْ قَالَ فِي الْقُرْآنِ بِغَيْرِ عِلْمٍ فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (1)

**ترجمه** دابن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچې بغير دپوهي نه دقران كريم تفسير اوكړو نو هغه دي دځان دپاره په جهنم كي ځاي تيار كړي

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي

*****************

۲۹۵۱_حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ وَكِيعٍ. حَدَّثَنَا سُوَيْدُ بْنُ عَمْرٍو الْكَلْبِيُّ. حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ. عَنْ عَبْدِ الْأَعْلَى. عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ. عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ. عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ: " اتَّقُوا الْحَدِيثَ عَنِّي إِلَّا مَا عَلِمْتُمْ. فَمَنْ كَذَبَ عَلَيَّ مُتَعَمِّدًا فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ. وَمَنْ قَالَ فِي الْقُرْآنِ بِرَأْيِهِ فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. (2)

**ترجمه** دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي زما دطرفه كومه خبره هغه وخته پوري مه بيانوئ تر څو پوري چې تاسو ته معلومه شوي نه وي (چې دا زما خبره ده) او دا خكه چاچې قصدا دروغ خبري ماته منصوب كړي هغه دي په جهنم كي دځان دپاره داوسيدو ځاي تيار كړي او چاچې دځپل عقل او خيال په بنياد دقران تفسير اوكړو هغه دي هم په جهنم كي دځان دپاره داوسيدو ځاي تيار كړي

امام ترمذي وايي داحديث حسن دي.

*****************

۲۹۵۲_حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ. حَدَّثَنَا حَبَّانُ بْنُ هِلَالٍ. حَدَّثَنَا سُهَيْلُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ وَهُوَ ابْنُ أَبِي حَزْمٍ أَخُو حَزْمٍ الْقُطَعِيِّ. حَدَّثَنَا أَبُو عِمْرَانَ الْجَوْنِيُّ. عَنْ جُنْدَبِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ. قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَنْ قَالَ فِي الْقُرْآنِ بِرَأْيِهِ فَأَصَابَ فَقَدْ أَخْطَأَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ

---

1 _ اخرجه احمد بن حنبل في مسنده برقم: ۲۰۶۹. والنسائي في الكبري برقم: ۸۰۳۰ والبيهقي في شعب الايمان برقم: ۲۰۷۹.

2 _ اخرجه احمد بن حنبل في مسنده برقم: ۲۰۶۹. والنسائي في الكبري برقم: ۸۰۳۰ والبيهقي في شعب الايمان

غَرِيبٌ. وَقَدْ تَكَلَّمَ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ فِي سُهَيْلِ بْنِ أَبِي حَزْمٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَكَذَا رُوِيَ عَنْ بَعْضِ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ أَنَّهُمْ شَدَّدُوا فِي هَذَا فِي أَنْ يُفَسَّرَ القُرْآنُ بِغَيْرِ عِلْمٍ. وَأَمَّا الَّذِي رُوِيَ عَنْ مُجَاهِدٍ، وَقَتَادَةَ، وَغَيْرِهِمَا مِنْ أَهْلِ العِلْمِ أَنَّهُمْ فَسَّرُوا القُرْآنَ، فَلَيْسَ الظَّنُّ بِهِمْ أَنَّهُمْ قَالُوا فِي القُرْآنِ أَوْ فَسَّرُوهُ بِغَيْرِ عِلْمٍ أَوْ مِنْ قِبَلِ أَنْفُسِهِمْ. وَقَدْ رُوِيَ عَنْهُمْ مَا يَدُلُّ عَلَى مَا قُلْنَا أَنَّهُمْ لَمْ يَقُولُوا مِنْ قِبَلِ أَنْفُسِهِمْ بِغَيْرِ عِلْمٍ. (1)

**ترجمه** دجندب بن عبدالله رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي چاچې پخپله رائي دقران تفسير اوکړو او خبره يي درسته هم ثابته شي نو هغه بيا هم غلطي کړي ده.

امام ترمذي وايي: داحديث غريب دي بعضي محدثينو په سهيل بن ابي حزم راوي باندي کلام کړي دي، دا رنګي دبعضي اهل علم صحابه کرامو او نورو اهل علمو نه مروي دي چې هغوئ په سختئ سره ددي خبري نه منع فرمانيله چې بغير دعلم نه دقران تفسير اوکړي شي. ليکن مجاهد، قتاده، او ددوئ نه علاوه چې دبعضي علماؤ باره کي دا خبره کيږي چې هغوئ بغير دعلم نه دقران تفسير کړي دي دا قول درست نه دي دا دستائيلي شوو صفاتو والاخلقو باره کي بدګماني کول دي چې پکار نه ده چې هغوئ دقران په باره کي کوم تفسير کړي دي دا يي دعلم نه بغير کړي دي، داهل علمو نه داسي خبري مروي دي کومي چې زمونږ دي قول ته تقويت ورکوي چې هغوئ هيڅ يوه خبره بغير دعلم نه دخپل طرف نه نه ده کړي

***************

حَدَّثَنَا الحُسَيْنُ بْنُ مَهْدِيٍّ البَصْرِيُّ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنْ قَتَادَةَ، قَالَ: مَا فِي القُرْآنِ: إِلَّا وَقَدْ سَمِعْتُ فِيهَا شَيْئًا. (2)

**ترجمه**: دقتاده قول دي فرماني چې په قران کي هيڅ داسي يو مقام نشته مګر دهغي دتفسير باره کي ما څه ناڅه ضرور اوريدلي دي.

***************

حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، قَالَ: قَالَ مُجَاهِدٌ: لَوْ كُنْتُ قَرَأْتُ

---

[1] ـ سنن ابي داود/العلم ٥ (٣٦٥٢) (تحفة الأشراف: ٣٢٦٢)

[2] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٩٢٦٣)

قِرَاءَةَ ابْنِ مَسْعُودٍ لَمْ أَحْتَجْ إِلَى أَنْ أَسْأَلَ ابْنَ عَبَّاسٍ، عَنْ كَثِيرٍ مِنَ الْقُرْآنِ مِمَّا سَأَلْتُ. (1)

**ترجمه** اعمش دمجاهد قول نقل کړي دي فرمائيلي يي دي که ما دابن مسعود قراءة لوستلي وي نو زه به ديته نه وم محتاج شوي چې دابن عباس نه په ډيرو هغه امورو کې تپوس اوکړم چې په کومو کې مي ورنه تپوس کړي دي

****************

## ٢_باب وَمِنْ سُورَةِ فَاتِحَةِ الْكِتَابِ

### دسورة فاتحې دبعضې ايتونو تفسير

٢٩٥٣_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنِ الْعَلَاءِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: مَنْ صَلَّى صَلَاةً لَمْ يَقْرَأْ فِيهَا بِأُمِّ الْقُرْآنِ فَهِيَ خِدَاجٌ هِيَ خِدَاجٌ غَيْرُ تَمَامٍ، قَالَ: قُلْتُ: يَا أَبَا هُرَيْرَةَ، إِنِّي أَحْيَانًا أَكُونُ وَرَاءَ الْإِمَامِ، قَالَ: يَا ابْنَ الْفَارِسِيِّ فَاقْرَأْهَا فِي نَفْسِكَ، فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: قَالَ اللهُ تَعَالَى: " قَسَمْتُ الصَّلَاةَ بَيْنِي وَبَيْنَ عَبْدِي نِصْفَيْنِ فَنِصْفُهَا لِي وَنِصْفُهَا لِعَبْدِي وَلِعَبْدِي مَا سَأَلَ، يَقْرَأُ الْعَبْدُ فَيَقُولُ: الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ ، فَيَقُولُ اللهُ تَبَارَكَ وَتَعَالَى: حَمِدَنِي عَبْدِي، فَيَقُولُ: الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ .فَيَقُولُ اللهُ: أَثْنَى عَلَيَّ عَبْدِي، فَيَقُولُ: مَالِكِ يَوْمِ الدِّينِ . فَيَقُولُ: مَجَّدَنِي عَبْدِي وَهَذَا لِي وَبَيْنِي وَبَيْنَ عَبْدِي إِيَّاكَ نَعْبُدُ وَإِيَّاكَ نَسْتَعِينُ (الفاتحة : ٥ وَآخِرُ السُّورَةِ لِعَبْدِي وَلِعَبْدِي مَا سَأَلَ، يَقُولُ: اهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيمَ . صِرَاطَ الَّذِينَ أَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ يَقُولُ اللهُ فَهَؤُلَاءِ لِعَبْدِي وَلِعَبْدِي مَا سَأَلَ ».. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَقَدْ رَوَى شُعْبَةُ، وَإِسْمَاعِيلُ بْنُ جَعْفَرٍ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ عَنِ الْعَلَاءِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَ هَذَا الْحَدِيثِ. (2)

**ترجمه** ابوهريره رضي الله عنه وائي چې رسول الله ﷺ فرمائيلي دي کوم يوسړى چې مونځ کوي اوپه هغې کې ام القران اونه وئيلى شي نوداسي مونځ ناقص دى، ناقص دى

---

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ١٩٢٦٣)

[2] _ صحيح مسلم/الصلاة ١ (٣٩٥) . سنن ابي داود/ الصلاة ١٣٦ (٨٢١) . سنن النسائي/الإفتتاح ٢٣ (٩١٠) . سنن ابن ماجه/الإقامة ١١ (٨٣٨) (تحفة الأشراف : ١٤٠٨٠) . والمؤطاء:الصلاة٩ (٣٩) . و مسند احمد (٢/٢٤١، ٢٥٠، ٢٨٥، ٤٥٧)

كامل نه دى (ابوسائب ونيلي دي ، مااوونيل اى ابو هريره ﷺ زه كله په امام پسې يم نوهغه وونيل اى فارسي دا پخپل زړه كي وايه بيشكه مادرسول الله ﷺ نه اوريدلي دي هغه به ونيل الله عز وجل فرماني مامونځ دخپل خان اوبنده په مينځ كي نيم په نيمه تقسيم كړي دى نيم زما دپاره دى اونيم زمادبنده دپاره دى اوزمادبنده دپاره هرهغه څه دي چي څه هغه غواړي رسول الله ﷺ فرمائيلي دي كله چي بنده وائي (الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ) نوالله عز وجل فرماني زمابنده زماتعريف اوكړو اوكله چي بنده وائي ( الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ ) الله عزوجل فرمائي زمابنده زماثناء بيان كړه اوكله چي بنده وائي (مَالِكِ يَوْمِ الدِّينِ) الله عز وجل فرمائي زمابنده زمابزركي بيان كړله اوكله چي بنده وائي (إِيَّاكَ نَعْبُدُ وَإِيَّاكَ نَسْتَعِينُ) الله عز وجل فرمائي دازما اوزمادبنده په مينځ كي دي اوزمادبنده دپاره هغه څه دي كوم چي هغه غوښتلي دي اوبنده چي كله وائي (اهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيمَ صِرَاطَ الَّذِينَ أَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلاَ الضَّالِّينَ) نوالله عزوجل فرمائي داټول زمادبنده دپاره دي اوزمادبنده دپاره هرهغه څه دي چي هغه غوښتلي وي.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن دي، شعبه او اسماعيل بن جعفر او بعضي نورو راويانو ددي پشان حديث دعلاء بن عبدالرحمن نه او هغه دخپل پلار نه او هغه دابو هريره رضي الله عنه په واسطه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه نقل كړي دي

**تشريح** : رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۞ دتمام جهان مالك دى ، رب په معني دمالك سره دى لكه رب الدار (دكور مالك) اولفظ رب دتربيت په معني باندي هم كيدى شي په مزه مزه درجي دكمال ته رسيدلوته تربيت وائي پدي وخت كي دمصدر اطلاق به مبالغتا وي لكه په" خالد صوم" او لكه "زيد عدل" كي ، درب اطلاق په غير دقيد اضافت په غير الله باندي نشي كيدى ، پدي كي ديته اشاره ده چي عالم دابتداء پشان په بقاء كي هم رب ته محتاج دى ، او عالمين جمع دعالم ده

الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ۞ ډيرمهربان اونهايت رحم كونكي، قاريان پدي كي دوقف په حالت كي بلكه په هرمكسور حرف كي روم (حركت خفيفه كوم چي اوريدى شي) جائز گنړي. دا ايت پدي دلالت كوي چي بسم الله الرحمن الرحيم دسورت فاتحه جزء ندى ، اونه پدى سره درحمن الرحيم تكرارلازميږي اودبعض اهل علمو قول دى چي دا الفاظ د رب العالمين دعلتيت دپاره مكرر شوي دي

مَالِكِ (دانصاف دورځي مالك) دعاصم اوكسائي اويعقوب په قرأت كي مالك راغلى دى ، اوددوي نه علاوه نورو قاريانو ملك ونيلى دى ، ابوعمر الرحيم ملك يوم الدين وائي. يعني

ميم په ميم كي مدغم كوي، پدي شان سره پدي دواړو متحركوحرفونوكي ادغام كيږي. كوم چې متحد الجنس ياقريب المخرج وي.

يَوْمِ الدِّيْنِ ۞ يوم الدّين دقيامت ورځ ده . دين جزاء اوبدلي ته ونيلي شي اوكما تدين تدان ددين نه مشتق دي، دا مشهور مثل او مرفوع حديث دی . دا روايت ابن عدي په الكامل كي په ضعيف سند سره نقل كړی دی اودبيهقي په نزد باندي يو مرسل روايت ددي شاهد دی امام احمد دمالك بن دينار نه نقل كړي دي چې په تورات كي وو، اوديلمي دفضاله بن عبيد نه مرفوع روايت بيان كړی دی چې داد انجيل مضمون دي، مجاهد ونيلي دي: يوم الدين په معني ديوم الحساب دی

إِيَّاكَ نَعْبُدُ وَإِيَّاكَ نَسْتَعِيْنُ ۞ يعني اي الله تعالي مونږ صرف ستا عبادت كوو اوپه حوائجو كي صرف ستا نه مدد غواړو) قراء كرامو دنستعين نون بلكه هرمضموم حرف په حالت وقف كي دروم او اشمام پشان لوستلی دی .

دايت خلاصه معني داده: چې اي خدايه چې په مذكوره صفاتومتصف ئي نومونږ خاص ستا عبادت كوو اوخاص ستانه داطاعت دتوفيق غوښتونكي يو اونه داچې صرف په عبادت كي ستانه مدد غواړو بلكه پخپلو ټولو لويو وړو كارونوكي صرف ستانه مدت غواړوچونكه دكلام په سلسله كي ديوطرز نه بل طرزته انتقال كول دغيبت نه خطاب ته اودخطاب نه غيبت ته اودتكلم نه خطاب اوغيبت ته اودغيبت اوخطاب نه تكلم ته التفات كول دعربو عام عادت دی اوددينه ددوي غرض صرف داوريدونكو په زړونوكي رغبت او شوق پيداكول مقصود دي ، دلته هم ددي رعايت شوي دي اودغيبت نه خطاب ته انتقال شوی دی ، عبادت په اصل كي داتهائي خضوع اظهارته ونيلي شي همداوجه ده چې اهل زبانوپخپلو محاوراتو كي ونيلي دي: طريق معبد أی مذلل ، اوپه نعبد اونستعين دواړو فعلونوكي ضميرجمع متكلم دی ددينه قاري اودهغه سره چې څوك وي مراد دي ، اوپدي كي دجماعت التزام ته اشاره دد ، اياك په لحاظ دتركيب نحوي سره مفعول واقع شو. اګرچې دده درجه دفعل اوفاعل نه وروسته ده مګردلته دتعظيم اوداظهار اهميت اوحصردفائدی په غرض باندی مقدم كړي شوي دي ، عبدالله بن عباس رضي الله عنهما فرمائيلي دي چې د اياك نعبد معني داده چې نعبدك ولا نعبد غيرك . (يعني اي پروردګاره مونږ صرف ستا عبادت كوو اوستاسره په عبادت كي هيڅوك نه شريكوو)دا اثر ابن جرير او ابن ابي حاتم په سند دضحاك سره دابن عباس نه نقل كړي دي . بعضي مفسرينو ونيلي دي چې په واياك نستعين كي واو عاطفه ندی بلكه حاليه دی او معني ئي داده چې ای پروردګاره مونږ ستانه په طلب دامداد كولوسره ستا عبادت كوو.

اهْدِنَا ای أرشدنا يعني دادهغه اعانت او امداد بيان دی كوم چې په اياك نستعين كي طلب

کړي شوي وو مطلب دادی چې اې پروردګاره مونږته سمه لار اوښایه . یا چونکه مونږ دسیده لارې اهمیت دهرڅیزنه زیات وو نوځکه ئې جدا ذکرکړو دهدایت معني په لطف اومهربانۍ سره رهنمائي کولوته وائي . همدا وجه ده چې ددی استعمال همیشه په خیر اونیکۍ کې کیږي دا لفظ اوددی مشتقات په اصل کې په لام او الی سره متعدي کیږي مګر کله کله بغیرد کومي واسطې نه پخپله هم متعدي کیږي . خلاصه دادہ چې :

اهدنا الصِراطَ الْمُسْتَقِيمَ دعاء ده د نبي کریم صلي الله علیه وسلم اودتمامو مسلمانانو . اګرچې هغه دمخکې نه په اسماني هدایت باندې اراسته وو لیکن بیا هم دالله تعالي نه داستقامت اوثابت قدمۍ اومزید هدایت طلب کولو دپاره دعا غوښتلې شوي ده ، ځکه چې داهل سنت والجماعت دمذهب مطابق دالله تعالي دلطافت او هدایاتو هیڅ حد اونتهاء نشته . ابن کثیر دقبل دروایت مطابق.

الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيمَ ۞ برابره خبره ده چې معرف باللام اومضاف وي یانکره وي. نه صرف په سورت فاتحه کې بلکه په تمام قران مجید کې چې چرته هم راغلي نو السراط په سین سره لوستلې شوي دي اوسراط په لغت کې تیرولو ته ونیلې شي اهل زبان وائي سرط الطعام اي ابتلعه یعني کله چې څوك نوړۍ تیره کړي، نو سرط الطعام وونیلې شي، همدارنګي په کومه لاره چې ډیر مسافران خي دهغي متعلق ونیلې شي چه الطریق یسرط السابلة . اوباقي قراء کرامو صاد ونیلې دي اوداد قریشو لغت دی ، او خلف دصاد اود زاء په مینځ کې دا لفظ دقران په هرځاي کې لولي اوخلاد صرف دلته ، او المستقیم په معني دمستوي اوسیده سره دی مګر مراد ورنه دلته دحق لاره ده ، اوبعضو ونیلې دي چې مراد ورنه ملت اسلام دی ، ددی دواړو قولینونسبت ابن جریر ابن عباس رضي الله عنهما ته کړی دی ، ابو العالیه او امام حسن داهدنا الصراط المستقیم په تفسیرکې ونیلې دي چې داد رسول الله صلي الله علیه وسلم اودهغه دوه صحابه کرام ابوبکر اوعمر رضي الله عنهما لاره ده . رسول الله صلي الله علیه وسلم فرمانیلي دي زما نه پس زما سنت او زما د خلفاؤ سنت په مضبوطتیا سره ونیسئ او وئې فرمائیل چې زما نه پس په دوه کسانو ابوبکر اوعمر رضي الله عنهما پسې اقتداء وکړئ.

صِرَاطَ الَّذِينَ أَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ داد الصراط المستقیم بدل دی ، اوبدل کل دی دکوم فائده چې تاکید دی او مراد ورنه پدې خبره باندې استدلال کول دي چې ددې خلقولاره هغه لاره ده دکومې دمستقیم کیدو شهادت چې ورکړی شوی دی مطلب دادی چې پروردګاره مونږ ته دهغه خلقو لاره اوښائې په چاچې تا احسان کړی دی اونیکان خلق ورنه مراد دي څوك چې الله تعالي په طاعت اوپه ایمان بالله باندې ثابت قدم دي چې هغه انبیاء اوصدیقین اوشهداء اوصالحین دي.

عليهم - إليهم لديهم چې چرته په قران کې راغلي دي حمزه دوصل اووقف په دواړو حالتونوکې هاء په ضمې سره وئيلي ده. ليکن دحمزه نه علاوه باقي قاريان ئې مکسور لولي. ابن کثير هر ميم دجمع په حالت دوصل کې په ضمې اواشباع لوستل وئيلي دي خوپه هغه وخت کې چې ددې مابعد ساکن نه وي . او قالون وائي چې په هرحالت کې برابره خبره ده چې ددې مابعد حرف ساکن وي اوکه نه وي په اشباع اوغير اشباع سره لوستلې شي، ليکن ورش صرف دالف قطع داتصال په وخت کې په اشباع سره وئيل جائز ګڼړي، اوکله چې دميم جمع نه پس الف وصل وي اود هاء ماقبل کسره يا ياء ساکنه وي لکه: بِهِمُ الْأَسْبَابُ وعَلَيْهِمُ الْقِتَالُ نوحمزه اوکسائي ها اوميم دواړه مضموم او ابوعمرو ئې مکسور لولي اوهمدارنګې يعقوب هم د ابوعمرو موافق الخيال دی . ليکن هرکله چې ددې ماقبل حرف مکسور وي نوددی قاريانونه علاود باقي خلق ئې مکسور لولي پدی وجه چې هغه اصل دی او هاء مکسور خکه لولي چې ددی ماقبل ساکن يامکسوردی ، ليکن دا اختلاف دوصل په حالت کې وو، پاتې شو دوقف حالت کې؟ نوپدي صورت کې تمام خلق دماقبل دمکسور کيدو په وجه باندی مکسور لولي، البته دحمزه اختلاف پدې صورت باقي دی.

غَيْرِ الْمَغْضُوْبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّآلِّيْنَ ۞ داد الَّذِيْنَ أَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ نه بدل دی يعني په چاچې الله تعالي خپل فضل کړی دی ، ددی نه هغه کسان مراد دي ځوك چې دغضب الهي اوګمراهئ نه محفوظ اومامون دي ، ياداچې صفت کاشفه اوصفت احترازيه دی خوپدې شرط چې موصول دنکري قائم مقام فرض کړی شي اوددی نه کوم معين جماعت مراد نکړی شي لکه چې پدې شعر کې راغلي دي. ولقد امرّ على اللّئيم يسبّنى – اويائي غير معرفه اوګرځوي دوجې داضافت ددې هغه څيزته چې يوضد لري نو بيا متعين کيدی شي لکه چې وئيلي شوي دي.

***************

وَرَوَى ابْنُ جُرَيْجٍ، وَمَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، عَنِ الْعَلَاءِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي السَّائِبِ، مَوْلَى هِشَامِ بْنِ زُهْرَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَ هَذَا. [1]

---

[1] _ صحيح مسلم/الصلاة ١ (٣٩٥) . سنن ابي داود/ الصلاة ١٣٦ (٨٢١) . سنن النسائي/الإفتتاح ٢٣ (٩١٠) . سنن ابن ماجه/الإقامة ١١ (٨٣٨) (تحفة الأشراف : ١٤٠٨٠) ، والموطأ: الصلاة ٩ (٣٩) ، و مسند احمد (٢/٢٤١، ٢٥٠، ٢٨٥، ٤٥٧)

**ترجمه** دهشام بن زهره ازاد کړي غلام ابو السائب دابوهريره رضي الله عنه په واسطه دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه ددي هم معني روايت نقل کړي دي

*****************

وَرَوَى ابْنُ أَبِي أُوَيْسٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ الْعَلَاءِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبِي، وَأَبُو السَّائِبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَ هَذَا. أَخْبَرَنَا بِذَلِكَ مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى النَّيْسَابُورِيُّ، وَيَعْقُوبُ بْنُ سُفْيَانَ الْفَارِسِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ أَبِي أُوَيْسٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ الْعَلَاءِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، حَدَّثَنِي أَبِي، وَأَبُو السَّائِبِ مَوْلَى هِشَامِ بْنِ زُهْرَةَ وَكَانَا جَلِيسَيْنِ لِأَبِي هُرَيْرَةَ. عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ صَلَّى صَلَاةً لَمْ يَقْرَأْ فِيهَا بِأُمِّ الْقُرْآنِ فَهِيَ خِدَاجٌ فَهِيَ خِدَاجٌ غَيْرُ تَمَامٍ". وَلَيْسَ فِي حَدِيثِ إِسْمَاعِيلَ بْنِ أَبِي أُوَيْسٍ أَكْثَرُ مِنْ هَذَا. وَسَأَلْتُ أَبَا زُرْعَةَ عَنْ هَذَا الْحَدِيثِ، فَقَالَ: كِلَا الْحَدِيثَيْنِ صَحِيحٌ، وَاحْتَجَّ بِحَدِيثِ ابْنِ أَبِي أُوَيْسٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ الْعَلَاءِ.[1]

**ترجمه** : دهشام بن زهره ازاد کړي غلام ابو السائب دابوهريره رضي الله عنه په واسطه دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه ددي هم معني روايت نقل کړي دي او همدا رنګي زما پلار او هشام بن زهره ازاد کړي غلام ابو السائب دابوهريره رضي الله عنه په واسطه دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه روايت نقل کړي دي ابوهريره رضي الله عنه واني چي رسول الله ﷺ فرمنيلي دي کوم يوسړی چي مونځ کوي اوپه هغي کي ام القران اونه وئيلی شي نوداسي مونځ ناقص دی، ناقص دی، ناقص دی کامل نه دی

امام ترمذي وايي داسماعيل بن ابي اويس په حديث کي ددينه زيات څه نشته. دابو زرعه نه مي دي حديث باره کي تپوس اوکړو نو راته يي اووئيل دا دواړه صحيح دي او دابن ابي اويس په حديث چي دخپل پلار په واسطه يي دعلاء نه نقل کوي استدلال اوکړو

*****************

٢٩٥٤ـ أَخْبَرَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ سَعْدٍ، أَنْبَأَنَا عَمْرُو بْنُ أَبِي قَيْسٍ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، عَنْ عَبَّادِ بْنِ حُبَيْشٍ، عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ، قَالَ: "أَتَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ جَالِسٌ فِي الْمَسْجِدِ، فَقَالَ الْقَوْمُ: هَذَا عَدِيُّ بْنُ حَاتِمٍ، وَجِئْتُ بِغَيْرِ أَمَانٍ وَلَا

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٤٠٨٩)

كِتَابٍ. فَلَمَّا دُفِعْتُ إِلَيْهِ أَخَذَ بِيَدِي وَقَدْ كَانَ قَالَ قَبْلَ ذَلِكَ: إِنِّي لَأَرْجُو أَنْ يَجْعَلَ اللَّهُ يَدَهُ فِي يَدِي، قَالَ: فَقَامَ بِي فَلَقِيَتْهُ امْرَأَةٌ وَصَبِيٌّ مَعَهَا. فَقَالَا: إِنَّ لَنَا إِلَيْكَ حَاجَةً. فَقَامَ مَعَهُمَا حَتَّى قَضَى حَاجَتَهُمَا. ثُمَّ أَخَذَ بِيَدِي حَتَّى أَتَى بِي دَارَهُ. فَأَلْقَتْ لَهُ الْوَلِيدَةُ وِسَادَةً فَجَلَسَ عَلَيْهَا وَجَلَسْتُ بَيْنَ يَدَيْهِ. فَحَمِدَ اللَّهَ وَأَثْنَى عَلَيْهِ. ثُمَّ قَالَ: "مَا يُفِرُّكَ أَنْ تَقُولَ: لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ. فَهَلْ تَعْلَمُ مِنْ إِلَهٍ سِوَى اللَّهِ؟ قَالَ: قُلْتُ: لَا. قَالَ: ثُمَّ تَكَلَّمَ سَاعَةً. ثُمَّ قَالَ: إِنَّمَا تَفِرُّ أَنْ تَقُولَ: اللَّهُ أَكْبَرُ وَتَعْلَمُ أَنَّ شَيْئًا أَكْبَرُ مِنَ اللَّهِ؟ قَالَ: قُلْتُ: لَا. قَالَ: فَإِنَّ الْيَهُودَ مَغْضُوبٌ عَلَيْهِمْ وَإِنَّ النَّصَارَى ضُلَّالٌ. قَالَ: قُلْتُ: فَإِنِّي جِئْتُ مُسْلِمًا. قَالَ: فَرَأَيْتُ وَجْهَهُ تَبَسَّطَ فَرَحًا. قَالَ: ثُمَّ أَمَرَ بِي فَأُنْزِلْتُ عِنْدَ رَجُلٍ مِنَ الْأَنْصَارِ جَعَلْتُ أَغْشَاهُ آتِيهِ طَرَفَيِ النَّهَارِ. قَالَ: فَبَيْنَمَا أَنَا عِنْدَهُ عَشِيَّةً إِذْ جَاءَهُ قَوْمٌ فِي ثِيَابٍ مِنَ الصُّوفِ مِنْ هَذِهِ النِّمَارِ. قَالَ: فَصَلَّى، وَقَامَ فَحَثَّ عَلَيْهِمْ. ثُمَّ قَالَ: وَلَوْ صَاعٌ، وَلَوْ بِنِصْفِ صَاعٍ، وَلَوْ بِقَبْضَةٍ، وَلَوْ بِبَعْضِ قَبْضَةٍ يَقِي أَحَدُكُمْ وَجْهَهُ حَرَّ جَهَنَّمَ أَوِ النَّارِ، وَلَوْ بِتَمْرَةٍ وَلَوْ بِشِقِّ تَمْرَةٍ. فَإِنَّ أَحَدَكُمْ لَاقِي اللَّهِ. وَقَائِلٌ لَهُ مَا أَقُولُ لَكُمْ: أَلَمْ أَجْعَلْ لَكَ سَمْعًا وَبَصَرًا؟ فَيَقُولُ: بَلَى. فَيَقُولُ: أَلَمْ أَجْعَلْ لَكَ مَالًا وَوَلَدًا؟ فَيَقُولُ: بَلَى. فَيَقُولُ: أَيْنَ مَا قَدَّمْتَ لِنَفْسِكَ؟ فَيَنْظُرُ قُدَّامَهُ وَبَعْدَهُ وَعَنْ يَمِينِهِ وَعَنْ شِمَالِهِ ثُمَّ لَا يَجِدُ شَيْئًا يَقِي بِهِ وَجْهَهُ حَرَّ جَهَنَّمَ. لِيَقِ أَحَدُكُمْ وَجْهَهُ النَّارَ وَلَوْ بِشِقِّ تَمْرَةٍ. فَإِنْ لَمْ يَجِدْ فَبِكَلِمَةٍ طَيِّبَةٍ. فَإِنِّي لَا أَخَافُ عَلَيْكُمُ الْفَاقَةَ. فَإِنَّ اللَّهَ نَاصِرُكُمْ وَمُعْطِيكُمْ حَتَّى تَسِيرَ الظَّعِينَةُ فِيمَا بَيْنَ يَثْرِبَ وَالْحِيرَةِ أَوْ أَكْثَرَ مَا تَخَافُ عَلَى مَطِيَّتِهَا السَّرَقَ. قَالَ: فَجَعَلْتُ أَقُولُ فِي نَفْسِي فَأَيْنَ لُصُوصُ طَيِّئٍ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ. وَرَوَى شُعْبَةُ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، عَنْ عَبَّادِ بْنِ حُبَيْشٍ، عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْحَدِيثَ بِطُولِهِ. [1]

**ترجمه** . دعدي بن حاتم رضي الله عنه بيان دي فرمائي چې زه درسول الله صلي الله عليه وسلم په خدمت کي حاضر شوم او هغوئ دغه وخت کي په مسجد کي موجود وو خلقو اووئيل دا عدي بن حاتم دي او زه هغوئ ته بغير دامان غوښتلو او بغير دکوم تحرير نه ورغلي وم، کله چې ورته زه وروستلي شوم نو رسول الله زما لاس اونيولو او ددينه مخکي يي فرمائيلي وو چې زما اميد دي چې الله تعالي به زما په لاس کي دده لاس راکوي ، دعدي بيان دي رسول الله پاڅيدو او زه يي دخان سره روان کړم او په دي دوران کي يوه ښځه دخپل بچي په موجودګئ

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ٩٨٤٠)

کي ددوئ سره دملاويدو دپاره راغله دوئ دواړو عرض اوکړو زمونږ تاته يو ضرورت دي رسول الله ددواړو سره پاڅيدو او ددوئ ضرورت يي پوره کړو او بيا يي زما لاس اونيولو او زه يي خپل کورته بوتلم يوي ماشومي رسول الله ته بستره خوره کړه چې په هغې باندي کيناستو او زه دهغوئ مخامخ کيناستم رسول الله دالله تعالي حمد او ثناء بيان کړه او بيا يي اوفرمائيل دا راته اووايه تا دلا اله الا الله وئيلو نه څه څيز منع کوي؟ ايا دالله نه درته علاوه کوم بل معبود معلوم دي (يعني دالله نه علاوه په بل معبود عقيده لري) ما اووئيل نه بيا رسول الله يوه شيبه خبري اوکړي او بيا يي اوفرمائيل الله اکبر وئيلو سره تختي؟ ايا ستا دا خيال دي چې دالله تعالي نه هم کوم بل لوي څيز شته ما اووئيل نه رسول الله اوفرمائيل په يهود دي دالله غضب نازل شي او نصاري ګمراهان دي هغوئ دا عقائد دي ما اووئيل زه خو داسلام قبلولو په اراده راغلي يم، عدي وائي ما اووئيل درسول الله مخ مبارك دخوشحالئ نه اوپړقيدو او بيا يي زماباره کي حکم اوکړو نو زه ديو انصاري صحابي په ميلمستيا بوتلم او زه ورته د ورځي په دواړو کنارو کي يعني په سحر او ماښام کي حاضر شوم يو ماښام ورسره زه ناست وم چې داسي قوم ورته راغلو چې دوړئ جامي يي اغوستلي وي راوي وائي چې رسول الله مونځ اوکړو او بيا اودريدو او تقرير يي شروع کړو او خلقو ته يي په دوئ باندي دخرچ کولو ترغيب ورکړو رسول الله اوفرمائيل صدقي ورکوئ اګر که يو صاع ولي نه وي او اګر چې نيم صاع ولي نه وي او اګر چې يوه لپه ولي نه وي او اګر چې دلپي نه کم ولي نه وي دکومي، په ذريعه چې په تاسو کي هر يو خپل ځان دجهنم دګرمئ نه بچ کولي شي تاسو صدقي ضرور ورکوئ اګر که يوه کجوره ولي نه وي او اګر که نيمه کجوره ولي نه وي ځکه چې په تاسو کي هر يو الله تعالي ته ورتلونکي دي اوهغه ته به هغه خبره کوي کومه چې زه تاسو ته کوم الله تعالي به تپوس کوي ايا ما تاسو ته غوږونه او سترګي نه وي درکړي دوئ به اووائي هو ولي نه، الله تعالي به اوفرمائي ايا ما تاسو ته مال او اولاد نه وو درکړي دوئ به اووائي ولي نه تا مونږ ته مال او اولاد راکړي وو الله تعالي به اوفرمائي هغه څيزونه چرته دي کوم چې تاسو دخپل ځان دحفاظت دپاره مخکي ليږلي دي ددي خبري په اوريدو به خلق خپلي مخي او شاته او ښي طرف او چپ طرف ته به اوګوري ليکن هيڅ به اونه ګوري چې ځان ورباندي دجهنم دګرمئ نه بچ کړي نو په دي وجه په تاسو کي دهر يو دپاره دجهنم دګرمئ نه دځان بچ کولو کوشش پکار دي اګر که ديوي کجوري په صدقه کولو ولي نه وي او که دا هم ممکن نه وي نو ديوي نيکي او ښکلي خبري په کولو باندي خپل ځان دجهنم دګرمئ نه بچ کړئ، زما سره دا ويره نشته چې تاسو به په فقر او فاقه او نيستئ باندي مبتلا شئ ځکه چې الله تعالي ستاسو مددګار دي او هغه تاسو ته درکونکي دي او تردي حده پوري تاسو ته درکونکي دي چې په کجاوه کي يوه ناسته ښځه به يواځي ديثرب (مدينه) نه حيره مقام پوري يا ددينه هم اوږد سفر کوي او دهغي سره به دخپلي

سورلئ دېتېدو ويره او خطره نه وي، عدي رضي الله عنه وائي دي وخت کي ما سوچ اوکړو چې دبني طئ قبيلي غله به چرته خي؟
امام ترمذي وايي داحديث حسن غريب دي او مونږ يي صرف دسماك بن حرب په روايت پيژنو. شعبه دسماك بن حرب نه او سماك دعباد بن حبيش نه او عباد دعدي بن حاتم رضي الله عنه په واسطه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه هم دا پوره حديث نقل كړي دي.

***************

حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، وَمُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، عَنْ عَبَّادِ بْنِ حُبَيْشٍ، عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الْيَهُودُ مَغْضُوبٌ عَلَيْهِمْ، وَالنَّصَارَى ضُلَّالٌ". فَذَكَرَ الْحَدِيثَ بِطُولِهِ. [1]

**ترجمه** : دعدي بن حاتم رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي يهوديان مغضوب عليهم دي(يعني د الله غضب ورباندي شوي دي) او نصاري ضال (يعني گمراهان) دي. او بيا يي پوره حديث بيان كړو.

**دعدي بن حاتم رضي الله عنه حالات**

نوم عدي كنيه ابو طريق او دپلار نوم حاتم طايي وو چې دعدي په قبيله طئ يي حكم راني كوله داسلام دظهور په وخت كې عدي حكمران وو كله چې داسلام دائره وسيع كيدل شروع شول نو دى پريشان شو او داسلامي سيلاب دمخنيوي توان يي نه لرلو بل طرف ته دحكمرانئ په وجه داسلام په وړاندي يي سر ټيټول هم نه غوښتل خو بهر حال اسلامي فوجونه طئ قبيلي طرف ته روان شول نو عدي په دغه وخت كې خپل تمام خاندان شام ته بوتلو (سيرت ابن هشام).
اتفاق دا وو چې صرف يوه رشته داره ورنه پاتي شوي وه او هغه گرفتاره شوي وه، دي زنانه رسول الله صلي الله عليه وسلم ته عرض اوكړو چې زما دخاوند راخلاصونكى هيڅوك نشته په مابانـدي احسان اوكړه او الله تعالي به په تا باندي احسان اوكړي رسول الله تپوس اوكړو خلاصونكى څوك دى هغي اووئيل عدي رسول الله اوفرمائيل ايا هغه څوك يادوي څوك چې دالله او درسول نه تختيدلى دى همدا مكالمه په دويمه ورځ بيا هم اوشوه او بيايي دعلي رضي الله عنه د درخواست په بنا ازاد كړو او دډير اعزاز سره يي رخصت كړو نو په دي وجه عدي متاثر شو او درسول الله په خدمت كې حاضر شو دراتلو نه پس رسول الله په يوه گدئ كينولو او پخپله په زمكه كيناستو او بيا ددينه پس عدي مسلمان شو او رسول الله صلي الله عليه وسلم

---

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ۹۸۷۰)

دوباره دخپلي قبيلي بنو طئ امير مقرر کړو (سيرت ابن هشام)
درسول الله صلي الله عليه وسلم دوفات نه پس چې کله خلق مرتد شول او دزکوة ورکولو نه يې انکار اوکړو نو دعدي قبيلي په کوشش سره زکوة ادا کولو (استيعاد)
عدي به هميشه په اودس کې اوسيدلو او هيڅ کله ورته داقامت په وخت کې اودس ته ضرورت نه دی پيښ شوی (الاصابه)
وفات، دوفات په وخت کې په کوفه کې موجود وو او هم دلته دهجرت په ۲۷ کال وفات شو
دمروياتو شمير يې ۶۶ دی چې شپږ متفق عليه دي دري صرف په بخاري کې دي او دوه په مسلم کې دي (تهذيب الكمال)

**د سورت فاتحه فضائل**

دابوهريرة رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چې نبي کريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل په هغه ذات مې دي قسم وي دچاپه قبضه او قدرت کې چې زما روح دی چې دسورت فاتحې پشان سورت نه په تورات کې اونه په انجيل کې اونه په زبور کې چرې نازل شوي دي اونه په قران کريم کې. داهغه سبع المثاني دی کوم چې الله تعالي ماته راکړی دی . داحديث ترمذي حسن صحيح ګڼړلی دی اوحاکم وئيلي دي چې صحيح دی دمسلم دشرط مطابق ،
دابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي فرمائي چې مونږ د نبي کريم صلي الله عليه وسلم په مجلس کې موجود وو او جبريل هم درسول الله صلي الله عليه وسلم سره ناست وو ، يکدم دبره نه ددروازي دکولاويدو پشان اواز راغي نوجبريل اسمان ته وکتل او وئي فرمائيل دا دروازه چې اوس بيرته شو ددينه مخکي چرته نده بيرته شوی ، دراوي بيان دی چې پدي وخت کې يوه فرشته داسمان نه راکوزه شوه اود نبي کريم صلي الله عليه وسلم پخدمت کې حاضره شوه اوعرض ني وکړو چې داسي دوه انوار دی تاته مبارك وي کوم چې ستانه مخکي بل نبي ته ندي ورکړی شوي، يو فاتحة الکتاب اوبل دسورت البقري اخري حصه ، که چرې ته پدي دواړو کې يوحرف هم ولولي نوهغه به تاته درکولی شي(مسلم
دابوهريرة رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چې نبي کريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل: الله تعالي فرمائيلي دي چې ما دخپلو بندګانو سره مونځ نيم په نيمه تقسيم کړی دی ، ددی نيم زما دپاره دی اونيم زما دبنده دپاره دی اوزما بنده ته به هغه څيز ملاويږي کوم چې دی غواړي،
اوکله چې دی اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ ووائي نو الله تعالي ووائي حمدني عبدی او کله چې دی الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ووائي نو الله تعالي ووائي اثنی علیَ عبدی ، چې کله دی مَالِكِ يَوْمِ الدِّيْنِ ووائي نو الله پاك اوفرمائي مجدني عبدی --او کله چې دی اِيَّاكَ نَعْبُدُ وَاِيَّاكَ نَسْتَعِيْنُ ووائي نو الله پاك اوفرمائي هذه الآية بينی وبين عبدی ولعبدی ما سال ، او کله چې دی اهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيْمَ

صِراطَ الَّذِينَ أَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ ووائي نو الله پاك اوفرمائي فهؤلاء لعبدي ولعبدي ما سال ، رواه مسلم د عبد الملك بن عمير رضي الله عنه نه يو مرسل روايت مروي دي فرمائي چې نبي كريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل چې فاتحة الكتاب دهر مرض دپاره شفاء ده ، دارمي پخپل سنن كي اوبيهقي په شعب الايمان كي په صحيح سند سره دعبدالله بن جابر رضي الله عنه نه روايت نقل كړي دي فرمائي چې نبي كريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل ايا بهترين سورت درته وښايم چې په قران كي نازل شوی دی جابر وائي چې ما عرض وكړوچې اي دالله رسوله ضرور ئي راته وښايه نو وئي فرمائيل چې فاتحة الكتاب دی . اوزما خيال دی چې وئي فرمائيل چې پدي كي دهرمرض دپاره شفا ده، او دا روايت خلعي پخپل فوائد كي نقل كړی دی ، دسعيد بن معلي نه روايت دی چې په قران كي دټولو نه لوي سورت (په اعتبار دثواب اومرتبي او رفعت سره) الحمد للّه رب العلمين دی - رواه البخاري والبيهقي والحاكم من حديث أنس حاكم دابن عباس رضي الله عنه نه نقل كوي چې فاتحة الكتاب دقران دثلث برابردی ، ابوسليمان وائي چې يوځل يوڅو صحابه كرام په كومه غزوه كي شريك وو اوپه يو ميرګو والاباندي ئي تيريدل وشول كوم چې بي هوشه پروت وو ، چافاتحه ولوستله اودده په غوږ كي ئي چې كړه (نوهغه روغ شو) رسول الله صلي الله عليه وسلم ته چې خبر وركړی شو نوئي فرمائيل داخو ام القران ده او دهر مرض دپاره دوا ده ، دا حديث ثعلبي په روايت دمعاويه بن صالح په حواله دابوسليمان بيان كړی دی ، دابو سعيد خدري رضي الله عنه نه روايت دی فرمائي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل سورت فاتحه دزهرو علاج دی ، (سنن سعيد بن منصور، بيهقي شعب الايمان) ، دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه مروي دي چې مونږ په سفرتلي وو اويوخاي ته چې ورغلو نويوه جيني راروانه وه اوچغي ئي وهلي چې ددی قبيلي سردار مار چيچلی دی ايا پتاسو كي څوك دمګری شته؟ نوپه مونږ كي يوكس ورپاڅيدو او ورسره روان شو اوهلته ئي سورت فاتحه ولوستله او مار چيچلی ئي پري دم كړونو هغه فورا جوړشو، كله چې مونږ دسفر نه واپس راغلو نو رسول الله صلي الله عليه وسلم ته مو ددی واقعي ذكر وكړو نو رسول الله صلي الله عليه وسلم دده نه پوښتنه وكړه چې تاته څنګه معلومه شوه چې دا سورت دم دی ... رواه البخاري ورواه أبو الشيخ وابن حبان في الثواب. دابوسعيد خدري او ابوهريره رضي الله عنهما نه هم داروايت مروي دی . دسائب بن يزيد رضي الله عنه نه روايت دی فرمائي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم زه په سورت فاتحه باندی دم كړم اود افتونو اودمصيبتونو نه دامان دپاره ئي خپلي توكانړي مباركي زما په خوله واچولي، رواه الطبراني في الأوسط , دانس رضي الله عنه نه روايت دی فرمائي كله چې ته په بستره باندی څملی او فاتحة الكتاب اوقُلْ هُوَ اللهُ أَحَدٌ ولولي نود مرګ نه علاوه به دهرڅيزنه محفوظ اوبي خوفه شي . رواه

البزار.

* * * * * * * * * * * * * * * * *

## ٣ـ بابٌ وَمِنْ سُورَةِ الْبَقَرَةِ

### د سورت البقري دبعضي ايتو نو تفسير

٢٩٥٥ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ. حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، وَابْنُ أَبِي عَدِيٍّ، ومحمد بن جعفر، وعبد الوهاب، قَالُوا: حَدَّثَنَا عَوْفُ بْنُ أَبِي جَمِيلَةَ الأَعْرَابِيِّ، عَنْ قَسَامَةَ بْنِ زُهَيْرٍ، عَنْ أَبِي مُوسَى الأَشْعَرِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ اللَّهَ تَعَالَى خَلَقَ آدَمَ مِنْ قَبْضَةٍ قَبَضَهَا مِنْ جَمِيعِ الأَرْضِ، فَجَاءَ بَنُو آدَمَ عَلَى قَدْرِ الأَرْضِ، فَجَاءَ مِنْهُمُ الأَحْمَرُ وَالأَبْيَضُ وَالأَسْوَدُ، وَبَيْنَ ذَلِكَ، وَالسَّهْلُ وَالْحَزْنُ وَالْخَبِيثُ وَالطَّيِّبُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه**: دابوموسى اشعري رضي الله عنه نه روايت دي فرماني چې رسول كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي يقينا الله تعالي ادم عليه السلام لره ديوموټي خاورونه پيداكړوكومه چې ئې دټولي زمكي نه راټوله كړي وه اوبيائي دادم عليه السلام اولاد دځپلي خپلي خاوري نه پيداكړل څوك سپين څوك سورڅوك توراوپه دوئ كي ئې څوك نرم اوڅوك سخت اوڅوك بد اخلاقه اوڅوك نجس پيداكړل

امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح دى

* * * * * * * * * * * * * * * *

٢٩٥٦ـ حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنْ هَمَّامِ بْنِ مُنَبِّهٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي قَوْلِهِ: "ادْخُلُوا الْبَابَ سُجَّدًا (النساء :١٥٤)، قَالَ: دَخَلُوا مُتَزَحِّفِينَ عَلَى أَوْرَاكِهِمْ". أَيْ مُنْحَرِفِينَ.[2]

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي فرماني چې رسول الله صلي الله عليه وسلم دايت كريمه "ادخلوا الباب سجدا" يعني په دروازه سجده كونكي داخل شئ. متعلق اوفرمائيل بني اسرائيل په دروازه په كناتو توليدونكي داخل شول

---

[1] ـ سنن ابي داود/السنة ١٧(٤٦٩٣) (تحفة الأشراف : ٩٠٢٥)، ومسند احمد (٤٠٠/٤، ٤٠٦)

[2] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /أحاديث الأنبياء ٢٨ (٣٤٠٣)، وتفسير البقرة ٥ (٤٤٧٩)، وسورة الأعراف ٤ (٤٦٤١)، صحيح مسلم/التفسير ح١(٣٠١٥) (تحفة الأشراف : ١٤٦٩٤)

******************

وَبِهَذَا الإِسْنَادِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " فَبَدَّلَ الَّذِينَ ظَلَمُوا قَوْلًا غَيْرَ الَّذِي قِيلَ لَهُمْ (البقرة: ٥٩)، قَالَ: قَالُوا: حَبَّةٌ فِي شَعْرَةٍ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (1)

**ترجمه** او په همدي سند درسول الله صلي الله عليه وسلم نه مروي دي چې دا ايت كريمه "فَبَدَّلَ الَّذِينَ ظَلَمُوا قَوْلًا غَيْرَ الَّذِي قِيلَ لَهُمْ " متعلق اوفرمائيل چې بني اسرائيلو ونيل "حبة في شعرة".

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي.

******************

٢٩٥٧ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا أَشْعَثُ السَّمَّانُ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَامِرِ بْنِ رَبِيعَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَفَرٍ فِي لَيْلَةٍ مُظْلِمَةٍ، فَلَمْ نَدْرِ أَيْنَ الْقِبْلَةُ فَصَلَّى كُلُّ رَجُلٍ مِنَّا عَلَى حِيَالِهِ، فَلَمَّا أَصْبَحْنَا ذَكَرْنَا ذَلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَنَزَلَتْ: فَأَيْنَمَا تُوَلُّوا فَثَمَّ وَجْهُ اللَّهِ (البقرة: ١١٥)". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ أَشْعَثَ السَّمَّانِ أَبِي الرَّبِيعِ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ، وَأَشْعَثُ يُضَعَّفُ فِي الْحَدِيثِ. (2)

**ترجمه** دعامر بن ربيعه رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چې مونږ په انتهائي تورتم شپه كي دنبي كريم صلي الله عليه وسلم سره په سفر كي موجود وو چاته نه معلوميده چې كعبه كوم طرف ته ده چنانچې دچا كوم طرف ته مخ وو نو هم هغه طرف ته يې مونځ اوكړو كله چې سحر شو نو مونږ رسول الله صلي الله عليه وسلم ته ددي خبري ذكر اوكړو نو دغه وخت كي دا ايت كريمه "فأينما تولوا فثم وجه الله" نازل شو يعني تاسو چې هر طرف ته مخ ستون كړئ او هغه طرف ته الله تعالي موجود دي.

امام ترمذي وايي داحديث غريب دي او دا مونږ ته صرف اشعث سمان ابو ربيع په سند معلوم دي چې دعاصم بن عبيدالله نه يې نقل كوي او اشعث په باب دحديث كي ضعيف دي

---

1 ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /أحاديث الأنبياء ٢٨ (٣٤٠٣)، وتفسير البقرة ٥ (٤٤٧٩)، وسورة الأعراف ٤ (٤٦٤١)، صحيح مسلم/التفسير ح ١ (٣٠١٥) (تحفة الأشراف: ١٤٦٩٤)

2 ـ سنن ابن ماجه/الإقامة ٦٠ (١٠٢٠) (تحفة الأشراف: ٥٠٣٥)

*****************

٢٩٥٨ـ حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، أَخْبَرَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ أَبِي سُلَيْمَانَ، قَالَ: سَمِعْتُ سَعِيدَ بْنَ جُبَيْرٍ يُحَدِّثُ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " يُصَلِّي عَلَى رَاحِلَتِهِ تَطَوُّعًا أَيْنَمَا تَوَجَّهَتْ بِهِ، وَهُوَ جَاءٍ مِنْ مَكَّةَ إِلَى الْمَدِينَةِ. ثُمَّ قَرَأَ ابْنُ عُمَرَ هٰذِهِ الآيَةَ وَلِلَّهِ الْمَشْرِقُ وَالْمَغْرِبُ (البقرة: ١١٥)، فَقَالَ ابْنُ عُمَرَ: فَفِي هَذَا أُنْزِلَتْ هٰذِهِ الآيَةَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([1])

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه مروي دي فرمائي چې كله نبي كريم صلي الله عليه وسلم مديني ته راغي نو نفلي مونځونه يي پخپله اوښه په ناسته اداء كول او چې اوښي به هر طرف ته مخ واړولو هم هغه طرف ته به يي كول او ابن عمر رضي الله عنه بيا دا ايت "ولله المشرق والمغرب" تلاوت كړو يعني خاص دالله تعالي دپاره دمشرق او مغرب طرفونه دي ابن عمر رضي الله عنه وائي دا ايت په همدي باره كي نازل شوي دي
امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي دقتاده نه مروي دي چې فرمانيل يي ايت كريمه "ولله المشرق والمغرب" منسوخ دي او ددي ناسخ "فول وجهك شطرا مسجدالحرام" دي يعني خپل مخ مسجدالحرام طرف ته ستون كړه

****************

وَيُرْوَى عَنْ قَتَادَةَ، أَنَّهُ قَالَ: فِي هٰذِهِ الآيَةَ وَلِلَّهِ الْمَشْرِقُ وَالْمَغْرِبُ فَأَيْنَمَا تُوَلُّوا فَثَمَّ وَجْهُ اللَّهِ (البقرة :١١٥) قَالَ قَتَادَةُ: هِيَ مَنْسُوخَةٌ نَسَخَهَا قَوْلُهُ: فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ (البقرة :١٤٤)" أَيْ تِلْقَاءَهُ، حَدَّثَنَا بِذَلِكَ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ أَبِي الشَّوَارِبِ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، عَنْ سَعِيدٍ، عَنْ قَتَادَةَ. ([2])

**ترجمه** دقتاده نه مروي دي چې دايت كريمه ولله المشرق والمغرب فاينما تولوا فثم وجه الله" باره كي يي فرمانيل چې دا ايت منسوخ دي او دا ايت دالله تعالي دي قول "فول وجهك

---

[1] ـ صحيح مسلم/المسافرين ٤(٧٠٠)، سنن النسائي/الصلاة ٢٣(٤٩٢)، تحفة الأشراف ٧٠٥٤)، ومسند احمد (٢/٢٠، ٤١)، وراجع أيضا: اورده البخاري في الجامع الصحيح /الوتر ٦ (١٠٠٠) وتقصير الصلاة ٩ (١٠٩٨)، ١٢ (١١٠٥) وسنن ابي داود/ الصلاة ٢٧٧ (١٢٢٤)، وسنن النسائي/الصلاة ٢٣ (٤٩١)، والقبلة ١(٧٤٥)

[2] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف ١٩٢٧٦)

شطر المسجد الحرام" منسوخ کړي دي، او شطر په معني دطرف دي

***************

وَيُرْوَى عَنْ مُجَاهِدٍ فِي هَذِهِ الْآيَةِ: فَأَيْنَمَا تُوَلُّوا فَثَمَّ وَجْهُ اللَّهِ (البقرة :١١٥، قَالَ: فَثَمَّ قِبْلَةُ اللَّهِ. حَدَّثَنَا بِذَلِكَ أَبُو كُرَيْبٍ مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنِ النَّضْرِ بْنِ عَرَبِيٍّ، عَنْ مُجَاهِدٍ بِهَذَا. ([1])

**ترجمه** - دمجاهد نه مروي دي چې دايت کريمه "فاينما تولوا فثم وجه الله" بارد کې يې فرمائيل مونږ ته حديث بيان کړي دي ابوکريب محمد بن علاء او هغه دنضر بن عربي نه او هغه دمجاهد نه مذکوره مضمون نقل کړي دي.

**تشريح**: فَثَمَّ وَجْهُ اللَّهِ .. پس همدغه طرف ته دالله تعالي مخ دي، يعني همدغه طرف دقبلي دي حسن مجاهد اوقتاده اومقاتل رحمهم الله دوجه الله داسي تفسير کړي دي. اوبعضي مفسرينو ويلي دي چې دغه جهت دالله رضاده . اوبعضي مفسرينو ويلي دي چې دا ايت دمتشابهاتونه دي، لکه کل شيء هالك الاوجهه او ايت يدالله فوق ايديهم چې دمتشابهاتونه دي مسلم ترمذي اونسائي دابن عمر رضي الله عنهما نه روايت نقل کړي دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم دمکي نه مديني ته دراتلو په وخت کې پخپله سورلۍ نوافل کول برابره خبره ده چې سورلۍ به هرطرف ته متوجه وه ددينه پس ابن عمر په طور داستدلال ايت ولله المشرق والمغرب ولوستو، حاکم روايت کړي دي چې مجاهد فرمائيلي دي چې دايت فاينما تولوا مطلب دادي چې هرطرف ته چې ستاسو دسورلۍ مخ وي هم هغه طرف ته نفل کوئ اوحاکم واني چې دا حديث دمسلم دشرط موافق صحيح دي او ابن ابي حاتم او ابن جرير دابن عباس رضي الله عنهما نه په قوي سند سره نقل کوي چې کله قبله تبديل شوه او ايت مأولهم عن قبلتهم التي كانوا عليها نازل شو نوددي په جواب کې ولله المشرق والمغرب نازل شو ، زه وايم چې دشان نزول اولني روايت په اعتبار دسند اومعني دواړو سره زيات صحيح دي خکه چې دماولهم جواب هم هغلته په . قُلْ لِلَّهِ الْمَشْرِقُ وَالْمَغْرِبُ يَهْدِي مَنْ يَشَاءُ إِلَى صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ کې مذکور دي ، اودي ايت په شان نزول کې نور روايات هم شته ليکن هغه ضعيف دي ، منجمله دهغوي نه يوهغه روايت دي چې ترمذي ابن ماجه او دارقطني نقل کړي دي چې ربيعه رضي الله عنه فرمائي چې مونږ يوخل دشپې په تياره کې درسول الله صلي الله عليه وسلم سره دسفر ملګري وو دمونځ په وخت کې ورته معلومه نشوه چې قبله کوم طرف ته ده

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٩٢٤٦)

نوهرچا دخپل خيال موافق مونځ وکړو ، کله چې سحر مونږ رسول الله صلي الله عليه وسلم ته ددي ذکر وکړونو دا ايت کريمه نازل شو . او بيهقي او دارقطني روايت کړي دي چې جابر رضي الله عنه فرمائيلي دي چې يوځل رسول الله صلي الله عليه وسلم يومختصر لښکر کوم خاي ته وليږلو په هغوي کي يو زه هم وم په لاره کي مونږ تياري راګير کړو اوقبله مونشوه پيژندلي اوهرچادخپل خيال موافق مونځ وکړو او ورسره ني هغه طرف ته کرښي هم راښکلي سحر چې بمو ورته وکتل نوتيولي کرښي دقبلي طرف ته وي ، کله چې مونږ دسفرنه واپس راغلونو دا واقعه مو رسول الله صلي الله عليه وسلم ته ذکر کړه اوهغه سکوت وکړونوپدي وخت کي حق تعالي ولله المشرق نازل کړو.

ابن مردويه هم دابن عباس نه داقصه داسي نقل کړي ده مګرپدي کي دومره اضافه ده چې دوريځي په وجه مونږ قبله ونه پيژندلي شوه ، ابن جرير دمجاهد نه روايت نقل کړي دي چې کله ايت ادعوني استجب لکم نازل شو عربو وويل چې الله تعالي کوم طرف ته او چرته دي چې مونږ دعا وکړونوپه جواب کي دا ايت : ولله المشرق نازل شو.

****************

٢٩٥٩_حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، حَدَّثَنَا الْحَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ حُمَيْدٍ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ، قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، لَوْ صَلَّيْنَا خَلْفَ الْمَقَامِ، فَنَزَلَتْ "وَاتَّخِذُوا مِنْ مَقَامِ إِبْرَاهِيمَ مُصَلًّى (البقرة: ١٢٥". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([1])

**ترجمه** . دانس رضي الله عنه نه مروي دي عمر فاروق اوفرمائيل اي دالله رسوله که مونږ دمقام ابراهيم نه شاته مونځ اوکړو نو څه حکم دي نو دي وخت کي ايت کريمه "واتخذوا من مقام ابراهيم مصلي" نازل شو.

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي

**تشريح** : وَاتَّخِذُوا مِنْ مَقَامِ إِبْرَاهِيمَ مُصَلًّى . راومونږ حکم اوکړو چې جوړکړئ دابراهيم عليه السلام داودريدو دځاي نه دمونځ ځاي، يعني مقام ابراهيم . ددينه مراد دطواف دوه رکعتونه دي چنانچې مسلم په يو اوږد حديث کي دجابر بن عبدالله نه روايت کړي دي فرمائي چې مونږ درسول الله سره بيت الله ته راغلو نونبي عليه السلام رکن ښکل کړو اودري پيري يي رمل اوکړو اوځلور پيري په متوسط رفتارسره لاړو او بيا مقام ابراهيم ته راغي اودا ايت يي تلاوت

---

[1] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /الصلاة ٣٢ (٤٠٢) . وتفسير البقرة ٩ (٤٤٨٣) . سنن ابن ماجه/الإقامة ٥٦ (١٠٠٩)
(تحفة الأشراف : ١٠٤٠٩)

کړو اومونځ يې اوکړو پداسي حال کي چې مقام ابراهيم يې دبيت الله اودخپل خان په مينځ کي کړي وو والله اعلم .

*****************

٢٩٦٠ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، أَخْبَرَنَا حُمَيْدٌ الطَّوِيلُ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: قَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قُلْتُ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَوِ اتَّخَذْتَ مِنْ مَقَامِ إِبْرَاهِيمَ مُصَلًّى، فَنَزَلَتْ " وَاتَّخِذُوا مِنْ مَقَامِ إِبْرَاهِيمَ مُصَلًّى (البقرة :١٢٥)". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَفِي الْبَابِ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ. [1]

**ترجمه** : دانس رضي الله عنه نه مروي دي عمر رضي الله عنه اوفرمائيل ما رسول الله صلي الله عليه وسلم ته عرض اوكړو كه چرې تاسو دمقام ابراهيم نه دمونځ كولو ځاي جوړ كړئ نو ښنګه به وي نو دي وخت کي ايت كريمه "واتخذوا من مقام ابراهيم مصلي" نازل شو.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي او په دي باب کي دابن عمر رضي الله عنهما نه هم حديث وارد دي.

*****************

٢٩٦١ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، حَدَّثَنَا الأَعْمَشُ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي قَوْلِهِ: " وَكَذَلِكَ جَعَلْنَاكُمْ أُمَّةً وَسَطًا (البقرة :)١٤٣، قَالَ: عَدْلًا ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [2]

**ترجمه** : دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه مروي دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم دايت كريمه "كذلك جعنا كم امة وسطا" باره کي اوفرمائيل دوسط نه مراد عدل دي (يعني انصاف خوښول)

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي.

*****************

[1] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /الصلاة ٣٢ (٤٠٢) . وتفسير البقرة ٩ (٤٤٨٣) . سنن ابن ماجه/الإقامة ٥٦ (١٠٠٩) (تحفة الأشراف : ١٠٤٠٩)

[2] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /أحاديث الأنبياء ٣ (٣٣٣٩) . وتفسير سورة البقرة ١٣ (٤٤٨٧) . والاعتصام ١٩ (٧٣٤٩) . سنن ابن ماجه/الزهد ٣٤ (٤٢٨٤) (تحفة الأشراف : ٤٠٠٣)

حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، أَخْبَرَنَا جَعْفَرُ بْنُ عَوْنٍ، أَخْبَرَنَا الأَعْمَشُ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يُدْعَى نُوحٌ فَيُقَالُ: هَلْ بَلَّغْتَ؟ فَيَقُولُ: نَعَمْ، فَيُدْعَى قَوْمُهُ، فَيُقَالُ: هَلْ بَلَّغَكُمْ؟ فَيَقُولُونَ: مَا أَتَانَا مِنْ نَذِيرٍ، وَمَا أَتَانَا مِنْ أَحَدٍ، فَيُقَالُ: مَنْ شُهُودُكَ؟ فَيَقُولُ: مُحَمَّدٌ وَأُمَّتُهُ، قَالَ: فَيُؤْتَى بِكُمْ تَشْهَدُونَ أَنَّهُ قَدْ بَلَّغَ، فَذَلِكَ قَوْلُ اللَّهِ تَعَالَى: وَكَذَلِكَ جَعَلْنَاكُمْ أُمَّةً وَسَطًا لِتَكُونُوا شُهَدَاءَ عَلَى النَّاسِ وَيَكُونَ الرَّسُولُ عَلَيْكُمْ شَهِيدًا (البقرة :١٤٣) وَالْوَسَطُ الْعَدْلُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ عَوْنٍ، عَنِ الأَعْمَشِ، نَحْوَهُ.

**ترجمه** ابو سعيد خدري رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي دقيامت په ورځ به نوح عليه السلام راوغوښتلي شي او سوال به ورنه اوکړي شي چې ايا تا دالله تعالي پيغام رسولي وو؟ نو اوبه وائي هو بيا به دده قوم راوغوښتلي شي دهغوئ نه به سوال اوکړي شي ايا نوح تاسو ته دالله تعالي پيغام رسولي وو نو قوم به يې اووائي نه دي راغلي مونږ ته هيڅ ويره ورکونکي او مونږ ته بالکل هيڅوک نه دي راغلي دنوح عليه السلام نه به سوال اوکړي ستا ګواهان څوك وو هغه به اووائي محمد صلي الله عليه وسلم، او دهغه امت زما ګواه دي نو بيا به تاسو دګواهئ دپاره راوستلي شئ او هغوئ به اووائي چې نوح عليه السلام دحق دعوت رسولي دي او دا بعينه ددي ايت کريمه " وَكَذَلِكَ جَعَلْنَاكُمْ أُمَّةً وَسَطًا لِتَكُونُوا شُهَدَاءَ عَلَى النَّاسِ وَيَكُونَ الرَّسُولُ عَلَيْكُمْ شَهِيدًا "مضمون دي

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي.

**تشريح**: لِتَكُونُوا شُهَدَاءَ عَلَى النَّاسِ.. (ددي دپاره چې تاسو ګواهان شئ په خلقو باندي) يعني دقيامت په ورځ به امت محمديه دالله تعالي په وړاندي ګواهي ورکوي چې انبياؤ خپل احکام امتونوته رسولي دي ، دګواه کيدو همدا معني ده ، او لتکونو الايه ، دامت محمديه دعادل کيدو علت دي ددي آيت نه داهم معلوميږي چې دشهادت دپاره عدالت شرط دي

وَيَكُونَ الرَّسُولُ عَلَيْكُمْ شَهِيدًا.. (او شي به پيغمبر په تاسو باندي ګواه) درسول نه مراد محمد صلي الله عليه وسلم دي درسول الله دګواه کيدو دا معني ده چې په قيامت کي به نبي عليه السلام په خپل امت باندي ګواهي کوي اوګواه چونکه په شان درقيب يعني نګران وي

[1] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /أحاديث الأنبياء ٣ (٣٣٣٩) ، وتفسير سورة البقرة ١٣ (٤٤٨٧) ، والاعتصام ١٩ (٧٣٤٩) ، سنن ابن ماجه/الزهد ٣٤ (٤٢٨٤) (تحفة الأشراف : ٤٠٠٣)

اودرقيب په صله کي علي راخي نوځکه يي دشهيد په صله کي هم علي راوړي دي اګر چې ظاهرا په صله کي لام راوړل مناسب معلوميدل
علامه بغوي فرمائي چې دقيامت په ورځ به الله تعالي اولين او اخرين په يوځاي کي راجمع کړي ، اودتيرو شوو امتونو کافرانوته به خطاب اوکړي چې ايا تاسوته کوم ويرونکي نه وو درغلي ؟ هغوئ به صفا انکار اوکړي چې مونږ ته هيڅوك ندي راغلي نو بيا به الله تعالي دانبياؤ نه تپوس اوکړي انبياء به په اتفاق سره اووائي چې اي الله مونږه پيغام رسولي دي او دوئ صريح دروغ وائي ، الله تعالي باوجود ددي چې عالم الغيب دي مګر داتمام حجت دپاره دانبياؤ نه ګواهان طلب کړي نوپدي وقت کي به امت محمدي حاضر شي او ګواهي به ورکړي چې انبياؤ تمام احکام رسولي دي ، کفار به اووائي چې دوئ ته څنګه معلومه شوه چې انبياؤ احکام رسولي دي دوئ خو زمونږ نه په سوونو کلونو پس پيداشوي دي امت محمدي به جواب ورکړي چې الله تعالي مونږ ته رسول راليږلي وو اوکتاب يي ورباندي نازل کړي وو اوپه هغي کي يي مونږ ته خبر راکړي دي چې هر نبي خپل امت ته احکام رسولي دي او الله تعالي دټولو ږبتونو نه زيات ږبتوني دي ددينه پس به محمد صلي الله عليه وسلم راوغوښتلي شي او دامت دحالت په باره کي به ورنه تپوس اوکړي شي اونبي عليه السلام به ددوئ دصداقت او عدالت ګواهي ورکړي
بخاري، ترمذي ، نسائي، دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه روايت بيان کړي دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چې دقيامت په ورځ به نوح عليه السلام راوغوښتلي شي او تپوس به ورنه اوشي چې ايا ددين تبليغ دي کړي وو؟ نو عرض به اوکړي چې اي پروردګاره يقينا ماستا پيغمام رسولي وو ددينه پس به الله تعالي دده امت نه تپوس اوکړي چې ايا نوح تاسوته احکام رسولي وو هغوئ به اووائي مونږ ته خو هيڅوك نه وو راغلي بيابه دنوح نه تپوس اوشي چې ايا کوم ګواه درسره شته هغه به عرض اوکړي چې زما ګواه دمحمد صلي الله عليه وسلم امت دي ، نبي عليه السلام فرمائي بيا به تاسو هلته راشئ اوګواهي به ورکړي او بيايي دا آيت وكذلك جَعَلْنَاكُمْ اُمَّةً وَسَطًا . ولوستلو او ونې فرمائيل چې تاسو به دنوح عليه السلام دتبليغ ګواهي ورکړي او زه به په تاسو باندي ګواهي ورکړم
امام احمد نسائي او بيهقي دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه داسي روايت بيان کړي دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چې دقيامت په ورځ باندي به يو نبي راشي او دهغه سره به دهغه دامت نه صرف يو کس وي بيا به يو بل نبي راشي اودهغه سره به دوه کسان وي او همداسي به انبياء يو بل پسي راځي او الله تعالي به دټولو نه تپوس کوي چې ايا تبليغ موکړي وو ټول به عرض اوکړي چې پروردګاره کړي مو وو بيا به دهغوئ دامتونو نه تپوس اوکړي شي چې ايا دوئ احکام رسولي وو هغوئ ټول به انکار اوکړي بيابه دانبياؤ نه

گواهان طلب شي نوهغوئ به امت محمدي پيش كړي بيابه دامت محمدي نه تپوس اوشي چې تاسوته څنګه معلومه شوي ده ؟ هغوئ به عرض اوكړي چې مونږ ته نبي كتاب راوړي وو اوپه هغي كي داهم وو چې انبياؤ خپلو امتونوته احكام رسولي دي او مونږ دهغه تصديق كړي دي نو اوبه ونيلي شي يقينا تاسو رښتيا وائي

****************

٢٩٦٢_حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ إِسْرَائِيلَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ، قَالَ: لَمَّا قَدِمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِينَةَ "صَلَّى نَحْوَ بَيْتِ الْمَقْدِسِ سِتَّةَ أَوْ سَبْعَةَ عَشَرَ شَهْرًا، وَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحِبُّ أَنْ يُوَجَّهَ إِلَى الْكَعْبَةِ، فَأَنْزَلَ اللَّهُ: قَدْ نَرَى تَقَلُّبَ وَجْهِكَ فِي السَّمَاءِ فَلَنُوَلِّيَنَّكَ قِبْلَةً تَرْضَاهَا فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ (البقرة: ١٤٤) فَوُجِّهَ نَحْوَ الْكَعْبَةِ، وَكَانَ يُحِبُّ ذَلِكَ، فَصَلَّى رَجُلٌ مَعَهُ الْعَصْرَ، قَالَ: ثُمَّ مَرَّ عَلَى قَوْمٍ مِنَ الْأَنْصَارِ، وَهُمْ رُكُوعٌ فِي صَلَاةِ الْعَصْرِ نَحْوَ بَيْتِ الْمَقْدِسِ، فَقَالَ: هُوَ يَشْهَدُ أَنَّهُ صَلَّى مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَأَنَّهُ قَدْ وُجِّهَ إِلَى الْكَعْبَةِ، قَالَ: فَانْحَرَفُوا وَهُمْ رُكُوعٌ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رَوَاهُ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ. [1]

**ترجمه** : دبراء بن عازب رضي الله عنه بيان دي فرمائي كله چې رسول الله صلي الله عليه وسلم مديني ته راغلو نو دشپاړسو نه تر اولس مياشتو پوري يې بيت المقدس ته دمتوجه كيدو په حالت كي مونځ كړي وو، مګر رسول الله صلي الله عليه وسلم كعبي طرف ته مونځ كول خوښول نو الله تعالي دا ايت كريمه "قَدْ نَرَى تَقَلُّبَ وَجْهِكَ فِي السَّمَاءِ فَلَنُوَلِّيَنَّكَ قِبْلَةً تَرْضَاهَا فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ (البقرة)" نازل كړو، يعني مونږ بار بار اسمان طرف ته ستا دمخ متوجه كيدل وينو نو اوس به مونږ تالره هغه قبلي ته متوجه كړو په كومه چې به ته خوشحاله شي پس راوګرځوه مخ خپل مسجد حرام طرف ته نو ددينه پس رسول الله صلي الله عليه وسلم كعبي طرف ته راستون كړو او دا به يې غوښتل هم يوكس درسول الله صلي الله عليه وسلم سره دمازيګر مونځ اوكړو او بيا په څه انصاري كسانو باندي تيريدلو او هغوئ بيت المقدس طرف ته دمازيګر مونځ كولو ده ورته اوونيل زه ګواهي وركوم چې ما درسول الله صلي الله عليه وسلم سره په داسي حال كي مونځ كړي دي چې كعبي طرف ته يې مخ ګرځولي وو نو هغوئ هم دركوع په حالت كي كعبي طرف ته راوګرځيدل

[1] ـ انظر حديث رقم ٣٢٠

امام ترمذي واني دبراء حديث حسن صحيح دي، او په دي باب کي دابن عمر، ابن عباس، عماره بن اوس، عمروبن عوف مزني، او انس رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي

**تشريح**: قَدْ نَرٰى تَقَلُّبَ وَجْهِكَ فِي السَّمَآءِ... يقينا وينو مونږ مخ ګرخول ستا په طرف داسمان دنبي کريم صلي الله عليه وسلم زړه داغوښتل چې دمونځ متعلق کعبي ته دمخ ګرځولو حکم اوشي ځکه چې هغه ابراهيمي قبله وه چې مومنانو لره دايمان او مشرکانو لره دمخالفت طرف ته مائل کونکي وه ، دايت دتحويل قبله دقصي ابتدائي حصه دده، اوپه تلاوت کي وروسته کړي شوي ده ، دهجرت نه پس په منسوخ شوو احکاموکي اولني حکم همدا دي اوپدي کي اختلاف هم دي چې دهجرت نه مخکي قبله بيت الله وه اوکه بيت المقدس . بعضو ويلي دي چې په مکه کي نبي عليه السلام بيت المقدس طرف ته مونځ کولواوکعبه به ورته هم مخامخ وه ، داحديث امام احمد دابن عباس رضي الله عنهما نه په جيد سند سره نقل کړي دي اوبعضوئيلي دي چې مطلقا به ئي بيت المقدس طرف ته مونځ کولواو ددي ذکر ئي ندي کړي چې قبله به ورنه کوم طرف ته وه

علامه بغوي فرمائي چې په مکه کي نبي عليه السلام کعبي طرف ته مونځ کولواودهجرت کولونه پس چې مديني ته راغي نودبيت المقدس طرف ته متوجه شو، چنانچي ابن جرير دابن عباس رضي الله عنهما نه په جيد سند سره نقل کړي دي چې کله نبي عليه السلام مديني ته هجرت وکړو نو الله تعالي ورته حکم وکړو چې دبيت المقدس طرف مخ ستون کړه، ابن جرير وائي چې اول به نبي عليه السلام دکعبي طرف ته مونځ کولو او بيا په مکه کي داوسيدو په حالت کي ورته دبيت المقدس طرف ته دمونځ کولو حکم اوشو تردي چې دري کاله يي دبيت المقدس طرف ته مونځ اوکړو او بيايي مديني ته هجرت اوکړو ، اولني قول يعني دعلامه بغوي مسلك زيات صحيح او قوي دي اوډير احاديث ددي تائيد کوي پدي کي اختلاف هم دي چې دهجرت نه پس دبيت المقدس طرف ته نبي عليه السلام څومره زمانه مونځ کړي وو دابو داود په نزد باندي دابن عباس په روايت سره اولس مياشتي دي اودطبراني اوبزار په نزد باندي دعمرو بن عوف درروايت مطابق او دابن ابي شيبه او ابوداود وغيره په نزد دابن عباس درروايت مطابق اودامام مالك او سعيد بن مسيب دقول مطابق شپاړس مياشتي وي اودبخاري په نزد هم دبراء بن عازب درروايت مطابق شپاړس مياشتي وي ، حق دادي چې شپاړس مياشتي او يو څو ورځي نبي عليه السلام بيت المقدس طرف ته مونځ کړي دي ځکه چې نبي عليه السلام دمکي نه دربيع الاول په پنځم تاريخ د دوشنبي په ورځ هجرت کړي وو اومديني ته په دولسم ربيع الاول د دوشنبي په ورځ داخل شوي وو او دتحويل قبله حکم دصحيح قول مطابق پنځلسم رجب اوپه دويم هجري کال د بدر دواقعي نه دوه مياشتي

مخکي د زوال په وخت کې شوي وو جمهورو علماؤ دا قول راجح ګرځولي دي اوځوك چې داولس مياشتو قائل دي دهغې وجه داده چې هغوئ تولي مياشتي ډکي حسابي کړي دي اوپه کومو روايتونوکي چې ديارلس يا نولس يا اتلس مياشتي ذکر شوي دي يا دوه مياشتي يا دوه کاله ذکر شوي دي دا ټول ضعيف اقوال دي په مدينه کې چې کله نبي عليه السلام تشريف فرما وو نو يهوديانو به وئيل چې محمد خوپه دين کې زمونږ مخالفت کوي ليکن تابعداري زمونږه دقبلې کوي پدې وجه باندې به نبي عليه السلام دا غوښتل چې قبله دې بيت الله شي ، چنانچې نبي کريم صلی الله عليه وسلم جبريل عليه السلام ته خپله دا تمنا ظاهره کړيوه چې بيت الله چونکه زما دپلار نيکه قبله ده نوپدې وجه باندې زما دا خواهش دې چې الله تعالی دا قبله جوړه کړي ،جبرائيل عليه السلام عرض اوکړو چې يقينا زه ستا پشان بنده يم او ته دالله تعالی په نزد باندې دمرتبې په لحاظ زمانه زيات يې پخپله دالله تعالی نه سوال اوکړه نو رسول الله صلی الله عليه وسلم دعا وغوښتله اودالله تعالی دحکم په انتظار کې ئې اسمان طرف ته کتل تر دې چې الله تعالی يې دعا قبوله کړه او مذکوره ايت نازل شو.

****************

٢٩٦٣ـ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: " كَانُوا رُكُوعًا فِي صَلَاةِ الفَجْرِ ". وَفِي البَابِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ عَوْفٍ المُزَنِيِّ، وَابْنِ عُمَرَ، وَعُمَارَةَ بْنِ أَوْسٍ، وَأَنَسِ بْنِ مَالِكٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه** : دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما بيان دې فرمائي چې خلق دسحر مونځ کې په رکوع کې وو.

امام ترمذي وايي: او په دې باب کې دعمرو بن عوف مزني، ابن عمر، عماره بن اوس او انس بن مالك رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او ابن عمر حديث حسن صحيح دي

****************

٢٩٦٤ـ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، وَأَبُو عَمَّارٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ إِسْرَائِيلَ، عَنْ سِمَاكٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: " لَمَّا وُجِّهَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى الكَعْبَةِ، قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، كَيْفَ

[1] ـ انظر حديث رقم ٣٢١

بِإِخْوَانِنَا الَّذِينَ مَاتُوا وَهُمْ يُصَلُّونَ إِلَى بَيْتِ الْمَقْدِسِ، فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى: وَمَا كَانَ اللَّهُ لِيُضِيعَ إِيمَانَكُمْ (البقرة: ١٤٣)". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (1)

**ترجمه** دعبدالله ابن عباس رضي الله عنهمانه روايت دی فرمائي کله چې رسول الله صلي الله عليه وسلم کعبې ته مخ کول شروع کړل نوصحابه کرامو عرض اوکړو اي دالله رسوله دهغه خلقوبه څه حال وي چاچې دبيت المقدس طرف ته مونځونه کړي دي او وفات شوي دي؟ نوبه دي وخت کې الله تعالي دا ايت کريمه: (وَمَا كَانَ اللَّهُ لِيُضِيعَ إِيمَانَكُمْ) نازل کړو. يعني الله تعالي ستاسو ايمانونه نه بربادوي.
امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي

**تشريح**: وَمَا كَانَ اللَّهُ لِيُضِيعَ إِيمَانَكُمْ... (اوندي الله تعالي چې ضائع کړي ايمان ستاسو) په ليضيع ايمانكم کې دايمان نه مراد ياخوپه ايمان باندي کلکيدل دي اويا په منسوخ شوي قبله باندي ايمان مراد دي ، اوبعضي مفسرينو وئيلي دي چې دايمان نه مراد مونځ دي ، چنانچې مروي دي چې حيي بن احطب يهودي اودده ملګرو مسلمانانو ته وئيلي ووتاسوچې څومره زمانه بيت المقدس ته مونځونه کړي دي دا هدايت وو اوکه ګمراهي وه که هدايت وو نوتاسوخو بيا هدايت پريخودواوکه چري ګمراهي وه نوبياخو تاسوپه ګمراهۍ کې دالله تعالي عبادت کړي دي ددي په جواب کې مسلمانانو ووئيل چې هدايت هغه وي په کوم کار چې الله تعالي حکم کړي وي اوګمراهي دهغه دممنوع شده څيزونو ارتکاب دي ترڅوپوري چې بيت المقدس ته دمونځ کولو اجازت ووترهغه وخته پوري هدايت وو اوکله چې ورنه منع راغله نو ګمراهۍ شوه دتحويل قبلي نه مخکې دبنو النجار قبيلي نه اسعد بن زراره اودبني سلمه نه براء بن معرور وفات شوي وو اودوي دواړه دنقباؤ نه وو اوددينه مخکې ډير خلق مړه شوي وو دهغوي عزيزان او اقارب نبي عليه السلام ته راغلل اوعرض ئي وکړو چې اي دالله رسوله الله تعالي خوتاسو ابراهيمي قبلي ته دمخ کولو حکم کړي دي اوزمونږ وفات شوو رونړو چې دوفات نه مخکې بيت المقدس ته مونځونه کړي دي دهغوي به څه حال وي؟نوپدي وخت کې الله تعالي دا آيت کريمه وَمَا كَانَ اللَّهُ لِيُضِيعَ إِيمَانَكُمْ نازل کړو ، په صحيحينو کې دبراء بن عازب رضي الله عنه نه مروي دي چې دتحويل قبله نه مخکې ډيرخلق مړه شوي اوشهيدان شوي دي مونږته داعلم نه وو چې دهغوي په باره څه ووايو،يعني مونځونه ئي قبول شوي دي اوکه نه، نو الله تعالي دا آيت کريمه نازل کړو

1 سنن ابي داود/ السنة ١٦ (٣٦٨٠) (تحفة الأشراف: ٦١٠٨)

*****************

٢٩٦٥_حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ. حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، قَالَ: سَمِعْتُ الزُّهْرِيَّ يُحَدِّثُ. عَنْ عُرْوَةَ. قَالَ: " قُلْتُ لِعَائِشَةَ: مَا أَرَى عَلَى أَحَدٍ لَمْ يَطُفْ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ شَيْئًا. وَمَا أُبَالِي أَنْ لَا أَطُوفَ بَيْنَهُمَا. فَقَالَتْ: بِئْسَمَا. قُلْتَ: يَا ابْنَ أُخْتِي، طَافَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَطَافَ الْمُسْلِمُونَ. وَإِنَّمَا كَانَ مَنْ أَهَلَّ لِمَنَاةَ الطَّاغِيَةِ الَّتِي بِالْمُشَلَّلِ لَا يَطُوفُونَ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ. فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَبَارَكَ وَتَعَالَى: فَمَنْ حَجَّ الْبَيْتَ أَوِ اعْتَمَرَ فَلا جُنَاحَ عَلَيْهِ أَنْ يَطَّوَّفَ بِهِمَا (البقرة :١٥٨) وَلَوْ كَانَتْ كَمَا تَقُولُ لَكَانَتْ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ أَنْ لَا يَطَّوَّفَ بِهِمَا ". قَالَ الزُّهْرِيُّ: فَذَكَرْتُ ذَلِكَ لِأَبِي بَكْرِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ هِشَامٍ. فَأَعْجَبَهُ ذَلِكَ. وَقَالَ إِنَّ هَذَا لَعِلْمٌ. وَلَقَدْ سَمِعْتُ رِجَالًا مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ. يَقُولُونَ: " إِنَّمَا كَانَ مَنْ لَا يَطُوفُ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ مِنَ الْعَرَبِ. يَقُولُونَ: إِنَّ طَوَافَنَا بَيْنَ هَذَيْنِ الْحَجَرَيْنِ مِنْ أَمْرِ الْجَاهِلِيَّةِ. وَقَالَ آخَرُونَ: مِنَ الْأَنْصَارِ إِنَّمَا أُمِرْنَا بِالطَّوَافِ بِالْبَيْتِ وَلَمْ نُؤْمَرْ بِهِ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ. فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى: إِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِنْ شَعَائِرِ اللَّهِ (البقرة :١٥٨). قَالَ أَبُو بَكْرِ بْنُ عَبْدُ الرَّحْمَنِ فَأُرَاهَا قَدْ نَزَلَتْ فِي هَؤُلَاءِ وَهَؤُلَاءِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (1)

**ترجمه** دعروه بن زبير رضي الله عنه بيان دي فرمائي چې ما ام المؤمنين عائشه رضي الله عنها ته اووئيل ماته په دې كې هيڅ حرج نه ښكاري چې يو بنده دصفا او مروه مينځ كې سعي اونكړي. او ماته دخپل ځان باره كې ددوئ په مينځ كې په طواف نه كولو كې څه حرج نه ښكاري عائشه رضي الله عنها اووئيل اي زما خوريه ډيره بده خبره دي اوكړه رسول الله صلي الله عليه وسلم طواف كړي دي او مسلمانانو هم كړي دي مګر په جاهليت كې داسې زمانه وه چې كوم كسان په مشلل كې وو او دمنات بوت په نوم يې احرام تړلو هغوئ به دصفا او مروه مينځ كې طواف نه كولو نو الله تعالي ايت كريمه " فمن حج البيت اوعتمر فلا جناح عليه ان يطوف بهما" نازل كړو كه خبري چرې داسې وې لكه چې ته يې وائي نو بيا به ايت داسې نازل شوي وو "فلا جناح عليه ان لا يطوف بهما" زهري وائي ما ددې خبري ذكر ابوبكر بن عبدالرحمن بن حارث بن هشام ته اوكړو نو دهغوئ دا خبره ډيره خوښه شوه او وئيل يې دا دعلم او حكمت خبري دي او وروره ما خو ډيرو اهل علمو نه اوريدلي دي چې كومو عربو به

---

1 ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /الحج ٧٩ (١٦٤٣) . والعمرة ١٠ (١٧٩٠) . وتفسير البقرة ٢١ (٤٤٩٥) . وتفسير النجم ٣ (٤٨٦١) . صحيح مسلم /الحج ٤٣ (١٢٧٧) . سنن ابي داود/ الحج ٥٦ (١٩٠١) . سنن النسائي/الحج ٤٣ (٢٩٨٦) (تحفة الأشراف: ١٦٤٣٨) . والموطأ: الحج ٤٢ (١٢٩) . و مسند احمد (٦/١٤٤، ١٦٢، ٢٢٧)

دصفا او مروه مينځ کي طواف نه کولو هغوئ به وئيل زمونږ طواف کول ددي دوه ګتو په مينځ کي دجاهليت دکارونو نه دي او بعضي اسماريانو به وئيل مونږ ته خو دکعبي دطواف حکم شوي دي نه چي دصفا او مروه مينځ کي دطواف کولو نو په همدي وخت کي الله تعالي ايت کريمه "ان الصفا والمروة من شعائر الله" نازل کړو ابوبکر بن عبدالرحمن وائي زما خيال دي چي دا ايت هم دغه کسانو باره کي نازل شوي دي.
امام ترمذي وايي. داحديث حسن صحيح دي.

**تشريح**: إِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِنْ شَعَآئِرِ اللهِ... (يقينا صفا او مروه چي دي دا دالله تعالي دادب دځايونونه دي) صفا او مروه په مکه کي دوه غرونه دي اوشعائر جمع دشعيرة ده په معنا دعلامي سره اودلته دشعائرنه مراد دعبادت طريقي دي ، اوشعائر يي ورته خکه اوفرمائيل چي دا داطاعت الهيه علامات دي ، په صفا اومروه کي سعي کول په اجماع دامت سره واجب دي ليکن دامام احمد نه روايت دي چي هغه سنت ګڼرلي دي او استدلال يي ددي آيت کريمه نه کړي دي.

فَمَنْ حَجَّ الْبَيْتَ اَوِ اعْتَمَرَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ اَنْ يَطَّوَّفَ بِهِمَا... (پس څوك چي حج وکړي دکعبي ياعمره وکړي پس ګناه نشته پده باندي چي طواف وکړي پدي دواړو کي) خکه چي الله تعالي فرمائي چي په طواف کونکي باندي څه ګناه نشته نومعلومه شوه چي مباح دي اوهمدارنګي راروان آيت : فمن تطوع هم ددوي دپاره دليل دي خکه چي تطوع نفلوته وئيلي شي اوحق داده چي مباح کيدل اونفل کيدل دواړه دوجوب نه عام دي نوخکه ددي څه منافي اومخالف نشته، په يوځيز باندي دواجب اومباح دواړو اطلاق کيدي شي حج په لغت کي قصد کولوته وئيلي شي او اعتمار زيارت کولوته اودلته ورنه مراد دوه مخصوص عبادتونه دي ، دمتوسطي طريقي نه انحراف کولو ته جناح وئيلي شي ددي آيت شان نزول داسي دي چي په صفا اومروه کي دوه بتان اساف اونائله پراته وو دجاهليت دوخت خلقوبه ددي بتانو دتعظيم دپاره د صفا اودمروه په مينځ کي طواف کولواودوي به ئي مسح کول ليکن کله چي داسلام نمر راوختلونومسلمانانوبه دصفا اومروه په مينځ کي دسعي کولو نه اجتناب کولاوبه زړه کي به ئي ورنه نفرت کولو، بل طرف ته انصاروبه مخکي داسلام دمنات بت عبادت کولواودهغه په وړاندي به ئي په چغو دعا غوښتله نوپدي وجه باندي انصاروهم دصفا اومروه په مينځ کي دسعي نه نفرت کولونوخکه الله تعالي ددواړو فرقو متعلق دا آيت کريمه نازل کړو. چنانچي داحاديثونه دا تمامه قصه معلوميږي
حاکم دابن عباس رضي الله عنه نه نقل کړي دي چي دصفا اومروه په مينځ کي دجاهليت په زمانه کي به شيطان تمامه شپه طواف کولواودصفا اومروه په مينځ کي بتان پراته وو. کله

چې اسلام راغی نو مسلمانانو وونیل چې ای دالله رسوله دصفا اومروه په مینځ کې به مونږ طواف نه کووځکه چې مونږ به په جاهلیت کې داسې کول نو الله تعالی ددې متعلق ان الصفا والمروة من شعائر الله الاية نازل کړو

بخاري په سند دعاصم سره دانس رضي الله عنه نه روایت نقل کړی دی چې دده نه دصفا اومروه په مینځ کې دسعی په باره کې تپوس وکړی شونو ورته نی وفرمائیل چې مونږ به داسلام دظهور نه مخکې به مونږ داسعی دجاهلیت عمل ګڼړلو لکن کله چې اسلام راغی نو سعی موپریخودله نو الله تعالی ددې متعلق ان الصفا والمروة من شعائر الله الاية نازل کړو،

اوپه صحیحینو کې دعروه رضي الله عنه نه روایت مروي دی فرمائي چې ام المؤمنین عائشي رضي الله عنها ته مې عرض وکړوچې د فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ أَنْ يَطَّوَّفَ بِهِمَا نه معلومیږي چې دصفا اومروه په مینځ کې سعی واجب نده عائشي رضي الله عنها چې دا واوریدل نو ونې فرمائیل اې خوریه دادې بده خبره وکړه که چرې دایت مطلب داوی کوم چې تاوونیلو نو قرانی عبارت به داسې وو. فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ أَنْ لَا يَطَّوَّفَ بِهِمَا، دا آیت دانصارو په باره کې ددوی دمسلمانیدو نه مخکې نازل شوی وو، قصه ددې داسې وه چې انصارو دمنات بت عبادت کولوکله چې مسلمانان شول نوپه صفا اومروه کې طواف کول یې بنه نه ګڼړل نویدې وجه دوی رسول الله ته عرض وکړو چې اې دالله رسوله مونږ به داسلام نه مخکې په صفا اومروه کې سعی کوله اوس نې زمونږ زړونه نه مني نوپدې باره کې الله تعالی دا ایت ان الصفا والمروة نازل کړو. اوهمدارنګې پدې باندې جدیث دحبیبه بنت تجراه کوم چې دصفیة بنت شیبه په واسطې سره مروي دی هم دلالت کوي چې په صفا او مروه کې سعی کول واجب دي اوهغه حدیث دادې چې حبیبه فرمائي چې ما رسول الله اولیدوچې په صفا اومروه کې نې طواف کولواونبي علیه السلام دتړلوخلقونه وروسته اوخلق ورنه مخکې وواوپه دومره شدت سره نې سعی کوله چې لنګ ورنه اوغورځیدواوفرمائیل نې چې اې خلقو واورئ الله تعالی پتاسوباندې سعی مقرر کړې ده ، ددې حدیث روایت امام شافعي او امام احمد کړی دی لیکن ددې حدیث په سند کې یو راوي عبدالله بن مومل دی اوپه هغه کې څه ضعف نشته اوعلماؤ ورته ضعیف ونیلي دي

لیکن ابن جوزي ونیلي دي چې یحیی بن معین ونیلي دي چې په عبدالله بن مومل کې څه ضعف نشته . اوداحدیث دارقطني په یو بل سند سره هم نقل کړی دی اوپه هغه سند کې یو بل راوي منصور بن عبدالرحمن دی ابو حاتم دهغه متعلق لایحتج به وائي او یحیی بن معین ثقه ګڼړلي دي اوذهبي د مشهورو ثقاتواودرجالو دمسلم نه بیان کړی دی . حافظ ابن حجر وائي چې دطبراني په نزد باندې داحدیث دابن عباس نه په یوبل سند سره هم مروي دی اوکله

چې دا دمخكني سند سره جمع شي نو قوت بيداكوي. (صاحب د مظهري دلته يو مفصل او مدلل بحث كړى دى، چې مونږ د طوالت په وجه نشو ذكر كولى. والله اعلم.

**دعروه بن زبير رضي الله عنه حالات**

نوم عروه كنيه ابوعبدالله دپلار نوم زبير بن عوام دمور نوم اسماء بنت ابي بكر. دعروه ولادت د عمر فاروق دخلافت په اخر يا دعثمان دخلافت په ابتداء كې شوى وو (تهذيب التهذيب)

دده دورور عبدالله بن زبير دده په وينا عبدالملك دعبدالله بن زبير د دفن كولو حكم اوكړو عروه دعلم او عمل مجمع البحرين وو ځكه چې دده پلار زبير بن عوام حواري رسول وو او دده نيكه ابوبكر صديق رضي الله عنه او دده ترور ام المؤمنين عائشه رضي الله عنها وه او دده مور اسماء ذات النطاقين وه دده ورور عبدالله هم داهل علمو صحابه كرامو نه وو. په دده كې يو ځو خصوصيات وو مثلا صبر او استقامت، عبادت او رياضت. صبر او شكر. دنيا نه بي رغبتي او سخاوت وغيره دده ضرب المثل وو

داحاديثو سره يې ډيره مينه وه چې دعائشه رضي الله عنها نه يې اكثر اوريدلي وو او هغه اعلم الناس وه (تهذيب التهذيب).

دام المومنين تمام علمي ذخيره يې محفوظ كړي وه پخپله فرمائي چې زما دترور دوفات نه څلور پنځه كاله مخكې ما دهغې ټول علم حاصل كړى وو كه چرې دا په دې وخت كې مړه وى نو ما به دهغې دكوم حديث په باقي پاتي كيدو افسوس نه وو كړى (تهذيب التهذيب)

په كال ۹۴ هجري كې په مدينه كې وفات شو (طبقات ابن سعد)

دده مزيد حالاتو دپاره لاندېني كتابونه مفيد دي ابن اسير، طبقات ابن سعد. تهذيب الاسماء. تذكرة الحفاظ ابن خلكان

***************

۲۹۶٦ـ حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ أَبِي حَكِيمٍ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ عَاصِمٍ الْأَحْوَلِ، قَالَ: "سَأَلْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ عَنِ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ، فَقَالَ: كَانَا مِنْ شَعَائِرِ الْجَاهِلِيَّةِ، فَلَمَّا كَانَ الْإِسْلَامُ أَمْسَكْنَا عَنْهُمَا فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَبَارَكَ وَتَعَالَى: إِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِنْ شَعَائِرِ اللَّهِ فَمَنْ حَجَّ الْبَيْتَ أَوِ اعْتَمَرَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ أَنْ يَطَّوَّفَ بِهِمَا (البقرة: ۱۵۸) قَالَ: هُمَا تَطَوُّعٌ وَمَنْ تَطَوَّعَ خَيْرًا فَإِنَّ اللَّهَ شَاكِرٌ عَلِيمٌ (البقرة: ۱۵۸)" قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (1)

---

1 ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /الحج ۸۰ (۱٦۴۸)، وتفسير البقرة ۲۱ (۴۴۹٦)، صحيح مسلم /الحج ۴۳ (۱۲۷۸) (تحفة الأشراف: ۹۲۹)

**ترجمه** عاصم احول وائي دانس بن مالك نه مي دصفا او مروه باره كي تپوس اوكړو نو هغوئ اوونيل دا دواړه دجاهليت دشعائرو نه وو بيا چې كله اسلام راغي نو مونږ ددوئ دواړو په مينځ كي دطواف كولو نه منع شو تردي چې دي باره كي الله تعالي دا ايت كريمه "ان الصفا والمروة من شعائر الله" نازل كړو پس هر څوك چې دبيت الله طواف دحج دپاره كوي يا عمره كوي دهغه دپاره ددي دواړو په مينځ كي په طواف كولو كي څه حرج نشته ددوئ دواړو مينځ كي طواف (سعي) نفل ده او څوك چې دنيكئ كار دثواب په خاطر اوكړي نو الله تعالي دهغي قدرداني كوي او الله تعالي ورباندي خبردار دي
امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي

**دعاصم احول حالات:**

نوم عاصم دپلار نوم سليمان كنيه ابو عبد الرحمن دبصري اوسيدونكي دي، ثقه دي. او د درميانه درجي تابعي دي ، په ۱۴۰ هجري كي وفات شوي دي اوپه صحاح سته كي ورنه روايات موجود دي

***************

۲۹٦۷_حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ. حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ جَعْفَرِ بْنِ مُحَمَّدٍ. عَنْ أَبِيهِ. عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ. قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ قَدِمَ مَكَّةَ طَافَ بِالْبَيْتِ سَبْعًا. فَقَرَأَ " وَاتَّخِذُوا مِنْ مَقَامِ إِبْرَاهِيمَ مُصَلًّى (البقرة :۱۲٥). فَصَلَّى خَلْفَ الْمَقَامِ. ثُمَّ أَتَى الْحَجَرَ فَاسْتَلَمَهُ. ثُمَّ قَالَ: نَبْدَأُ بِمَا بَدَأَ اللَّهُ وَقَرَأَ: إِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِنْ شَعَائِرِ اللَّهِ (البقرة :۱٥۸ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** دجابر بن عبدالله رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چې درسول الله صلي الله عليه وسلم نه مي اوريدلي دي چې كله مكي ته راغلو نو دحجر اسود نه يې اوه طوافونه اوكړل او بيا يې دا ايت كريمه "واتخذوا من مقام ابراهيم مصلي" تلاوت كړو او دمقام ابراهيم نه يي شاته مونځ اوكړو او بيا حجراسود ته ورغلو او ښكل يې كړو او بيا يې اوفرمائيل مونږ دهغه څه نه شروع كوو دكوم نه چې الله تعالي شروع كړي ده او بيا يې دا ايت تلاوت كړو "ان الصفا والمروة من شعائر الله".
امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي

[1] _ انظر حديث رقم ۸٥٦

***************

۲۹٦٨ـحَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللهِ بْنُ مُوسَى، عَنْ إِسْرَائِيلَ بْنِ يُونُسَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنِ الْبَرَاءِ، قَالَ: "كَانَ أَصْحَابُ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا كَانَ الرَّجُلُ صَائِمًا فَحَضَرَ الإِفْطَارُ فَنَامَ قَبْلَ أَنْ يُفْطِرَ لَمْ يَأْكُلْ لَيْلَتَهُ وَلَا يَوْمَهُ حَتَّى يُمْسِيَ، وَإِنَّ قَيْسَ بْنَ صِرْمَةَ الأَنْصَارِيَّ كَانَ صَائِمًا، فَلَمَّا حَضَرَ الإِفْطَارُ أَتَى امْرَأَتَهُ، فَقَالَ: هَلْ عِنْدَكِ طَعَامٌ ؟ قَالَتْ: لَا، وَلَكِنْ أَنْطَلِقُ فَأَطْلُبُ لَكَ، وَكَانَ يَوْمَهُ يَعْمَلُ فَغَلَبَتْهُ عَيْنُهُ، وَجَاءَتْهُ امْرَأَتُهُ فَلَمَّا رَأَتْهُ قَالَتْ خَيْبَةٌ لَكَ، فَلَمَّا انْتَصَفَ النَّهَارُ غُشِيَ عَلَيْهِ، فَذَكَرَ ذَلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَزَلَتْ هَذِهِ الآيَةُ أُحِلَّ لَكُمْ لَيْلَةَ الصِّيَامِ الرَّفَثُ إِلَى نِسَائِكُمْ (البقرة :۱۸۷) فَفَرِحُوا بِهَا فَرَحًا شَدِيدًا وَكُلُوا وَاشْرَبُوا حَتَّى يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الْخَيْطُ الأَبْيَضُ مِنَ الْخَيْطِ الأَسْوَدِ مِنَ الْفَجْرِ (البقرة :۱۸۷)". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** دبراء بن عازب رضي الله عنه بيان دي فرمائي چې داسلام په ابتداء کي دصحابه کرامو طريقه دا وه چې کله به چا روژه نيوله او دافطار وخت به شروع شو نو دافطار کولو نه مخکي به اوده شونو بيا به يي ټوله شپه او ټوله ورځ خوراك نه کولو ترڅو چې به ماښام شوي نه وو. دقيس بن صرمه انصاري واقعه ده چې هغه روژه نيولي وه کله چې دافطار وخت راغي نو هغه خپلي ښځي ته ورغلو او تپوس يي اوکړو ايا دخوراك دپاره درسره څه شته؟ هغي اووئيل شته خو نه ليکن زه ورځم او ستا دپاره چرته خوراك لټوم نو هغه به ټوله ورځ محنت او مزدوري کوله نو په دي وجه يي ستر ګي پټي شوي او اوده شو چې ښځه يي واپس راغله نو دي يي اوده بيامونډلو هغي اووئيل اي بدقسمته بيا چې کله ماسپخين شو نو په قيس باندي بيهوشي راغله کله چې رسول الله ته ددي خبري ذکر اوکړي شو نو دغه وخت کي دا ايت "احل لكم ليلة الصيام الرفث الي نسائكم" نازل شو خلق په دي ډير خوشحاله شول او بيا ددينه پس دا ايت نازل شو وَكُلُوا وَاشْرَبُوا حَتَّى يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الْخَيْطُ الأَبْيَضُ مِنَ الْخَيْطِ الأَسْوَدِ.
(اوخوراك څښاك جاري ساتئ تردي چې ښکاره شي تاسو ته هغه مزي سپين دمزي تور نه) يعني تاسو خوراك او څښاك کوئ تر څو چې تاسو داسمان په کنارو کي سپينه کرخه ليدلي نه وي.

[1] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /الصوم ١٥ (١٩١٥)، سنن ابي داود/ الصوم ١ (٢٣١٣)، سنن النسائي/الصوم ٢٩ (٢١٧٠) (تحفة الأشراف : ١٨٠١)، ومسند احمد (٤/٢٩٥)، وسنن الدارمي/الصيام ٧ (١٧٣٥)

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي

**تشريح**: وَكُلُوا وَاشْرَبُوا حَتَّى يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الْخَيْطُ الْأَبْيَضُ مِنَ الْخَيْطِ الْأَسْوَدِ دخيط ابيض نه مراد دورخي رنړا ده اودخيط اسود نه مراد دشپې تياره ده دخيط ذكر يي ځكه اوكړو چې كله دسحر ابتداء كيږي نودجنوب نه شمال طرف ته داسمان په كناره كي يوه پټه ښكارد شي او من الفجر د الخيط الابيض نه حال دي اوددي دپاره بيان دي، اودخيط اسود بيان يي ځكه اونكړو چې كله په خيط ابيض سره مراد سحر دي نودخيط اسود نه شپه مراد كول پخپله سرګند شو او په من الفجر كي من ياخودتبغيض دپاره دي اومعني داده په داسي حال كي چې خيط ابيض پخپله دسحر حصه وي اوصراحتا حتي يتبين الفجر يي اونه فرمائيل دادي دپاره چې معلومه شي چې ددي ادني حصه هم معلومه شي نوخوراك بندول پكاردي اوبغير دخيط اسود دذكر كولو نه يي هم اونه فرمائيل چه حتي يتبين لكم الخيط الابيض من الفجر، داددي دپاره چې په دي خبره دلالت اوكړي چې دفجر نه مراد صبح صادق دي. ځكه چې صبح صادق يوداسي سپين تار وي چې دجنوب دطرف نه شمال طرف ته خور شوي وي اوددي سره متصل ددي نه لږ مخكي يو تور تار چې اوږد وي ختم شي اوددينه پس دتياري په تمامو اطرافو احاطه اوكړي، اوداهم كيدي شي چې من الفجر د الخيط الاسود او د الخيط الابيض دپاره بيان وي ځكه چې په سحر كي دواړه خبري موجودي وي تياره هم وي اورنړا هم وي او داتركيب اولي دي ځكه چې په دي صورت كي به د حال او ذوالحال په مينځ كي فصل په اجنبي سره لازم نه شي والله اعلم.

دسمره بن جندب رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل اي خلقو دبلال داذان او دسحر داوږدوالي په وجه تاسو دپيشمني خوراك مه بندوئ بلكه دهغه وخته پوري تاخير اوكړئ چې داسمان په كنارو كي رنړا نه وي راښكاره شوي . ترمذي

دعبدالله بن عمر رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي اي خلقو دبلال اذان دشپې وي خوتاسو دابن ام مكتوم داذان اوريدو پوري دپيشمني خوراك جاري اوساتئ . راوي وائي چې ابن ام مكتوم نابينا وو اواذان به يي په هغه وخت كي كولو چې يوځوپيري به ورته اووئيلي شول چې صبا شوي دي.

كه څوك دا اعتراض اوكړي چې دعلي رضي الله عنه نه ثابت دي چې هغه دسحر دمونځ نه پس اوفرمائيل اوس سپين تار دتور تار نه جدا شو ددي حديث روايت ابن منذر كړي دي او همدارنګي ابن منذر په صحيح سند سره ابوبكر رضي الله عنه نه روايت بيان كړي دي چې هغه فرمائيلي دي كه چري دخوراك دشوق اودحرص الزام خطره نه وي نو ما به دسحر دمونځ

نه پس پيشمني كولي ، همدارنگې ابن منذر او ابن ابي شيبه دابوبكر صديق رضي الله عنه نه روايت نقل كړي دي چې هغه حكم فرمائيلي وو په بندولو ددروازو سره ترڅو چې صبا نه وي ليدلي شوي. پس دا ټول اثار په دې خبره واضح دلالت كوي چې دصبا دخوريدو نه پس خوراك كول جائز دي نو اوس به ددې اقوالو څه توجيه وي

****************

٢٩٦٩ـ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ ذَرٍّ، عَنْ يُسَيْعٍ الْكِنْدِيِّ، عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي قَوْلِهِ: "وَقَالَ رَبُّكُمُ ادْعُونِي أَسْتَجِبْ لَكُمْ (غافر :٦٠)"، قَالَ: "الدُّعَاءُ هُوَ الْعِبَادَةُ"، وَقَرَأَ وَقَالَ رَبُّكُمُ ادْعُونِي أَسْتَجِبْ لَكُمْ إِلَى قَوْلِهِ: دَاخِرِينَ (غافر :٦٠)". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه** : دنعمان بن بشير ﷺ نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چې دعا عبادت دی الله تعالي فرمائيلي دي زمانه اوغواړئ زه به ستاسو سوال قبول كړم.
امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي او دا حديث منصور نقل كړي دي

****************

٢٩٧٠ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، أَخْبَرَنَا حُصَيْنٌ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، أَخْبَرَنَا عَدِيُّ بْنُ حَاتِمٍ، قَالَ: لَمَّا نَزَلَتْ حَتَّى يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الْخَيْطُ الأَبْيَضُ مِنَ الْخَيْطِ الأَسْوَدِ مِنَ الْفَجْرِ (البقرة :١٨٧)، قَالَ لِي النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّمَا ذَاكَ بَيَاضُ النَّهَارِ مِنْ سَوَادِ اللَّيْلِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[2]

**ترجمه** دعدي بن حاتم نه روايت دی فرمائي چې كله ايت كريمه . (حَتَّى يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الْخَيْطُ الأَبْيَضُ مِنَ الْخَيْطِ الأَسْوَدِ) نازل شو نو ماته رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل ددينه مراد د ورځې سپينوالی دی د شپې دتوروالي نه
امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي.

---

[1] ـ سنن ابي داود/ الصلاة ٣٥٨ (١٤٧٩). سنن ابن ماجه/الدعاء ١ (٣٨٢٨) (تحفة الأشراف : ١١٦٤٣). و مسند احمد (٤/٢٧١، ٢٧٦). ويأتي برقم ٣٢٤٧)

[2] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /الصوم ١٦ (١٩١٦). وتفسير البقرة ٢٨ (٤٥٠٩). صحيح مسلم/الصوم ٨ (١٠٩٠). سنن ابي داود/ الصوم ١٧ (٢٣٤٩) (تحفة الأشراف : ٩٨٥٦)، و مسند احمد (٤/٣٧٧). وسنن الدارمي/الصوم ٧ (١٧٣٦)

*****************

حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، حَدَّثَنَا مُجَالِدٌ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَ ذَلِكَ. (١)

**ترجمه** شعبي دعدي بن حاتم په واسطه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه دماقبل هم معني روايت نقل كړي دي

*****************

٢٩٧١_حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ مُجَالِدٍ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ قَالَ: سَأَلْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الصَّوْمِ، فَقَالَ: "حَتَّى يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الْخَيْطُ الأَبْيَضُ مِنَ الْخَيْطِ الأَسْوَدِ (البقرة :١٨٧) قَالَ: فَأَخَذْتُ عِقَالَيْنِ، أَحَدُهُمَا أَبْيَضُ، وَالآخَرُ أَسْوَدُ، فَجَعَلْتُ أَنْظُرُ إِلَيْهِمَا، فَقَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَيْئًا لَمْ يَحْفَظْهُ سُفْيَانُ، قَالَ: إِنَّمَا هُوَ اللَّيْلُ وَالنَّهَارُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (٢)

**ترجمه** : دعدي بن حاتم نه روايت دی فرمائي چې كله ايت كريمه : (حَتَّى يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الْخَيْطُ الأَبْيَضُ مِنَ الْخَيْطِ الأَسْوَدِ ) نازل شو نو ما دوه پړي راواخستل چې يو پكي سپين او بل تور وو. او ورته مي كتل عدي بن حاتم راوي وايي چې ددي نه پس چې راته رسول الله صلي الله عليه وسلم څه جواب راكړو هغه راته ياد نه دی شايد چې داسي يې اوفرمائيل دسپين اوتور مزي نه مراد دشپې تياره اورڼراده ،

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي

**تشريح** ، دعدي بن حاكم رضي الله عنه نه روايت دي چې كله ايت كريمه "حتي يتبين لكم الخيط الابيض من الخيط الاسود" نازل شو نو ما يو تور تار او بل سپين تار راواغستل اودخپل بالخت لاندي مي كيخودل اودشپې مي ورته كتل نوپه دوی كي راته هيڅ فرق معلوم نه شو كله چې سحر شو نودنبي عليه السلام په خدمت كي حاضر شوم او ددي ذكر مي ورته اوكړو نبي كريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل ددينه خوددي شپې توراولي اودورځي سپينوالي مراد دي (بخاري او مسلم)

[1] ـ تفرد به المؤلف. وانظر ماقبله (تحفة الأشراف : ٩٨٦٤)

[2] ـ تفرد به المؤلف.

اوپه يو بل روايت كي دي چې نبي عليه السلام ورته اوفرمائيل ته خو عريض القفا (پلن څټ والايي يعني كم عقل يي) دا خو دشپې توروالي اودورځې سپينوالي وي
دسهل بن سعد رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چې كله كلوا وشربوا حتي يتبين لكم الخيط الابيض من الخيط الاسود نازل شو اوددغه وخته پورې من الفجر نه وو نازل شوي نوډيروخلقوبه داسې كول چې كله به يې دروژې نيولو اراده كوله نوپخپلودواړو خپوكي به يې سپين او تور تار اوتړلو اوخوراك به يې كولو كله چې به ورته هغه دواړه ښه ښكاره شول نوخوراك به يې پريښودو خوكله چې الله تعالي من الفجر لفظ نازل كړو نوهغوئ په دې پوهه شول چې ددې نه مراد دشپې تورتوالي اودورځې سپينوالي دي (بخاري مسلم)

***************

٢٩٧٢ـ حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، حَدَّثَنَا الضَّحَّاكُ بْنُ مَخْلَدٍ، عَنْ حَيْوَةَ بْنِ شُرَيْحٍ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ أَسْلَمَ أَبِي عِمْرَانَ التُّجِيبِيِّ، قَالَ: كُنَّا بِمَدِينَةِ الرُّومِ فَأَخْرَجُوا إِلَيْنَا صَفًّا عَظِيمًا مِنَ الرُّومِ، فَخَرَجَ إِلَيْهِمْ مِنَ الْمُسْلِمِينَ مِثْلُهُمْ أَوْ أَكْثَرُ، وَعَلَى أَهْلِ مِصْرَ عُقْبَةُ بْنُ عَامِرٍ، وَعَلَى الْجَمَاعَةِ فَضَالَةُ بْنُ عُبَيْدٍ، فَحَمَلَ رَجُلٌ مِنَ الْمُسْلِمِينَ عَلَى صَفِّ الرُّومِ حَتَّى دَخَلَ فِيهِمْ، فَصَاحَ النَّاسُ وَقَالُوا: سُبْحَانَ اللَّهِ يُلْقِي بِيَدَيْهِ إِلَى التَّهْلُكَةِ، فَقَامَ أَبُو أَيُّوبَ الأَنْصَارِيُّ، فَقَالَ: " يَا أَيُّهَا النَّاسُ، إِنَّكُمْ تَتَأَوَّلُونَ هَذِهِ الآيَةَ هَذَا التَّأْوِيلَ، وَإِنَّمَا أُنْزِلَتْ هَذِهِ الآيَةَ فِينَا مَعْشَرَ الأَنْصَارِ لَمَّا أَعَزَّ اللَّهُ الإِسْلاَمَ وَكَثُرَ نَاصِرُوهُ، فَقَالَ: بَعْضُنَا لِبَعْضٍ سِرًّا دُونَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ أَمْوَالَنَا قَدْ ضَاعَتْ وَإِنَّ اللَّهَ قَدْ أَعَزَّ الإِسْلاَمَ وَكَثُرَ نَاصِرُوهُ فَلَوْ أَقَمْنَا فِي أَمْوَالِنَا فَأَصْلَحْنَا مَا ضَاعَ مِنْهَا، فَأَنْزَلَ اللَّهُ عَلَى نَبِيِّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرُدُّ عَلَيْنَا مَا قُلْنَا: وَأَنْفِقُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَلا تُلْقُوا بِأَيْدِيكُمْ إِلَى التَّهْلُكَةِ (البقرة :١٩٥) فَكَانَتِ التَّهْلُكَةُ الإِقَامَةَ عَلَى الأَمْوَالِ وَإِصْلاَحِهَا وَتَرْكَنَا الْغَزْوَ فَمَا زَالَ أَبُو أَيُّوبَ شَاخِصًا فِي سَبِيلِ اللَّهِ حَتَّى دُفِنَ بِأَرْضِ الرُّومِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ. (1)

**ترجمه** دابو عمران اسلم تجيبي بيان دي فرمائي چې مونږ په روم ښار كي وو او روميانو يو لوې جماعت په مونږ باندې دحملې كولو دپاره راووتلو مسلمانان هم دهغوئ پشان بلكه دهغوئ نه په زيات تعداد كي ددوئ دمقابلې دپاره راووتل، عقبه بن عامر رضي الله عنه دمصر والي وو او فضاله بن عبيد رضي الله عنه دفوج سفه سالار وو يو مسلمان د روميانو په

[1] ـ سنن ابي داود/ الجهاد ٢٢ (٢٥١٢) (تحفة الأشراف : ٣٢٥٢)

صف حمله اوکړه او په دوئ کي ورننوتل خلقو چغي وهلي او دا اواز يي کولو سبحان الله دد خو پخپله هلاکت ته وروداننگل ددي خبري په اوريدو ابو ايوب انصاري رضي الله عنه اودريدو او وئيل يي اي خلقو تاسو په دي ايت کي دا تاويل کوئ، او دا ايت خو ستاسو انصارو باره کي نازل شوي دي، کله چې الله تعالي اسلام ته طاقت ورکړو او مددګاران يي زيات شول نو په مونږ کي بعضي کسانو درسول الله صلي الله عليه وسلم نه په پټه پخپل مينځ کي درازداري په حال کي اووئيل چې زمونږ مالونه برباد شول يعني فصلونه تباه شول، الله تعالي اسلام ته قوت او طاقت ورکړو او حمايتيان يي زيات شول نو اوس که مونږ خپل کاروبار او فصلونو ته توجه اوکړو نو چې کوم نقصان زمونږ شوي دي دهغي کمي به پوره شي چنانچې په مونږ کي چې چا دا خبره کړي وه دهغو په ترديد کي الله تعالي پخپل نبي دا ايت "وانفقوا في سبيل الله ولاتلقوا بايديكم الي التهلكة" يعني دالله تعالي په لار کي خرچ کوئ او خپل خانونه پخپلو لاسونو په هلاکت کي مه غورځوئ، نازل کړو، پس هلاکت دا وو چې دمالي حالت په درست کولو کي کوشش اوکړي شي او جهاد پريخودي شي همدا وجه ده چې ابو ايوب انصاري رضي الله عنه دالله په لار کي دجهاد کولو ديوي علامي او هدف حيثيت اختيار کړي وو تردي پوري چې دروم په زمکه کي دفن کړي شي.

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح غريب دي.

***************

٢٩٧٣_حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا هُشَيْمٌ، أَخْبَرَنَا مُغِيرَةُ، عَنْ مُجَاهِدٍ، قَالَ: قَالَ كَعْبُ بْنُ عُجْرَةَ: "وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَفِيَّ أُنْزِلَتْ هَذِهِ الآيَةَ وَإِيَّايَ عَنَى بِهَا فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَرِيضًا أَوْ بِهِ أَذًى مِنْ رَأْسِهِ فَفِدْيَةٌ مِنْ صِيَامٍ أَوْ صَدَقَةٍ أَوْ نُسُكٍ (البقرة: ١٩٦). قَالَ: كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْحُدَيْبِيَةِ وَنَحْنُ مُحْرِمُونَ، وَقَدْ حَصَرَنَا الْمُشْرِكُونَ وَكَانَتْ لِي وَفْرَةٌ فَجَعَلَتِ الْهَوَامُّ تَسَاقَطُ عَلَى وَجْهِي، فَمَرَّ بِي النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: كَأَنَّ هَوَامَّ رَأْسِكَ تُؤْذِيكَ، قَالَ: قُلْتُ: نَعَمْ. قَالَ: فَاحْلِقْ، وَنَزَلَتْ هَذِهِ الآيَةُ". قَالَ مُجَاهِدٌ: الصِّيَامُ ثَلاَثَةُ أَيَّامٍ، وَالطَّعَامُ لِسِتَّةِ مَسَاكِينَ، وَالنُّسُكُ شَاةٌ فَصَاعِدًا".[1]

**ترجمه** دمجاهد بيان دي کعب بن عجره رضي الله عنه فرمائيلي دي زما دي په هغه ذات قسم وي دچا په لاس کي چې زما روح دي دا ايت "فمن كان منكم مريضا" الخ، زما په باره کي نازل شوي دي مونږ په حديبيه مقام کي موجود وو او احرامونه مو تړلي وو او مشرکانو

[1] ـ انظر حديث رقم ٩٦٣ (تحفة الأشراف، ١١١١٢، و١١١١٦)

مونږ حصار کړي وو زما ويخته د اوګو دسرونو سره برابر وو او د سر سپږي به مي په مخ راپريوتلي چې دي دوران کي زمونږ په خوا کي دنبي کريم صلي الله عليه وسلم تيريدل اوشول مونږ ته چې يي اوکتل نو ويي فرمائيل داسي ښکاري چې ستاسو دسرونو سپږي تاسو ته تکليف رسوي ما اووئيل هو همداسي ده رسول الله اوفرمائيل سرونه اوخروئ او بيا مذکوره ايت نازل شو. مجاهد وائي روژي دري ورخي دي. او خوراك ورکول شپږو مسکينانو ته دي او قرباني کم از کم ديوګډ يا چيلئ ده او ددينه زيات هم درست دي

**دابومحمد کعب بن عجره رضي الله عنه حالات**

نوم کعب کنيه ابو محمد په يوه غزوه کې يي لاس کټ شوی وو او دسر ويخته يي ګنړ وو (طبقات ابن سعد).

دهجرت نه پس مسلمان شوی وو او دمسلمانيدو نه پس يي په تمامو غزواتو کې شرکت کړی دی په غزوه حديبيه کې هم درسول الله صلي الله عليه وسلم سره موجود وو دويختو دګنړوالي په وجه يي په سر کې دومره ډيري سپږي شوي وي چې په مخ به يي راروانې وي نو رسول الله ورته دويختو کټ کولو مشوره ورکړه نو بيا يي ددينه پس کټ کړل دده په سيرت کې دحق حمايت او حب رسول سر پهرست دي دکعب رضي الله عنه په اخلاقو کې دا دوه څيزونه ډير روښانه دي چې يو خل درسول الله صلي الله عليه وسلم په خدمت کې حاضر شو چې درسول الله رنګ دلوږي په وجه تغير شوی وو نو دی فورا پوهه شو او ديهودي اوښ يي اوبه کولو ده به اوښ ته يوه بوکه اوبه په يوه کجوره اچولي کله چې يو څو کجوري ورسره جمع شوي نو هغه يي درسول الله صلي الله عليه وسلم په خدمت کې حاضري کړي (الاصابه)

دهجرت په ۵۱کال کې کله چې دده عمر ۷۵کلونه وو په مدينه کې وفات شو او دروايتونو تعداد يي ۴۷دی

*****************

حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، عَنْ أَبِي بِشْرٍ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِنَحْوِ ذَلِكَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([1])

**ترجمه** ابن ابي ليلي دکعب بن عجره رضي الله عنه په واسطه دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه ددي هم معني روايت نقل کړي دي.

---

[1] ــ انظر حديث رقم ۹۵۳

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي

****************

حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، عَنْ أَشْعَثَ بْنِ سَوَّارٍ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَعْقِلٍ، عَنْ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِنَحْوِ ذَلِكَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رَوَاهُ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ الأَصْبِهَانِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَعْقِلٍ نَحْوَ هَذَا أَيْضًا. ([1])

**ترجمه** كعب بن عجره رضي الله عنه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه د سابقه روايت هم معني حديث نقل كړي دي

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي او همدا رنګې داحديث عبدالر حمن بن اصبهاني دعبدالله بن معقل په سند ددي هم معني نقل كړي دي.

****************

٢٩٧٤ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ، قَالَ: " أَتَى عَلَيَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنَا أُوقِدُ تَحْتَ قِدْرٍ وَالْقَمْلُ يَتَنَاثَرُ عَلَى جَبْهَتِي، أَوْ قَالَ: حَاجِبَيَّ، فَقَالَ: أَتُؤْذِيكَ هَوَامُّ رَأْسِكَ، قَالَ: قُلْتُ: نَعَمْ، قَالَ: فَاحْلِقْ رَأْسَكَ وَانْسُكْ نَسِيكَةً، أَوْ صُمْ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ، أَوْ أَطْعِمْ سِتَّةَ مَسَاكِينَ، قَالَ أَيُّوبُ: لَا أَدْرِي بِأَيَّتِهِنَّ بَدَأَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([2])

**ترجمه** . دكعب بن عجره رضي الله عنه بيان دي فرمائي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم زما خواته تشريف راوړو او دغه وخت كي ما ديو ديګ لاندي اور بلولو او سپږي زما په تندي يا په وروزو راخوريدلي رسول الله اوفرمائيل ايا ستا دسر سپږي تاته تكليف نه رسوي ما اووئيل ولي نه رسول الله اوفرمائيل سر اوخره وه او په بدله كي قرباني اوكړه، او يادري روژي اونيسه، او يا شپږو مسكينانو ته خوراك وركړه، ايوب راوي وائي ماته ياد نه دي چې زما استاذ په دي څيزونو كي كوم يو څيز مخكي ذكركړي وو

امام ترمذي وايي. داحديث حسن صحيح دي.

****************

[1] ـ انظر حديث رقم ٩٥٣

[2] ـ انظر حديث رقم ٩٥٣

٢٩٧٥_حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، عَنْ بُكَيْرِ بْنِ عَطَاءٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ يَعْمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " الْحَجُّ عَرَفَاتٌ الْحَجُّ عَرَفَاتٌ الْحَجُّ عَرَفَاتٌ، أَيَّامُ مِنًى ثَلَاثٌ، فَمَنْ تَعَجَّلَ فِي يَوْمَيْنِ فَلَا إِثْمَ عَلَيْهِ وَمَنْ تَأَخَّرَ فَلَا إِثْمَ عَلَيْهِ (البقرة: ٢٠٣)، وَمَنْ أَدْرَكَ عَرَفَةَ قَبْلَ أَنْ يَطْلُعَ الْفَجْرُ فَقَدْ أَدْرَكَ الْحَجَّ ". قَالَ ابْنُ أَبِي عُمَرَ، قَالَ سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ: وَهَذَا أَجْوَدُ حَدِيثٍ رَوَاهُ ٦٣) الثَّوْرِيُّ، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَرَوَاهُ شُعْبَةُ، عَنْ بُكَيْرِ بْنِ عَطَاءٍ، وَلَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ بُكَيْرِ بْنِ عَطَاءٍ. ([1])

**ترجمه** دعبدالرحمن بن يعمر رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي حج په عرفات كي حاضري كول دي، حج په عرفات كي حاضري كول دي، حج په عرفات كي حاضري كول دي، او په منى كي دقيام ورخي دري دي مګر څوك چې جلتي اوكړي او په دوه ورځو كي واپس شي نو څه ګناه نشته او څوك چې دري ورخي پوره كړي په هغه باندي هم ګناه نشته او څوك چې دسبا كيدو نه مخكي عرفي ته ورسيږي هغه خپل حج پوره كړو

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي، ابن ابي عمر وائي دسفيان بن عيينه قول دي چې دا دثوري په احاديثو كي دټولو نه عمده حديث دي چې كوم يي نقل كړي دي دا حديث شعبي دبكير بن عطاء نه نقل كړي دي او دا حديث مونږ صرف دبكير بن عطاء په سند پيژنو

***************

٢٩٧٦_حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " أَبْغَضُ الرِّجَالِ إِلَى اللَّهِ الْأَلَدُّ الْخَصِمُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. ([2])

**ترجمه** دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دالله تعالي په نزد دټولو نه زيات قابل دنفرت هغه كس دي څوك چې دنورو نه زيات جګړه مار وي

امام ترمذي وايي: داحديث حسن دي.

[1] ـ انظر حديث رقم ٨٩٢

[2] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /المظالم ١٥ (٢٤٥٧)، وتفسير سورة البقرة ٣٧ (٤٥٢٣)، والأحكام ٣٤ (٧١٨٨)، صحيح مسلم/العلم ٢ (٢٦٦٨)، سنن النسائي/القضاة ٣٤ (٥٤٢٥) (تحفة الأشراف: ١٦٢٤٨)، و مسند احمد (٦/٥٥، ٦٣، ٢٠٥).

*****************

٢٩٧٧_حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، حَدَّثَنِي سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: كَانَتِ الْيَهُودُ إِذَا حَاضَتِ امْرَأَةٌ مِنْهُمْ لَمْ يُؤَاكِلُوهَا وَلَمْ يُشَارِبُوهَا وَلَمْ يُجَامِعُوهَا فِي الْبُيُوتِ. " فَسُئِلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ذَلِكَ، فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى وَيَسْأَلُونَكَ عَنِ الْمَحِيضِ قُلْ هُوَ أَذًى (البقرة: ٢٢٢) فَأَمَرَهُمْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُؤَاكِلُوهُنَّ وَيُشَارِبُوهُنَّ، وَأَنْ يَكُونُوا مَعَهُنَّ فِي الْبُيُوتِ، وَأَنْ يَفْعَلُوا كُلَّ شَيْءٍ مَا خَلَا النِّكَاحَ، فَقَالَتِ الْيَهُودُ: مَا يُرِيدُ أَنْ يَدَعَ شَيْئًا مِنْ أَمْرِنَا إِلَّا خَالَفَنَا فِيهِ. قَالَ: فَجَاءَ عَبَّادُ بْنُ بِشْرٍ، وَأُسَيْدُ بْنُ حُضَيْرٍ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرَاهُ بِذَلِكَ وَقَالَا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَفَلَا نَنْكِحُهُنَّ فِي الْمَحِيضِ، فَتَمَعَّرَ وَجْهُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى ظَنَنَّا أَنَّهُ قَدْ غَضِبَ عَلَيْهِمَا، فَقَامَا فَاسْتَقْبَلَتْهُمَا هَدِيَّةٌ مِنْ لَبَنٍ، فَأَرْسَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي آثَارِهِمَا فَسَقَاهُمَا فَعَلِمْنَا أَنَّهُ لَمْ يَغْضَبْ عَلَيْهِمَا ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.

حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الْأَعْلَى، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، عَنْ حَمَّادِ بْنِ سَلَمَةَ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ أَنَسٍ، نَحْوَهُ بِمَعْنَاهُ. [1]

**ترجمه** : دانس رضي الله عنه بيان دي فرمائي چې كله به په يهوديانو كي كومه ښځه حائضه شوه نو هغوئ به دخان سره خوراك ته نه پريخودله او نه به يې څښاك ته دخان سره پريخودله او نه به يې په كور كي دخان سره اوسيدو ته پريخودله كله چې دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه دي باره كي تپوس اوكړي شو نو په دي موقعه الله تعالي دا ايت كريمه " وَيَسْأَلُونَكَ عَنِ الْمَحِيضِ قُلْ هُوَ أَذًى " نازل كړو بيا رسول الله صلي الله عليه وسلم دوئ ته حكم اوكړو چې دوئ به دخان سره خوراك او څښاك ته پريږدئ او په كورونو كي به يې اوسيدو ته پريږدئ او دمجامعت نه علاوه هر څه كولي شئ يهوديانو اوونيل دا كس داسي دي چې زمونږ هيڅ يو كار دمخالفت كولو نه بغير نه پريږدي، عباد بن بشر او اسيد بن حضير رضي الله عنهما نبي كريم صلي الله عليه وسلم ته راغلل او ديهوديانو دا خبره يې بيان كړه او عرض يې اوكړو اي

[1] _ صحيح مسلم/الحيض ٣ (٣٠٢) . سنن ابي داود/ الطهارة ١٠٣ (٢٥٨) . والنكاح ٤٧ (٢١٦٥) . سنن النسائي/الطهارة ١٨١ (٢٨٩) . والحيض ٨ (٣٦٩) . سنن ابن ماجه/الطهارة ١٢٥ (٦٤٤) (تحفة الأشراف : ٣٠٨) و مسند احمد (٣/٢٤٦) . وسنن الدارمي/الطهارة ١٠٦ (١٠٩٣)

دالله رسوله ايا مونږ په حالت دحيض كي مجامعت اونكړو؟ ددي خبري په اوريدو سره درسول الله دمخ رنګ بدل شو تردي پوري چي مونږ پوهه شو چي رسول الله ددوئ دواړو نه سخت خفه شو او ددوئ نه پاڅيدو (خپل كور ته لاړو) ددوئ دوتلو سره سم رسول الله ته شوده په هديه كي راوليږلي شول نو رسول الله په دوئ پسي څوك اوليږل او هغوئ راغلل رسول الله په دوئ دواړو شوده اوڅكل دكوم په وجه چي هغوئ ته دا معلومه شوه چي رسول الله صلي الله عليه وسلم ددوئ نه خفه نه دي.

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي.

دانس رضي الله عنه نه په مذكوره سند هم دماقبل هم معني روايت مروي دي

******************

٢٩٧٨_حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ ابْنِ الْمُنْكَدِرِ، سَمِعَ جَابِرًا، يَقُولُ: "كَانَتِ الْيَهُودُ، تَقُولُ: مَنْ أَتَى امْرَأَتَهُ فِي قُبُلِهَا مِنْ دُبُرِهَا كَانَ الْوَلَدُ أَحْوَلَ، فَنَزَلَتْ نِسَاؤُكُمْ حَرْثٌ لَكُمْ فَأْتُوا حَرْثَكُمْ أَنَّى شِئْتُمْ (البقرة: ٢٢٣)". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** دابن المنكدر بيان دي دجابر رضي الله عنه نه مي اوريدلي دي فرمائيل يي يهوديانو به وئيل چاچي راتلل وكړل خپلي ښځي ته په مخامخ طرف شرمګاه كي د شا دطرفه نو بچي به يي كوږستركي پيدا كيږي، نو دي وخت كي دا ايت كريمه .نِسَاؤُكُمْ حَرْثٌ لَكُمْ فَأْتُوا حَرْثَكُمْ أَنَّى شِئْتُمْ (البقرة: ٢٢٣)، نازل شو.

امام ترمذي وايي: دا حديث حسن صحيح دی.

******************

٢٩٧٩_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ ابْنِ خُثَيْمٍ، عَنِ ابْنِ سَابِطٍ، عَنْ حَفْصَةَ بِنْتِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فِي قَوْلِهِ: " نِسَاؤُكُمْ حَرْثٌ لَكُمْ فَأْتُوا حَرْثَكُمْ أَنَّى شِئْتُمْ (البقرة : ٢٢٣)يَعْنِي صِمَامًا وَاحِدًا ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَابْنُ خُثَيْمٍ هُوَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُثْمَانَ بْنِ خُثَيْمٍ، وَابْنُ سَابِطٍ هُوَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَابِطٍ الْجُمَحِيُّ الْمَكِّيُّ، وَحَفْصَةُ هِيَ بِنْتُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ

[1] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /تفسير البقرة ٣٩ (٤٥٢٨). صحيح مسلم/النكاح ١٩ (١٤٣٥). سنن ابی داود/ النكاح ٤٦ (٢١٦٣). سنن ابن ماجه/النكاح ٢٩ (١٩٢٥) (تحفة الأشراف : ٣٠٢٢). وسنن الدارمی/الطهارة ١١٣ (١١٤٣). والنكاح (٢٢٦٠

الضِّيقِ، وَيُرْوَى "فِي سِمَامٍ وَاحِدٍ".([1])

**ترجمه** دام المؤمنين ام سلمه رضي الله عنها نه مروي دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم دا ايت كريمه " نِسَاؤُكُمْ حَرْثٌ لَكُمْ فَأْتُوا حَرْثَكُمْ أَنَّى شِئْتُمْ " په تفسير كي اوفرمانيل ددينه مراد په يوه لاره كي دخول كول دي ، او د ابن خثيم نوم عبد الله بن عثمان بن خثيم دى. اود ابن سائط نوم عبد الرحمن بن عبد الله بن سائط دى، چي دمكي اوسيدونكي دي. اود حفصه نه مراد حفصه بنت عبد الرحمن بن ابي بكر ده. اوفي صمام واحد الفاظ هم مروي دي
امام ترمذي وايي. داحديث حسن دي

***************

٢٩٨٠ـحَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الأَشْعَرِيُّ، عَنْ جَعْفَرِ بْنِ أَبِي الْمُغِيرَةِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: جَاءَ عُمَرُ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، هَلَكْتُ، قَالَ: "وَمَا أَهْلَكَكَ؟" قَالَ: حَوَّلْتُ رَحْلِي اللَّيْلَةَ. قَالَ: فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيْهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَيْئًا. قَالَ: فَأَنْزَلَ اللَّهُ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَذِهِ الآيَةَ: نِسَاؤُكُمْ حَرْثٌ لَكُمْ فَأْتُوا حَرْثَكُمْ أَنَّى شِئْتُمْ (البقرة :٢٢٣)أَقْبِلْ وَأَدْبِرْ وَاتَّقِ الدُّبُرَ وَالْحَيْضَةَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. وَيَعْقُوبُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الأَشْعَرِيُّ هُوَ يَعْقُوبُ الْقُمِّيُّ. ([2])

**ترجمه** . دا بن عباس رضي الله عنهما بيان دي چي عمر فاروق د نبي كريم صلي الله عليه وسلم خدمت كي حاضر شو او عرض يي وكړو اي د الله رسوله هلاك شوم. رسول الله ورته اوفرمانيل څه شي هلاك كړي؟ هغه وونيل د شپي مي سورلۍ بدله كړه ريعني د ښځي سره مي د مخامخ طرف په ځاي په شا طرف كي جماع وكړله، دا بن عباس رضي الله عنهما بيان دي چي ددي خبري په اوريدو رسول الله هيڅ جواب ورنكړو، تردي چي په دي باره كي دا ايت كريمه " : نِسَاؤُكُمْ حَرْثٌ لَكُمْ فَأْتُوا حَرْثَكُمْ أَنَّى شِئْتُمْ (البقرة :٢٢٣)" زنانه ستاسو پټي د كروندى دي ستاسو د پاره نو راځئ خپل پټي ته څنګه چي ستاسو خوخه وي، نازل شو.
امام ترمذي وايي دا حديث حسن غريب دى

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ١٨٢٥٢)

[2] ـ تفرد به المؤلف (أخرجه النسائي في الكبرى) (تحفة الأشراف : ٥٤٦٩) ، وانظر مسند احمد (١/٢٩٧)

**تشريح** نِسَاؤُكُمْ حَرْثٌ لَكُمْ. جابر رضي الله عنه فرمائيلي دي يهوديانو به ونيل چې ښځې سره د شا د طرف نه (په فرج کي) راشي نو بچى كوږ سترګى پيدا كيږي نو دا ايت نازل شو (صحيح بخاري صحيح مسلم)
انصار به خپلو ښځو ته د شا د طرف نه راتلل او يهودو به وئيل چې چا ښځى ته د شا د طرف نه راتلل اوكړل نو بچى به كوږ سترګى وي نو دا ايت نازل شو (رواه احمد و روي الترمذي في ابواب التفسير وسنده صحيح)
فَأْتُوا حَرْثَكُمْ أَنَّى شِئْتُمْ. حرث د كروندى ځاى چې په هغى كي فصل كيږي نو د زنانه د بچي د پيدا كيدلو ځاى چې د هغى فرج دى. نو په دى كي د جماع كولو د ځاى تعين اوشو او آنى د كَيفَ په معنى سره دى څنګه مو چې خوښه وى
د جماع اداب څه خو په دى ايت كي او وړاندى ايت كي ذكر شول
نور اداب د جماع دا دي
(۱) چې كله جماع اراده اوكړي. نو دا دعا به وائي. بِسْمِ اللهِ. اَللّٰهُمَّ جَنِّبْنَا الشَّيْطٰنَ وَجَنِّبِ الشَّيْطٰنَ مَارَزَقْتَنَا.
په نوم د الله تعالى. اى الله مونږ د شيطان نه محفوظ اوساتى او كوم اولاد چې ته مونږ له راكوى هغه هم د شيطان نه بچ اوساتى.
رسول الله صلى الله عليه سلم فرمائيلى دي. كه چرى تاسو كي يو تن خپلى بي بي ته راغى او دا دعايې اولوستله او الله تعالى د دوي دپاره بچى ليكلى وي. نو شيطان هيچرى دى بچى ته نقصان نه شي رسولى.
(۲) كه په دوباره جماع كول غواړى. نو اودس دى اوكړى.
رسول الله صلى عليه وسلم فرمائيلى دي كله چې تاسو كي يو تن جماع اوكړى او بيا دوباره جماع كول غواړى نو د دى دواړو په مينځ كي دى اودس اوكړى (صحيح مسلم)
(۳) عزل دى نه كوي. الله تعالى چې تقدير كي كوم بچى مقرر كړى دى هغه به پيدا كيږي. زمونږ په حصه كي څه وينځى راغلى. (نو چې مونږ به (د هغوي سره) كوروالى كوو. نو مونږ به مني د فرج نه بهر تويوله نو مونږ د رسول الله صلى الله عليه السلام نه تپوس اوكړو نو هغوي اوفرمائيل. آيا تاسو دا كار كوى (درى خله يې اوفرمائيل بيا يې اوفرمائيل) هر هغه نفس چې پيدا كيدونكى دى د قيامته پورى نو هغه به خامخا پيدا كيږي (متفق عليه كتاب النكاح).
(۴) كه چرى وينځه چاته په لاس راشي. نو تر هغى پورى به ورسره جماع نه كوي. تر څو چې د هغى حيض نه وي راغلى چې حيض يې راشي او بيا پاكه شي. نو كوروالى ورسره جائز دى. (ترمذى كتاب النكاح وسنده صحيح)

، ۵، چې کومه وینځه حامله وي او په لاس راشي نو څو پورې چې بچی نه وي پیدا شوی یا حمل نه وي غورځیدلی نو جماع کول ورسره منع دي ، صحیح مسلم کتاب النکاح ،

،۲، رسول الله ﷺ فرمائیلی دی، یقیناً په خلقو کې ډیر ناکاره خلق د قیامت په ورځ د الله تعالی په نیز هغه دي چې د خپلی ښځی نه حاجت پوره کړي او هغه بیا د ښځی پټی خبری خلقو ته ښکاره کوي ، یعنی د ښځی پټی خبری ښکاره کول نه دي پکار ، صحیح مسلم کتاب النکاح ،

*****************

٢٩٨١_حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، حَدَّثَنَا الْهَاشِمُ بْنُ الْقَاسِمِ، عَنِ الْمُبَارَكِ بْنِ فَضَالَةَ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ مَعْقِلِ بْنِ يَسَارٍ، "أَنَّهُ زَوَّجَ أُخْتَهُ رَجُلًا مِنَ الْمُسْلِمِينَ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَكَانَتْ عِنْدَهُ مَا كَانَتْ ثُمَّ طَلَّقَهَا تَطْلِيقَةً لَمْ يُرَاجِعْهَا حَتَّى انْقَضَتِ الْعِدَّةُ، فَهَوِيَهَا وَهَوِيَتْهُ ثُمَّ خَطَبَهَا مَعَ الْخُطَّابِ، فَقَالَ لَهُ: يَا لُكَعُ أَكْرَمْتُكَ بِهَا وَزَوَّجْتُكَهَا فَطَلَّقْتَهَا وَاللَّهِ لَا تَرْجِعُ إِلَيْكَ أَبَدًا آخِرُ مَا عَلَيْكَ، قَالَ: فَعَلِمَ اللَّهُ حَاجَتَهُ إِلَيْهَا وَحَاجَتَهَا إِلَى بَعْلِهَا، فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَبَارَكَ وَتَعَالَى: وَإِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَاءَ فَبَلَغْنَ أَجَلَهُنَّ إِلَى قَوْلِهِ: وَأَنْتُمْ لَا تَعْلَمُونَ (البقرة :٢٣٢)، فَلَمَّا سَمِعَهَا مَعْقِلٌ قَالَ: سَمْعًا لِرَبِّي وَطَاعَةً، ثُمَّ دَعَاهُ، فَقَالَ: أُزَوِّجُكَ وَأُكْرِمُكَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ عَنِ الْحَسَنِ وَهُوَ عَنِ الْحَسَنِ غَرِيبٌ، وَفِي هَذَا الْحَدِيثِ دَلَالَةٌ عَلَى أَنَّهُ لَا يَجُوزُ النِّكَاحُ بِغَيْرِ وَلِيٍّ لِأَنَّ أُخْتَ مَعْقِلِ بْنِ يَسَارٍ كَانَتْ ثَيِّبًا فَلَوْ كَانَ الْأَمْرُ إِلَيْهَا دُونَ وَلِيِّهَا لَزَوَّجَتْ نَفْسَهَا وَلَمْ تَحْتَجْ إِلَى وَلِيِّهَا مَعْقِلِ بْنِ يَسَارٍ، وَإِنَّمَا خَاطَبَ اللَّهُ فِي هَذِهِ الْآيَةِ الْأَوْلِيَاءَ، فَقَالَ: فَلَا تَعْضُلُوهُنَّ أَنْ يَنْكِحْنَ أَزْوَاجَهُنَّ (البقرة :٢٣٢) فَفِي هَذِهِ الْآيَةِ دَلَالَةٌ عَلَى أَنَّ الْأَمْرَ إِلَى الْأَوْلِيَاءِ فِي التَّزْوِيجِ مَعَ رِضَاهُنَّ. [1]

**ترجمه** دمعقل بن یسار رضي الله عنه باره کي مروي دي چې هغه دنبي کریم صلي الله علیه وسلم په زمانه کي دیو مسلمان سره دخپلي خور نکاح اوکړه او هغي ورسره څه زمانه تیره کړه او بیا ورته خاوند طلاق ورکړو چې رجوع یي ورته اونکړه تردي پوري چې دعدت موده یي ختمه شوه، بیا د دواړو په زړونو کي یو بل ته خواهش پیدا شو او دنکاح دپاره دنورو پیغام ورکونکو سره هغه هم دنکاح پیغام ورکړو معقل رضي الله عنه ورته اووئیل اي بي وقوفه ما

---

[1] _ اورده البخاري في الجامع الصحيح /تفسير سورة البقرة ٤٠ (٤٥٢٩)، والنكاح ٦٠ (٥١٥٩)، والطلاق ٤٣ (٥٣٣١)، سنن ابى داود/ النكاح ٢١ (٢٠٨٧) (تحفة الأشراف : ١١٤٦٥)

تاته په دي باندي عزت درکړي وو او تا بيا هم، ديته طلاق ورکړل زما دي په الله قسم وي دا اوس په تول ژوند کي هم تاته نشي واپس کيدي او الله تعالي ته معلومه وه چې ددي کس دي ښځي ته حاجت او خواهش وو او ددي ښځي دي کس ته حاجت او خواهش وو نو دي وخت کي الله تعالي دا ايت کريمه " وَإِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَاءَ فَبَلَغْنَ أَجَلَهُنَّ إِلَى قَوْلِهِ: وَأَنْتُمْ لا تَعْلَمُونَ " نازل کړو کله چې معقل بن يسار رضي الله عنه دا ايت واوريدو نو ويې ونيل اوس به زه دخپل رب خبره اوزم او اطاعت به يې کوم او دي وينا کولو سره يې هغه کس راوغوښتلو او ورته يې اوونيل زه دوباره ستاسو نکاح نافذ کيدل غوارم او تاسو ته عزت درکول غوارم

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي، دا حديث په يو څو سندونو دحسن بصري نه مروي دي او دحسن بصري په واسطه دا روايت غريب دي، په دي حديث کي په دي خبره دلالت کوي چې نکاح بغير دولي نه جائز نه ده ځکه چې دمعقل بن يسار خور ثيبه وه. که دولي په خاي دهغي معامله پخپل لاس کي وي نو بيا خو هغي خپله نکاح پخپله کولي شوه او خپل ولي يعني معقل بن يسار ته به محتاجه نه وه، په دي ايت کي الله تعالي اولياؤ ته خطاب کړي دي او ورته يې فرمائيلي دي چې دوئ لره دخپلو سابقه خاوندانو سره دنکاح کولو نه مه منع کوئ. په دي کي ددي خبري ثبوت دي چې دنکاح معامله د ښځو درضامندئ سره داولياؤ په لاس کي ده.

*****************

٢٩٨٢ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، عَنْ مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، قَالَ: ح وَحَدَّثَنَا الأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا مَعْنٌ، حَدَّثَنَا مَالِكٌ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنِ الْقَعْقَاعِ بْنِ حَكِيمٍ، عَنْ أَبِي يُونُسَ مَوْلَى عَائِشَةَ، قَالَ: أَمَرَتْنِي عَائِشَةُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، أَنْ أَكْتُبَ لَهَا مُصْحَفًا، فَقَالَتْ: " إِذَا بَلَغْتَ هَذِهِ الآيَةَ فَآذِنِّي حَافِظُوا عَلَى الصَّلَوَاتِ وَالصَّلَاةِ الْوُسْطَى (البقرة :٢٣٨) فَلَمَّا بَلَغْتُهَا آذَنْتُهَا، فَأَمْلَتْ عَلَيَّ: حَافِظُوا عَلَى الصَّلَوَاتِ وَالصَّلَاةِ الْوُسْطَى وَصَلَاةِ الْعَصْرِ وَقُومُوا لِلَّهِ قَانِتِينَ، وَقَالَتْ: سَمِعْتُهَا مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ". وَفِي الْبَابِ، عَنْ حَفْصَةَ، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** د ابويونس (دعَائِشَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ازاد کړي غلام) نه روايت دي فرماني چې ام المومنين راته حکم وکړوچې زه ددي دپاره قران پاك اوليکم اوراته ئې وونيل کله چې دي(مذکوره) ايت ته ورسيږي نوماخبرکړه نوهرکله چې ورته ورسيدم نوماخبرکړه نوهغي راته

[1] ـ صحيح مسلم/المساجد ٣٦ (٦٢٩) . سنن ابي داود/ الصلاة ٥ (٤١٠) . سنن النسائي/الصلاة ١٣ (٤٧٣) (تحفة الأشراف: ١٧٨٠٩) . و مسند احمد (٦/٧٣)

داسي املاء شروع كړه ﴿ حَافِظُوا عَلَى الصَّلَوَاتِ وَالصَّلَاةِ الْوُسْطَى وَصَلَاةِ الْعَصْرِ وَقُومُوا لِلَّهِ قَانِتِينَ﴾ دمونځونوپابندي کوئ د درمیانه مونځ ، دمازیگرمونځ. اوالله تعالي ته په ادب سره ودرېږئ.
بیا عائشې ووئیل درسول الله ﷺ نه مي اوریدلي دي
امام ترمذي وايي په دي باب کي : حفصه رضي الله عنها نه هم حديث وارد دی. او دا حديث حسن صحيح دی

**تشريح** حَافِظُوا عَلَى الصَّلَوٰتِ. د بنده د جانب نه د مونځ حفاظت دا دی چې مونځ همیشه کوي په مستحب وختونو کي یې کوي په اطمینان سره یې کوي ارکان د مونځ په خپل خپل ځای ادا کوي خشوع او خضوع په کي وي انسان الله ته رجوع کوونکی وي والصَّلٰوة الوُسْطٰی د دی نه د مازیگر مونځ مراد دی علي رضي الله عنه فرمانیلی دي

**ترجمه** چې کله جنگ احزاب وو نو رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چې الله تعالی دی د دوي کورونه او قبرونه د اور نه ډك کړي خمونږ نه یې مینځنی مونځ قضا کړو تردی چې نمر ډوب شو ، متفق علیه ، او د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه صحيح مسلم کي هم داسی روایت دی

نو د دی احادیثو نه معلومه شوه چې د صَلٰوةُ الْوُسْطٰی نه مراد د مازیگر مونځ. او په حافظوا عَلَى الصَّلٰوتِ کي د مازیگر مونځ هم شامل دی نو دیته تخصیص بعد التعمیم وائي. یعني د عام د ذکر نه پس د خاص ذکر او د مازیگر د مونځ فضیلت په احادیثو کي راغلی دی رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائي

**ترجمه** چې څوك د مازیگر مونځ قضا کړي نو گویا چې د دهٔ اهل او مال او لوټلی شو ، متفق علیه ،
په بل حدیث کي دي. چا چې د مازیگر مونځ پریخودلو نو د ده عمل برباد شو

***************

٢٩٨٣_حَدَّثَنَا حُمَيْدُ بْنُ مَسْعَدَةَ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، عَنْ سَعِيدٍ، عَنْ قَتَادَةَ، حَدَّثَنَا الْحَسَنُ، عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدَبٍ، أَنَّ نَبِيَّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " صَلَاةُ الْوُسْطَى صَلَاةُ الْعَصْرِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** د سمره بن جندب رضي الله عنهما بیان دی چې رسول الله صلي الله علیه وسلم فرمائیلي دي د صلاة الوسطي نه مراد د مازیگر مونځ دی

[1] ـ انظر حديث رقم ١٨٢

امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح دى

* * * * * * * * * * * * * * * *

٢٩٨٤_حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا عَبْدَةُ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي عَرُوبَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَبِي حَسَّانَ الْأَعْرَجِ، عَنْ عَبِيدَةَ السَّلْمَانِيِّ، أَنَّ عَلِيًّا حَدَّثَهُ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ يَوْمَ الْأَحْزَابِ: "اللَّهُمَّ امْلَأْ قُبُورَهُمْ وَبُيُوتَهُمْ نَارًا كَمَا شَغَلُونَا عَنْ صَلَاةِ الْوُسْطَى حَتَّى غَابَتِ الشَّمْسُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، قَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ عَنْ عَلِيٍّ، وَأَبُو حَسَّانَ الْأَعْرَجُ اسْمُهُ مُسْلِمٌ. [1]

**ترجمه** د علي رضى الله عنه روايت دي چې رسول الله ﷺ دغزوه احزاب په ورځ اوفرمانيل دي ظالمانومونږ درميانه مونځ دمازيګردمونځ نه منع کړوالله تعالي دي ددوي کورونه اوقبرونه داورنه ډک کړي. تردي پوري چي نمر غائب شو.

امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح دى.اود علي رضي الله عنه نه ددي سند نه علاوه په په نورو سندونو هم مروي دي، اود ابو الحسان الاعرج نوم مسلم دي

* * * * * * * * * * * * * * * *

٢٩٨٥_حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو النَّضْرِ، وَأَبُو دَاوُدَ الطَّيَالِسِيُّ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ طَلْحَةَ بْنِ مُصَرِّفٍ، عَنْ زُبَيْدٍ، عَنْ مُرَّةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "صَلَاةُ الْوُسْطَى صَلَاةُ الْعَصْرِ". وَفِي الْبَابِ، عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، وَأَبِي هَاشِمِ بْنِ عُتْبَةَ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [2]

**ترجمه** د ابن مسعود رضي الله عنهما بيان دى چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي د صلاة الوسطي نه مراد د مازيګر مونځ دى.

امام ترمذي وايي په دي باب کي د زيد بن ثابت . ابو هاشم عتبه او ابو هريره رضي الله عنهم

---

[1] _ اورده البخاري في الجامع الصحيح /الجهاد ٩٨ (٢٩٣١) . والمغازي ٢٩ (٤١١١) . وتفسير البقرة (٤٥٣٣) والدعوات ٥٨ (٦٣٩٦) . صحيح مسلم/المساجد ٣٥ (٦٢٦) . سنن ابي داود/ الصلاة ٥ (٤٠٩) سنن النسائي/الصلاة ١٤ (٤٧٣) . سنن ابن ماجه/الصلاة ٦ (٦٨٤) (تحفة الأشراف : ١٠٢٣٢) . ومسند احمد (١/٨١، ٨٢، ١١٣، ١٢٢، ١٢٦، ١٣٥، ١٣٧، ١٤٤، ١٤٦، ١٥٠، ١٥٢، ١٥٣، ١٥٤) وسنن الدارمي/الصلاة ٢٨ (١٢٨٦)

[2] _ انظر حديث رقم ١٨١

نه هم احاديث وارد دي، او دا حديث حسن صحيح دی

****************

٢٩٨٦ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا مَرْوَانُ بْنُ مُعَاوِيَةَ، وَيَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، وَمُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ، عَنْ إِسْمَاعِيل بْنِ أَبِي خَالِدٍ، عَنِ الحَارِثِ بْنِ شُبَيْلٍ، عَنْ أَبِي عَمْرٍو الشَّيْبَانِيِّ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ، قَالَ: "كُنَّا نَتَكَلَّمُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الصَّلَاةِ، فَنَزَلَتْ: وَقُومُوا لِلَّهِ قَانِتِينَ (البقرة: ٢٣٨) فَأُمِرْنَا بِالسُّكُوتِ".[1]

**ترجمه** د زيد بن ارقم رضي الله عنه بيان دي چې مونږ به د رسول الله صلي الله عليه وسلم په زمانه کي په مونځ کي خبري اتري کولي تردي پوري چې ايت کريمه "وقوموا لله قانتين" نازل شو نو مونږ ته دخاموش اودريدو حکم اوشو او دخبرو کولو نه مونږ منع کړي شو نو مونځ کي په خاموش ودريدو حکم وشو

**تشريح** : په خبروکولوسره دمونځ فاسديدو متعلق دوه مذاهب دي:

(۱) مسئله :که يو کس په خپل مونځ کښ په قصد يا په سهوه کلام اوکړو.نو دده مونځ باطل شو.کلام د داسی حروفو آواز ته وائی چی مفيد د معنی وی.کله يو حرف وی.لکه .ق. يعنی بچ شه اوکه يوحرف بی معنی وی.نوکلام نه دې

(۲)او د امام شافعی په نزد د خطا او نسيان په صورت کي مونځ نه فاسديږی.په دی شرط چی اوږد نه وی.خکه چی اوږد کار دخطاء او نسيان سره منافی دی

**د امام شافعی مستدل** حديث معروف دې (رفع عن أمتی الخطاء والنسيان) يعنی زما دامت نه خطاء او نسيان پورته کړې شوې. ددينه استدلال په دوه وجو دی

(۱)او وجه د استدلال دا ده چی حکم په دوه قسمه وی.دنيوی (د مونځ فاسدونکی ) او اخروی (گناهگاريدل)نو لکه چی رسول پاك صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل چی زما د امت نه د خطاء او نسيان دنيوی او اخروی دواړه حکمونه پورته شوی دی.يعنی په دی دواړو کي نه څه څيز فاسديږی اونه په آخرت کي څه گناه شته

(۲)صاحب دعنايه ليکلی دی چی وجه د استدلال دا ده چی ددی دواړه حقيقت خو غير مرفوع دې.خکه چی دا دواړه په خلقو کي موجود دی.نو ددی حکم يعنی فساد راوستل به مرفوع وی.

**د احنافو دليل** د معاويه بن الحکم اسلمی(رضي الله عنه) حديث دې.پوره حديث داسی دې

[1] ـ انظر حديث رقم ٢٠٥

(قال صليت خلف رسول الله صلي الله عليه وسلم فعطش بعض القوم فقلت يرحكم الله فرماني القوم بأبصارهم فقلت واثكل اماه مالي أراكم تنظرون إلى شزرا فضربوا بأيديهم على أفخاذهم فعلمت أنهم يسكتونني فلما فرغ النبي صلي الله عليه وسلم دعاني فوالله ما رأيت معلماً أحسن تعليما منه ماكهرني ولا زجرني ولكن قال إن صلاتنا هذه لايصلح فيها شئ من كلام الناس وإنما هي التسبيح والتهليل وقراءت القرآن)

يعنى معاويه بن حكم(رضي الله عنه) فرمائى چى ما په رسول الله صلي الله عليه وسلم پسې مونځ كولو.نو يو كس پرنجى اوكړو.ما ورته (يرحمك الله ) اوويل.نو خلقو ماته ته خپل نظرونه ماته په تيز كړو.نو ما اوونيل.ددوى ميندي ذى بورى شى. ما څه چل كړې دې چى زه تاسو ته ګورم چى په برندو سترګو ګورئ.نو هغوى خپل پتونان په خپلو لاسونو اووهل.نو زه پوهه شوم چى دوى ما چپ كول غواړى چى كله رسول پاك صلي الله عليه وسلم د مانځه نه فارغ شو.نو زه يى راوْ غوښتلم.په الله قسم چى ما د رسول پاك صلي الله عليه وسلم نه ښه معلم نه دى ليدلې.دوى ماته نهٔ په غصه شو.اونه ئې زه اورټلم.بلكه ويې فرمائيل چى زمونږ په دى مونځ كي د خلقو د خبرو نه دځه څيز ګنجائش نشته.دا خوصرف تسبيح ،تهليل او قرات د قران دې . ددى حديث نه معلومه شوه چى په مونځ كي د كلام عدم وجود د مونځ حق دې.لكه څنګه چى د طهارت وجود د مونځ حق دې.نو لكه څنګه چى دعدم طهارت سره مونځ جائز نه دې.دغه شان د كلام د وجود سره هم مونځ جائز نه دې.

**دامام شافعى د پيش كړى حديث نه جواب** دا دې چى حديث (رفع عن أمتي الخطأ والنسيان) د ګناه په پورته كيدو باندې محمول دې.حاصل دادى . چى په حديث كي د آخرت حكم يعنى ګناه نه واقع كيدل په اجماع سره مراد دې.اوس كه دنيوى حكم يعنى مفسد كيدل ترې هم مراد واخستى شى.نو عموم مشترك لازميږى.حالانكه عموم مشترك جائز نه دې.

**په سهو او نسيان او خطا كي فرق** دادي چى سهو وائى.د قوت مدركه نه د صورت زائله كيدل او نسيان د قوت حافظه نه د صورت زائله كيدل.تردى چى دا كس جديد محتاج شى.او خطاء دا ده چى صورت خو باقى وى.خو چى كله د يو څيز د تكلم اراده اوكړى.نو بغير د ارادى نه بل څيز په ژبه باندې راشى.په دى خانې كي د سهو نه عامه معنى مراد ده.كومه چى درې واړه قسمونو ته شامل ده.اوچونكه په سهو او نسيان كي د شرعى حكم په اعتبار سره څه فرق نشته.نوځكه مصنف هم د دى دواړو په مينځ كي څه فرق اونكړو.

## دزيد بن ارقم رضي الله عنه حالات

نوم زيد كنيه ابوعمر قبيله خزرج په ماشوموالي كې يتيم شوى وو او پرورش يي خپل تره عبدالله بن رواح رضي الله عنه اوكړو او همدا دزيد په اسلام كې دداخليدو سبب اوګرځيدو

دماشوموالي په وجه په غزواتو کې شريك شوی نه وو او شرکت يې په غزوه خندق کې کړی وو دی پخپله وائي ما په اولس غزواتو کې شرکت کړی دی، په دربار رسالت کې ډير مقرب وو کله چې به بيمار شو نو رسول الله صلي الله عليه وسلم به يې عيادت له راتلو يو خل يې په سترګه درد راغلی وو او رسول الله صلي الله عليه وسلم دده دعيادت دپاره راغی دجوړيدو نه پس يې ورنه تپوس اوکړو که دا مرض اوس هم باقي پاتې شوی وی نو څه به دي کول زيد صبر اوکړو چې صبر او داجر اميد به مې کولو رسول الله ورته اوفرمائيل که داسې دې کولی نو دالله تعالي په وړاندې به بې ګناه ګرځيدلی وی (مسند احمد)
په ۶۸هجري کې په کوفه کې وفات شوی دی او دا دمختار بن ابي عبيد ثقفي زمانه وه دمروياتو شمير يې ۹۰دی مزيد حالات يې ابن سعد په طبقات کې ذکر کړي دي

****************

حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ أَبِي خَالِدٍ نَحْوَهُ، وَزَادَ فِيهِ " وَنُهِينَا عَنِ الْكَلاَمِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَأَبُو عَمْرٍو الشَّيْبَانِيُّ اسْمُهُ سَعْدُ بْنُ إِيَاسٍ. (1)

**ترجمه** هشيم هم د اسماعيل بن ابي خالد نه ددې هم معني روايت نقل کړی دی. مګر ددومره اضافي سره چې بيا مونږ د خبرو کولو نه منع کړی شو
امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح دی اود ابو عمرو شيباني نوم سعد بن اياس دی.

****************

۲۹۸۷_حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، أَخْبَرَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُوسَى، عَنْ إِسْرَائِيلَ، عَنِ السُّدِّيِّ، عَنْ أَبِي مَالِكٍ، عَنِ الْبَرَاءِ، وَلا تَيَمَّمُوا الْخَبِيثَ مِنْهُ تُنْفِقُونَ (البقرة :۲۶۷). قَالَ: نَزَلَتْ فِينَا مَعْشَرَ الأَنْصَارِ كُنَّا أَصْحَابَ نَخْلٍ فَكَانَ الرَّجُلُ يَأْتِي مِنْ نَخْلِهِ عَلَى قَدْرِ كَثْرَتِهِ وَقِلَّتِهِ، وَكَانَ الرَّجُلُ يَأْتِي بِالْقِنْوِ وَالْقِنْوَيْنِ فَيُعَلِّقُهُ فِي الْمَسْجِدِ، وَكَانَ أَهْلُ الصُّفَّةِ لَيْسَ لَهُمْ طَعَامٌ، فَكَانَ أَحَدُهُمْ إِذَا جَاعَ أَتَى الْقِنْوَ فَضَرَبَهُ بِعَصَاهُ فَيَسْقُطُ مِنَ الْبُسْرِ وَالتَّمْرِ فَيَأْكُلُ، وَكَانَ نَاسٌ مِمَّنْ لاَ يَرْغَبُ فِي الْخَيْرِ يَأْتِي الرَّجُلُ بِالْقِنْوِ فِيهِ الشِّيصُ وَالْحَشَفُ وَبِالْقِنْوِ قَدِ انْكَسَرَ فَيُعَلِّقُهُ، فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَبَارَكَ تَعَالَى: يَأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَنْفِقُوا مِنْ طَيِّبَاتِ مَا كَسَبْتُمْ وَمِمَّا أَخْرَجْنَا لَكُمْ مِنَ الأَرْضِ وَلا تَيَمَّمُوا الْخَبِيثَ مِنْهُ تُنْفِقُونَ وَلَسْتُمْ بِآخِذِيهِ إِلا أَنْ تُغْمِضُوا فِيهِ (البقرة :۲۶۷). قَالَ: لَوْ أَنَّ أَحَدَكُمْ أُهْدِيَ إِلَيْهِ مِثْلُ مَا أَعْطَاهُ لَمْ يَأْخُذْهُ إِلاَّ عَلَى إِغْمَاضٍ أَوْ حَيَاءٍ. قَالَ: فَكُنَّا بَعْدَ ذَلِكَ يَأْتِي

---
1 - انظر حديث رقم ۲۰۵

أَحَدُنَا بِصَالِحِ مَا عِنْدَهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ صَحِيحٌ، وَأَبُو مَالِكٍ هُوَ الْغِفَارِيُّ، وَيُقَالُ اسْمُهُ غَزْوَانُ، وَقَدْ رَوَى سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، عَنِ السُّدِّيِّ شَيْئًا مِنْ هَذَا. (1)

**ترجمه** دبراء رضي الله عنه نه مروي دي ايت كريمه " وَلا تَيَمَّمُوا الْخَبِيثَ مِنْهُ تُنفِقُونَ " زمونږ د انصارو باره كي نازل شوي دي مونږ كجورو والاخلق وو په مونږ كي به يو كس دخپلو كجورو دكم او زيات مقدار په اعتبار سره لږي يا ډيري كجوري رسول الله صلي الله عليه وسلم ته راوړلي او بعضي خلقو به دكجورو غونچك راوړلو او په مسجد كي به يي زوړند كړو داهل صفه دپاره دخوراك څه بندوبست او څه انتظام نه وو په دوئ كي چي به كله څوك اوږي شو نو دي غونچك ته به راغلو او ددي خاښ نه راپريوتلي خامي او پخي كجوري به يي پورته كولي او بيا به يي خوړلي بعضي كسان داسي وو دچاچي دخير سره مينه او شوق نه وو هغوئ به داسي غونچك راوړو چي په كوم كي به خرابي او ردي كجوري وي او بعضي كسانو به مات خاښونه هم راوړل او هغه به يي زوړندول نو دي باره كي الله تعالي ايت كريمه " يَأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَنْفِقُوا مِنْ طَيِّبَاتِ مَا كَسَبْتُمْ وَمِمَّا أَخْرَجْنَا لَكُمْ مِنَ الأَرْضِ وَلا تَيَمَّمُوا الْخَبِيثَ مِنْهُ تُنْفِقُونَ وَلَسْتُمْ بِآخِذِيهِ إِلا أَنْ تُغْمِضُوا فِيهِ (البقرة: ٢٦٧). اى ايمان والو خرچ كوى د پاك هغه مال نه چي تاسو ګټلى وي او د هغه نه چي راوستلي دي مونږ تاسو له د زمكى نه او قصد مه كوى د ردي مال د هغى نه چي خرچ كوئ يي او نه يي تاسو اخستونكي د هغى مګر دا چي سترګى پټى كړى په هغى كي او پوهه شئ چي بى شكه الله تعالى بى حاجته دى ستانيلى شويدى " نازل كړو خلقو په قسم سره اوونيل كه په تاسو كي چاته داسي هديه وركړي شي څنګه چي ددين نه بيزارو خلقو رسول الله صلي الله عليه وسلم ته راوړي ده نو دي دي دا نه اخلي او كه اخستل يي هم وي نو دمخ په اړولو به وي بيا ددينه پس په مونږ كي هر يو كس دخپل عمده او بهترين څيزونو راوړل شروع كړل

امام ترمذي وايي. داحديث حسن غريب صحيح دي. سفيان ثوري دسدي نه دا روايت دڅه قدري زيادت سره نقل كړي دي

**تشريح** أَنْفِقُوْا دا امر عام دى فرض او نفل خيراتونو (زكاة او عشر) ټولو ته شامل دى مِنْ طَيِّبَاتُ مَا كَسَبْتُمْ. په دى كي اشاره ده هغه مال ته چي څوك يي د تجارت په ذريعه ګټي

وَمِمَّا أَخْرَجْنَا لَكُمْ مِنَ الأَرْضِ، په دى كي هغه مال ته اشاره ده چي كوم مال د ذمينداري په ذريعه ګټلى شي يا معدنيات وغيره وي

---

1 _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٩١١)

او د زكوة او د عشر نصاب په احاديثو كي په تفصيل سره ذكر دى. په روپو سپينو زرو او د تجارت د مالونو نصاب څلويښتمه حصه ده او د فصلونو نصاب عشر (لسمه) يا شلمه حصه ده او دا دليل دى چې په قرآن كريم باندى احاديثو نه بغير عمل نه شي كيدى

وَلا تَيَمَّمُوا الْخَبِيثَ مِنْهُ تُنْفِقُونَ. تيمم په لغت كي قصد كولو ته وائي او خبيث كه په ناجائز طريقه گټلى شوى وي او كه خراب او ردي مال وي

وَلَسْتُمْ بِآخِذِيهِ إِلا أَنْ تُغْمِضُوا فِيهِ. په دى جمله كي د ردي مال تعريف دى يعني كوم مال چې تاسو د ځان د پاره نه خوښوى نو هغه بل چاله مه وركوى. ځكه چې الله داسى مال نه قبلوي او هغه غني دى د هغه داسى مال ته حاجت نشته

*****************

٢٩٨٨_حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو الأَحْوَصِ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ السَّائِبِ، عَنْ مُرَّةَ الْهَمْدَانِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِنَّ لِلشَّيْطَانِ لَمَّةً بِابْنِ آدَمَ وَلِلْمَلَكِ لَمَّةً. فَأَمَّا لَمَّةُ الشَّيْطَانِ فَإِيعَادٌ بِالشَّرِّ وَتَكْذِيبٌ بِالْحَقِّ، وَأَمَّا لَمَّةُ الْمَلَكِ فَإِيعَادٌ بِالْخَيْرِ وَتَصْدِيقٌ بِالْحَقِّ. فَمَنْ وَجَدَ ذَلِكَ فَلْيَعْلَمْ أَنَّهُ مِنَ اللَّهِ فَلْيَحْمَدِ اللَّهَ. وَمَنْ وَجَدَ الأُخْرَى فَلْيَتَعَوَّذْ بِاللَّهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ. ثُمَّ قَرَأَ الشَّيْطَانُ يَعِدُكُمُ الْفَقْرَ وَيَأْمُرُكُمْ بِالْفَحْشَاءِ (البقرة :٢٦٨)". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَهُوَ حَدِيثُ أَبِي الأَحْوَصِ لَا نَعْلَمُهُ مَرْفُوعًا إِلَّا مِنْ حَدِيثِ أَبِي الأَحْوَصِ. [1]

**ترجمه** دابن مسعود رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي په انسان باندي دشيطان دوسوسي اثر وي او دفرشتو دالهام اثر ورباندي هم وي. دشيطان اثر دا دي چې انسان ته دبدئ وعدي وركوي او دحق تكذيب كوي او دفرشتو اثر دادي چې دوئ دخير وعدي وركوي او دحق تصديق كوي نو هر څوك چې دا حالت بيامومي په هغي دي دالله شكر اداء كړي او څوك چې دويم اثر بيامومي نو دشيطان نه دي په الله پناه حاصل كړي او بيا رسول الله صلي الله عليه وسلم دا ايت كريمه " الشَّيْطَانُ يَعِدُكُمُ الْفَقْرَ وَيَأْمُرُكُمْ بِالْفَحْشَاءِ " تلاوت كړو

امام ترمذي وايي داحديث حسن غريب دي او دا حديث دابو الاحوص نه علاوه بل چا مرفوع نه دي ذكر كړي

---

[1] - (أخرجه النسائي في الكبرى، (تحفة الأشراف : ٩٥٥٠) (صحيح موارد الظمآن ٣٨)

***************

٢٩٨٩ـ حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ، حَدَّثَنَا فُضَيْلُ بْنُ مَرْزُوقٍ، عَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ، عَنْ أَبِي حَازِمٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " يَأَيُّهَا النَّاسُ، إِنَّ اللَّهَ طَيِّبٌ لَا يَقْبَلُ إِلَّا طَيِّبًا، وَإِنَّ اللَّهَ أَمَرَ الْمُؤْمِنِينَ بِمَا أَمَرَ بِهِ الْمُرْسَلِينَ، فَقَالَ: يَأَيُّهَا الرُّسُلُ كُلُوا مِنَ الطَّيِّبَاتِ وَاعْمَلُوا صَالِحًا إِنِّي بِمَا تَعْمَلُونَ عَلِيمٌ (المؤمنون :٥١)، وَقَالَ: يَأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُلُوا مِنْ طَيِّبَاتِ مَا رَزَقْنَاكُمْ (البقرة :١٧٢)، قَالَ: وَذَكَرَ الرَّجُلَ يُطِيلُ السَّفَرَ أَشْعَثَ أَغْبَرَ يَمُدُّ يَدَهُ إِلَى السَّمَاءِ يَا رَبِّ يَا رَبِّ وَمَطْعَمُهُ حَرَامٌ وَمَشْرَبُهُ حَرَامٌ وَمَلْبَسُهُ حَرَامٌ وَغُذِّيَ بِالْحَرَامِ فَأَنَّى يُسْتَجَابُ لِذَلِكَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَإِنَّمَا نَعْرِفُهُ مِنْ حَدِيثِ فُضَيْلِ بْنِ مَرْزُوقٍ، وَأَبُو حَازِمٍ هُوَ الأَشْجَعِيُّ اسْمُهُ سَلْمَانُ مَوْلَى عَزَّةَ الأَشْجَعِيَّةِ. [1]

**ترجمه** د ابوهریره رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلي الله علیه وسلم فرمائیلي دي ای خلقو الله تعالي پاك دی او صرف پاك څیزونه قبلوي او بیشکه الله تعالي مومنانو ته دهغی څیز حکم کړی دی دکوم حکم چې یې رسولانو ته کړی دی یعنی دپاك خوراك الله تعالي فرمائیلي دي ای رسولانو پاك څیزونه خورئ او نیك كارونه كوئ اوځه چې تاسو كوئ زه په هغي خبردار یم، او الله تعالي فرمائیلي دي ای مومنانو دهغی پاك رزق نه خورئ كوم چې مونږ درکړی دی بیا رسول الله صلي الله علیه وسلم دیو سړي حالت ذکر کړو چې داوږد سفر والاوي ــړیی ببروي گردونه پری پراته وي اسمان ته یې لاسونه اوچت کړي وي ډیر په عاجزئ الله جل جلاله نه سوالونه كوي واي ای ربه ای ربه لیکن خوراك یې حرام څکاك یې حرام وي دبدن پرورش یې په حرامو شوی وي، نو دداسی سړي سوال په څنګه قبول شي

امام ترمذي وایي داحدیث حسن غریب دي او دا مونږ ته دفضیل بن مرزوق په سند رارسیدلي دي

**لغات** المطعم دخوراك خاي طعام معني خوراك . جمع یي اطعمة او اطعمات راخي معني غنم، طعم طعما وطعاما معني خوراك . استطعام خوراك غوښتل . مزه موندل

**تشریح** دا حدیث داسلامي قواعدو او احكامو بنیاد بیانوي مطلب دادی چې په حرام مال كې نجاست او ګندګي وي او ددي په مقابل كې په حلال مال كې پاكزګي وي نو تقاضا دعبدیت داده چې دنجاست او حرام مال نه اجتناب اوكړی شي او دحلال او پاك مال په خوراك

[1] مسلم الزكاة ٢٠٥(١٠١٥)(تحفة الأشراف : ١٣٤١٣) ، و مسند احمد (٢/٣٢٨) ، وسنن الدارمي/الرقاق ٩(٢٧٥٩)

اكتفاء اوكړې شي ځكه چې ددې په سبب قرب الهي حاصليږي او د حرام مال په وجه انسان دالله نه لرې كيږي اوهمدا حكم تمامو انبياؤ او په اخر كې محمد صلي الله عليه وسلم ته هم شوى دى چې حلال خورئ او دحرامو نه ځان ساتئ

ثم ذكر الرجل يطيل السفر: بيا رسول الله صلي الله عليه وسلم ديو كس حال بيان كړو چې اوږده اوږده سفرونه يي كول يعني كه دا سفر دحج يا جهاد يا كوم بل ديني مقصد دپاره وي نو مقدس دى دعاگاني پكې قبليږي ليكن اوس دده دعا نه قبليږي ځكه چې دده خوراك حرام دى لباس يي حرام دى يعني دا كس دحرامي گټې نه ځان نه ساتي علماء وائي چې ددعا قبوليت په حلال رزق موقوف دى

يارب يارب . ددينه معلوميږي چې په يارب سره دعا غوښتل قبوليت ته زيات نزدې دي. په پورتني حديث كې دحلال مال دگټلو او خرچ كولو او خوړلو دپاره ترغيب دى

****************

٢٩٩٠_حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُوسَى، عَنْ إِسْرَائِيلَ، عَنِ السُّدِّيِّ، قَالَ: حَدَّثَنِي مَنْ، سَمِعَ عَلِيًّا، يَقُولُ: "لَمَّا نَزَلَتْ هَذِهِ الآيَةَ وَإِنْ تُبْدُوا مَا فِي أَنْفُسِكُمْ أَوْ تُخْفُوهُ يُحَاسِبْكُمْ بِهِ اللَّهُ فَيَغْفِرُ لِمَنْ يَشَاءُ وَيُعَذِّبُ مَنْ يَشَاءُ (البقرة :٢٨٤)، أَحْزَنَتْنَا، قَالَ: قُلْنَا: يُحَدِّثُ أَحَدُنَا نَفْسَهُ فَيُحَاسَبُ بِهِ، لَا نَدْرِي مَا يُغْفَرُ مِنْهُ وَلَا مَا لَا يُغْفَرُ، فَنَزَلَتْ هَذِهِ الآيَةَ بَعْدَهَا فَنَسَخَتْهَا لَا يُكَلِّفُ اللَّهُ نَفْسًا إِلا وُسْعَهَا لَهَا مَا كَسَبَتْ وَعَلَيْهَا مَا اكْتَسَبَتْ (البقرة:٢٨٦)". ([1])

**ترجمه** . دعلي رضي الله عنه بيان دى فرمائي كله چې ايت كريمه " وَإِنْ تُبْدُوا مَا فِي أَنْفُسِكُمْ أَوْ تُخْفُوهُ يُحَاسِبْكُمْ بِهِ اللَّهُ فَيَغْفِرُ لِمَنْ يَشَاءُ وَيُعَذِّبُ مَنْ يَشَاءُ" كه ښكاره كوئ تاسو هغه چې ستاسو په زړونو كې دي يا پټ ساتئ هغه حساب به كوي تاسو سره په هغې باندې الله تعالى نو معاف به كړي هغه څوك چې اوغواړي او عذاب به وركړي چاله چې اوغواړي

. نازل شو نو دې ايت مونږ تول په غم او فكر كې مبتلا كړو مونږ اووئيل كه په مونږ كې څوك په خپل زړه كې هم څه خبره اوكړي دهغې به ورسره حساب كيږي او مونږ ته دا معلومه نه وه چې په دې كې به څه بخلي كيږي او څه به نه بخلي كيږي تردې چې دا ايت كريمه " لا يُكَلِّفُ اللَّهُ نَفْسًا إِلا وُسْعَهَا لَهَا مَا كَسَبَتْ وَعَلَيْهَا مَا اكْتَسَبَتْ (البقرة :٢٨٦)" . " نازل شو او دې ايت مخكني ايت لره منسوخ كړو

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٠٢٣٦)

**تشريح** وَإِن تُبْدُوا مَا فِي أَنفُسِكُمْ. الخ هر څيز چې په زړه کي وي نو که څوك يې ښکاره کوي يا يې پټوي نو الله تعالى به ورسره حساب کوي او د حساب مطلب دا نه دی چې سزا به ورکوي حساب صرف سش کېدلو ته هم واني او مناقشی ډونګی حساب. ته هم واني د مَا تخفوهُ نه مراد اختياري او غير اختياري ټولی خبری دي او الله تعالى په نيتونو باندی عالم دی نو چې د چا څنګه نيت وي نو هغه شان حساب به ورسره کوي ها کومی خبری چې غير اختياري دي نو په هغی باندی محاسبه نشته. خکه يې ورپسی فَيَغْفِرُ لِمَنْ يَشَآءُ اوفرمائيل او بيا ورپسی لا يُكَلِّفُ اللَّهُ نَفْسًا إِلا وُسْعَهَا. نازل شو

داسی ابن کثير د مسند احمد په روايت سره ذکر کړي دي او د صحيح مسلم په حديث کي هم داسی دي. او بله معنی دا ده چې مَا فِيٓ اَنْفُسِكُمْ غير اختياري کارونو او خبرو ته نهٔ دی شامل. بلکه هغه څيزونو ته شامل دی چې قصداً يې څوك په زړه کي ساتي. ليکن د هغی د ښکاره کولو وس نه لري.

***************

۲۹۹۱ـ حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ مُوسَى، وَرَوْحُ بْنُ عُبَادَةَ، عَنْ حَمَّادِ بْنِ سَلَمَةَ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ زَيْدٍ، عَنْ أُمَيَّةَ، أَنَّهَا سَأَلَتْ عَائِشَةَ، عَنْ قَوْلِ اللَّهِ تَعَالَى: وَإِنْ تُبْدُوا مَا فِي أَنْفُسِكُمْ أَوْ تُخْفُوهُ يُحَاسِبْكُمْ بِهِ اللَّهُ (البقرة :٢٨٤) وَعَنْ قَوْلِهِ: مَنْ يَعْمَلْ سُوءًا يُجْزَ بِهِ (النساء :١٢٣)، فَقَالَتْ: " مَا سَأَلَنِي عَنْهَا أَحَدٌ مُنْذُ سَأَلْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقَالَ: هَذِهِ مُعَاتَبَةُ اللَّهِ الْعَبْدَ فِيمَا يُصِيبُهُ مِنَ الْحُمَّى وَالنَّكْبَةِ حَتَّى الْبِضَاعَةُ يَضَعُهَا فِي كُمِّ قَمِيصِهِ فَيَفْقِدُهَا فَيَفْزَعُ لَهَا حَتَّى إِنَّ الْعَبْدَ لَيَخْرُجُ مِنْ ذُنُوبِهِ كَمَا يَخْرُجُ التِّبْرُ الأَحْمَرُ مِنَ الْكِيرِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ حَدِيثِ عَائِشَةَ لاَ نَعْرِفُهُ إِلاَّ مِنْ حَدِيثِ حَمَّادِ بْنِ سَلَمَةَ.[1]

**ترجمه** داميه بيان دي فرماني چې ما دعائشه رضي الله عنها نه دالله تعالي دقول " وَإِنْ تُبْدُوا مَا فِي أَنفُسِكُمْ أَوْ تُخْفُوهُ يُحَاسِبْكُمْ بِهِ اللَّهُ (البقرة :٢٨٤) نازل شو. او دالله تعالي ددي قول: مَنْ يَعْمَلْ سُوءًا يُجْزَ بِهِ (النساء :١٢٣). " باره کي تپوس اوکړو چې ددي څه مطلب دي نو هغي اووئيل کله چې ما درسول الله صلي الله عليه وسلم نه ددي کلام دمطلب باره کي تپوس اوکړو دهغي نه پس بيا ستا نه علاوه بل چا زما نه په دي باره کي تپوس نه دي کړي. رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دا دالله تعالي دطرف نه په تبه او مصيبت وغيره کي دمبتلا کيدو

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف ١٢٢ـ١٢)

په صورت کي دبنده رټل دي تردي پوري چې کوم سامان هغه دځپل قميص په نستونړي کي ايخودلي وي او بيا ورنه هغه ورك شي او بيا دي ورخطا شي او په دي وجه پريشان کرځي تردي پوري چې بنده دځپلو کناهونو نه داسي پاك او صاف شي لکه سره زر چې دبټۍ نه څنګه پاك راوځي

امام ترمذي وايي. داحديث حسن غريب دي په روايت د عائشه رضي الله عنها سره او دحماد بن سلمه دسند نه علاوه مونږ ته ددي بل سند نه دي معلوم

****************

٢٩٩٢ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ آدَمَ بْنِ سُلَيْمَانَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: لَمَّا نَزَلَتْ هَذِهِ الآيَةَ: وَإِنْ تُبْدُوا مَا فِي أَنْفُسِكُمْ أَوْ تُخْفُوهُ يُحَاسِبْكُمْ بِهِ اللَّهُ (البقرة:٢٨٤)، قَالَ: دَخَلَ قُلُوبَهُمْ مِنْهُ شَيْءٌ لَمْ يَدْخُلْ مِنْ شَيْءٍ، فَقَالُوا لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: فَقَالَ: " قُولُوا: سَمِعْنَا وَأَطَعْنَا فَأَلْقَى اللَّهُ الإِيمَانَ فِي قُلُوبِهِمْ، فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَبَارَكَ وَتَعَالَى: آمَنَ الرَّسُولُ بِمَا أُنْزِلَ إِلَيْهِ مِنْ رَبِّهِ وَالْمُؤْمِنُونَ (البقرة:٢٨٥) لا يُكَلِّفُ اللَّهُ نَفْسًا إِلا وُسْعَهَا لَهَا مَا كَسَبَتْ وَعَلَيْهَا مَا اكْتَسَبَتْ رَبَّنَا لا تُؤَاخِذْنَا إِنْ نَسِينَا أَوْ أَخْطَأْنَا (البقرة:٢٨٦) قَالَ: قَدْ فَعَلْتُ رَبَّنَا وَلا تَحْمِلْ عَلَيْنَا إِصْرًا كَمَا حَمَلْتَهُ عَلَى الَّذِينَ مِنْ قَبْلِنَا (البقرة:٢٨٦) قَالَ: قَدْ فَعَلْتُ رَبَّنَا وَلا تُحَمِّلْنَا مَا لا طَاقَةَ لَنَا بِهِ وَاعْفُ عَنَّا وَاغْفِرْ لَنَا وَارْحَمْنَا (البقرة:٢٨٦)، قَالَ: قَدْ فَعَلْتُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ وَقَدْ رُوِيَ هَذَا مِنْ غَيْرِ هَذَا الْوَجْهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَآدَمُ بْنُ سُلَيْمَانَ يُقَالُ هُوَ وَالِدُ يَحْيَى بْنِ آدَمَ، وَفِي الْبَابِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ.[1]

**ترجمه** : دابن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي هرکله چې ايت کريمه " وَإِنْ تُبْدُوا مَا فِي أَنْفُسِكُمْ أَوْ تُخْفُوهُ يُحَاسِبْكُمْ بِهِ اللَّهُ (البقرة:٢٨٤)" نو د خلقو په زړونو کي داسي خوف او خطر پيدا شو، کوم چې په بل شي نشو پيدا کيدی، نو دوی رسول الله ته شکايت وکړو نو رسول الله اوفرمائيل داسي وايئ: " سَمِعْنَا وَأَطَعْنَا " نو الله تعالي ددوی په زړونو کي ايمان واچولو، او الله تعالي دا ايتونه نازل کړل " آمَنَ الرَّسُولُ بِمَا أُنْزِلَ إِلَيْهِ مِنْ رَبِّهِ وَالْمُؤْمِنُونَ (البقرة:٢٨٥) لا يُكَلِّفُ اللَّهُ نَفْسًا إِلا وُسْعَهَا لَهَا مَا كَسَبَتْ وَعَلَيْهَا مَا اكْتَسَبَتْ رَبَّنَا لا تُؤَاخِذْنَا إِنْ نَسِينَا أَوْ أَخْطَأْنَا (البقرة:٢٨٦)" الله تعالي اوفرمائيل ما همداسي وکړل، رَبَّنَا وَلا تَحْمِلْ عَلَيْنَا إِصْرًا كَمَا حَمَلْتَهُ

---

[1] ـ صحيح مسلم/الإيمان ٥٤ (١٢٥) (تحفة الأشراف: ٥٤٢٢)

عَلَى الَّذِينَ مِنْ قَبْلِنَا (البقرة: ٢٨٦). الله تعالي اوفرمائيل ما همداسي وكړل. رَبَّنَا وَلَا تُحَمِّلْنَا مَا لَا طَاقَةَ لَنَا بِهِ وَاعْفُ عَنَّا وَاغْفِرْ لَنَا وَارْحَمْنَا (البقرة: ٢٨٦) الله تعالي اوفرمائيل ما همداسي وكړ.

امام ترمذي وايي: دا حديث حسن صحيح دی، دا روايت ددي سند نه علاوه په نورو سندونو هم د ابن عباس او ادم بن سليمان نه مروي دی، ونيلي شوي دي چې داد يحي بن ادم پلار دي.
او په دي باب كي د ابو هريره رضي الله عنه نه هم حديث وارد دی

**تشريح**: فضائل د سورت البقري

دابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي فرمائي چې مونږ د نبي كريم صلي الله عليه وسلم په مجلس كي موجود ووا جبريل هم دنبي عليه السلام سره ناست وو . يكدم دبره نه ددروازي دكولاويدو پشان اواز راغي نوجبريل اسمان ته وكتل او وني فرمائيل. دا دروازه چې اوس بيرته شوه ددينه مخكي چرته نده بيرته شوی . دراوي بيان دی چې پدي وخت كي يوه فرشته داسمان نه راكوزه شوه اود نبي كريم صلي الله عليه وسلم په خدمت كي حاضره شوه اوعرض ني وكړو چې داسي دوه انوار دی تاته مبارك وي كوم چې ستانه مخكي بل نبي ته ندي وركړی شوي، يو فاتحة الكتاب اوبل دسورت البقري اخري حصه ، كه چري ته پدي دواړو كي يوحرف هم ولولي نوهغه به تاته دركولی شي(مسلم.

يعني يوخو دالله تعالي تعليم دي كوم چې د اهدنا الصراط المستقيم لوستلوشوي وو كه چري دي لره څوك لولي نو الله تعالي به ورته ضرور صراط مستقيم ورپه برخه كړي او دويم "ربنا لاتواخذنا ان نسينا او اخطأنا" نه تراخر دسورت پوري كه چري څوك لولي نو الله تعالي به ني ددعا مطابق سوال قبول كړي . او دا دواړه صرف رسول الله صلي الله عليه وسلم ته وركړي شوي دي نوددي په وجه به دنبي عليه السلام امت دهغه نه پس په گمراهئ باندي نه جمع كيږي، دويم حديث په روايت دمعاويه رضي الله عنه سره په صحيحينو كي ذكر شوي دي چې نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چې زما په امت كي به يوه ډله هميشه په حق باندي قائمه وي ضرربه نشي رسولي دوي ته هغه څوك چې دوی لره ذليل كوي اونه به نقصان رسولي شي دوی ته هغه څوك چې ددوی مخالفت كوي، پدي حالت كي به دالله تعالي امر يعني دقيامت دقائميدو حكم به اوشي

دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت دي چې نبي كريم صلي الله عليه وسلم چې كله معراج ته بوتلي شواوسدرة المنتهي ته ورسيدو اوسدرة المنتهي په شپږم اسمان كي ده . دزمكي نه ورختونكي اعمال هم دلته ورخي. اودبره نه خكته راتلونكي احكام هم دلته وږ رسيږي لكه چې الله تعالي فرمائيلي دي. إِذْ يَغْشَى السِّدْرَةَ مَا يَغْشَى (طه: ١٦) ، دلته نبي عليه

السلام ته دري څيزونه ورکړي شوي دي، پنځه وخته مونځونه، دسورت بقري اخري ايتونه.
اوپه امت محمدي کي هغه خلقوته مغفرت کوموچې شرك نه وي کړي. (مسلم)
يعني الله تعالي دغير مشرك دپاره دكبائرو دمعافي وعده کړي ده برابره خبره ده چې دتوبي ويستلونه پس وي اوکه بغير دتوبي ويستلو نه محض په رحمت الهي سره وي چې دعذاب څکلو نه پس وي اوکه بغيردعذاب ورکولونه وي . خلاصه دادد چې مومن به دګناه په وجه په دوزخ کي هميشه نه وي . هغه قول غلط دي کوم چې معتزليانو اوروافضو اوخوارجو کړي دي (چې مرتکب دکبيره مومن نه پاتي کيږي)
دابومسعود انصاري رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي: څوك چې دشپي دسورت بقري دوه اخري اياتونه لولي نودابه دټولي شپي دپاره ده لره کافي وي (صحاح ستة).
دنعمان بن بشير رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چې دزمکي او اسمان دپيدائش نه دوزره کاله مخکي الله تعالي يوتحرير ليکلي وودکوم نه چې ئي دسورت بقري دوه اخري ايتونه نازل کړي دي په کوم کورکي چې دا دوه ايتونه دري شپي ولوستل شي نوشيطان ورته نږدي نشي ورتلي (بغوي)
دابومسعود انصاري رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چې الله تعالي دجنت دخزانونه دوه ايتونه نازل کړي دي دا اياتونه دمخلوق دپيدائش نه دوه زره کاله مخکي رحمن ذات پخپلو لاسونو ليکلي دي ، څوك چې دي لره دماخوستن دمونځ نه پس ولولي نودقيام الليل په ځاي به دده دپاره کافي شي (ابن عدي في الکامل).
دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي هغه سورت په کوم کي چې دبقري ذکر دي دقران ميزان دي ، تاسو دي لره ياد کړئ اوددي په يادولوکي برکت دي، اوددي پريښودل سبب دحسرت دي باطلين ددي طاقت نه لري عرض وکړي شو چې باطلين څوك دي نو وئي فرمائيل چې جادوګران (اخرجه الديلمي في مسند الفردوس).
بيهقي په شعب الايمان کي په روايت دصلصال په ضعيف سند سره مرفوع روايت بيان کړي دي چې څوك سورت بقره لولي په جنت کي به ورته يوتاج ورپه سر کړي شي، ديلمي په روايت دابو هريره رضي الله عنه سره مرفوع روايت بيان کړي دي چې د سورت بقري دوه اخري ايتونه به دلوستونکي شفاعت کوي، ابوعبيده يو روايت ذکرکړي دي چې په کوم کور کي څوك سورت بقره لولي اوشيطان ئي واوري نوددغه کور نه تختي. ددي مضمون مطابق احاديث دابن مسعود ، ابوهريره ، عبدالله بن مغفل رضي الله عنهم نه مروي دي، امام احمد

بن حنبل هم دبريده رضي الله عنه روايت نقل كړي دي چې ، تاسو دي لره ياد كړئ اوددي په يادولو كي بركت دي، اوددي پريخودل سبب دحسرت دي، اوجادوګر ددي طاقت نه لري .
سورت بقره او ال عمران يادكړئ دا دواړه غوړيدلي ګلان دي . ابن حبان وغيره دسهل بن سعد رضي الله عنه روايت نقل كړي دي چې دهرشي دپاره يو غوندئ علامه، اود قران علامه سورت بقره ده. په كوم كوركي چې داد ورځي لوستلي شي شيطان به ورته دري ورځي نه ورننوځي، په كوم كوركي چې دا د شپې په تياره كي لوستلي شي شيطان به ورته دري شپې نه ورننوځي. ابوعبيده دعمر رضي الله عنه نه روايت نقل كړي دي چې څوك سورت بقره او ال عمران دشپې لولي نودقانتينو نه به وليكلي شي. دارمي په روايت دمغيره بن شعبه رضي الله عنه روايت بيان كړي دي چې څوك دسورت بقري لس اياتونه دپريوتو په وخت كي لولي نوقران به ورنه نه هيريږي، څلور اولني ايتونه يو اية الكرسي او وريسي ايت او دري دسورت اخري ايتونه

***************

## ٤ـباب وَمِنْ سُورَةِ آلِ عِمْرَانَ

### دسورة ال عمران دبعضي ايتونو تفسير

**٢٩٩٣ـحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ. حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ الطَّيَالِسِيُّ. حَدَّثَنَا أَبُو عَامِرٍ وَهُوَ الْخَزَّازُ. وَيَزِيدُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ كِلَاهُمَا. عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ. قَالَ يَزِيدُ. عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ. عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ. عَنْ عَائِشَةَ. وَلَمْ يَذْكُرْ أَبُو عَامِرٍ الْقَاسِمَ. قَالَتْ: سَأَلْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ قَوْلِهِ فَأَمَّا الَّذِينَ فِي قُلُوبِهِمْ زَيْغٌ فَيَتَّبِعُونَ مَا تَشَابَهَ مِنْهُ ابْتِغَاءَ الْفِتْنَةِ وَابْتِغَاءَ تَأْوِيلِهِ (آل عمران :٧)، قَالَ: " فَإِذَا رَأَيْتِيهِمْ فَاعْرِفِيهِمْ ". وَقَالَ يَزِيدُ: فَإِذَا رَأَيْتُمُوهُمْ فَاعْرِفُوهُمْ. قَالَهَا مَرَّتَيْنِ أَوْ ثَلَاثًا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.** [1]

**ترجمه** دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها بيان دي فرماني چې مادرسول الله صلي الله عليه وسلم نه دايت كريمه " فَأَمَّا الَّذِينَ فِي قُلُوبِهِمْ زَيْغٌ فَيَتَّبِعُونَ مَا تَشَابَهَ مِنْهُ ابْتِغَاءَ الْفِتْنَةِ وَابْتِغَاءَ تَأْوِيلِهِ (آل عمران :٧) پس هغه كسان چې د هغوي په زړونو كي كوږوالى دى نو تابعداري كوي د هغه ايتونو چې پټ مراد والا دي د هغى نه دپاره د طلب د فتنى او دپاره د طلب د حقيقت د هغى ، . دتفسير باره كي تپوس اوكړو نو ويې فرمائيل پس كله چې ته دي

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف :١٦٢٢١)

خلقو لره په متشابهاتو پسي دوړيـي كيدو په حال كي اووينئ نو پوهه شه چې همدوئ اهل زيغ دي ديزيد بن هارون په روايت كي دي ته چې دوئ اووينې نو پوهه به شي او دوئ به اوپيژني او بيا عائشه رضي الله عنها دا خبره دود يا دري پيري تكرار كړه

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي

**تشريح** په دې كي د توحيد د اثبات دپاره يو نقلي دليل دی چې الله تعالى هغه ذات دی چې په تا باندې يې كتاب نازل كړی دی او د مخلوق د هدايت دپاره كتاب نازلول د خالق كار دی خكه چې چا يو څيز جوړ كړی وي نو په هغې باندې هغه پوهيږي نو الله تعالى عالم دی په ټول مخلوق باندی

او دا داسی كتاب دی چې په دی كي د انسانانو دپاره واضح احكام بيان شوي دي او هغه د دی كتاب اصـل ( مقصد ) دی او د انسانانو د كاميابئ دپاره دغه محكم ايتونه كافي دي او بعض ايتونه په كي متشابهات دي چې د هغې په حقيقت باندی صرف الله تعالى پوهيږي او هغې ته متشابهات وائي مثلاً د تقدير مسئلی جنت دوزخ ملائك عذاب قبر د الله تعالى صفت مثلاً يد نفس وجهه ساق ( پنډی ) وغيره نو د دی حقيقت د انسان د عقل نه لری خبرده او څوك چې د دی حقيقت معلومولو كوشش كوي نو د هغوي په زړونو كي كږوالی وي او د خلقو په زړونو كي كوږوالی پيدا كوي لكه عيسايانو په قرآن كريم كي عيسى عليه السلام ته عبدالله او نبی ونيلی دي ليكن عيسايان دا محكم ايتونه پريږدي او په قرآن كريم كي چې د عيسىٰ عليه السلام متعلق روح الله او كلمته ونيلی شوي دي نو د هغی نه دا ثابتوي چې عيسىٰ عليه السلام الله دی د الله خوی دی او الهه دری دي يو به كي عيسى عليه السلام دی دا رنگ بدعتيان د قرآن كريم د نورو ايتونو نه خپل بدعات ثابتوي او دا د ټولو گمراهانو طريقه ده

او د دوي په مقابله كي چې پوخ علم والاوي نو هغوي دا وائي چې دا زمونږ د رب د طرف نه دي زمونږ په دی باندی ايمان دی

***************

٢٩٩٤ـ حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ. أَخْبَرَنَا أَبُو الْوَلِيدِ الطَّيَالِسِيُّ. حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ. حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي مُلَيْكَةَ. عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ. عَنْ عَائِشَةَ. قَالَتْ: سُئِلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ هَذِهِ الآيَةِ: هُوَ الَّذِي أَنْزَلَ عَلَيْكَ الْكِتَابَ مِنْهُ آيَاتٌ مُحْكَمَاتٌ (آل عمران: ٧ إِلَى آخِرِ الآيَةِ. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا رَأَيْتُمُ الَّذِينَ يَتَّبِعُونَ مَا تَشَابَهَ مِنْهُ فَأُولَئِكَ الَّذِينَ سَمَّاهُمُ اللَّهُ فَاحْذَرُوهُمْ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَرُوِيَ عَنْ أَيُّوبَ.

عَنْ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ، عَنْ عَائِشَةَ. هَكَذَا رَوَى غَيْرُ وَاحِدٍ هَذَا الْحَدِيثَ عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ. عَنْ عَائِشَةَ، وَلَمْ يَذْكُرُوا فِيهِ عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ، وَإِنَّمَا ذَكَرَ يَزِيدُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ التُّسْتَرِيُّ، عَنِ الْقَاسِمِ فِي هَذَا الْحَدِيثِ. وَابْنُ أَبِي مُلَيْكَةَ هُوَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ سَمِعَ مِنْ عَائِشَةَ أَيْضًا. [1]

**ترجمه** :دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها بيان دي فرمائي چې مادرسول الله صلي الله عليه وسلم نه دايت كريمه " فَأَمَّا الَّذِينَ فِي قُلُوبِهِمْ زَيْغٌ فَيَتَّبِعُونَ مَا تَشَابَهَ مِنْهُ ابْتِغَاءَ الْفِتْنَةِ وَابْتِغَاءَ تَأْوِيلِهِ (آل عمران :٧)." دتفسير باره كي تپوس اوكړو نو ويي فرمائيل پس كله چې ته دي خلقو لره په متشابهاتو پسي دورپسي كيدو په حال كي اوويني نو پوهه شه چې همدوئ هغه كسان دي دچاچې الله تعالي نومونه اخستلي دي او دهمداسي خلقو نه خان ساته.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي دا حديث دابو ايوب رضي الله عنه نه مروي دي. او ابوايوب په واسطه دابن ابي مليكه دعائشه رضي الله عنها نه روايت نقل كړي دي. دارنګي دا حديث متعددو راويانو دابن ابي مليكه نه دعائشه په واسطه نقل كړي دي ليكن دي راويانو پخپلو خپلو روايتونو كي دقاسم بن محمد واسطه نه ده ذكر كړي دده ذكر صرف يزيد بن ابراهيم تستري په دي حديث كي په "عن القاسم " ونيلو سره ذكر كړي دي او دابن ابي مليكه نوم عبدالله بن عبيدالله بن ابي مليكه دي او هغه دعائشه رضي الله عنها نه هم اوريدل كړي دي

***************

٢٩٩٥_حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو أَحْمَدَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي الضُّحَى، عَنْ مَسْرُوقٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِنَّ لِكُلِّ نَبِيٍّ وُلَاةً مِنَ النَّبِيِّينَ، وَإِنَّ وَلِيِّي أَبِي وَخَلِيلُ رَبِّي، ثُمَّ قَرَأَ إِنَّ أَوْلَى النَّاسِ بِإِبْرَاهِيمَ لَلَّذِينَ اتَّبَعُوهُ وَهَذَا النَّبِيُّ وَالَّذِينَ آمَنُوا وَاللَّهُ وَلِيُّ الْمُؤْمِنِينَ (آل عمران :٦٨)". حَدَّثَنَا مَحْمُودٌ، حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي الضُّحَى، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهُ، وَلَمْ يَقُلْ فِيهِ عَنْ مَسْرُوقٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ أَبِي الضُّحَى، عَنْ مَسْرُوقٍ، وَأَبُو الضُّحَى

---

[1] _ اورده البخاري في الجامع الصحيح /تفسير آل عمران ١ (٤٥٤٧) . صحيح مسلم/العلم ١ (٢٦٦٥) . سنن ابن ماجه/المقدمة ٧ (٤٧) (تحفة الأشراف : ١٧٤٦٠) . و مسند احمد (٦/٤٨) . وسنن الدارمي/المقدمة ١٩ (١٤٥)

اسْمُهُ مُسْلِمُ بْنُ صُبَيْحٍ. حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي الضُّحَى، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَ حَدِيثِ أَبِي نُعَيْمٍ وَلَيْسَ فِيهِ عَنْ مَسْرُوقٍ. [1]

**ترجمه** دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه بيان دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي دهر يو نبي په انبياؤ كي څوك نه څوك دوست وي او زما دوست زما پلار او زما درب پوخ دوست ابراهيم عليه السلام دي او بيا رسول الله صلي الله عليه وسلم دا ايت كريمه " إِنَّ أَوْلَى النَّاسِ بِإِبْرَاهِيمَ لَلَّذِينَ اتَّبَعُوهُ وَهَذَا النَّبِيُّ وَالَّذِينَ آمَنُوا وَاللَّهُ وَلِيُّ الْمُؤْمِنِينَ (آل عمران :٦٨)". " اولوستلو

امام ترمذي وايي ابو الضحي هم دابن مسعود په واسطه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه ددي هم معني روايت نقل كړي دي او په سند كي يي دمسروق واسطه نه ده ذكر كړي. او دا روايت دابو الضحي دروايت نه كوم چې دمسروق نه نقل كوي زيات صحيح دي او دابو الضحي نوم مسلم بن صبيح دي، ابو الضحي په مذكوره سند هم دابن مسعود په واسطه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه دابو نعيم دحديث پشان حديث نقل كړي دي او په سند كي يي دمسروق واسطه نه ده ذكر كړي

***************

حَدَّثَنَا مَحْمُودٌ، حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي الضُّحَى، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهُ وَلَمْ يَقُلْ فِيهِ: عَنْ مَسْرُوقٍ. [2]

**ترجمه** ابو الضحي په مذكوره سند هم دابن مسعود په واسطه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه دماقبل پشان حديث نقل كړي دي او په سند كي يي دمسروق واسطه نه ده ذكر كړي

***************

٢٩٩٦ـ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ شَقِيقِ بْنِ سَلَمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَنْ حَلَفَ عَلَى يَمِينٍ هُوَ فِيهَا فَاجِرٌ لِيَقْتَطِعَ بِهَا مَالَ امْرِئٍ مُسْلِمٍ لَقِيَ اللَّهَ وَهُوَ عَلَيْهِ غَضْبَانُ. فَقَالَ الأَشْعَثُ بْنُ قَيْسٍ: فِيَّ وَاللَّهِ كَانَ ذَلِكَ كَانَ بَيْنِي وَبَيْنَ رَجُلٍ مِنَ الْيَهُودِ أَرْضٌ فَجَحَدَنِي فَقَدَّمْتُهُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف . ٩٥٨١)

[2] ـ انظر ماقبله (تحفة الأشراف : ٩٥٨٤)

وَسَلَّمَ: "أَلَكَ بَيِّنَةٌ؟. فَقُلْتُ: لَا. فَقَالَ لِلْيَهُودِيِّ: احْلِفْ. فَقُلْتُ: يَارَسُولَ اللهِ، إِذَنْ يَحْلِفُ فَيَذْهَبُ بِمَالِي. فَأَنْزَلَ اللهُ تَبَارَكَ وَتَعَالَى: إِنَّ الَّذِينَ يَشْتَرُونَ بِعَهْدِ اللهِ وَأَيْمَانِهِمْ ثَمَنًا قَلِيلا (آل عمران :۷۷) إِلَى آخِرِ الْآيَةِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَفِي الْبَابِ عَنْ ابْنِ أَبِي أَوْفَى. [1]

**ترجمه** دعبدالله بن مسعود ؓ نه روايت دی فرمـي چې نبي عليه الصلاة والسلام فرمائيلي دي چې څوك په څه خبره قسم وخوري اوپه دغه قسم کې دروغژن وي ددې دپاره چې ديومسلمان مال غصب کړي نو دی به دالله تعالي سره په دې شان سره ملاويږي چې الله تعالي به په ده باندې غصه وي اشعث ونيلي دي په الله قسم رسول الله صلي الله عليه وسلم داحديث زمايه باره کې ونيلی وو خکه چې زما او ديويهودي شريکه زمکه وه ماته يې زمادحصې دراکولونه انکارکړی وو نوما رسول الله صلي الله عليه وسلم ته بوتلو رسول الله صلي الله عليه وسلم زمانه تپوس اوکړو ايا گواه درسره شته؟ ماعرض اوکړو نشته بيايې يهودي ته اوونيل چې ته به قسم کوې ماعرض اوکړو اې دالله رسوله داخويهودي دی په دروغه به قسم اوکړي اوزما مال به غصب کړي په دې وخت کې الله تعالي دا ايت نازل کړو. (إِنَّ الَّذِينَ يَشْتَرُونَ بِعَهْدِ اللهِ وَأَيْمَانِهِمْ ثَمَنًا قَلِيلاً) إِلَى آخِرِ الْآيَةِ.

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي او په دې باب کې د ابن ابي اوفي رضي الله عنه نه هم حديث وارد دي

**تشريح**: إِنَّ الَّذِينَ يَشْتَرُونَ بِعَهْدِ اللهِ، په صحيحينو کې دابو وائل په سند سره دعبدالله رضي الله عنه نه روايت منقول دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي څوك چې دکوم مسلمان مال خوړلو دپاره په دروغه قسم خوري نودالله تعالي په وړاندې به يې پيشي په داسې حالت کې اوشي چې الله تعالي به ورته غصه وي اوددې په تصديق کې مذکوره ايت تراخره پورې نازل شو. عبدالله رضي الله عنه چې دا حديث بيانولو نو اشعث بن قيس رضي الله عنه دبهرنه دننه راغي اوتپوس يې اوکړو چې تاسوته ابوعبدالرحمن کوم حديث بيان کړو؟ خلقو اوونيل چې دا. دا. يې بيانولو اشعث رضي الله عنه اوونيل دا ايت زما په باره کې نازل شوي وو. خبره داسې وه چه چې زما يو کوهي زمادتره دخامنو په زمکه کې وو زه درسول الله په خدمت کې حاضر شوم او خواست مې اوکړو نبي عليه السلام اوفرمائيل گواه پيش کړه اوکه نه وي نوددوی قسم به مني ماعرض اوکړو اې دالله رسوله هغوی خوپه دې باندې قسم کوي(يعني باك ني نه گنړي) نبي عليه السلام اوفرمائيل چاچې ديو مسلمان

[1] - انظر حديث رقم ۱۲٦۹

دمال خوړلو دپاره په دروغه قسم اوکړو اودد ته معلومه وي چې زه دروغ وايم نودقيامت په ورځ چې کله دالله تعالي په وړاندي پيش کيږي نوالله تعالي به ورته غصه وي
بغوي پخپل سند سره دبخاري نه داسي نقل کړي دي ليکن دابوداود او ابن ماجه په روايت کي داشعث بن قيس قول داسي منقول دي چې زما اوديو يهودي په مينځ کي په زمکه باندي لانجه وه هغه زماپه حق باندي منکر وو نوما رسول الله صلي الله عليه وسلم ته بوتلو ماته يي اوفرمائيل ايا گواه درسره شته ؟ ماعرض اوکړو نشته نونبي عليه السلام يهودي ته اوفرمائيل ته به قسم کوي ماعرض اوکړو اي دالله رسوله دي به قسم وخوري (يعني باك يي نه کيږي) اوزما مال به واخلي نوپه دي باره کي الله تعالي دا ايت نازل کړو . بخاري دعبدالله بن اوفي رضي الله عنه نه يو روايت بيان کړي دي چې يوکس څه تجارتي سامان بازار ته راوړو اوپه بل کس باندي يي دخرڅولودپاره په الله تعالي قسم اوکړو او ويي وئيل دا زما نه په دومره قيمت اوغوښتلي شو اوحال دادي چې په دومره قيمت ورنه نه وو غوښتلي شوي (يا دا چې ده قسم اوخوړلو چې دا سامان زمانه په دومره قيمت باندي غوښتلي شوي دي اوحال دادي چې په دغه هومره قيمت نه وو غوښتلي شوي) نوپه دي باره کي دا ايت کريمه نازل کړو. حافظ ابن حجر دبخاري په شرح کي ليکلي دي چې په دي دواړو حديثونو کي څه تضاد نشته (چې ديو په صحيح منلو کي ددويم غلط منل لازميږي) بلکه ممکن ده چې دواړه دايت دنزول سببونه وي اودواړه واقعي پيښي شوي وي.

قَلِيلاً . نه مراد ددنيا متاع ده برابره خبره ده چې لږه وي اوکه ډيره خکه چې دجنت دنعمتونو په مقابل کي ددنيا ډير سامان هم لږ دي . مطلب دادي چې کوم خلق په اداء کولو داماتتونوپه لوظونو او په دروغه قسمونه په عوض کي ددنيا متاع اخلي . ابن جريردعکرمه قول نقل کړي دي چې دا ايت دکعب بن اشرف او حيي بن اخطب او ددوئ پشان دنورو يهوديانو په حق کي نازل شوي دي کومو چې په تورات کي دنازل شوو اوصاف محمدي نه انکار کولو اوپټول به يي اوبدلول به يي اودهغي په خاي باندي به يي بل څه ليکل اوقسمونه به يي کول چې دا دالله دطرف نه نازل شوي دي . په دي تبديل اوتحريف سره ددوئ مقصد دا وو چې دوئ ته دخوراك دپاره څه ملاؤ شي اوکوم رشوتونه چې به دوئ دخپلو متبعينو نه اخستل چې په هغي کي څه فرق رانه شي . ابن حجر ليکلي دي په دي ايت کي ددي سبب نزول هم احتمال دي ليکن اصل سبب نزول هغه دي کوم چې په حديث کي راغلي دي
زه وايم چې دکلام رفتار اوسياق دابن جرير او دعکرمه دروايت دصحت تقاضا کوي اولکه څرنگه چې په دواړو مذکوره حديثونو کي تعارض نشته نوهمدارنگي ددي حديثونو دعکرمه دروايت سره هم تعارض نشته چې اسباب نزول دري شي علقمه دخپل پلار وائل نه روايت بيان کړي دي چې يوخل دوه کسان درسول الله صلي الله عليه وسلم په خدمت کي

حاضرشول يو دحضرت موت وو اودويم دكنده قبيلي والاوو حضرمي عرض اوكړو اي دالله رسوله ده زما زمكه غصب كړي ده كندي اوونيل دغه زما زمكه ده اوزما په قبضه كي دد په دي كي دهيڅ چا حق نشته ، رسول الله صلي الله عليه وسلم حضرمي ته اوفرمائيل ايا ګواهان درسره شته هغه اوونيل نشته نو ويي فرمائيل ته دده نه دقسم اخستلو حقدار يي حضرمي عرض اوكړو اي دالله رسوله دي خو ښكاره اوعلاني فاسق دي په هيڅ څيز باندي پرواه نه كوي نو بيا يي اوفرمائيل دددينه علاوه بله لار نشته اوددينه زيات درباندي ستا حق نشته چنانچې كله كندي قسم اوكړو اولاړو نورسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل كه چري دده په دروغه باندي په ناحقه ستادمال خوړلو دپاره قسم كړي وي چې كله دالله تعالي په وړاندي پيش كيږي هغه به ورنه مخ واړوي، مسلم

په يو روايت كي راغلي دي چې دكندي نوم امرء القيس بن عابس اودده دحريف نوم ربيعه بن عبدان وو. دابوداود په روايت كي راغلي دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل څوك چې دچادمال خوړلودپاره قسم وكړي نودي به دالله تعالي سره پداسي حال كي مخامخ كيږي چې اجزم (ناقص الخلقت) به وي ، ددي په اوريدو سره كندي دقسم كولو اراده وكړه نو دا ايت نازل شو نويدي سره امرء القيس (يعني كندي)دقسم كولو نه انكار وكړواودخپل حريف دحق اقرار ئي وكړو اوزمكه ئي هم ورته وركړه.

***************

٢٩٩٧_حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ بَكْرٍ السَّهْمِيُّ، حَدَّثَنَا حُمَيْدٌ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: لَمَّا نَزَلَتْ هَذِهِ الآيَةُ: لَنْ تَنَالُوا الْبِرَّ حَتَّى تُنْفِقُوا مِمَّا تُحِبُّونَ (آل عمران :٩٢)أَوْ مَنْ ذَا الَّذِي يُقْرِضُ اللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا (البقرة :٢٤٥ . قَالَ أَبُو طَلْحَةَ، وَكَانَ لَهُ حَائِطٌ: يَا رَسُولَ اللَّهِ حَائِطِي لِلَّهِ، وَلَوِ اسْتَطَعْتُ أَنْ أُسِرَّهُ لَمْ أُعْلِنْهُ. فَقَالَ: " اجْعَلْهُ فِي قَرَابَتِكَ أَوْ أَقْرَبِيكَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَقَدْ رَوَاهُ مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، عَنْ إِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ. ([1])

**ترجمه** دانس رضي الله عنه بيان دي فرماني چې كله ايت كريمه " لَنْ تَنَالُوا الْبِرَّ حَتَّى تُنْفِقُوا مِمَّا تُحِبُّونَ (آل عمران :٩٢)"يا" مَنْ ذَا الَّذِي يُقْرِضُ اللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا " نازل شو دغه وخت كي دابو طلحه رضي الله عنه يو باغ وو ابو طلحه اوونيل اي دالله رسوله زه خپل باغ دالله درضا

[1] ـ اورده البخاري في الجامع/الزكاة ٤٤ (١٤٦١) ، والوكالة ١٥ (٢٣١٨) والوصايا ١٧ (٢٧٥٨) ، وتفسير آل عمران ٥ (٤٥٥٤) ، والأشربة ١٣ (٥٦١١) . صحيح مسلم/الزكاة ١٤ (٩٩٨) (تحفة الأشراف ٢٠٢، و٢٠٣)

دپاره صدقه كوم كه چرې دا ما پټولې شوې نو پټ كړې به مې وو او اعلان به مې نه كولو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل دا دخپلو رشته دارانو دپاره وقف كړه
امام ترمذي وايي. داحديث حسن صحيح دې، داحديث مالك بن انس داسحاق بن عبدالله بن ابو طلحه په واسطه دانس بن مالك رضي الله عنه نه نقل كړې دې

***************

٢٩٩٨_حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ يَزِيدَ، قَالَ: سَمِعْتُ مُحَمَّدَ بْنَ عَبَّادِ بْنِ جَعْفَرٍ الْمَخْزُومِيَّ يُحَدِّثُ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَامَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: مَنِ الْحَاجُّ يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ قَالَ: "الشَّعِثُ التَّفِلُ"، فَقَامَ رَجُلٌ آخَرُ، فَقَالَ: أَيُّ الْحَجِّ أَفْضَلُ يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ قَالَ: "الْعَجُّ وَالثَّجُّ"، فَقَامَ رَجُلٌ آخَرُ، فَقَالَ: مَا السَّبِيلُ يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ قَالَ: "الزَّادُ وَالرَّاحِلَةُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ لَا نَعْرِفُهُ مِنْ حَدِيثِ ابْنِ عُمَرَ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ إِبْرَاهِيمَ بْنِ يَزِيدَ الْخُوزِيِّ الْمَكِّيِّ، وَقَدْ تَكَلَّمَ بَعْضُ أَهْلِ الْحَدِيثِ فِي إِبْرَاهِيمَ بْنِ يَزِيدَ مِنْ قِبَلِ حِفْظِهِ.[1]

**ترجمه**. دعبدالله بن عمرو رضي الله عنهما نه مروي دي فرمائي چې يو كس دنبي كريم صلي الله عليه وسلم په وړاندې اودريدو او عرض يې اوكړو اې دالله رسوله (واقعي) حاجي څوك دې؟ رسول الله اوفرمائيل كامل حاجي هغه څوك دې دچا سر چې ګرد او غبارجن كړې وي او چاچې زيب او زينب او خوشبو پريخودلې وي او دچا بدن چې بوي شروع كړې وي بيا يو بل كس اودريدو او عرض يې اوكړو كوم يو حج په حجونو كې بهتر دې؟ رسول الله اوفرمائيل هغه حج په كوم كې چې لبيك كلمات په چغه اووئيلې شي او دقربانۍ دځاروو بنه وينه اوبهيولې شي دې وخت كې يو بل كس اودريدو او عرض يې اوكړو اې دالله رسوله په "من استطاع اليه سبيلا" كې دسبيلا نه څه مراد دې رسول الله اوفرمائيل خرڅې او سورلې
امام ترمذي وايي دابن عمر دا حديث مونږ ته دابراهيم بن يزيد په روايت رارسيدلې دې بعضې محدثينو په ابراهيم بن يزيد دحافظې په اعتبار كلام كړې دې

***************

٢٩٩٩_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا حَاتِمُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ، عَنْ بُكَيْرِ بْنِ مِسْمَارٍ هُوَ مَدَنِيٌّ ثِقَةٌ، عَنْ عَامِرِ بْنِ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "لَمَّا أَنْزَلَ اللَّهُ هَذِهِ الْآيَةَ تَعَالَوْا نَدْعُ أَبْنَاءَنَا وَأَبْنَاءَكُمْ (آل

---
[1] ـ تفرد به المؤلف.

عمران :٦١). دَعَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلِيًّا، وَفَاطِمَةَ، وَحَسَنًا، وَحُسَيْنًا. فَقَالَ: اللَّهُمَّ هَؤُلَاءِ أَهْلِي". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ صَحِيحٌ. ([1])

**ترجمه** دسعد بن ابي وقاص رضي الله عنه بيان دي فرماني چې كله ايت كريمه " تَعَالَوْا نَدْعُ أَبْنَاءَنَا وَأَبْنَاءَكُمْ " راشئ چې رااوبلو خپل خامن او خامن ستاسو. نازل شو نو رسول الله صلي الله عليه وسلم علي، فاطمه، او حسن او حسين رضي الله عنهم راوغوښتل او ويې فرمائيل اي الله دا كسان زما خاندان دي

امام ترمذي وايي داحديث حسن غريب صحيح دي.

**تشريح** په دې ايت كې هغوي ته د مباهلې دعوت وركوي. او دې ايت ته ايت مباهله ونيلې شي. د مباهلې معنى دا ده. چې دوه ډلې يو بل ته بد دُعا اوكړي مطلب دا دی چې كله په دوه ډلو كې په يو مسئله كې د حق او باطل په باره كې اختلاف او جګړه پيدا شي او په دلائلو باندې هغه اختلاف نه ختميږي نو دواړه ډلې دې د الله تعالى په دربار كې دا دُعا اوغواړي. چې يا الله تعالى په مونږ كې كومه چې ډله دروغژنه وي. نو په هغې باندې لعنت اوكړې د دې واقعې پس منظر دا دی چې په صحيح بخاري كتاب المغازي كې د حذيفه رضي الله عنه نه روايت دی د نجران، د عيسايانو، نه دوه تنه عاقب او سيد رسول الله صلى الله عليه وسلم ته راغلل او د هغوي اراده وه چې هغوي د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره مباهله اوكړي ليكن هغوي داسې اونه كړې شول، هغوي كې يو تن بل ته اووئيل چې داسې مهٔ كوه په الله قسم دی كه چرې دی نبي وي او مونږ په يو بل باندې لعنت اوكړو. نو څمونږ نه روستو خلق به هيچرې كامياب نه شي (الغرض هغوي د مباهلې اراده ختم كړه) او رسول الله صلى الله عليه وسلم ته يې اوئيل چې ته څمونږ نه څه غواړې نو مونږ تاله دركوو. ته څمونږ سره يو امانت دار سړې اوليږه رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چې خه تاسو سره يو امانت دار سړې ليږم او هغه واقعي امانت دار دی د صحابه كرامو نه هر يو دا خواهش كوو چې دا فضيلت ماته ملاؤ شي رسول الله صلى الله عليه وسلم ابو عبيده بن جراح ته اوفرمائيل چې پاسه كله چې هغه پاسيدلو نو رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چې دا د دې امت امين دی بيا يې ابو عبيده د هغوي سره اوليږلو

په بل حديث كې راغلې دي سعد رضي الله عنه فرمائي كله چې دا ايت نازل شو چې ته نصاراؤ ته اووايه چې راشئ چې خپل خامن رااوغواړو او تاسو هم خپل خامن رااوغواړئ نو رسول الله صلى الله عليه وسلم علي رضي الله عنه فاطمه حسن او حسين رضي الله عنهم

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٣٨٢٥)

رااوغوختل او اوئ ونيل چې اى الله دا خما اهل دى ليكن د نصاراؤ عالمانو مباهله اونه كړه

***************

٣٠٠٠ـ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنِ الرَّبِيعِ بْنِ صَبِيحٍ، وَحَمَّادُ ابْنُ سلمة، عَنْ أَبِي غَالِبٍ، قَالَ: " رَأَى أَبُو أُمَامَةَ رُءُوسًا مَنْصُوبَةً عَلَى دَرَجِ مَسْجِدِ دِمَشْقَ، فَقَالَ أَبُو أُمَامَةَ: كِلَابُ النَّارِ شَرُّ قَتْلَى تَحْتَ أَدِيمِ السَّمَاءِ خَيْرُ قَتْلَى مَنْ قَتَلُوهُ ثُمَّ قَرَأَ: يَوْمَ تَبْيَضُّ وُجُوهٌ وَتَسْوَدُّ وُجُوهٌ (آل عمران :١٠٦) إِلَى آخِرِ الْآيَةِ، قُلْتُ لِأَبِي أُمَامَةَ: أَنْتَ سَمِعْتَهُ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ؟ قَالَ: لَوْ لَمْ أَسْمَعْهُ إِلَّا مَرَّةً أَوْ مَرَّتَيْنِ أَوْ ثَلَاثًا أَوْ أَرْبَعًا حَتَّى عَدَّ سَبْعًا مَا حَدَّثْتُكُمُوهُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَأَبُو غَالِبٍ يُقَالُ اسْمُهُ حَزَوَّرٌ، وَأَبُو أُمَامَةَ الْبَاهِلِيُّ اسْمُهُ صُدَيُّ بْنُ عَجْلَانَ وَهُوَ سَيِّدُ بَاهِلَةَ.(1)

**ترجمه** دابو غالب بيان دي فرمائي چې ابو امامه رضي الله عنه نه د دمشق دمسجد دپوړو سره اوليدلو چې دحروره مقتول دخوارجو سر زوړند كړي شوي وو نو وېي ونيل دجهنم سپي دي او داسمان دلاندي بدترين مخلوق دي مګر بهترين مقتول به هغه وي كوم چې هغوئ قتل كړي وي او بيا يې دا ايت كريمه "يوم تبيض وجوه وتسود وجوه" تلاوت كړو ما ابو امامه رضي الله عنه ته اوونيل ايا تا دا درسول الله صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي دي؟ نو وېي ونيل ما كه دا درسول الله صلي الله عليه وسلم نه يو ځل يا دوه ځله يا دري ځله يا څلور ځله تردي پوري چې اوه ځلو پوري يي اوشميرل اوريدلي نه وي نو تاسو ته به مي نه وو بيان كړي امام ترمذي وايي داحديث حسن دي، دابوغالب باره كي ونيلي كيږي چې دده نوم حزوړ دي او دابو امامه باهلي نوم صدى بن عجلان دي او موصوف دباهله قبيلي سردار دي

***************

٣٠٠١ـ حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنْ بَهْزِ بْنِ حَكِيمٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّهُ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: فِي قَوْلِهِ تَعَالَى: كُنْتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ (آل عمران :١١٠)، قَالَ: " إِنَّكُمْ تَتِمُّونَ سَبْعِينَ أُمَّةً أَنْتُمْ خَيْرُهَا وَأَكْرَمُهَا عَلَى اللَّهِ " هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَقَدْ رَوَى غَيْرُ وَاحِدٍ هَذَا الْحَدِيثَ عَنْ بَهْزِ بْنِ حَكِيمٍ نَحْوَ هَذَا، وَلَمْ يَذْكُرُوا فِيهِ

1 ـ سنن ابن ماجه/المقدمة ١٢ (١٧٦) (تحفة الأشراف ٤٩٣٥)

كُنتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ (آل عمران: ١١٠). ([1])

**ترجمه** دمعاويه بن حيده رضي الله عنه نه مروي دي فرماني چې ما درسول الله صلي الله عليه وسلم نه دالله تعالي ددي قول "كنتم خيرامة اخرجت للناس" په تفسير كې اوريدلي دي تاسو داويا امتونو تكمله يئ او تاسو دالله په نزد په دوئ ټولو كې بهتر او دټولو نه زيات معزز يئ

امام ترمذي وايي داحديث حسن دي، متعددو راويانو دبهز بن حكيم نه دا حديث په همدي مضمون نقل كړي دي ليكن دي راويانو پخپل روايت كي دايت كنتم خيرامة اخرجت للناس ذكر نه دي كړي

**تشريح**: د اد وَلْتَكُن مِّنكُمْ أُمَّةٌ سره متعلق دی. او په دی کي د دعوت ورکولو دپاره ډير ترغيب دی او تيزي وركول دي. او د خير په وصف سره دَ دعوت فائده ذكر كوي يعني د دعوت د خيريت سبب دی د الله تعالى په نيز. كُنتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ دا خطاب اول صحابه كرامو ته دی او بيا د هغوي تابعدارانو ته ترقيامته پوری أُخْرِجَتْ په معنی د ظهور او خوريدلو دی. او په دی كي اشاره ده چې د دعوت د كار د وجی نه دا امت ښكاره او مشهوردی

***************

٣٠٠٢ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، أَخْبَرَنَا حُمَيْدٌ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كُسِرَتْ رَبَاعِيَتُهُ يَوْمَ أُحُدٍ وَشُجَّ وَجْهُهُ شَجَّةً فِي جَبْهَتِهِ حَتَّى سَالَ الدَّمُ عَلَى وَجْهِهِ. فَقَالَ: كَيْفَ يُفْلِحُ قَوْمٌ فَعَلُوا هَذَا بِنَبِيِّهِمْ وَهُوَ يَدْعُوهُمْ إِلَى اللَّهِ. فَنَزَلَتْ: لَيْسَ لَكَ مِنَ الأَمْرِ شَيْءٌ أَوْ يَتُوبَ عَلَيْهِمْ أَوْ يُعَذِّبَهُمْ (آل عمران: ١٢٨) إِلَى آخِرِهَا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([2])

**ترجمه** دانس رضي الله عنه بيان دي فرماني چې په جنګ احد كي دنبي كريم صلي الله عليه وسلم څلور مخامخ (رباعي) غابونه مات كړي شول. او تندي يي زخمي كړي شو تردي چې وينه يي په مخ مبارك اوبهيدله نو ويي فرمائيل څنګه به كامياب شي داسي قوم چاچې دخپل پيغمبر سره داسي كار كړي وي او هغه يي الله تعالي ته رابلي نو دي وخت كي ايت

---

[1] ـ سنن ابن ماجه/الزهد ٣٢ (٤٢٨٧) (تحفة الأشراف : ١١٣٨٤)

[2] ـ اورددالبخاري في الجامع /المغازي ٢١ مسلم/الجهاد ٣٨ (١٧٩١) . سنن ابن ماجه/الفتن ٢٣ (٤٠٢٧) (تحفة الأشراف: ٦٨٤)، ومسند احمد (٩٩/٣، ١٧٨، ٢٠١، ٢٠٦، ٢٥٣، ٢٨٨)

كريمه "لَيْسَ لَكَ مِنَ الأَمْرِ شَيْءٌ أَوْ يَتُوبَ عَلَيْهِمْ أَوْ يُعَذِّبَهُمْ " نشته تا لره د اختيار نه څه څيز. يا به مهرباني اوكړي الله تعالى په دوي باندى يا به عذاب وركړي پس يقينا دوي ظالمان دي، نازل شو

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي

****************

٣٠٠٣_حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، وَعَبْدُ بْنُ حميد، قَالَا: حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا حُمَيْدٌ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " شُجَّ فِي وَجْهِهِ، وَكُسِرَتْ رَبَاعِيَتُهُ، وَرُمِيَ رَمْيَةً عَلَى كَتِفِهِ فَجَعَلَ الدَّمُ يَسِيلُ عَلَى وَجْهِهِ وَهُوَ يَمْسَحُهُ، وَيَقُولُ: كَيْفَ تُفْلِحُ أُمَّةٌ فَعَلُوا هَذَا بِنَبِيِّهِمْ وَهُوَ يَدْعُوهُمْ إِلَى اللَّهِ، فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى: لَيْسَ لَكَ مِنَ الأَمْرِ شَيْءٌ أَوْ يَتُوبَ عَلَيْهِمْ أَوْ يُعَذِّبَهُمْ فَإِنَّهُمْ ظَالِمُونَ (آل عمران :١٢٨)". سَمِعْتُ عَبْدَ بْنَ حُمَيْدٍ، يَقُولُ: غَلِطَ يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ فِي هَذَا، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (1)

**ترجمه** دانس رضي الله عنه بيان دي چې درسول الله صلي الله عليه وسلم په مخ مبارك وينه اوبهيدلي شوه او غابښونه يي مات كړي شول او اوګه يي په كانړي اوويشتلي شوله تردي چې په مخ يي وينه اوبهيدله چې په لاس يي پاكوله او فرمائيل يي څنګه به كامياب شي داسي قوم چاچې دخپل پيغمبر سره داسي كار كړي وي او هغه يي الله تعالي ته رابلي نو دي وخت كي ايت كريمه "لَيْسَ لَكَ مِنَ الأَمْرِ شَيْءٌ أَوْ يَتُوبَ عَلَيْهِمْ أَوْ يُعَذِّبَهُمْ " نشته تا لره د اختيار نه څه څيز. يا به مهرباني اوكړي الله تعالى په دوي باندى يا به عذاب وركړي پس يقينا دوي ظالمان دي. نازل شو.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي مادعبد بن حميد نه اوريدلي دي چې ديزيد بن هارون نه دي معامله كي غلطي شوي ده.

****************

٣٠٠٤_حَدَّثَنَا أَبُو السَّائِبِ سَلْمُ بْنُ جُنَادَةَ بْنِ سَلْمٍ الْكُوفِيُّ، حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ بَشِيرٍ، عَنْ عُمَرَ بْنِ حَمْزَةَ، عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ

---

1 ـ اورده البخاري في الجامع/المغازي٢١، مسلم/الجهاد ٣٨(١٧٩١)، سنن ابن ماجه/الفتن ٢٣(٤٠٢٧)، تحفة الأشراف: ٤٨٤)، ومسند احمد(٣/٩٩، ١٧٨، ٢٠١، ٢٠٦، ٢٥٢، ٢٨٨)

أُحُدٍ: " اللَّهُمَّ الْعَنْ أَبَا سُفْيَانَ. اللَّهُمَّ الْعَنِ الْحَارِثَ بْنَ هِشَامٍ. اللَّهُمَّ الْعَنْ صَفْوَانَ بْنَ أُمَيَّةَ. قَالَ: فَنَزَلَتْ: لَيْسَ لَكَ مِنَ الأَمْرِ شَيْءٌ أَوْ يَتُوبَ عَلَيْهِمْ أَوْ يُعَذِّبَهُمْ (آل عمران :١٢٨)فَتَابَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ فَأَسْلَمُوا فَحَسُنَ إِسْلَامُهُمْ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ يُسْتَغْرَبُ مِنْ حَدِيثِ عُمَرَ بْنِ حَمْزَةَ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، وَقَدْ رَوَاهُ الزُّهْرِيُّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، لَمْ يَعْرِفْهُ مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ مِنْ حَدِيثِ عُمَرَ بْنِ حَمْزَةَ، وَعَرَفَهُ مِنْ حَدِيثِ الزُّهْرِيِّ. ([1])

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما بيان دي فرماني چې رسول الله صلي الله عليه وسلم دغزوه احد په ورځ اوفرمائيل اي الله لعنت نازل كړي په ابو سفيان. اي الله لعنت نازل كړي په حارث بن هشام، اي الله لعنت نازل كړي په صفوان بن اميه تردي چې دا ايت كريمه " لَيْسَ لَكَ مِنَ الأَمْرِ شَيْءٌ أَوْ يَتُوبَ عَلَيْهِمْ أَوْ يُعَذِّبَهُمْ " نشته تا لره د اختيار نه څه څيز يا به مهرباني اوكړي الله تعالى په دوي باندى يا به عذاب وركړي پس يقينا دوي ظالمان دي. نازل شو نو الله تعالي دوئ ته دتوبي توفيق وركړو او اسلام يي قبول كړو او ددوئ اسلام بهتر ثابت شو

امام ترمذي وايي: داحديث حسن غريب دي دا حديث عمر بن حمزه عن سالم عن ابيه سند سره غريب دي ، زهري هم دسالم نه او هغه دخپل پلار نه دا روايت نقل كړي دي، امام بخاري داحديث دعمر بن حمزه په سند نه پيژني بلكه دزهري په سند يي پيژني

***************

٣٠٠٥_حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ حَبِيبِ بْنِ عَرَبِيٍّ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا خَالِدُ ابْنُ الْحَارِثِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَجْلَانَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " كَانَ يَدْعُو عَلَى أَرْبَعَةِ نَفَرٍ فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَبَارَكَ وَتَعَالَى: لَيْسَ لَكَ مِنَ الأَمْرِ شَيْءٌ أَوْ يَتُوبَ عَلَيْهِمْ أَوْ يُعَذِّبَهُمْ فَإِنَّهُمْ ظَالِمُونَ (آل عمران :١٢٨) فَهَدَاهُمُ اللَّهُ لِلْإِسْلَامِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ صَحِيحٌ يُسْتَغْرَبُ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ مِنْ حَدِيثِ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، وَرَوَاهُ يَحْيَى بْنُ أَيُّوبَ، عَنِ ابْنِ عَجْلَانَ. ([2])

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما بيان دي فرماني چې رسول الله صلي الله عليه

---

[1] _ تفرد به المؤلف. وراجع: اورده البخاري في الجامع الصحيح/المغازي٢١ (٦٩،٣) (تحفة الأشراف: ٦٨٠٠)

[2] _ تفرد به المؤلف. وراجع: اورده البخاري في الجامع الصحيح/المغازي٢١ (٢٠٦٩، ٢٠٤٠) (تحفة الأشراف: ٨٣٢٦)

وسلم څلورو کسانو ته خيري کولي نو الله تعالي ايت کريمه "لَيْسَ لَكَ مِنَ الأَمْرِ شَيْءٌ أَوْ يَتُوبَ عَلَيْهِمْ أَوْ يُعَذِّبَهُمْ " نشته تا لره د اختيار نه څه څيز يا به مهرباني اوکړي الله تعالى به دوي باندی يا به عذاب ورکړي پس يقينا دوي ظالمان دي . نازل کړو او بيا الله تعالي هغوی ته داسلام قبلولو هدايت او توفيق ورکړو.
امام ترمذي وايي داحديث حسن غريب صحيح دي، يعني په سند دنافع عن ابن عمر. دا حديث يحي بن ايوب هم دابن عجلان نه نقل کړي دي

**تشريح** دا دَ جنگ أحد سره متعلق دی او په مينځ کي د جملی معترضی په طريقه سره واقعه د بدر ده او د دی ايت شان نزول داسی دی انس رضي الله عنه فرماني د رعل ذکوان عصيته او بني لحيان قبيلو د رسول الله صلی عليه وسلم نه ( د دشمن په ه قابله کي ، مدد اوغوښتلو. نو رسول الله صلي الله عليه وسلم د هغوي سره او يا کسان د انصارو نه اوليږل چې هغوي په خپله زمانه کي په قراء مشهور وؤ دوي به د ورځی لرگي راغوندول او د شپی به يې مونځونه کول کله چې دوي بئرمعونه ته راورسيدل. نو دی قبائلو وعده ماته کړه او هغه او يا کسان يې اووژل. چې دا خبر نبي صلی الله عليه وسلم ته راغی نو هغوي يوه مياشت د سحر په مونځ کي هغوي ته بددعا کوله (متفق عليه)
کله چې به رسول الله صلی الله عليه وسلم د سحر په مونځ کي د دويم رکعت نه سر پورته کړو نو د سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَهُ نه روستو به يې وئيل ای الله تعالی په فلاني فلاني او فلاني باندی لعنت اوکړی نو الله تعالی دا ايت نازل کړو. (صحيح بخاري)
انس رضي الله عنه فرماني. په جنگ احد کي د رسول الله صلی الله عليه وسلم مخکنی غاښ (مبارک) مات شو او سر (مبارک) يې زخمي شو. هغوي د مخ (مبارک) نه وينه لری کوله او دا يې فرمانيل. چې هغه خلق به څنگه خلاصی اومومي. چې د خپل نبي سر يې زخمي کړو او غاښ يې مات شو په دی حال کي چې هغه دوي الله تعالی ته رابلي نو الله تعالی دا ايت نازل کړو (صحيح مسلم)
نو د دی حديثونو نه معلومه شوه چې دا دری صدمی رسول الله صلی الله عليه وسلم ته په يو وخت يا په يو بل پسی اورسيدلی نو رسول الله صلی عليه وسلم په کفارو باندی قنوت نازله کوله نو الله تعالی دا ايت نازل کړو يعني د دی خلقو د توبی يا د عذاب اختيار ناسره نشته يا عام مراد دی چې د الله تعالی په کارونو کي ستا څه وس نه رسي نو دا رد دی د شرک في التصرف دَ نبی صلی الله عليه وسلم نه او په هغه بی عقله خلقو باندی رد دی چې هغوي نبی صلی الله عليه وسلم مختار کل گڼري
أَوْيَتُوبَ عَلَيْهِمْ. يعني يا به دوي له توفيق د توبی ورکړي نو توبه به اوباسي بعضو په کي

اسلام قبول کړو لکه ابوسفيان او حارث بن هشام او يُعَذِّبَهُمْ د دی نه مراد د دنيا عذاب دی يا د اخرت هغه چاته چې د کفر نه توبه نۀ کوي

فَإِنَّهُمْ ظَلِمُونَ. دا د يُعَذِّبَهُمْ دپاره علت دی او د ظلم نه مراد په کفر او شرك باندی کلك پاتی كيدل دي

****************

٣٠٠٦ـحَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ عُثْمَانَ بْنِ الْمُغِيرَةِ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ رَبِيعَةَ، عَنْ أَسْمَاءَ بْنِ الْحَكَمِ الْفَزَارِيِّ، قَالَ: سَمِعْتُ عَلِيًّا، يَقُولُ: إِنِّي كُنْتُ رَجُلًا إِذَا سَمِعْتُ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَدِيثًا نَفَعَنِي اللَّهُ مِنْهُ بِمَا شَاءَ أَنْ يَنْفَعَنِي، وَإِذَا حَدَّثَنِي رَجُلٌ مِنْ أَصْحَابِهِ اسْتَحْلَفْتُهُ، فَإِذَا حَلَفَ لِي صَدَّقْتُهُ، وَإِنَّهُ حَدَّثَنِي أَبُو بَكْرٍ وَصَدَقَ أَبُو بَكْرٍ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: " مَا مِنْ رَجُلٍ يُذْنِبُ ذَنْبًا ثُمَّ يَقُومُ فَيَتَطَهَّرُ، ثُمَّ يُصَلِّي ثُمَّ يَسْتَغْفِرُ اللَّهَ إِلَّا غَفَرَ لَهُ، ثُمَّ قَرَأَ هَذِهِ الْآيَةَ وَالَّذِينَ إِذَا فَعَلُوا فَاحِشَةً أَوْ ظَلَمُوا أَنْفُسَهُمْ ذَكَرُوا اللَّهَ فَاسْتَغْفَرُوا (آل عمران :١٣٥) إِلَى آخِرِ الْآيَةِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ قَدْ رَوَاهُ شُعْبَةُ وَغَيْرُ وَاحِدٍ، عَنْ عُثْمَانَ بْنِ الْمُغِيرَةِ، فَرَفَعُوهُ وَرَوَاهُ مِسْعَرٌ، وَسُفْيَانُ، عَنْ عُثْمَانَ بْنِ الْمُغِيرَةِ فَلَمْ يَرْفَعَاهُ، وَقَدْ رَوَاهُ بَعْضُهُمْ، عَنْ مِسْعَرٍ فَأَوْقَفَهُ وَرَفَعَهُ بَعْضُهُمْ، وَرَوَاهُ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، عَنْ عُثْمَانَ بْنِ الْمُغِيرَةِ فَأَوْقَفَهُ، وَلَا نَعْرِفُ لِأَسْمَاءَ بْنِ الْحَكَمِ حَدِيثًا إِلَّا هَذَا. [1]

**ترجمه** داسماء بن حکم ﷺ نه روايت دي فرمائي چې دعلي ﷺنه مي اوريدلي دي زه يو داسی سړی يم چې کله به می درسول الله صلي الله عليه وسلم نه حديث واوريدو نوالله تعالي به په هغه باندي ماته فائده راکوله څومره چې به دهغه خوښه وه اوکله چې به راته په صحابوکې چا حديث بيان کړو نومابه ورته قسم ورکړو نوکه چري قسم به نی وکړو نومابه نی تصديق وکړو اوعلي ﷺوائي چې ماته ابوبکرﷺحديث بيان کړی وو اوابوبکرريشتياونيلي وو چې مادرسول الله صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي وو هريوبنده چې يوه ګناه اوکړي اودالله نه بخنه اوغواړي نوالله تعالي ئی معاف کوي اوبيائی دا ذکرشوی ايت ولوستو وَالَّذِينَ إِذَا فَعَلُوا فَاحِشَةً أَوْ ظَلَمُوا أَنْفُسَهُمْ ذَكَرُوا اللَّهَ فَاسْتَغْفَرُوا.

[1] ـ اخرجه ابوداود باب في الاستغفار، وانظر حديث رقم ٢٠٦

امام ترمذي وايي دا حديث شعبه او نورو راويانو دعثمان بن مغيره نه نقل كړي دي او هغوئ مرفوع بيان كړي دي مګر مصعر او سفيان دعثمان بن مغيره نه مرفوع نه دي نقل كړي دي، بعضي راويانو دا د مصعر نه موقوف نقل كړي دي او بعضو ورنه مرفوع نقل كړي دي، او سفيان ثوري دعثمان بن مغيره نه موقوف نقل كړي دي.ددي روايت نه علاوه داسماء بن حكم بل روايت مونږ ته نه دي معلوم

***************

٣٠٠٧_حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، حَدَّثَنَا رَوْحُ بْنُ عُبَادَةَ، عَنْ حَمَّادِ بْنِ سَلَمَةَ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ أَنَسٍ، عَنْ أَبِي طَلْحَةَ، قَالَ: " رَفَعْتُ رَأْسِي يَوْمَ أُحُدٍ فَجَعَلْتُ أَنْظُرُ، وَمَا مِنْهُمْ يَوْمَئِذٍ أَحَدٌ إِلَّا يَمِيدُ تَحْتَ حَجَفَتِهِ مِنَ النُّعَاسِ، فَذَلِكَ قَوْلُهُ عَزَّ وَجَلَّ: ثُمَّ أَنْزَلَ عَلَيْكُمْ مِنْ بَعْدِ الْغَمِّ أَمَنَةً نُعَاسًا (آل عمران :١٥٤)". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ. (١)

**ترجمه** : دابو طلحه رضي الله عنه بيان دي فرمائي چې دغزوه احد په ورځ مي خپل سر پورته كړو او اخوا ديخوا مي اوكتل نو په دغه ورځ داسي هيڅوك نه وو چې سر يي دخوب په وجه په سينه رازوړند شوي نه وو پس دالله تعالي دقول "ثم انزل عليكم من بعدالغم امنة نعاسا" همدا مفهوم او مراد دي.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي.

## دطلحه بن زيد حالات

نوم زيد كنيه ابو طلحه دبني نجار قبيلي عمرو بن مالك خاندان سره يي تعلق دى دپلار نوم يي سهل بن اسود وو او دمور نوم يي عباده وه دجاهليت په زمانه كې دعامو عربو پشان بت پرست او شرابي وو تقريبا دشلو كالو په عمر كې په اسلام كې داخل شو او دمسلمانيدو واقعه يي داسي ده چې مصلين ته يي دنكاح پيغام وركړو نو هغې ورباندي دمسلمانيدو شرط اولګولو ددي اثر دا وو چې دده په زړه كې داسلام حقيقت داخل شو او مسلمان شو كاركردګي يي داسي ده چې درسول الله صلي الله عليه وسلم سره هميشه په غزواتو كې شريك شوى دى او په هر يو جنګ كې يي ښه بهادري خودلي ده دا هغه صحابي دى چاچې درسول الله صلي الله عليه وسلم دپاره قبر كنستلى وو درسول الله سره يي دومره محبت وو چې دهغه دوفات كيدو نه پس يي دهغه دناستي خاي خالي ليدل برداشت كولى نشول نوپه دي وجه شام ته لاړو او بيابه دپريشانيدو نه پس واپس دقبر زيارت ته راتلو دعمر رضي الله عنه د امارت په زمانه كې

---

[1] ــ اورده البخاري في الجامع الصحيح/المغازي٢١ (٤٠٦٨)، وتفسير آل عمران١١ (٤٥٦٢) (تحفة الأشراف: ٣٧٧١)

هغه دمسائلو دحل دپاره دشپږ کسانو انتخاب کړی وو چې يو په هغوئ کې ابو طلحه هم وو.
دده دوفات کيدو په کال کې اختلاف دی بعضو ۳۱او بعضو ۳۲هجري خودلي دی او بعضو ۵۱هجري خودلي دی کوم چې صحت ته زيات نژدي دی دمروياتو شمير يې ۹۲ دی دده مزيد حالات تهذيب التهذيب الاصابه او تذکرة الحفاظ او بخاري کتاب المغازي وغيره کې کتلی شئ

****************

حَدَّثَنَا رَوْحُ بْنُ عَبَادَةَ، عَنْ حَمَّادِ بْنِ سَلَمَةَ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ الزُّبَيْرِ، مِثْلَهُ، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه** عروه بن زبير هم دخپل پلار په واسطه دماقبل هم معني روايت نقل کړي دي
امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي.

****************

۳۰۰۸_حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ حَمَّادٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى بْنُ عَبْدِ الْأَعْلَى، عَنْ سَعِيدٍ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ أَبَا طَلْحَةَ، قَالَ: " غُشِينَا وَنَحْنُ فِي مَصَافِّنَا يَوْمَ أُحُدٍ، حَدَّثَ أَنَّهُ كَانَ فِيمَنْ غَشِيَهُ النُّعَاسُ يَوْمَئِذٍ، قَالَ: فَجَعَلَ سَيْفِي يَسْقُطُ مِنْ يَدِي وَآخُذُهُ، وَيَسْقُطُ مِنْ يَدِي وَآخُذُهُ، وَالطَّائِفَةُ الْأُخْرَى الْمُنَافِقُونَ لَيْسَ لَهُمْ هَمٌّ إِلَّا أَنْفُسُهُمْ، أَجْبَنُ قَوْمٍ وَأَرْعَبُهُ وَأَخْذَلُهُ لِلْحَقِّ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[2]

**ترجمه** دانس رضي الله عنه بيان دي ابو طلحه رضي الله عنه اوفرمائيل مونږ په غزوه احد کې پخپلو صفونو کې موجود وو چې په مونږ باندې پرکالي راغله طلحه وائي زه په هغه کسانو کې وم چا باندې چې په دغه ورځ پرکالي راخوره شوې وه داسې حالت راخور شوي وو چې توره مې دلاس نه پريوتله او ما به نيوله او هغه به مې دلاس نه بيا پريوتله او ما به ټينګوله. دويمه ډله دمنافقانو وه دچاسره چې صرف دخپل ځانونو دحفاظت فکر وو دوئ په خلقو کې دهر ځانه زيات بزدل او دهر ځانه زيات ويريدونکي وو او حق لره دهر ځانه زيات پريخودونکي وو.
امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي

****************

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ۳۶۳۱)

[2] _ انظر حديث رقم ۳۰۰۷

٣٠٠٩_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الوَاحِدِ بْنُ زِيَادٍ، عَنْ خُصَيْفٍ، حَدَّثَنَا مِقْسَمٌ، قَالَ: قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: "نَزَلَتْ هٰذِهِ الآيَةَ وَمَا كَانَ لِنَبِيٍّ أَنْ يَغُلَّ (آل عمران :١٦١) فِي قَطِيفَةٍ حَمْرَاءَ افْتُقِدَتْ يَوْمَ بَدْرٍ، فَقَالَ بَعْضُ النَّاسِ: لَعَلَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَخَذَهَا، فَأَنْزَلَ اللهُ وَمَا كَانَ لِنَبِيٍّ أَنْ يَغُلَّ (آل عمران :١٦١) إِلَى آخِرِ الآيَةِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَقَدْ رَوَى عَبْدُ السَّلَامِ بْنُ حَرْبٍ، عَنْ خُصَيْفٍ نَحْوَ هَذَا، وَرَوَى بَعْضُهُمْ هَذَا الحَدِيثَ عَنْ خُصَيْفٍ، عَنْ مِقْسَمٍ، وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ. [1]

**ترجمه**: دعبدالله بن عباس رضي الله عنه نه روايت دي فرماني چې دا ايت كريمه (وَمَا كَانَ لِنَبِيٍّ أَنْ يَغُلَّ) ديوسورڅادرېه باره كې نازل شوي دي كوم چې دغزوه بدرپه ورځ ورك شوي وو،داڅادرچې كله ورك شو،نوخلقوونيل كيدي شي چې داڅادر رسول الله صلي الله عليه وسلم اخستلي وي نوددوي په جواب كې الله تعالي دا ايت كريمه نازل كړو

امام ترمذي وايي: داحديث حسن غريب دي، عبدالسلام بن حرب دخصيف نه ددي پشان روايت نقل كړي دي او بعضي راويانو داحديث په سند د خصيف عن مقسم نقل كړي دي ليكن دوی په سند كې دابن عباس واسطه نه ده ذكر كړي

***************

٣٠١٠_حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ حَبِيبِ بْنِ عَرَبِيٍّ، حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِبْرَاهِيمَ بْنِ كَثِيرٍ الأَنْصَارِيُّ، قَالَ: سَمِعْتُ طَلْحَةَ بْنَ خِرَاشٍ، قَالَ: سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللهِ، يَقُولُ: لَقِيَنِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ لِي: "يَا جَابِرُ، مَا لِي أَرَاكَ مُنْكَسِرًا؟ قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ، اسْتُشْهِدَ أَبِي، قُتِلَ يَوْمَ أُحُدٍ وَتَرَكَ عِيَالًا وَدَيْنًا، قَالَ: أَفَلَا أُبَشِّرُكَ بِمَا لَقِيَ اللهُ بِهِ أَبَاكَ؟ قَالَ: قُلْتُ: بَلَى يَا رَسُولَ اللهِ، قَالَ: مَا كَلَّمَ اللهُ أَحَدًا قَطُّ إِلَّا مِنْ وَرَاءِ حِجَابٍ، وَأَحْيَا أَبَاكَ فَكَلَّمَهُ كِفَاحًا، فَقَالَ: يَا عَبْدِي، تَمَنَّ عَلَيَّ أُعْطِكَ، قَالَ: يَا رَبِّ، تُحْيِينِي فَأُقْتَلَ فِيكَ ثَانِيَةً، قَالَ الرَّبُّ عَزَّ وَجَلَّ: إِنَّهُ قَدْ سَبَقَ مِنِّي أَنَّهُمْ إِلَيْهَا لَا يُرْجَعُونَ، قَالَ: وَأُنْزِلَتْ هٰذِهِ الآيَةَ وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ قُتِلُوا فِي سَبِيلِ اللهِ أَمْوَاتًا (آل عمران :١٦٩)". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الوَجْهِ، وَلَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ مُوسَى بْنِ إِبْرَاهِيمَ، وَرَوَاهُ عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللهِ بْنِ المَدِينِيِّ وَغَيْرُ وَاحِدٍ مِنْ كِبَارِ أَهْلِ الحَدِيثِ، هَكَذَا عَنْ مُوسَى بْنِ

---

[1] _ سنن ابي داود/ الحروف ٣ (٣٩٧١) (تحفة الأشراف : ٦٢٨٤)

إِبْرَاهِيمَ. وَقَدْ رَوَى عَبْدُ اللهِ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ عَقِيلٍ، عَنْ جَابِرٍ شَيْئًا مِنْ هَذَا. (1)

**ترجمه** دعبدالله بن جابر رضي الله عنه بيان دي فرمائي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم زما سره مخامخ شو او ويې فرمائيل اي جابره څه خبره ده چې مات مات دي وينم ما اوونيل اي دالله رسوله زما پلار په غزوه احد كي شهيد كړې شوې دي او دهغه نه واړه ماشومان او قرض پاتي شوي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل ايا تاته يو زيري درنكړم چې دالله تعالي سره دملاقات په وخت كي ستا پلار ته الله تعالي څه وئيلي دي هغه اوونيل ولي نه اي دالله رسوله رسول الله اوفرمائيل الله تعالي هيڅ كله دچاسره دپردي نه بغير كلام نه دي كړي ليكن ستا پلار يي ژوندي كړو او بيا يي ورسره بغير دپردي نه مخامخ خبري اوكړي او ويي فرمائيل اي زما بنده زما نه دڅه څيز دغوښتلو تمنا كوي زه به يي دركوم هغه اوونيل اي زما پروردگاره ما دوباره ژوندي كړه تردي چې زه ستا په لاره كي دوباره شهيد كړې شم الله تعالي اوفرمائيل زما دطرفه دافيصله شوي ده "انهم الينا لا يرجعون" يعني چې دنياته دوباره تلل نشته. راوي وائي چې ايت كريمه " وَلا تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ قُتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَمْوَاتًا " په همدي سلسله كي نازل شوي دي.

امام ترمذي وايي: داحديث په دي سند حسن غريب دي، عبدالله بن محمد بن عقيل ددي حديث څه حصه دجابر رضي الله عنه نه نقل كړې ده او دا حديث موږ صرف دموسي بن ابراهيم په سند پيژنو، اودا حديث علي بن عبدالله مديني او بعضي نورومحدثينو دموسي بن ابراهيم په واسطه په همدي مضمون نقل كړي دي.

***************

٣٠١١ـ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُرَّةَ، عَنْ مَسْرُوقٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، أَنَّهُ سُئِلَ عَنْ قَوْلِهِ: " وَلا تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ قُتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَمْوَاتًا بَلْ أَحْيَاءٌ عِنْدَ رَبِّهِمْ يُرْزَقُونَ (آل عمران :١٦٩)، فَقَالَ: أَمَا إِنَّا قَدْ سَأَلْنَا عَنْ ذَلِكَ فَأُخْبِرْنَا، أَنَّ أَرْوَاحَهُمْ فِي طَيْرٍ خُضْرٍ تَسْرَحُ فِي الْجَنَّةِ حَيْثُ شَاءَتْ وَتَأْوِي إِلَى قَنَادِيلَ مُعَلَّقَةٍ بِالْعَرْشِ، فَاطَّلَعَ إِلَيْهِمْ رَبُّكَ اطِّلاعَةً، فَقَالَ: هَلْ تَسْتَزِيدُونَ شَيْئًا فَأَزِيدُكُمْ ؟ قَالُوا: رَبَّنَا وَمَا نَسْتَزِيدُ وَنَحْنُ فِي الْجَنَّةِ نَسْرَحُ حَيْثُ شِئْنَا. ثُمَّ اطَّلَعَ إِلَيْهِمُ الثَّانِيَةَ فَقَالَ: هَلْ تَسْتَزِيدُونَ شَيْئًا فَأَزِيدُكُمْ ؟ فَلَمَّا رَأَوْا أَنَّهُمْ لَمْ يُتْرَكُوا قَالُوا: تُعِيدُ أَرْوَاحَنَا فِي أَجْسَادِنَا حَتَّى نَرْجِعَ إِلَى الدُّنْيَا فَنُقْتَلَ فِي سَبِيلِكَ مَرَّةً

1 ـ سنن ابن ماجه/المقدمة ١٣ (١٩٠)، والجهاد ١٦ (٢٨٠٠) (تحفة الأشراف : ٢٢٨٤)

أُخرَى". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.

حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ السَّائِبِ، عَنْ أَبِي عُبَيْدَةَ، عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ مِثْلَهُ، وَزَادَ فِيهِ "وَتُقْرِئُ نَبِيَّنَا السَّلَامَ وَتُخْبِرُهُ عَنَّا أَنَّا قَدْ رَضِينَا وَرُضِيَ عَنَّا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. (1)

**ترجمه**: مروي دي چې دابن مسعود رضي الله عنه نه دايت كريمه " وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ قُتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَمْوَاتًا بَلْ أَحْيَاءٌ عِنْدَ رَبِّهِمْ يُرْزَقُونَ " اوخوك چې دالله په لاره كي وژلي شوي دي دوئ ته مړه مه وايئ ، دتفسير باره كي تپوس اوكړي شو نو ويې فرمائيل واورئ مونږ درسول الله صلي الله عليه وسلم نه ددي ايت دتفسير تپوس كړي وو نو مونږ ته يې اوفرمائيل دشهيدانو روحونه به دشنو مرغو په شكل كي وي او چې په جنت كي يې كوم خاي خوښ وي هلته به گرځي او ماښام وخت كي دعرش لاندي قنديلونو كي ارام كوي او شپه تيروي، يو خل ستاسو رب هغوئ ته راكوز شو او يو نظر يې ورته اوكتل او تپوس يې اوكړو ستاسو دپاره مزيد څه ځيز ته ضرورت شته چې زه يې دركړم هغوئ اووئيل اي زمونږ پروردګاره مونږ مزيد نور هيڅ نه غواړو زمونږ چې په جنت كي كوم خاي خوښ وي هلته گرځو بيا دوباره يوه ورځ الله تعالي دوئ طرف ته نزول اوكړو او ويې فرمائيل ايا مزيد څه ضرورت شته چې زه يې دركړم؟ هر كله چې هغوئ اوكتل چې الله تعالي په وركولو قادر دي او دڅه ځيز دغوښتلو نه بغير څه چاره نشته نو هغوئ اووئيل زمونږ روحونه زمونږ جسمونو ته دوباره واپس كړه تردي چې مونږ دنيا ته واپس لاړ شو او بيا دوباره ستا په لاره كي قتل كړي شو

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي.

**تشريح**: وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ قُتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَمْوَاتًا ترمذي په حسن سند سره او ابن خزيمه په صحيح سند سره او ابن ماجه اوبغوي دعبدالله بن جابر رضي الله عنه نه روايت بيان كړي دي فرمائيل ئي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم راسره ملاو شو او فرمائيل ئي اي جابره څه وجه ده چې دخفګان په حالت كي دي وينم ما عرض وكړو چې اي دالله رسوله زما پلار شهيد شو او واړه بچي ئي پاتي شو اوقرض وربandي هم دي نو راته ئي اوفرمائيل ايا زيري درته درنكړم چې ستا پلار دالله تعالي سره په څنګه شان كي مخامخ شوي دي ، ما عرض وكړو ولې نه نو وئې فرمائيل الله تعالي چې دهر چا سره خبري كړي دي نو دپردي نه اخوائي

---

1 - صحيح مسلم/الإمارة (١٨٨٧) . سنن ابن ماجه/الجهاد ١٦ (٢٨٠١) (تحفة الأشراف : ٩٥٧٠) . وسنن الدارمي/الجهاد ١٩ (٢٤٥٣)

ورسره کړي دي ليکن ستا پلار نی ژوندي کړو اومخامخ خبري ئي ورسره وکړي او ورته ئي اوفرمائيل اي زما بنده خپله ارزو دي راته بيان کړه چې پوره ئي کړم ، ستاپلار ووئيل اي زما ربه ماژوندي کړه چې دوباره ستا په لاره کې قتل کړي شم الله تعالي ورته اوفرمائيل زما فيصله مخکي شوي ده (چې دمرګ نه پس) واپس دنيا ته تلل نشته . دراوي بيان دي چې بيا دشهيدانو په باره کي ايت کريمه: وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ قُتِلُوا فِي سَبِيلِ اللهِ أَمْوَاتًا .الاية . نازل شو.

مسلم، امام احمد ، حاکم، اوبغوي دابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي کله چې داحد په ورځ ستاسو رونړه ووژلي شول نو الله تعالي ددوی روحونه دشنو مرغوپه ججورو کي داخل کړل اودجنت نهرونو ته ورځي، يعني دجنت دنهرونو نه او به څکي، دجنت ميوي خوري اوپه جنت کي چې ئي چرته خوښه وي ګرځي اود اوده کيدو دپاره هغه قنديلونو ته ورځي کوم چې دعرش دلاندي زوړند دي ، کله چې دوی خپل عمده خوابګاه اوخوراك ښنباك اوليدو او الله تعالي چې ددوی دپاره کوم عزت فراهم کړي دي ددي معائنه ئي وکړه نو وئي وئيل کاش چې زمونږ قوم ته زمونږ موجوده حالت اود الله تعالي سلوك معلوم شوي وي تردي چې دهغوی هم دجهاد سره رغبت پيدا شوي وي اودجهاد نه ئي مخ نه اړولي، الله تعالي به اوفرمائي زه به ورته ستاسو دطرف نه اطلاع ورکړم اوستاسو ورونړو ته به ستاسو خبر ور ورسوم شهداؤ چې دا واوريدل نوهشاش بشاش شول نو الله تعالي دا ايت نازل کړو.

ابن المنذر دانس رضي الله عنه نه روايت بيان کړي دي کله چې حمزه رضي الله عنه اودده ملګري په احد کې شهيدان شول نوشهيدانو ووئيل کاش چې زمونږ ورونړو ته څوك زمونږ خبر ورسوي چې الله تعالي مونږ ته کوم عزت راکړي دي الله تعالي دوی ته وحي وليږله چې زه به ورته ستاسو دطرف نه اطلاع ورکړم اوستاسو ورونړو ته به ستاسو خبر ور ورسوم پس الله تعالي ايت کريمه وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ قُتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَمْوَاتًا بَلْ أَحْيَاءٌ عِنْدَ رَبِّهِمْ يُرْزَقُونَ . فَرِحِينَ بِمَا آتَاهُمُ اللَّهُ مِنْ فَضْلِهِ وَيَسْتَبْشِرُونَ بِالَّذِينَ لَمْ يَلْحَقُوا بِهِمْ مِنْ خَلْفِهِمْ أَلَّا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ . يَسْتَبْشِرُونَ بِنِعْمَةٍ مِنَ اللَّهِ وَفَضْلٍ وَأَنَّ اللَّهَ لَا يُضِيعُ أَجْرَ الْمُؤْمِنِينَ. نازل کړو

داهم وئيلي شوي دي چې دشهيدانو عزيزانو او اقاربوته چې په دنيا کي کوم راحت اونعمت ملاويږي نودوی افسوس کوي چې مونږ مزي کوو اوزمونږ ورونړه اوپلرونه اوځامن په قبرونو کي دي کاش چې هغوی هم زمونږ سره وي، د "لاتحسبن" خطاب ياخو رسول الله صلي الله عليه وسلم ته دي ياد شهيدانو اقاربوته دي داهم کيدي شي چې منافقانو ته خطاب وي څکه

چې په طوز دطعن هغوی وئیلي وو لو أطاعُونا ما قُتلُوا . پدې وخت کې به دا ایت دقل په ذیل کې داخل وي یعني دقل مفعول به شي،
دسبیل الله نه مراد جهاد دي. دالفظ عام دي دهرخیر په لاره کې مړکیدو ته شامل دي . مګر دلفظ قتل په وجه دنورو خیرونو په لارو کې مړکیدوته به صراحتا شامل نه وي مګرپه دلالت النص سره په درجه اولي یاکم از کم به بالمساوات شامل شي . یادنفس سره جهاد کونکي لره دي په مقتول في سبیل الله باندې قیاس کړې شي خکه چې دخپل نفس سره جهاد کول جهاد اکبر دي اوجهاد اصغر نه زیات سخت دي . اود اموات نه هغه مړي مراد دي کوم چې دراحت اولذت احساس نه کړي
بَلْ أَحْيَاءٌ .. بلکه هغوی ژوندي دي ابوالعالیه ددې فقرې په تشریح کې وئیلي دي چې هغه به دشنو مرغو په شکل باندې وي په جنت کې چې یې چرته خوښه وي الوزي به ،رواه ابوحاتم، بغوي لیکلي دي چې دقیامت دورځې پورې هره شپه دعرش دلاندې ددوی روحونه رکوع اوسجدې کوي
ابن منذر دطلحه بن عبدالله رضي الله عنهما نه روایت کړې دي فرمائي چې زه په ځنګل کې دخپلو اوښانو په تلاش کې ګرځیدم او هلته په ما باندې شپه راغله نو مادعبدالله بن عمرو بن حرام دقبر سره قیام اوکړو هلته دقبر نه ماته دقران لوستو پشان داسې ښه اواز راغې چې دهغې نه بهتر اواز چرته ما نه وو اوریدلې. زه واپس راغلم اودرسول الله په خدمت کې حاضر شوم او ددې ذکر مې اوکړو نبي علیه السلام اوفرمائیل هغه عبدالله وو ایا تاسو ته نه ده معلومه چې الله تعالی ددې شهیدانو روحونه دقبض کولونه پس دزمرود اویاقوت په قندیلونوکې دجنت په مینځ کې ایخودلي دي اوقندیلونه یې په جنت کې زوړند کړې دي کله چې شپه راشي نو ددوی روحونه واپس راوګرځولې شي او ټوله شپه داسې اوسیږي بیا چې سحر راوخیژي نو دا روحونه واپس خپلو مقاماتو ته ،قندیلونوته، لاړ شي . په دې قول باندې شهید ته دمرګ نه پس دطاعاتو ثواب اودرجې هم ملاویږي شهید په قبر کې رزیږي او پرسیږي نه اونه یې زمکه خوري دا دهغه دزندګۍ په نښاناتو کې یوه نښانه ده
بیهقي په خپل سند سره او ابن سعد او بیهقي په نورو سندونو سره اومحمد بن عمرو دخپلو مشانخو په سند سره نقل کړې دي چې جابر رضي الله عنه فرمائیلي دي کله چې معاویه رضي الله عنه نهر جاري کړو نو مونږه داحد دشهیدانو مزارونو ته اورسیدو اودوی مو بهر راوویستل او.اومولیدل چې تر اوتازه پراته دي اوددوی په لاسونو اوخپو کې دژوندو پشان لچك دي . دمحمد بن عمرو دمشانخو بیان دي چې خلقو دجابر رضي الله عنه پلار لره په داسې حالت کې اومندو چې خپل لاس یې په زخم باندې ایخودلي وو کله چې لاس دزخم نه جدا کړې شو نو وینه ورنه راوخوټکیدله نو مجبورا لاس واپس پخپل ځاې باندې کیخودې

شو نو وينه ودريده. دجابر رضي الله عنه بيان دي ما چې خپل پلار په قبر کي اوليدو نو داسي ښکاريدو لکه چې اوده وي اودکومي کرخي والاکمبلي نه چې ورته کفن ورکړي شوي وو هغه هم دغسي پرته وه اوحال دادي چې دهغه څلويښت کاله شوي وو. په دي شهيدانو کي ديو کس په پنډۍ باندي دپلك ګذار اولګيدو نو وينه ورنه راووته. مشائخو وئيلي دي چې دا حمزه رضي الله عنه وو. ابوسعيد خدري رضي الله عنه فرمائيلي دي ددينه پس کوم منكر (دحيات شهداء نه) انکار نه شي کولي خلقو به ددي مزارونو خاوري کنستلي کله چې به يي لږه غوندي خاوره هم اوکنستله نود مشکو پشان خوشبوبه يي کوله.

بغوي دعبيد بن عمير بيان نقل کړي دي چې داحد نه دواپسۍ په وخت کي درسول الله صلي الله عليه وسلم تيريدل دمصعب بن عمير رضي الله عنه په خوا کي اوشو مصعب بن عمير شهيد شوي وو نورسول الله صلي الله عليه وسلم دده خواته اودريدو اودده دپاره يي دعا اوغوښتله او بيا يي دا ايت کريمه. مِنَ الْمُؤْمِنِينَ رِجَالٌ صَدَقُوا مَا عَاهَدُوا اللَّهَ عَلَيْهِ فَمِنْهُمْ مَنْ قَضَىٰ نَحْبَهُ وَمِنْهُمْ مَنْ يَنْتَظِرُ وَمَا بَدَّلُوا تَبْدِيلًا، تلاوت کړو او بيا يي اوفرمائيل زه ګواهي ورکوم دقيامت په ورځ چې دوئ ټول دالله تعالي په نزد باندي شهيدان شوي دي. خبردار تاسو ددوئ خواته راتلل کوئ او ددوئ ملاقاتونه کوئ او دوئ ته سلام کوئ. قسم دي په هغه ذات باندي دچا په لاس کي چې زما روح دي څوك چې دقيامته پوري دوئ ته سلام کوي نو دوئ به ضرور دسلام جواب ورکوي

حاکم او بيهقي دابوهريره رضي الله عنه نه روايت نقل کړي دي او بيهقي دابو ذر رضي الله عنه نه او ابن مردويه دخباب بن ارب په روايت سره ليکلي دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم دمصعب بن عمير په خوا کي تيريدو مصعب دنبي عليه السلام په لاره کي شهيد پروت وو نبي عليه السلام هلته اودريدو اودده دپاره يي دعا اوغوښتله او بيا يي دا ايت کريمه مِنَ الْمُؤْمِنِينَ رِجَالٌ صَدَقُوا مَا عَاهَدُوا اللَّهَ عَلَيْهِ. تلاوت کړو اوددينه پس يي اوفرمائيل ماته په مکه کي ليدلي وي چې په مکه کي نه ستا نه زيات څوك خوش لباس وو او نه ښائسته ويختو والا (اونن ستا دا حالت دي چې دالله په لاره کي مثله شوي يي).

عِنْدَ رَبِّهِمْ يُرْزَقُونَ ۞ .. دخپل رب سره دوئ ته دجنت نه رزق ورکولي شي. يعني دالله په قرب کي بلا کيف (يعني داسي قرب ندي کوم چې جسماني يامکاني يا انضمامي يا ارغامي يا نسبي وي بلکه ددي ټولو نه جدا يو داسي قرب دي دکوم چې څه کيفيت نشي بيانيدي بلکه اعزازي قرب دي.

***************

٣٠١٢_حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ جَامِعٍ وَهُوَ ابْنُ أَبِي رَاشِدٍ، وَعَبْدُ المَلِكِ بْنُ أَعْيَنَ، عَنْ أَبِي وَائِلٍ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ، يَبْلُغُ بِهِ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَا مِنْ رَجُلٍ لَا يُؤَدِّي زَكَاةَ مَالِهِ إِلَّا جَعَلَ اللهُ يَوْمَ القِيَامَةِ فِي عُنُقِهِ شُجَاعًا، ثُمَّ قَرَأَ عَلَيْنَا مِصْدَاقَهُ مِنْ كِتَابِ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ وَلا يَحْسَبَنَّ الَّذِينَ يَبْخَلُونَ بِمَا آتَاهُمُ اللهُ مِنْ فَضْلِهِ (آل عمران :١٨٠)الآيَةَ، وَقَالَ مَرَّةً: قَرَأَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِصْدَاقَهُ سَيُطَوَّقُونَ مَا بَخِلُوا بِهِ يَوْمَ القِيَامَةِ (آل عمران :١٨٠) ، وَمَنِ اقْتَطَعَ مَالَ أَخِيهِ المُسْلِمِ بِيَمِينٍ لَقِيَ اللهَ وَهُوَ عَلَيْهِ غَضْبَانُ ثُمَّ قَرَأَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِصْدَاقَهُ مِنْ كِتَابِ اللهِ: إِنَّ الَّذِينَ يَشْتَرُونَ بِعَهْدِ اللهِ (آل عمران :٧٧)". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَمَعْنَى قَوْلِهِ شُجَاعًا أَقْرَعَ يَعْنِي حَيَّةً. (1)

**ترجمه** : دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه بيان دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوك چې دخپل مال زكوة نه وركوي الله تعالي به دقيامت په ورځ دهغه په غړئ كي يو مار واچوي او بيارسول الله ددي په ثبوت كي دالله تعالي دا قول "ولايحسبن الذين يبخلون بما اتاهم الله من فضله" اولوستلو، راوي يو ځل داسي اووئيل چې رسول الله ددي په مناسبت دا ايت "سيطوقون ما بخلوا به يوم القيامه" تلاوت كړو او بيا رسول الله ددي دمصداق ايت "ان الذين يشترون بعهدالله" الخ، تلاوت كړو

امام ترمذي وايي. داحديث حسن صحيح دي

****************

٣٠١٣_حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، وَسَعِيدُ بْنُ عَامِرٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ مَوْضِعَ سَوْطٍ فِي الجَنَّةِ لَخَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا اقْرَءُوا إِنْ شِئْتُمْ فَمَنْ زُحْزِحَ عَنِ النَّارِ وَأُدْخِلَ الجَنَّةَ فَقَدْ فَازَ وَمَا الحَيَاةُ الدُّنْيَا إِلا مَتَاعُ الغُرُورِ (آل عمران :١٨٥)". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (2)

[1] _ سنن النسائى/الزكاة ٢ (٢٤٤٣) ، سنن ابن ماجه/الزكاة ٢ (١٧٨٤) (تحفة الأشراف : ٩٢٣٤، ٩٢٨٤) ، و مسند احمد (١/٣٧٧).

[2] _ (تحفة الأشراف : ١٥٠٢٨، و١٥١١٦) ، وانظر: مسند احمد (٢/ ٣١٥، ٤٣٨، ٤٨٢)

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په جنت کي ديوي کوړي برابر خاي دټولي دنيا نه او څه چي په دنيا کي دي دټولو نه بهتر دي او که په دي باندي زيات پوهيدل غواړئ نو دا ايت لولئ " فَمَنْ زُحْزِحَ عَنِ النَّارِ وَأُدْخِلَ الْجَنَّةَ فَقَدْ فَازَ وَمَا الْحَيَاةُ الدُّنْيَا إِلا مَتَاعُ الْغُرُورِ "
امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي.

***************

٣٠١٤ـ حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ مُحَمَّدٍ الزَّعْفَرَانِيُّ، حَدَّثَنَا الْحَجَّاجُ بْنُ مُحَمَّدٍ، قَالَ: قَالَ ابْنُ جُرَيْجٍ: أَخْبَرَنِي ابْنُ أَبِي مُلَيْكَةَ، أَنَّ حُمَيْدَ بْنَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ أَخْبَرَهُ، أَنَّ مَرْوَانَ بْنَ الْحَكَمِ، قَالَ: اذْهَبْ يَا رَافِعُ لِبَوَّابِهِ إِلَى ابْنِ عَبَّاسٍ فَقُلْ لَهُ: لَئِنْ كَانَ كُلُّ امْرِئٍ فَرِحَ بِمَا أُوتِيَ وَأَحَبَّ أَنْ يُحْمَدَ بِمَا لَمْ يَفْعَلْ مُعَذَّبًا لَنُعَذَّبَنَّ أَجْمَعُونَ، قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: مَا لَكُمْ وَلِهَذِهِ الآيَةِ إِنَّمَا أُنْزِلَتْ هَذِهِ فِي أَهْلِ الْكِتَابِ ثُمَّ تَلَا ابْنُ عَبَّاسٍ وَإِذْ أَخَذَ اللَّهُ مِيثَاقَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ لَتُبَيِّنُنَّهُ لِلنَّاسِ وَلا تَكْتُمُونَهُ (آل عمران :١٨٧) وَتَلَا لا تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ يَفْرَحُونَ بِمَا أَتَوْا وَيُحِبُّونَ أَنْ يُحْمَدُوا بِمَا لَمْ يَفْعَلُوا (آل عمران :١٨٨)، قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: سَأَلَهُمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ شَيْءٍ فَكَتَمُوهُ وَأَخْبَرُوهُ بِغَيْرِهِ فَخَرَجُوا وَقَدْ أَرَوْهُ أَنْ قَدْ أَخْبَرُوهُ بِمَا قَدْ سَأَلَهُمْ عَنْهُ فَاسْتُحْمِدُوا بِذَلِكَ إِلَيْهِ وَفَرِحُوا بِمَا أُوتُوا مِنْ كِتْمَانِهِمْ وَمَا سَأَلَهُمْ عَنْهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه** دابن ابي مليکه بيان دي چي عبد بن حميد نه مي دا روايت اوريدلي دي چي مروان بن حکم خپل دربانچي ابو رافع ته اووئيل ابن عباس ته ورشه او ورته اووايه که چري يو بنده پخپل کړي کار خوشحالي ښکاره کونکي وي او په نه کړي کار تعريف حاصلونکي دسزا مستحق وي بيا خو به مونږ ټول دسزا مستحق شو. ابن عباس رضي الله عنهما اوفرمائيل ستا په دي ايت کي څه مطلب دي دا خو داهل کتابو باره کي نازل شوي دي او بيا ابن عباس دا ايت "وَإِذْ أَخَذَ اللَّهُ مِيثَاقَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ لَتُبَيِّنُنَّهُ لِلنَّاسِ وَلا تَكْتُمُونَهُ (آل عمران :١٨٧) او . وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ يَفْرَحُونَ بِمَا أَتَوْا وَيُحِبُّونَ أَنْ يُحْمَدُوا بِمَا لَمْ يَفْعَلُوا "تلاوت کړو او ويي فرمائيل رسول الله ديهوديانو نه څه څيز باره کي تپوس اوکړو نو هغوئ هغه څيز پټ کړو او دهغه نه

---

[1] اورده البخاري في الجامع الصحيح /تفسير آل عمران ١٢ (٤٥٦٨) صحيح مسلم المنافقين ٩ (٨-٢٧٧٧) (تحفة الأشراف: ٥٣١٢)

علاوه کوم بل څیز یي اخودلو او بیا لاړو بیارسول الله ته داظاهر کړي شول تا چې ددوئ نه څه تپوس کړي وو دهغي متعلق دوئ اوونیل او ستا نه دوئ تعریف اوریدل غواړي او هغوئ دخپل کتاب نه پټ کړو او چې تاته یي کوم جواب درکړو او تا چې دوئ مخاطب کړل په دي باندي دوئ خوشحالي ښکاره کړه

امام ترمذي وایي. داحدیث حسن غریب صحیح دي

***************

## ٥_بَابٌ وَمِنْ سُورَةِ النِّسَاءِ

### دسورة نساء دبعضي ایتونو تفصیل

### شان نزول

د سورة د نازلیدلو د زمانی د معلومیدلو نه پس د دی زمانی تاریخ ته کتل پکار دی چې د سورة په بحثونو باندی د پوهیدلو د پاره د دی نه مدد واخستی شی.

نبی صلی الله علیه وسلم ته چې کوم کارونه وړاندی ؤو. هغه په دری شعبو کي تقسیم کولی شی

(١) د نوی منظم مسلم سوسائټئ ترقی. چې د هغی بنا د هجرت سره وجود ته راغلی وه او په دی کي د جاهلیت د زړو او پخوانو طریقو ختم کول ؤو او د اخلاقو تمدن معاشرت. معیشت او د حکومت د پاره نوی أصول جوړول او نافذ کول ؤو

(٢) د هغه کشمکش مقابله چې هغه د مشرکین عرب یهودو او نصاراؤ سرّه جاری ؤو. او د هغوی مقصد د اسلام مخالفت ؤو.

(٣) د دی کشمکش باوجود د اسلام دعوت خورول او نور طاقت د افرادو حاصلول.

د الله تعالی د طرف نه چې څومره خطبی په دی موقع نازلی شوی دی هغه د دی دریو شعبو سره تعلق لری

د اسلامی سوسائټی د تنظیم د پاره چې کوم هدایات په سورة بقره کي ذکر شوی دی نو د هغی نه زیات هدایات د مومنانو د پاره پکار ؤو د دی وجی نه د سورة نساء په دی خطبو کي په زیات تفصیل سره وئیلی شوی دی چې مومنان به خپله اجتماعی زندگی د اسلام په طریقه څنګه جوړوی د خاندان د تنظیم أصول خودلی شوی دی په نکاح باندی پابندئ لګیدلی دی په معاشرت کي د زنانو او نارینو د تعلقاتو حد بندی شوی ده. د یتیمانانو حقونه خودلی شوی دی.

د وراثت د تقسیم ضابطه مقرر شوی ده. د معاشي معاملاتو او د خانګی جګړو د اصلاح د پاره هدایات بیان شویدی. د تعزیری قانون بنا شوی ده په شراب نو شئ باندی پابندی لګولی شوی ده د طهارت او پاکي احکام بیان شوی دی. او مومنانو ته ونیلی شوی دی چې د یو صالح انسان طرز عمل به د الله تعالی او د بندګانو سره څنګه وی د مومنانو په جماعتی ژوند کي د نظم ساتلو متعلق هدایات بیان شوی دی. د اهل کتابو په اخلاقی او مذهبی رویه باندی تبصره شوی ده. چې مومنان د هغوی د نقش قدم نه خان بچ کړی. د منافقانو په طرز عمل باندی تنقید نی کړی دی. او د ایماندارى تقاضی نی واضح کړی دی د ایمان او د نفاق ښکاره اوصاف نی واضحه کړی دی.

د اصلاح مخالف طاقتونو سره چې کوم کشمکش جاري ؤو. د جنګ احد نه پس هغی نازك صورت حال اختیار کړو. د احد د شکست په وجه د مخالفینو همتونه زیات شول او مومنان په لویه خطره کي راګیر شول. په دی حالاتو کي الله تعالی د جوش نه ډکی خطبی سره مومنان د مقابلی د پاره تیار کړل او په جنګی حالاتو کي د کار کولو مختلف ضروری هدایات نی بیان کړل. په مدینه کي منافقانو او کمزوری ایمان والو خلقو خوفناك خبری کولی. او بد حواسی نی خوروله په داسی صورت کي حکم ورکړی شو چې هر داسی خبر ذمه دار خلقو ته رسوی

او تر څو پوری چې د دی خبر تحقیق نه وی شوی. نو د هغی خورول دی بند کړی شی مومنان به اکثر په جنګونو او عزواتو کي وتل نو اکثر اُوبه به نهٔ وی نو اجازت اوشو چې که چری تاسو اوبه نهٔ مومئ نو د غسل او اودس دواړو په خایٔ تیمم کویٔ. او په داسی حالت کي مونځ هم مختصر کویٔ کوم خایٔ چې خطره وی نو هلته صلوة خوف کویٔ

د عربو په مختلفو علاقو کي چې کوم مومنان د کافرانو په قبیلو کي اوسیدل اکثر به د جنګ په صورت حال کي راګیر شول نو د دوی معامله د مومنانو د پاره لویه پریشانی وه نو په دی مسئله کي اسلامی حکومت ته هدایات ورکړی شول او هغه مومنانو ته د هجرت ترغیب هم ورکړی شو په یهودیانو کي د بنو نضیر رویه خصوصًا د دشمنئ وه او د وعدو او لوظونو خلاف ورزی به نی کوله او د اسلام دشمنانو سره ښکاره ملګری ؤو په مدینه کي هم د نبی صلی الله علیه وسلم او د هغوی د صحابه کرامو خلاف به نی سازشونه کول نو د دوی په دی روش باندی نیول اوکړی شول او په صفا الفاظو کي ورته آخری تنبیه ورکړی شوه. د دی نه پس دوی د مدینی نه اوویستلی شول.

د منافقانو د مختلفو ډلو طرز عمل هم مختلف ؤو د مومنانو د پاره دا فیصله کول ګران ؤو چې کوم قسم منافقانو سره کوم قسم معامله اوکړو نو دا منافقان په دی سورة کي په مختلفو طبقو کي تقسیم کړی شول او د هری طبقی د منافقانو متعلق او خودلی شول چې دوی سره

دا قسم معامله پكار ده. او د غير جانبدار معاهد قبائلو سره د سلوك متعلق هم وضاحت اوكړى شو د تبولو نه زيات ضرورى دا څيز ؤو چې د مومنانو طرز عمل بى داغه وى خكه چې كه په دى كشمكش كي دى كمزورى او وړوكى جماعت كاميابى حاصلولى شوه نو د هغى د پاره د مومنانو طرز عمل او اخلاق مثالى پكار ؤو د دى وجى نه مومنانو ته د اعلى اخلاقياتو تعليم وركړى شو. او چې كومه كمزورى په دى جماعت كي بنكاره شويده. نو په هغى باندى سخت نيول ذكر شوى دى د دعوت او تبليغ د پاره هم په دى سورة كي هدايات بيان شوى دى د يهوديانو. د عيسايانو او مشركينو درى واړه ډلو په غلط مذهبى تصوراتو او بدو اخلاقو او اعمالو باندى تنقيد شوى دى.

********************

٣٠١٥ـ حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ آدَمَ، حَدَّثَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ، قَالَ: سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ، يَقُولُ: " مَرِضْتُ فَأَتَانِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعُودُنِي وَقَدْ أُغْمِيَ عَلَيَّ، فَلَمَّا أَفَقْتُ قُلْتُ: كَيْفَ أَقْضِي فِي مَالِي؟ فَسَكَتَ عَنِّي حَتَّى نَزَلَتْ يُوصِيكُمُ اللَّهُ فِي أَوْلادِكُمْ لِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الأُنْثَيَيْنِ (النساء :١١) ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رَوَى غَيْرُ وَاحِدٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ.

حَدَّثَنَا الْفَضْلُ بْنُ الصَّبَّاحِ الْبَغْدَادِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنِ ابْنِ الْمُنْكَدِرِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ، وَفِي حَدِيثِ الْفَضْلِ بْنِ الصَّبَّاحِ كَلَامٌ أَكْثَرُ مِنْ هَذَا. ([1])

**ترجمه**. محمد بن منكدر دجابر رضي الله عنه نه روايت نقل كوي چې فرمائيل يې زه بيمار شوم او رسول الله صلي الله عليه وسلم زما عيادت دپاره راغلو او دغه وخت كي ما باندي بيهوشي راغلي وه، كله چې په هوش كي راغلم نو عرض مي اوكړو زه خپل مال څنګه تقسيم كړم رسول الله چې واوريدل نو خاموش پاتي شو او ماته يې څه جواب رانكړو او بيا دا ايت كريمه " يُوصِيكُمُ اللَّهُ فِي أَوْلادِكُمْ لِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الأُنْثَيَيْنِ " كلك حكم كوى تاسو ته الله تعالى په باره د ميراث د اولاد ستاسو كي د نارينه دپاره په شان د برخى د دوؤ زنانو دى، نازل شو.

[1] ـ انظر حديث رقم ٢٠٩٧

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي داحديث نورو راويانو هم دمحمد بن منكدر نه نقل کړي دي

**تشريح** يُوصِيكُمُ اللَّهُ فِي أَوْلَادِكُمْ په دی ایت کي په جاهلیت والو باندی رد دی چې هغوی به زنانو نابالغ او کمزورو ته په میراث کي حصه نهٔ ورکوله

(يُوصِيكُمُ اللهُ) وصیت په معنی د فرض کولو او امر کولو دی او په دی کي د میراث د مسئلی په باره کي ډیر تاکید دی

د میراث دپار شرعًا دری اسباب دی اول (توالد) اولاد او والدین دویم زوجیت یعنی خاوند او ښځه دریم روروالی او خوروالی په دی ایت کي د توالد (اولاد او والدین) په باره کي شپږ مسائل ذکر دی وارثان دری قسمه دی (۱) ذوی الفروض (۲) عصبه (۳) ذوی الارحام

ذوی الفروض هغه کسان دی چې د هغوی خاص برخی په قرآن کریم صحیح احادیثو یا په اجماع سره ثابت دی او هغه شپږ برخی دی (۱) نیمه (نصف) (۲) څلورمه حصه (۳) اتمه حصه (۴) دود د دریمی حصی ۲.۳ (۵) دریمه حصه (۶) شپږمه حصه او ذوی الفروض دوه قسمه دی (۱) نارینه (۲) زنانه

بیا نارینه لس قسمه دی (۱) خوی (۲) نوسی (اګر چې نور هم ښکته وی لکه نوسی، کړوسی) (۳) پلار (۴) نیکه (اګر چې نور هم پورته وی) (۵) ورور (۶) وراره (۷) تره (۸) د تره خوئی (۹) خاوند (۱۰) مولاد مرئ د ازارولو

او زنانه اوو قسمه دی (۱) لور (۲) نوسئ (اګر چې ښکته وی) (۳) مور (۴) نیا (اګر چې پورته وی) (۵) خور (۶) ښځه (۷) مولاتهٔ د مرئ د ازارولو

او عصبه هغه کسان دی چې د هغوی برخی مقرر نهٔ وی لیکن کوم میراث چې د ذوی الفروض د برخو نه پاتی شی نو هغه د دوی حق وی او که ذوی الفروض نه وی نو بیا ټول مال د دوی حق دی او د عصبو حق د قران کریم نه په سکوت سره او په احادیثو کي صراحتًا معلوم دی

(يُوصِيكُمْ) اګر چې دا خطاب عام دی لیکن په احادیثو سره ئی تخصیص کړی شوی دی (۱) وارث به کافر نهٔ وی (۲) مرئی د ازار سړی وارث نه شی کیدی (۳) قاتل د مقتول وارث نهٔ شی کیدلی (۴) د انبیاؤ علیهم السلام میراث نهٔ وی په دلیل د صحیح حدیث سره (ترجمه) خمونږ د انبیاؤ علیهم السلام د جماعت نه میراث نهٔ اوړلی کیږی مونږ چې څه پرینبودلی دی نو هغه به صدقه وی) دا حدیث متواتر دی د اوولس صحابه کرامو نه نقل دی او دا مسئله د شیعه ګانو په کتابونو کي هم شته نهج البلاغه د ابن ابی الحدید کي لیکلی دی چې ابوبکر رضی الله عنه دا حدیث ذکر کړو نو فاطمه رضی الله عنها راضي شوه

﴿فِي أَوْلَادِكُمْ﴾، د میراث په مسئله کي نی اول اولاد ذکر کړو. ځکه چې د انسان تعلق د اولاد سره د هر چانه مخکي وی او ډير وی

لِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الأُنثَيَيْنِ، دا اولنی مسئله ده او د دی دوه صورتونه دی. اول صورت دا دی چې ځوك مړه شی او يو ځونی او يو لور نی پاتی شی نو مال په دری برخی شی دوه حصی به ځوی ته او يوه برخه به لور ته ورکولی شی. دويم صورت دا دی چې د چا يو ځوی او دوه لونړه پاتی شی نو نيم مال به ځوی ته او نيم مال به دواړو لونړو ته ورکولی شی

***************

٣٠١٦ـحَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، أَخْبَرَنَا حَبَّانُ بْنُ هِلَالٍ، حَدَّثَنَا هَمَّامُ بْنُ يَحْيَى، حَدَّثَنَا قَتَادَةُ، عَنْ أَبِي الْخَلِيلِ، عَنْ أَبِي عَلْقَمَةَ الْهَاشِمِيِّ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: " لَمَّا كَانَ يَوْمُ أَوْطَاسٍ أَصَبْنَا نِسَاءً لَهُنَّ أَزْوَاجٌ فِي الْمُشْرِكِينَ فَكَرِهَهُنَّ رِجَالٌ مِنْهُمْ، فَأَنْزَلَ اللَّهُ: وَالْمُحْصَنَاتُ مِنَ النِّسَاءِ إِلا مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ (النساء :٢٤)". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. ([1])

**ترجمه** دابو سعيد خدري رضي الله عنه بيان دي فرمائي چې په غزوه اوطاس کي دغنيمت په مال کي بعضي داسي ښځي زمونږ لاسونو ته راغلي دچاچې مشرك خاوندان موجود وو بعضي مسلمانانو ددوئ سره صحبت کول مکروه اوګڼړل نو الله تعالي ايت کريمه "وَالْمُحْصَنَاتُ مِنَ النِّسَاءِ إِلا مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ " نازل کړو.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن دي

***************

٣٠١٧ـحَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، أَخْبَرَنَا عُثْمَانُ الْبَتِّيُّ، عَنْ أَبِي الْخَلِيلِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: " أَصَبْنَا سَبَايَا يَوْمَ أَوْطَاسٍ لَهُنَّ أَزْوَاجٌ فِي قَوْمِهِنَّ، فَذَكَرُوا ذَلِكَ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَنَزَلَتْ وَالْمُحْصَنَاتُ مِنَ النِّسَاءِ إِلا مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ (النساء :٢٤)". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَهَكَذَا رَوَى الثَّوْرِيُّ، عَنْ عُثْمَانَ الْبَتِّيِّ، عَنْ أَبِي الْخَلِيلِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ، وَلَيْسَ فِي هَذَا الْحَدِيثِ عَنْ أَبِي عَلْقَمَةَ، وَلَا أَعْلَمُ أَنَّ أَحَدًا ذَكَرَ أَبَا عَلْقَمَةَ فِي هَذَا الْحَدِيثِ إِلَّا مَا ذَكَرَ هَمَّامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، وَأَبُو الْخَلِيلِ اسْمُهُ صَالِحُ بْنُ أَبِي مَرْيَمَ.

---

[1] ـ انظر حديث رقم ١١٣٢

**ترجمه** دابو سعيد خدري رضي الله عنه بيان دي فرمائي چې په غزوه اوطاس كي دغنيمت په مال كي بعضي داسي ښځي زمونږ لاسونو ته راغلي، دچاچې مشرك خاوندان موجود وو. نو خلقو رسول الله صلي الله عليه وسلم ته ددي ذكر اوكړو تردي چې دي باره كي الله تعالي ايت كريمه "وَالْمُحْصَنَاتُ مِنَ النِّسَاءِ إِلا مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ " نازل كړو
امام ترمذي وايي داحديث حسن دي ابو الخليل هم په مذكوره سند دابوسعيد خدري رضي الله عنه په واسطه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه دماقبل هم معني روايت نقل كړي دي او په سند كي يي دابو علقمه واسطه نه ده ذكر كړي. او ماته علم نشته دهيچاپه باره كي چې دابو علقمه واسطه يي په دي حديث كي ذكر كړي وي مګر علاوه دحمام نه چې دقتاده نه يي نقل كوي او د ابو الخليل نوم صالح بن ابي مريم دي.

****************

٣٠١٨_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الأَعْلَى الصَّنْعَانِيُّ، حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ الحَارِثِ، عَنْ شُعْبَةَ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي بَكْرِ بْنِ أَنَسٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الكَبَائِرِ، قَالَ: " الشِّرْكُ بِاللَّهِ وَعُقُوقُ الوَالِدَيْنِ وَقَتْلُ النَّفْسِ وَقَوْلُ الزُّورِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ صَحِيحٌ، وَرَوَاهُ رَوْحُ بْنُ عُبَادَةَ، عَنْ شُعْبَةَ، وَقَالَ: عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ، وَلَا يَصِحُّ. [1]

**ترجمه** . دانس بن مالك رضي الله عنه بيان دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم دكبيره ګناهونو بارد كي فرمائيلي دي چې دالله تعالي سره شريك مقررول او دمور او پلار نافرماني كول او يو انسان قتل كول او دروغ ونيل (دا كبيره ګناهونه دي،
امام ترمذي وايي داحديث حسن غريب صحيح دي دا رنګي داحديث روح بن عباده دشعبه نه نقل كړي دي او شعبه دعبدالله بن ابي بكر نه مګر داسند صحيح نه دي

**تخريج** : انظر حديث رقم ١٢٠٧

*****************

٣٠١٩_حَدَّثَنَا حُمَيْدُ بْنُ مَسْعَدَةَ بَصْرِيٌّ، حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ المُفَضَّلِ، حَدَّثَنَا الجُرَيْرِيُّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي بَكْرَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " أَلَا أُحَدِّثُكُمْ بِأَكْبَرِ

[1] _ انظر حديث رقم ١٣٢

الْكَبَائِرِ ؟ قَالُوا: بَلَى يَا رَسُولَ اللَّهِ. قَالَ: الْإِشْرَاكُ بِاللَّهِ، وَعُقُوقُ الْوَالِدَيْنِ. قَالَ: وَجَلَسَ وَكَانَ مُتَّكِئًا. قَالَ: وَشَهَادَةُ الزُّورِ أَوْ قَالَ قَوْلُ الزُّورِ. قَالَ: فَمَا زَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُهَا حَتَّى قُلْنَا لَيْتَهُ سَكَتَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ.[1]

**ترجمه** د ابو بكره نفيع بن حارث رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل ايا زه تاسو د دريو لويو ګناهونو نه خبر نکړم؟ مونږ عرض اوکړو چې يا رسول الله ضرور اوفرمايئ، رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل . (۱) الله پاك سره څوك شريك جوړول (۲) دمور پلار نافرماني كول، دغه وخت رسول الله صلي الله عليه وسلم تكيه وهلی وه او بيا نيغ كيناستو ويې فرمائيل (۳) غور سره واوری او دروغ خبره او دروغ ګواهي. او دا رسول الله صلي الله عليه وسلم دومره په سختئ او تكرارسره بيا بيا اوفرمائيل چې مونږ دا ارزو اوكړه چې كاش دوئ چپ شي.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح غريب دي.

**لغات** انبئكم نبأ تنبئة وانبأ فلانا يعني فلاني خبر وركړو

**تشريح** "اكبر الكبائر ثلاث" يعني په ټولو ګناهونو كې درته لوي ګناهونه اونه ښايم. دلته يې په لويو ګناهونو كې دري ګناهونه بيان كړي دي علماء وائي كبيره ګناهونه په مقدار كي منحصر نه دي اوچرته چې دخاص عدد ذكر دی هلته هم حصر مقصود نه دی په دي موضوع علماؤ مستقل كتابونه ليكلي دي او په كبيره ګناه كې يې پنځه قسمونه شميرلي دي. اول په كومه ګناه چې په قران او حديث كې وعيد راغلی وي، دويم په كومه ګناه چې لعنت راغلی وي، دريم په كومه ګناه چې حد مقرر وي، مثلا زنا سرقه قذف وغيره . څلورم په كومه ګناه كې چې نقصان زيات وي مثلا كوم فوجي دمسلمانانو راز خور كړي پنځم صغيره ګناه بار بار كول او هغي لره معمولي ګنړل.

"الإِشْرَاكُ بِاللَّهِ . وَعُقُوقُ الوَالِدَيْنِ" يعني دالله په ذات اوصفاتو كې چا لره شريكول دټولو نه لويه ګناه ده په قران كريم كې ددی په باره كې راغلي دي

ان الله لا يغفر ان يشرك به ويغفر ما دون ذلك لمن يشاء. يعني الله تعالي شرك نه معاف كوي او ددينه علاوه ګناهونه كه اوغواړي معاف كوي

عقوق الوالدين. يعني د مور او پلار نافرماني هم لويه ګناه ده مګر علماؤ دا تصريح كړي ده چې ددوئ اطاعت دمباحاتو په دائره كې واجب دي او معاصي كې يې اطاعت جائز ندی

[1] - انظر حديث رقم ۱۹۰۱، و ۲۳۰۱

"وَشَهَادَةُ الزُّورِ" په دروغه ګواهي کول، دا هم کبیره ګناه ده څکه چې يوطرف ته خو به دي کې دروغ وي کوم چې پخپله حرام دي بيا چې ددي په ذريعه دچا مال واخستلي شي نو بيا خو په اكبر الكبائر کې راځي.

## د نفيع بن الحارث حالات

نوم : نفيع رضي الله عنه کنيت ابوبکره ، دوي دَ طائف دَ قبيله ثقيف اوسيدونکی وو د نيکه نوم ئې کلدة وو ، ابوبکره د هغوي کنيت وو د بکره معنیٰ ده د لرګی پايه چې په دی باندی دَ ډولچی رسیٔ چليږی ـ کله چې نبی کريم (صَلَّي اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) د طائف محاصره اوکړه نو دوی هم د لرګی د پايې سهارا اخستی وه او د نبی کريم (صَلَّي اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) په خدمت کې حاضر شو او اسلام ئې راوړو ـ نبي کريم (صَلَّي اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) دوي لره خپل ح ـ وي جوړ کړی وو نبي کريم (صَلَّي اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) دوي لره ابوبکره سره مخاطب کړل او دوي ئې ازاد هم کړل ليکن دوي به خان ته هم د حضور (صَلَّي اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) غلام وئيلو ـ (طبقات ابن سعد)

د بصری د اباديدو نه پس بصری ته راغلو او په شروع کې په مدينه منوره کې هم اسيدلی وو ـ (اسد الغابه ۵/ ۱۵۱)

د فتنی نه به ډير زيات لری اوسيدو تردی پوری چې په جنګ جمل او جنګ صفين کې هم دوي شرکت نه وو فرمائيلی دده خصوصي شغل د الله تعالیٰ عبادت وو تر اخري وخته پوری به ئې عبادت کولو ـ

صاحب اسد الغابه ليکي : "**كان ابو بكرة كثير العبادة حتیٰ مات**" (اسد الغابة ٥/١٥١)

**وفات** : د امير معاويه رضي الله عنه په عهد کې په بصره کې وفات شو ـ (تهذيب الكمال ۴۰۴)

**مرويات**: دده نه د مروياتو تعداد ۱۳۲ دی ددی نه اته په بخاري او مسلم دواړو کې دي او په ۵ کې امام بخاري منفرد دی ، دده روايات زياتره دده د صاحبزادګانو نه مروي دی ـ

****************

٣٠٢٠ـحَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، حَدَّثَنَا يُونُسُ بْنُ مُحَمَّدٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ هِشَامِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ زَيْدِ بْنِ مُهَاجِرِ بْنِ قُنْفُذٍ التَّيْمِيِّ، عَنْ أَبِي أُمَامَةَ الأَنْصَارِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أُنَيْسٍ الْجُهَنِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِنَّ مِنْ أَكْبَرِ الْكَبَائِرِ: الشِّرْكُ بِاللَّهِ، وَعُقُوقُ الْوَالِدَيْنِ، وَالْيَمِينُ الْغَمُوسُ، وَمَا حَلَفَ حَالِفٌ بِاللَّهِ يَمِينَ صَبْرٍ فَأَدْخَلَ فِيهَا مِثْلَ جَنَاحِ بَعُوضَةٍ إِلَّا جُعِلَتْ نُكْتَةً فِي قَلْبِهِ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ " . قَالَ أَبُو عِيسَى: وَأَبُو أُمَامَةَ الأَنْصَارِيُّ هُوَ ابْنُ ثَعْلَبَةَ وَلَا نَعْرِفُ اسْمَهُ وَقَدْ رَوَى عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحَادِيثَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا

حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. ([1])

**ترجمه** دعبدالله بن انيس جهني رضي الله عنه نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په لويو گناهونو كي دټولو نه لويه گناه داده چې دالله تعالي سره شريك مقرر كړي شي او وربسي دمور او پلار نافرماني كول دي . او بيا په دروغه قسم خوړل دي پس هر څوك چې داسي قسم اوخوري په كوم چې دي مجبوره كړي شوي وي ،اوبه همدي قسم دفيصلي انحصار وي، او بيادي په دي كي دمچ برابر دروغ هم شامل كړي نو ددي په وجه به ددي په زړه كي يو تور داغ جوړ شي چې دقيامت دورځي پوري به باقي وي
امام ترمذي وايي: داحديث حسن غريب دي، او ابو امامه انصاري دثعلبه خوي دي او نوم يې: مونږ ته معلوم نه دي هغوئ دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه احاديث نقل كړي دي

***************

٣٠٢١ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ فِرَاسٍ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " الْكَبَائِرُ: الإِشْرَاكُ بِاللَّهِ، وَعُقُوقُ الْوَالِدَيْنِ أَوْ قَالَ الْيَمِينُ الْغَمُوسُ " شَكَّ شُعْبَةُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([2])

**ترجمه** . عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي غټ گناهونه دادي،الله تعالي سره شريك منل دمور او پلار نافرماني كول . او كه داسي يي اوفرمائيل او د دروغو قسم خوړل.شعبه راوي په شك كي مبتلا شوی دی.
امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح دی

**لغات** " اليمين الغموس قصدا په دروغه قسم خوړل، جمع يي غمس ، من الرجال بهادر ته ويلي شي، طعنة غموس پوري راپوري وتونكي نيزه، غموس النجم دستورو ډوبيدل

**تشريح** : دامام بخاري يو روايت داسی دی يو بانډيچي د رسول الله صلي الله عليه وسلم په خدمت كي حاضر شو عرض يی اوكړو غټ غټ گناهونه كوم كوم دي . رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل ټولو نه غټه گناه الله سره شريك منل دي هغه عرض اوكړو بيا . رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل بيا يمين غموس غټه گناه ده ،راوي وائي، ما تپوس اوكړو

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٥١٣٤)

[2] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /الأيمان والنذور ١٦ (٦٦٧٥) ، والديات ٢ (٦٨٧٠) . والمرتدين ١ (٦٩٢٠) (تحفة الأشراف: ٨٨٣٥) .

يمين غموس څه ته وائي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل داسې قسم چې دچا مسلمان مال ورباندې ناحقه اووهلې شي يعني دې داسې قسم وخوري چې دې پکې دروغژن وي

قسم په دري قسمه دې اول يمين لغوه، دويم يمين منعقد، دريم يمين غموس. يمين لغوه دامام ابو حنيفه په نزد په ماضي کې په کوم کار باندې خلاف واقع قسم خوړل دي چې زه زشتيا وايم په دې کې نه کفاره شته او نه ګناه. امام شافعي وائي ديمين لغوه نه مراد هغه قسم دې کوم چې بغير دقصد نه دخولې نه اوځي او يمين منعقد په مستقبل کې دکوم کار کولو يا نه کولو دپاره قسم خوړل دي نو په دې صورت کې به په اتفاق سره کفاره لازميږي او يمين غموس دماضي په کوم خلاف واقع کار باندې په قصد سره قسم خوړل دي دغموس معنې غوپه ورکول دي او دلته دا قسم کونکې هم په ګناه کې غوپه خوري دامام شافعي په نزد په دې قسم کې هم کفاره ده او دامام ابو حنيفه په نزد په يمين غموس کې کفاره نه وي

****************

٣٠٢٢_حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ ابْنِ أَبِي نَجِيحٍ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ. أَنَّهَا قَالَتْ: "يَغْزُو الرِّجَالُ وَلَا تَغْزُو النِّسَاءُ، وَإِنَّمَا لَنَا نِصْفُ الْمِيرَاثِ فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَبَارَكَ وَتَعَالَى: وَلَا تَتَمَنَّوْا مَا فَضَّلَ اللَّهُ بِهِ بَعْضَكُمْ عَلَى بَعْضٍ (النساء :٣٢)، قَالَ مُجَاهِدٌ: فَأَنْزَلَ فِيهَا إِنَّ الْمُسْلِمِينَ وَالْمُسْلِمَاتِ (الأحزاب :٣٥ وَكَانَتْ أُمُّ سَلَمَةَ أَوَّلَ ظَعِينَةٍ قَدِمَتِ الْمَدِينَةَ مُهَاجِرَةً". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ مُرْسَلٌ، وَرَوَاهُ بَعْضُهُمْ عَنِ ابْنِ أَبِي نَجِيحٍ، عَنْ مُجَاهِدٍ مُرْسَلٌ، أَنَّ أُمَّ سَلَمَةَ. قَالَتْ: كَذَا وَكَذَا. [1]

**ترجمه** دام سلمه رضي الله عنها بيان دې فرمائيل يې سړي غزاګانې کوي او ښځې غزاګانې نه کوي. او مونږ ښځو ته نيم ميراث ملاويږي (يعني دسړي په نيمه) نو الله تعالي ايت کريمه "وَلَا تَتَمَنَّوْا مَا فَضَّلَ اللَّهُ بِهِ بَعْضَكُمْ عَلَى بَعْضٍ" نازل کړو. دمجاهد قول دې چې هم ددوئ په باره کې ايت کريمه "ان المسلمين والمسلمات" هم نازل شوي دي، او ام سلمه هغه اولنئ مسافره ده چاچې مديني ته هجرت کړي وو

امام ترمذي وايي داحديث مرسل دې او بعضي راويانو دا حديث دابي نجيح په سند دمجاهد نه مرسل نقل کړي دې چې ام سلمه رضي الله عنها داسې وئيلي دي.

****************

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ١٨٢١٠)

٣٠٢٣_حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ رَجُلٍ مِنْ وَلَدِ أُمِّ سَلَمَةَ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، قَالَتْ: "يَا رَسُولَ اللَّهِ، لَا أَسْمَعُ اللَّهَ ذَكَرَ النِّسَاءَ فِي الْهِجْرَةِ فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى: أَنِّي لَا أُضِيعُ عَمَلَ عَامِلٍ مِنْكُمْ مِنْ ذَكَرٍ أَوْ أُنْثَى بَعْضُكُمْ مِنْ بَعْضٍ (آل عمران: ١٩٥)". [1]

**ترجمه** دام المؤمنين ام سلمه رضي الله عنها بيان دي فرمانيل يي چې ما عرض اوکړو اې دالله رسوله زه دښځو دپاره دهجرت کولو دحکم ذکر په قران کې نه مومم نو الله تعالی ايت کريمه " أَنِّي لَا أُضِيعُ عَمَلَ عَامِلٍ مِنْكُمْ مِنْ ذَكَرٍ أَوْ أُنْثَى بَعْضُكُمْ مِنْ بَعْضٍ "نازل کړو

*****************

٣٠٢٤_حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو الْأَحْوَصِ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَلْقَمَةَ، قَالَ: قَالَ عَبْدُ اللَّهِ: "أَمَرَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ أَقْرَأَ عَلَيْهِ وَهُوَ عَلَى الْمِنْبَرِ فَقَرَأْتُ عَلَيْهِ مِنْ (النِّسَاءِ حَتَّى إِذَا بَلَغْتُ فَكَيْفَ إِذَا جِئْنَا مِنْ كُلِّ أُمَّةٍ بِشَهِيدٍ وَجِئْنَا بِكَ عَلَى هَؤُلَاءِ شَهِيدًا (النساء :٤١)، غَمَزَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدِهِ فَنَظَرْتُ إِلَيْهِ وَعَيْنَاهُ تَدْمَعَانِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَكَذَا رَوَى أَبُو الْأَحْوَصِ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَلْقَمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، وَإِنَّمَا هُوَ إِبْرَاهِيمُ، عَنْ عَبِيدَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ. [2]

**ترجمه** دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه بيان دي فرماني چې نبي کريم صلي الله عليه وسلم په منبر ناست وو او ماته يي حکم اوکړو چې زه ورته قران واوروم چنانچې ما دهغوی په وړاندې دسورة نساء څه حصه تلاوت کړه کله چې زه " فَكَيْفَ إِذَا جِئْنَا مِنْ كُلِّ أُمَّةٍ بِشَهِيدٍ وَجِئْنَا بِكَ عَلَى هَؤُلَاءِ شَهِيدًا" ته ورسيدم نورسول الله زما طرف ته اشاره اوکړه (چې بس کړه مخکې نور مه لوله) ما چې سر پورته کړو او اومې کتل نو دهغوی دواړه سترګې داوښکو نه ډکې وې چې بهيدلې

امام ترمذي وايي ابو الاحوص داعمش نه او هغه دابراهيم نه او هغه دعلقمه په واسطه دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه ددې هم معني روايت نقل کړې دې او په حقيقت کې دغه سند داسې دې ابراهيم عن عبيدة عن عبدالله (او عن علقمه پکې نشته)

*****************

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ١٨٢٤٩)

[2] ـ سنن ابن ماجه/الزهد ١٩ (٤١٩٤)

٣٠٢٥_حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ هِشَامٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَبِيدَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " اقْرَأْ عَلَيَّ. فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ أَقْرَأُ عَلَيْكَ وَعَلَيْكَ أُنْزِلَ ؟ قَالَ: إِنِّي أُحِبُّ أَنْ أَسْمَعَهُ مِنْ غَيْرِي. فَقَرَأْتُ (النِّسَاءِ حَتَّى إِذَا بَلَغْتُ وَجِئْنَا بِكَ عَلَى هَؤُلاءِ شَهِيدًا (النساء :٤١)قَالَ: فَرَأَيْتُ عَيْنَيِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَهْمِلَانِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ أَبِي الأَحْوَصِ.

حَدَّثَنَا سُوَيْدُ بْنُ نَصْرٍ، أَخْبَرَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنِ الأَعْمَشِ، نَحْوَ حَدِيثِ مُعَاوِيَةَ بْنِ هِشَامٍ. (1)

**ترجمه** : دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت دی چې ماته رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل چې ماته قران واوروه ، ما عرض اوکړو زه ستاسو مخکې اولولم ، حال دادی چې دا قران خو په تاسو نازل شوی دی رسول الله صلي الله عليه وسلم ارشاد اوفرمائيلو زه دبل چانه قران اوريدل خوښوم ما دسورة النساء ايتونه تلاوت کړل او چې کله زه "فکيف اذا جئنا" ايت ته راورسيدم (چې ترجمه يی داده) بيابه هغه وخت دوي (مشرکان وغيره) څه کوي کله چې مونږ په هر يو قوم او امت باندي دهغوئ نه يو يو ګواه اوګرځوو او دهغه ټولو دتصديق دپاره تاسو لره ګواه جوړ کړو، ما چې وکتل د رسول الله صلي الله عليه وسلم سترګو نه اوښکي بهيدلي

امام ترمذي وايي: دا حديث د ابو الاحوص د حديث نه زيات صحيح دی

**تشريح** : "اقرء عليك وعليك انزل" يعني ايا زه تاته قران واوروم او حال دادی چې قران خو په تا باندي نازل شوی دی ، مطلب دادی چې قران خو په تا نازل شوی دی او ددي کيفيت او صحيح حقيقت خو تاته ډير ښه معلوم دی ته چې څومره په مناسب طريقي سره قران لوستلی شي دومره يي بل څوك نشي لوستلی.

دويمه خبره داده چې دبل چانه په قران اوريدو کي دا فائده کيږي چې دقران په مفهوم او معاني باندي دغور کولو موقعه لاس ته راځي.

څوك چې په قران څومره غور کوي هم دومره لطف به حاصلوي.

فکيف اذا جئنا من کل امة: پدي ايت کي دقيامت ورځ رايادوي نو ځکه رسول الله صلي الله

---

[1] _ اورده البخاري في الجامع الصحيح/تفسير النساء ٩ (٤٥٨٢)، وفضائل القرآن ٣٢ (٥٠٤٩)، و ٣٣ (٥٠٥٠)، و ٣٥ (٥٠٥٥) صحيح مسلم/المسافرين ٤٠ (٨٠٠)، وانظر ماقبله (تحفة الأشراف : ٩٤٠٢)، ومسند احمد (١/٣٨٠)

عليه وسلم ددي ورځي ددهشت نه او دخپل امت دضعف په وجه ژاړي ددینه معلومه شو دچي درسول الله دخپل امت سره ډيره مينه وه

ويستحب البكاء عند قراءت القران والتباكي لمن لا يقدر عليه والحزن والخشوع.
يعني د قران لوستلو وخت کي ژړا کول او په زوره خان په ژړا کول مستحب دي خو چي څوك ورباندي قادر وي (الاتقان)

دهؤلاء نه مراد ملت اسلاميه دي ، رسول الله صلي الله عليه وسلم به په تمام امت اسلاميه باندي شهادت ورکوي ، چاچي نبي عليه السلام ليدلي وي دهرڅه متعلق به گواهي ورکوي.
ابن مبارك دسعيد بن المسيب قول نقل کړي دي چي هره ورځ سحر اومابنام رسول الله ته خپل امت پيش کيږي او هغه ددوئ خصوصي اعمال او علامت پيژني ، نوځکه به هغه دقيامت په ورځ دتمام امت متعلق گواهي ورکوي

دبعضو په نزدباندي د هؤلاء نه مراد انبياء عليهم السلام دي ځکه چي انبياء به پخپلو خپلو امتونو باندي شهادت ورکوي اورسول الله صلي الله عليه وسلم به دانبياؤ دشهادت تصديق کوي ، دبعضي علماؤ قول دي چي دهؤلاء نه ددي امت مومنان مراددي دانبياؤ دطرف نه به شهادت ورکوي چي دوئ ربتيا وائي اورسول الله به دمومنانو تصديق کوي په انبياؤ باندي داهل اسلام دشهادت ذکر مونږ دسورة بقره په ايت لتكونوا شهداء علي الناس کي کړي دي

***************

٣٠٢٦ـ حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ أَبِي جَعْفَرٍ الرَّازِيِّ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ السَّائِبِ، عَنْ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ السُّلَمِيِّ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ، قَالَ: "صَنَعَ لَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَوْفٍ طَعَامًا، فَدَعَانَا وَسَقَانَا مِنَ الخَمْرِ، فَأَخَذَتِ الخَمْرُ مِنَّا، وَحَضَرَتِ الصَّلَاةُ فَقَدَّمُونِي، فَقَرَأْتُ "قُلْ يَا أَيُّهَا الكَافِرُونَ" "لَا أَعْبُدُ مَا تَعْبُدُونَ، وَنَحْنُ نَعْبُدُ مَا تَعْبُدُونَ، قَالَ: فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى: يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَقْرَبُوا الصَّلَاةَ وَأَنْتُمْ سُكَارَى حَتَّى تَعْلَمُوا مَا تَقُولُونَ (النساء: ٤٣)".
قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** دعلي رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه زمونږ دپاره خوراك تيار کړو او بيا يي مونږ ته دعوت راکړو په مونږ يي خوراك اوکړو.او شراب يي راباندي اوڅکل نو شرابو زمونږ عقلونه بيکاره کړل او په دي دوران کي دمونځ وخت راغي نو خلقو زه دامامت دپاره مخکي کړم نو ما قل يا ايهالکافرون لا اعبد ماتعبدون ونحن

[1] ـ سنن ابي داود/ الأشربة ١ (٣٦٧١) (تحفة الأشراف: ١٠١٧٥)

نعبدماتعبدون" اولوستلو نو دي وخت كي الله تعالى ايت كريمه " يَأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لا تَقْرَبُوا الصَّلاةَ وَأَنْتُمْ سُكَارَى حَتَّى تَعْلَمُوا مَا تَقُولُونَ " نازل كړو
امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح غريب دي

* * * * * * * * * * * * * * * * * *

٣٠٢٧_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ أَنَّهُ حَدَّثَهُ، أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ الزُّبَيْرِ حَدَّثَهُ، أَنَّ رَجُلًا مِنَ الأَنْصَارِ خَاصَمَ الزُّبَيْرَ فِي شِرَاجِ الحَرَّةِ الَّتِي يَسْقُونَ بِهَا النَّخْلَ. فَقَالَ الأَنْصَارِيُّ: سَرِّحِ المَاءَ يَمُرُّ. فَأَبَى عَلَيْهِ. فَاخْتَصَمُوا إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلزُّبَيْرِ: " اسْقِ يَا زُبَيْرُ. وَأَرْسِلِ المَاءَ إِلَى جَارِكَ ". فَغَضِبَ الأَنْصَارِيُّ، وَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَنْ كَانَ ابْنَ عَمَّتِكَ. فَتَغَيَّرَ وَجْهُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. ثُمَّ قَالَ: " يَا زُبَيْرُ، اسْقِ وَاحْبِسِ المَاءَ حَتَّى يَرْجِعَ إِلَى الجَدْرِ ". فَقَالَ الزُّبَيْرُ: وَاللَّهِ إِنِّي لَأَحْسِبُ هَذِهِ الآيَةَ نَزَلَتْ فِي ذَلِكَ فَلا وَرَبِّكَ لا يُؤْمِنُونَ حَتَّى يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ (النساء :٦٥ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: سَمِعْت مُحَمَّدًا، يَقُولُ: قَدْ رَوَى ابْنُ وَهْبٍ هَذَا الحَدِيثَ عَنِ اللَّيْثِ بْنِ سَعْدٍ، وَيُونُسُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ نَحْوَ هَذَا الحَدِيثِ، وَرَوَى شُعَيْبُ بْنُ أَبِي حَمْزَةَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنِ الزُّبَيْرِ. وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ. (١)

**ترجمه** دعبدالله بن زبير رضي الله عنه نه مروي دي چې يو انصاري د(دده دپلار) زبير بن عوام رضي الله عنه سره دحره مقام دلختي په معامله كي چې خلقو به ورباندي دكجورو باغونه اوبه كول جګړه اوكړه انصاري زبير بن عوام ته اوونيل اوبه پريږده چې بهيږي تردي چې زما پتي ته راشي زبير رضي الله عنه انكار اوكړو نو دوی خپله جګړه رسول الله صلي الله عليه وسلم ته پيش كړه نورسول الله زبير ته اوفرمائيل اي زبير نه خپل فصل خړوب كړه او بيا دګاونډي پتي ته اوبه پريږده ددي خبري په اودريدو انصاري غصه شو او ونيل يې اي دالله رسوله تا دا خبره خكه اوكړه چې زبير ستا دترور خوي دي! ددي په اوريدو سره درسول الله دمخ رنګ بدل شو او ويې فرمائيل اي زبير خپل فصل خړوب كړه او اوبه دومره پوري حصاري كړه چې پولو ته ورسيږي زبير وائي په الله قسم زه ګمان كوم چې ايت كريمه " فَلا وَرَبِّكَ لا

(١) _ انظر حديث رقم ١٣٦٣

يُؤْمِنُونَ حَتَّى يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ " هرګز داسي نه ده ستا په رب قسم هغه وخته پورې دوی مومنان نشي جوړیدی څو پورې چي دخپلو اندروني اختلافاتوفیصله کونکی اوحاکم تاله ونه ګرځوي. ددي مقدمي په باره کي نازل شوي دي.
امام ترمذي وايي ما دامام بخاري نه اوریدلي دي چي ابن وهب په سند د اللیث بن سعد ویونس عن الزهري عن عروة عن عبدالله بن زبیر سره ددي هم معني روایت نقل کړي دي. او شعیب بن ابي حمزه په سند د زهري عن عروه عن الزبیر سره نقل کړي دي او هغوی پخپل سند کي دعبدالله بن زبیر واسطه نه ده ذکر کړي.
**تشریح** :فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتَّى يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ . په صحاح سته کي مذکور دي چي د حره مقام دغر په یو لختي باندي دفصلونداوبو کولو متعلق دزبیربن عوام رضي الله عنه دیو انصاري سره جګړه اوشوه دواړه دنبي علیه السلام په خدمت کي حاضر شول نبي علیه السلام حکم اوکړو اي زبیر ته مخکي خپل فصل اوبه کړه او بیا خپل ګاونډي ته اوبه پریږده . انصاري په دي فیصله باندي راضي نه شو او ویي وئیل اي دالله رسوله ددي فیصلي وجه دا ده چي زبیر ستا دترور خوي دي نبي علیه السلام چي دا واوریدل نو رنګ یي بدل شو او ویي فرمائیل اي زبیر دخپل فصل داوبه کولو نه پس اوبه دومره حصاري کړه چي ګیټو ته ورسیږي ،په شروع کي نبي علیه السلام داسي مشوره ورکړي وه چي دزبیر او انصاري دواړو کار اوشي لیکن چي هغه درباندي خوشحاله نه شو نو دوباره یي زبیر ته داسي حکم اوکړو چي هغه خپل پوره حق وصول کړو (اګر چي دانصاري په دي کي نقصان وو. یعني اولني حکم استحبابي وو او دویم استحقاقي).
دزبیر رضي الله عنه بیان دي کله چي انصاري رسول الله لره خفه کړو نوپه صراحت سره یي ماته دپوره حق ملاویدو حکم صادر کړو نوپه الله قسم زما خیال دي چي پورتني ایت هم په دي سلسله کي نازل شو.
طبراني په کبیر کي اوحمیدي په مسند کي دام سلمه رضي الله عنها نه روایت بیان کړي دي چي دزبیر رضي الله عنه دیوکس سره جګړه اوشوه دواړو خپله معامله نبي علیه السلام ته پیش کړه نونبي علیه السلام دزبیر په حق کي فیصله اوکړه نودهغه مخالف اوونیل دزبیر په حق کي دي خکه فیصله اوکړه چي هغه ستا دترور خوي دي نوپه دي باره کي دا ایت نازل شو بغوي لیکلي دي چي دیو انصاري دزبیر رضي الله عنه سره جګړه اوشوه دانصاري نوم حاطب بن ابي بلتعه وو ، ابن ابي حاتم دسعید بن مسیب نه روایت بیان کړي دي چي ددي ایت نزول دزبیر بن عوام رضي الله عنه او دحاطب بن ابي بلتعه رضي الله عنه متعلق شوي دي داوبو په

معامله باندي دواړو جګړه کړي وه اورسول الله فيصله اوکړه چې اول لوړي زمکي ته اوبه ورکړئ بيا ژوري زمکي ته.

***************

٣٠٢٨ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ، قَالَ: سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ يَزِيدَ يُحَدِّثُ، عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، أَنَّهُ قَالَ فِي هَذِهِ الآيَةِ: فَمَا لَكُمْ فِي الْمُنَافِقِينَ فِئَتَيْنِ (النساء :٨٨)، قَالَ: رَجَعَ نَاسٌ مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ أُحُدٍ، فَكَانَ النَّاسُ فِيهِمْ فَرِيقَيْنِ: فَرِيقٌ يَقُولُ اقْتُلْهُمْ، وَفَرِيقٌ يَقُولُ: لاَ، فَنَزَلَتْ هَذِهِ الآيَةَ فَمَا لَكُمْ فِي الْمُنَافِقِينَ فِئَتَيْنِ (النساء :٨٨)، وَقَالَ: إِنَّهَا طِيبَةُ، وَقَالَ: إِنَّهَا تَنْفِي الْخَبَثَ كَمَا تَنْفِي النَّارُ خَبَثَ الْحَدِيدِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ يَزِيدَ هُوَ الأَنْصَارِيُّ الْخَطْمِيُّ وَلَهُ صُحْبَةٌ. (١)

**ترجمه** دعبدالله بن يزيد رضي الله عنه نه مروي دي چې زيد بن ثابت رضي الله عنه دايت كريمه "فمالكم في المنافقين فئتين" دتفسير متعلق وائي دغزوه احد په ورځ درسول الله صلي الله عليه وسلم بعضي ملګري (يعني منافقان) دجنګ نه واپس شول نو خلق په دي سلسله كي په دوه ډلو اووېشل شول يوي ډلي ونيل دوئ قتل كړئ او بلي ډلي ونيل مه يي قتل كوئ نو دي باره كي ايت كريمه " فَمَا لَكُمْ فِي الْمُنَافِقِينَ فِئَتَيْنِ " نازل شو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل مدينه يو پاك ښار دي دا ښار ناپاكي او ګندګي ډيره لري غورځوي لكه څنګه چې اور داوسپني خيري لري غورځوي (اومنافقان دلته نشي پاتي كيدي).

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي او عبدالله بن يزيد انصاري خطمي دي او دنبي كريم صلي الله عليه وسلم دصحبت شرف ورته حاصل دي

**عبدالله بن يزيد خطمي صحابي رضي الله عنه مختصر حالات**

نوم عبدالله كنيه ابو موسي قبيله اوس او دپلار نوم يي يزيد دی

دخپل پلار سره يوځاي مسلمان شوی دی او په بيعت الرضوان كي يي شركت كړی دی او پدغه وخت كي دده عمر اولس كاله وو عبدالله بن زبير دخلافت په زمانه كي ديو څو ورځو دپاره دمكي امير پاتي شوی دی دده په باره كي حافظ ابن حجر ليكلي دي كان اكثر الناس

[1] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /فضائل المدينة ١٠ (١٨٨٣) . والمغازي ١٧ (٤٠٥٠) . وتفسير النساء ١٥ (٤٥٨٩) ١٠ صحيح مسلم /المناسك ٨٨ (١٣٨٣) . والمنافقين ٦ (٢٧٧٦) (تحفة الأشراف : ٣٧٢٤)

صلاة وكان لايصوم الا يوم عاشورا، يعني دخپلو ملګرو نه دمونځ په کثرت کې ممتاز وو البته روژه به يې دعاشوري ضرور نيوله په کوفه کې وفات شوی دی او دمروياتو شمير يې ۱۲۷ دی چې بعضې په دې کې بلا واسطه درسول الله صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي دي او بعضې يې دابو ايوب انصاري او ابن مسعود او حذيفه بن يمان او عمر رضي الله عنهم نه نقل کړي دي

****************

۳۰۲۹_حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ مُحَمَّدٍ الزَّعْفَرَانِيُّ، حَدَّثَنَا شَبَابَةُ، حَدَّثَنَا وَرْقَاءُ بْنُ عُمَرَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "يَجِيءُ الْمَقْتُولُ بِالْقَاتِلِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ نَاصِيَتُهُ وَرَأْسُهُ بِيَدِهِ وَأَوْدَاجُهُ تَشْخَبُ دَمًا، يَقُولُ: يَا رَبِّ هَذَا قَتَلَنِي حَتَّى يُدْنِيَهُ مِنَ الْعَرْشِ". قَالَ: فَذَكَرُوا لِابْنِ عَبَّاسٍ التَّوْبَةَ فَتَلَا هَذِهِ الْآيَةَ وَمَنْ يَقْتُلْ مُؤْمِنًا مُتَعَمِّدًا فَجَزَاؤُهُ جَهَنَّمُ (النساء :۹۳)، قَالَ: مَا نُسِخَتْ هَذِهِ الْآيَةُ وَلَا بُدِّلَتْ وَأَنَّى لَهُ التَّوْبَةُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَقَدْ رَوَى بَعْضُهُمْ هَذَا الْحَدِيثَ عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ نَحْوَهُ وَلَمْ يَرْفَعْهُ.[1]

**ترجمه** · عبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دقيامت په ورځ به مقتول اوقاتل دواړه يو ځاي راوستلي شي چې دده تندي او سر به دمقتول په لاسونوکي وي دمقتول درګونو نه به وينه بهيږي او وائي به اي زما ربه ده زه قتل کړي وم او په رابنکلو به يې عرش ته رانزدي کړي، راوي وائي خلقو ابن عباس ته دتوبي ذکر اوکړو نو هغه دا ايت کريمه "ومن يقتل مؤمنا متعمدا فجزاءه جهنم" تلاوت کړو او فرمائيل يې چې دا ايت نه منسوخ شوي دي او نه بدل شوي دي نو بيا دده توبه به څنګه قبوله شي

امام ترمذي وايي: داحديث حسن دي، دا حديث بعضې راويانو دعمرو بن دينار په واسطه دابن عباس نه په همدي مضمون نقل کړي دي او مرفوع يې نه دي بيان کړي

****************

۳۰۳۰_حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ أَبِي رِزْمَةَ، عَنْ إِسْرَائِيلَ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "مَرَّ رَجُلٌ مِنْ بَنِي سُلَيْمٍ عَلَى نَفَرٍ مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللَّهِ

[1] _ سنن النسائي/المحاربة (تعظيم الدم) ۲ (۴۰۱۰) (تحفة الأشراف : ۶۳۰۲) (وانظر أيضا: سنن النسائي/المحاربة ۲ (۴۰۰۴، ۴۰۰۹)، و ۴۸ (۴۸۷۰)، وسنن ابن ماجه/الديات ۲ (۲۶۲۱)، ومسند احمد (۲۲۰/۱، ۲۹۴، ۳۶۴)

صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَعَهُ غَنَمٌ لَهُ فَسَلَّمَ عَلَيْهِمْ. قَالُوا: مَا سَلَّمَ عَلَيْكُمْ إِلَّا لِيَتَعَوَّذَ مِنْكُمْ ؟ فَقَامُوا: فَقَتَلُوهُ وَأَخَذُوا غَنَمَهُ فَأَتَوْا بِهَا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى: يَأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا ضَرَبْتُمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَتَبَيَّنُوا وَلا تَقُولُوا لِمَنْ أَلْقَى إِلَيْكُمُ السَّلَمَ لَسْتَ مُؤْمِنًا (النساء :٩٤)". قَالَ أَبُو عِيسَى ١٢: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. وَفِي الْبَابِ. عَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ. (١)

**ترجمه** : دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما بيان دي فرمائي چې بني سليم قبيلي يو كس دصحابه كرامو په يوې ډلي تير شو چې خپلي چيلۍ هم ورسره وې هغه خلقو ته سلام اوكړو خلقو ورته اووئيل چې ده خو ستاسو نه دپناه اخستلو دپاره سلام اوكړو بيا خلق ورپاخيدل او دي يې قتل كړو او دده چيلۍ يې قبضه كړې او رسول الله صلي الله عليه وسلم ته يې راوستلې دي وخت كې الله تعالى دا ايت كريمه " يَأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا ضَرَبْتُمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَتَبَيَّنُوا وَلا تَقُولُوا لِمَنْ أَلْقَى إِلَيْكُمُ السَّلَمَ لَسْتَ مُؤْمِنًا " يعني اي مومنانو كله چې تاسو دالله په لار كې يئ نو تحقيق كوئ او چې څوك درباندي سلام واچوي تاسو ورته مه وايئ چې ته مومن نه يې

امام ترمذي وايي: دا حديث حسن دي او په دي باب كې داسامه بن زيد رضي الله عنه نه هم حديث وارد دي

******************

٣٠٣١ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ. حَدَّثَنَا وَكِيعٌ. حَدَّثَنَا سُفْيَانُ. عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ. عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ. قَالَ: " لَمَّا نَزَلَتْ لا يَسْتَوِي الْقَاعِدُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ (النساء :٩٥). جَاءَ عَمْرُو ابْنُ أُمِّ مَكْتُومٍ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ: وَكَانَ ضَرِيرَ الْبَصَرِ. فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ. مَا تَأْمُرُنِي إِنِّي ضَرِيرُ الْبَصَرِ. فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى هَذِهِ الْآيَةَ: غَيْرُ أُولِي الضَّرَرِ (النساء :٩٥). فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِيتُونِي بِالْكَتِفِ وَالدَّوَاةِ أَوِ اللَّوْحِ وَالدَّوَاةِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَيُقَالُ عَمْرُو ابْنُ أُمِّ مَكْتُومٍ. وَيُقَالُ عَبْدُ اللَّهِ ابْنُ أُمِّ مَكْتُومٍ. وَهُوَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ زَائِدَةَ. وَأُمُّ مَكْتُومٍ أُمُّهُ. (٢)

**ترجمه** دبراء بن عازب رضي الله عنه بيان دي فرمائي چې كله ايت كريمه "لايستوي

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ٦١١٩)

[2] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /الجهاد ٣١ (٢٨٣١). وتفسير النساء ١٨ (٤٥٩٣، ٤٥٩٤). وفضائل القرآن ٤ (٤٩٩٠). صحيح مسلم /الإمارة ٤٠ (١٨٩٨) (تحفة الأشراف : ١٨٥٤)

القاعدون من المؤمنين" نازل شو نو عمرو بن ام مكتوم رضي الله عنه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم خدمت کي حاضر شو او هغه نابينا وو عرض يي اوكړو اي دالله رسوله تاسو ماته څه حکم کوئ زه خوړوند يم نو الله تعالي دا ايت كريمه "غير اولي الضرر" نازل کړو يعني مريضان او معذورين معاف دي. رسول الله اوفرمائيل ماته داوکي هډوکي او رنګ راوړئ او كه داسي اوونيل چي تخته او رنګ راوړئ چي زه ورته ليکلي ورکړم چي ته دمعذورينو نه يي امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي او په دي روايت کي عمرو بن ام مكتوم رضي الله عنه ونيلي شوي دي مګر ده ته عبدالله بن ام مكتوم هم ونيلي شي هغه عبدالله بن زائده دي او ام مكتوم دده دمور نوم دي

***************

٣٠٣٢ـ حَدَّثَنَا الحَسَنُ بْنُ مُحَمَّدٍ الزَّعْفَرَانِيُّ، حَدَّثَنَا الحَجَّاجُ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ ابْنِ جُرَيْجٍ، أَخْبَرَنِي عَبْدُ الكَرِيمِ، سَمِعَ مِقْسَمًا مَوْلَى عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الحَارِثِ يُحَدِّثُ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّهُ قَالَ: "لا يَسْتَوِي القَاعِدُونَ مِنَ المُؤْمِنِينَ غَيْرُ أُولِي الضَّرَرِ (النساء :٩٥) عَنْ بَدْرٍ، وَالخَارِجُونَ إِلَى بَدْرٍ لَمَّا نَزَلَتْ غَزْوَةُ بَدْرٍ، قَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ جَحْشٍ، وَابْنُ أُمِّ مَكْتُومٍ: إِنَّا أَعْمَيَانِ يَا رَسُولَ اللَّهِ، فَهَلْ لَنَا رُخْصَةٌ؟ فَنَزَلَتْ لا يَسْتَوِي القَاعِدُونَ مِنَ المُؤْمِنِينَ غَيْرُ أُولِي الضَّرَرِ (النساء :٩٥) وَفَضَّلَ اللَّهُ المُجَاهِدِينَ عَلَى القَاعِدِينَ دَرَجَةً، فَهَؤُلَاءِ القَاعِدُونَ غَيْرُ أُولِي الضَّرَرِ وَفَضَّلَ اللَّهُ المُجَاهِدِينَ عَلَى القَاعِدِينَ أَجْرًا عَظِيمًا ٩٥ (دَرَجَاتٍ مِنْهُ (النساء :٩٤-٩٥) عَلَى القَاعِدِينَ مِنَ المُؤْمِنِينَ غَيْرِ أُولِي الضَّرَرِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الوَجْهِ مِنْ حَدِيثِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَمِقْسَمٌ يُقَالُ: هُوَ مَوْلَى عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الحَارِثِ، وَيُقَالُ: هُوَ مَوْلَى ابْنِ عَبَّاسٍ وَكُنْيَتُهُ أَبُو القَاسِمِ. [1]

**ترجمه** عبدالله بن عباس رضي الله عنهما دا ايت كريمه "لا يَسْتَوِي القَاعِدُونَ مِنَ المُؤْمِنِينَ غَيْرُ أُولِي الضَّرَرِ" بغير د جسماني اومالي، عذر نه ناست مومنان (جهاد پريخودونکي) چي خاوندان دضرر نه وي برابر ندي. په تفسير کي فرمائي کله چي دجنګ بدر موقعه راغله نو دغه وخت دا ايت كريمه په جنګ بدر کي دشريکيدونکو او نه شريکيدونکو مسلمانانو متعلق نازل شو دعبدالله بن جحش او ابن ام مكتوم رضي الله عنهما دواړو اوونيل اي دالله رسوله مونږ دواړه ړانده يو ايا زمونږ دپاره دپاتي کيدو اجازت شته چي دمجاهدينو سره لاړنشو؟ تردي چي دغه وخت کي ايت كريمه "لا يَسْتَوِي القَاعِدُونَ مِنَ المُؤْمِنِينَ غَيْرُ أُولِي

[1] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /المغازي ٥ (٣٩٥٤)، وتفسير النساء ١٩ (٤٥٩٥) (تحفة الأشراف : ٦٤٩٢)

الضَّرَرِ "او الله تعالي مجاهدينو ته په ناستو خلقو يوه درجه او فضيلت ورکړي دي او دناستو خلقو نه مراد په دي ايت کي غير معذورين دي پاتي شول معذوران خلق نو هغوئ دمجاهدينو سره په ثواب کي برابر دي الله تعالي مجاهدينو ته په ناستو خلقو داجر عظيم په ذريعه فضيلت ورکړي دي، او په ناستو مومنانو يي دخپل طرفه دوئ ته د درجو فضيلت ورکړي دي او ناست مومنان هغه دي څوك چي بيماران او معذور نه دي

امام ترمذي وايي دا حديث په دي سند دابن عباس رضي الله عنهما نه حسن غريب مروي دي، دمقسم باره کي وئيلي کيږي چي دي دعبدالله بن حارث ازاد کړي غلام دي او دا هم وئيلي کيږي چي دابن عباس ازاد کړي غلام دي او دابن مقسم اسم کنيه ابو القاسم ده.

**تشريح**: بخاري ، ابوداود ، نسائي دزيد بن ثابت په روايت سره اوصرف بخاري دبراء بن عازب رضي الله عنه په روايت سره اوطبراني دزيد بن ارقم نه او ابن حبان دابن عاصم نه اوترمذي دابن عباس رضي الله عنهما نه روايت نقل کړي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم زيد بن ثابت رضي الله عنه ته ليکلي وو: لَا يَسْتَوِي الْقَاعِدُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُجَاهِدُونَ فِي سَبِيلِ اللهِ . غَيْرُ أُولِي الضَّرَرِ ، يعني په شروع دمن المومنين نه پس دغير اولي الضرر لفظ نه وو ، نبي عليه السلام په ليکلو کي مصروف وو چي ابن ام مکتوم راغي او عرض ني وکړو چي ايا که ما جهاد کولي شوي نوضرور به مي کړي وو خکه چي هغه نابينا وو ، دابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي چي عبدالله بن جحش او ابن ام مکتوم دواړه راغلل او عرض ني وکړو چي مونږ خو ړانده يونو ايت کريمه: لَا يَسْتَوِي الْقَاعِدُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُجَاهِدُونَ . نازل شو .

دزيد بن ثابت رضي الله عنه بيان دي چي کله دا ايت کريمه نازل شونوپدغه وخت دنبي کريم صلي الله عليه وسلم پتون زما په پتون باندي وو ، دوحي دنزول په مابانډي دومره بوج پريوتو چي زه وويريدم چي چرته زما ورون مات نشي نو وحي ختمه شوه اوموجوده ايت نازل شو.

په ايت کي غَيْرُ أُولِي الضَّرَرِ د القَاعِدُونَ صيفت دي اويا بدل دي اوغير دلته اکتساب دتعريف کړي دي خکه چي غير اولي الضرر هغه څوك وي چي مضرنه وي

صاحب قاموس ليکلي دي چي دضر پشان ضرر هم په معني دبد حالئ دي هم په دي وجه باندي نابينا ته هم ضرير وئيلي شي ،خکه چي دده سترګي مفقود کيږي، ، دلته داولي الضرر نه مراد هغه کسان دي چي ړانده اوګوډ اوجسماني ضعيفان ياضعيف البصر اوقليل المال نه وي. (قاموس)

*****************

٣٠٣٣ـ حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ صَالِحِ بْنِ كَيْسَانَ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، حَدَّثَنِي سَهْلُ بْنُ سَعْدٍ، قَالَ: رَأَيْتُ مَرْوَانَ بْنَ الحَكَمِ جَالِسًا فِي المَسْجِدِ فَأَقْبَلْتُ حَتَّى جَلَسْتُ إِلَى جَنْبِهِ فَأَخْبَرَنَا، أَنَّ زَيْدَ بْنَ ثَابِتٍ أَخْبَرَهُ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمْلَى عَلَيْهِ، "لَا يَسْتَوِي القَاعِدُونَ مِنَ المُؤْمِنِينَ وَالمُجَاهِدُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ"، قَالَ: فَجَاءَهُ ابْنُ أُمِّ مَكْتُومٍ وَهُوَ يُمْلِيهَا عَلَيَّ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، وَاللَّهِ لَوْ أَسْتَطِيعُ الجِهَادَ لَجَاهَدْتُ وَكَانَ رَجُلًا أَعْمَى، فَأَنْزَلَ اللَّهُ عَلَى رَسُولِهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَفَخِذُهُ عَلَى فَخِذِي فَثَقُلَتْ حَتَّى هَمَّتْ تَرُضُّ فَخِذِي ثُمَّ سُرِّيَ عَنْهُ، فَأَنْزَلَ اللَّهُ عَلَيْهِ غَيْرُ أُولِي الضَّرَرِ (النساء :٩٥)". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، هَكَذَا رَوَى غَيْرُ وَاحِدٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ نَحْوَ هَذَا، وَرَوَى مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ هَذَا الحَدِيثَ، عَنْ قَبِيصَةَ بْنِ ذُؤَيْبٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، وَفِي هَذَا الحَدِيثِ رِوَايَةُ رَجُلٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ رَجُلٍ مِنَ التَّابِعِينَ، رَوَاهُ سَهْلُ بْنُ سَعْدٍ الأَنْصَارِيُّ، عَنْ مَرْوَانَ بْنِ الحَكَمِ، وَمَرْوَانُ لم يسمع من النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَهُوَ مِنَ التَّابِعِينَ.[1]

**ترجمه** . دسهل بن سعد رضي الله عنه بيان دي فرمائي چې ما مروان بن حكم په مسجد كې ناست اوليدو نو زه هم ورمخكې شوم او دهغه په څنګ كې كيناستم هغه راته اووئيل چې زيد بن ثابت رضي الله عنه ماته خبر راكړې دې چې نبي كريم صلي الله عليه وسلم په ما باندې ددې ايت املا اوكړه " لَا يَسْتَوِي القَاعِدُونَ مِنَ المُؤْمِنِينَ وَالمُجَاهِدُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ " يعني په كورونو كې ناست خلق او دالله په لار كې جهاد كونكي خلق دواړه يو برابر نشي كيدې نو په دې دوران كې ابن ام مكتوم رضي الله عنه نبي كريم صلي الله عليه وسلم ته راورسيدو او رسول الله مونږ ته املا كوله نو ابن ام مكتوم اووئيل اې دالله رسوله زما دې په الله قسم كه ما دجهاد طاقت لرلې نو ضرور به مې جهاد كړې وې هغه يو نابينا انسان دې نو په دې وجه الله تعالي پخپل رسول باندې دهغه متعلق "غير اولي الضرر" ايت نازل كړو او څه وخت چې دا ايت نازل شو هغه وخت درسول الله زنګون زما په زنګون باندې پروت وو او دوحي دنازليدو په وجه دروند شو ماته داسې ښكاريده چې زما ورون ماتيږي (بيا چې كله دوحي دنزول كيفيت ختم شو) نو درسول الله پريشاني ختمه شوه

[1] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح/الجهاد ٣١ (٢٨٣٢)، وتفسير النساء ١٩ (٤٥٩٢) (تحفة الأشراف: ٣٧٣٩)

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي دا رنگې نورو يو څو راويانو دزهري نه او زهري دسهل بن سعد نه دا روايت نقل کړي دي، معمرو دزهري نه دا حديث دقبيصه بن ذويب په واسطه دقبيصه بن زيد بن ثابت نه نقل کړي دي او په دي حديث کي يو روايت درسول الله صلي الله عليه وسلم ديو صحابي دي دتابعينو، چې سهل بن سعد صحابي دمروان بن حکم تابعي نه روايت کړي دي او مروان درسول الله صلي الله عليه وسلم نه اوريدل نه دي کړي هغه تابعي دي

*****************

٣٠٣٤_حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، قَالَ: سَمِعْتُ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي عَمَّارٍ يُحَدِّثُ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بَابَاهْ، عَنْ يَعْلَى بْنِ أُمَيَّةَ، قَالَ: قُلْتُ لِعُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ: إِنَّمَا قَالَ اللَّهُ: أَنْ تَقْصُرُوا مِنَ الصَّلَاةِ إِنْ خِفْتُمْ أَنْ يَفْتِنَكُمُ الَّذِينَ كَفَرُوا (النساء :١٠١). وَقَدْ أَمِنَ النَّاسُ. فَقَالَ عُمَرُ: عَجِبْتُ مِمَّا عَجِبْتَ مِنْهُ. فَذَكَرْتُ ذَلِكَ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقَالَ: " صَدَقَةٌ تَصَدَّقَ اللَّهُ بِهَا عَلَيْكُمْ، فَاقْبَلُوا صَدَقَتَهُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([1])

**ترجمه** يعلي بن اميه وائي چې ما عمربن الخطاب رضي الله عنه ته اوونيل او ښايه چې خلق (په سفر کي) ولی قصر کوي حالانکه الله عز وجل فرمائي: أَنْ تَقْصُرُوا مِنَ الصَّلَاةِ إِنْ خِفْتُمْ أَنْ يَفْتِنَكُمُ الَّذِينَ كَفَرُوا (النساء :١٠١). که چرې تاسو ويره محسوسوئ چې کافران به تاسو په فتنی کې اوغورځوي او اوس دکافرانو نه دويرې کيفيت ختم شوی دی هغه جواب ورکړو چې ما هم تعجب کړی وو پس ماداخبره رسول الله ﷺ ته عرض کړله هغه اوفرمائيل داخوصدقه ده کومه چې الله په تاسو کړي ده، پس قبوله کړئ صدقه د الله تعالي.
امام ترمذي وايي: دا حديث حسن صحيح دي.

*****************

٣٠٣٥_حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ بْنُ عَبْدِ الْوَارِثِ، حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عُبَيْدٍ الْهُنَائِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ شَقِيقٍ، حَدَّثَنَا أَبُو هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَزَلَ بَيْنَ

[1] _ : مسلم/المسافرين ١ (٦٨٦) . سنن ابي داود/ الصلاة ٢٧٠ (١١٩٩) . سنن النسائي/تقصير الصلاة ١ (١٤٣٤) . سنن ابن ماجه/الإقامة ٧٣ (١٠٦٥) (تحفة الأشراف : ١٠٦٥٩) . ومسند احمد (١/٢٥، ٣٦) . وسنن الدارمي/الصلاة ١٧٩ (١٥٣٦)

ضَجْنَانَ وَعُسْفَانَ. فَقَالَ الْمُشْرِكُونَ: إِنَّ لِهَؤُلَاءِ صَلَاةً هِيَ أَحَبُّ إِلَيْهِمْ مِنْ آبَائِهِمْ وَأَبْنَائِهِمْ وَهِيَ الْعَصْرُ. فَأَجْمِعُوا أَمْرَكُمْ فَمِيلُوا عَلَيْهِمْ مَيْلَةً وَاحِدَةً. وَأَنَّ جِبْرِيلَ أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَأَمَرَهُ أَنْ يَقْسِمَ أَصْحَابَهُ شَطْرَيْنِ فَيُصَلِّيَ بِهِمْ وَتَقُومُ طَائِفَةٌ أُخْرَى وَرَاءَهُمْ وَلْيَأْخُذُوا حِذْرَهُمْ وَأَسْلِحَتَهُمْ. ثُمَّ يَأْتِي الْآخَرُونَ وَيُصَلُّونَ مَعَهُ رَكْعَةً وَاحِدَةً ثُمَّ يَأْخُذُ هَؤُلَاءِ حِذْرَهُمْ وَأَسْلِحَتَهُمْ. فَتَكُونُ لَهُمْ رَكْعَةٌ رَكْعَةٌ وَلِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَكْعَتَانِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ مِنْ حَدِيثِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ شَقِيقٍ. عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. وَفِي الْبَابِ. عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ. وَزَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ. وَابْنِ عَبَّاسٍ. وَجَابِرٍ. وَأَبِي عَيَّاشٍ الزُّرَقِيِّ. وَابْنِ عُمَرَ. وَحُذَيْفَةَ. وَأَبِي بَكْرَةَ. وَسَهْلِ بْنِ أَبِي حَثْمَةَ. وَأَبُو عَيَّاشٍ الزُّرَقِيُّ اسْمُهُ زَيْدُ بْنُ صَامِتٍ.[1]

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم د ضجنان او عصفان مقاماتو په مينځ کي قيام اوکړو مشرکانو اووئيل دوئ يو مونځ کوي کوم چي هغوئ ته دخپل پلار او خامنو نه زيات محبوب وي او هغه دمازيګر مونځ دي پس تاسو پوره تيزي اوکړئ او بيا په دوئ باندي ناڅاپي حمله اوکړئ دي وخت کي جبرائيل عليه السلام نبي کريم صلي الله عليه وسلم ته خبر راوړو او حکم يي اوکړو چي خپل صحابه په دوه حصو تقسيم کړه په دوئ کي به يوه ډله تا سره په مونځ ولاړ وي او دويمه ډله به ددوئ نه شاته دحفاظت دپاره ولاړ وي بيا دي ددويمي ډلي خلق راشي او تاسره دي په مونځ اودريږي او مخکني ډلي والا دي اسلحه اوچته کړي او دحفاظت دپاره دي اودريږي نو په دي طريقه به ددواړو يو يو رکعت اوشي او درسول الله به دوه رکعاتونه پوره شي

امام ترمذي وايي په دي سند دعبدالله بن شقيق په روايت چي دابوهريره نه يي نقل کوي دا حديث حسن صحيح غريب دي، او په دي باب کي دعبدالله بن زيد بن ثابت، ابن عباس، جابر، ابوعياش زرقي، ابن عمر، حذيفه، ابوبکره، او سهل بن ابو حثمه رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او دابو عياش نوم زيد بن صامت دي

*****************

٣٠٣٦ـحَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ أَحْمَدَ بْنِ أَبِي شُعَيْبٍ أَبُو مُسْلِمٍ الْحَرَّانِيُّ. حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ الْحَرَّانِيُّ. حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ. عَنْ عَاصِمِ بْنِ عُمَرَ بْنِ قَتَادَةَ. عَنْ أَبِيهِ. عَنْ جَدِّهِ قَتَادَةَ بْنِ النُّعْمَانِ. قَالَ: "كَانَ أَهْلُ بَيْتٍ مِنَّا يُقَالُ لَهُمْ بَنُو أُبَيْرِقٍ بِشْرٌ. وَبُشَيْرٌ. وَمُبَشِّرٌ. وَكَانَ بُشَيْرٌ رَجُلًا

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (أخرجه النسائي في الكبرى) (تحفة الأشراف: ١٣٥٦٦)

مُنَافِقًا يَقُولُ: الشِّعْرَ يَهْجُو بِهِ أَصْحَابَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ثُمَّ يَنْحَلُهُ بَعْضَ الْعَرَبِ، ثُمَّ يَقُولُ: قَالَ فُلَانٌ كَذَا وَكَذَا، قَالَ فُلَانٌ كَذَا وَكَذَا، فَإِذَا سَمِعَ أَصْحَابُ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَلِكَ الشِّعْرَ، قَالُوا: وَاللهِ مَا يَقُولُ هَذَا الشِّعْرَ إِلَّا هَذَا الْخَبِيثُ أَوْ كَمَا قَالَ الرَّجُلُ، وَقَالُوا: ابْنُ الْأُبَيْرِقِ قَالَهَا، قَالَ: وَكَانُوا أَهْلَ بَيْتِ حَاجَةٍ وَفَاقَةٍ فِي الْجَاهِلِيَّةِ وَالْإِسْلَامِ، وَكَانَ النَّاسُ إِنَّمَا طَعَامُهُمْ بِالْمَدِينَةِ التَّمْرُ وَالشَّعِيرُ وَكَانَ الرَّجُلُ إِذَا كَانَ لَهُ يَسَارٌ فَقَدِمَتْ ضَافِطَةٌ مِنَ الشَّامِ، مِنَ الدَّرْمَكِ، ابْتَاعَ الرَّجُلُ مِنْهَا فَخَصَّ بِهَا نَفْسَهُ، وَأَمَّا الْعِيَالُ فَإِنَّمَا طَعَامُهُمُ التَّمْرُ وَالشَّعِيرُ، فَقَدِمَتْ ضَافِطَةٌ مِنَ الشَّامِ فَابْتَاعَ عَمِّي رِفَاعَةُ بْنُ زَيْدٍ حِمْلًا مِنَ الدَّرْمَكِ، فَجَعَلَهُ فِي مَشْرَبَةٍ لَهُ، وَفِي الْمَشْرَبَةِ سِلَاحٌ وَدِرْعٌ وَسَيْفٌ، فَعُدِيَ عَلَيْهِ مِنْ تَحْتِ الْبَيْتِ فَنُقِبَتِ الْمَشْرَبَةُ وَأُخِذَ الطَّعَامُ وَالسِّلَاحُ، فَلَمَّا أَصْبَحَ أَتَانِي عَمِّي رِفَاعَةُ، فَقَالَ: يَا ابْنَ أَخِي، إِنَّهُ قَدْ عُدِيَ عَلَيْنَا فِي لَيْلَتِنَا هَذِهِ فَنُقِبَتْ مَشْرَبَتُنَا فَذُهِبَ بِطَعَامِنَا وَسِلَاحِنَا، قَالَ: فَتَحَسَّسْنَا فِي الدَّارِ وَسَأَلْنَا، فَقِيلَ لَنَا: قَدْ رَأَيْنَا بَنِي أُبَيْرِقٍ اسْتَوْقَدُوا فِي هَذِهِ اللَّيْلَةِ، وَلَا نَرَى فِيمَا نَرَى إِلَّا عَلَى بَعْضِ طَعَامِكُمْ، قَالَ: وَكَانَ بَنُو أُبَيْرِقٍ، قَالُوا: وَنَحْنُ نَسْأَلُ فِي الدَّارِ وَاللهِ مَا نُرَى صَاحِبَكُمْ إِلَّا لَبِيدَ بْنَ سَهْلٍ رَجُلٌ مِنَّا لَهُ صَلَاحٌ وَإِسْلَامٌ، فَلَمَّا سَمِعَ لَبِيدٌ اخْتَرَطَ سَيْفَهُ، وَقَالَ: أَنَا أَسْرِقُ! فَوَاللهِ لَيُخَالِطَنَّكُمْ هَذَا السَّيْفُ أَوْ لَتُبَيِّنُنَّ هَذِهِ السَّرِقَةَ، قَالُوا: إِلَيْكَ عَنْهَا أَيُّهَا الرَّجُلُ فَمَا أَنْتَ بِصَاحِبِهَا، فَسَأَلْنَا فِي الدَّارِ حَتَّى لَمْ نَشُكَّ أَنَّهُمْ أَصْحَابُهَا، فَقَالَ لِي عَمِّي: يَا ابْنَ أَخِي، لَوْ أَتَيْتَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرْتَ ذَلِكَ لَهُ، قَالَ قَتَادَةُ: فَأَتَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقُلْتُ: إِنَّ أَهْلَ بَيْتٍ مِنَّا أَهْلَ جَفَاءٍ عَمَدُوا إِلَى عَمِّي رِفَاعَةَ بْنِ زَيْدٍ فَنَقَبُوا مَشْرَبَةً لَهُ وَأَخَذُوا سِلَاحَهُ وَطَعَامَهُ فَلْيَرُدُّوا عَلَيْنَا سِلَاحَنَا فَأَمَّا الطَّعَامُ فَلَا حَاجَةَ لَنَا فِيهِ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: سَآمُرُ فِي ذَلِكَ، فَلَمَّا سَمِعَ بَنُو أُبَيْرِقٍ أَتَوْا رَجُلًا مِنْهُمْ، يُقَالُ لَهُ: أَسَيْرُ بْنُ عُرْوَةَ فَكَلَّمُوهُ فِي ذَلِكَ، فَاجْتَمَعَ فِي ذَلِكَ نَاسٌ مِنْ أَهْلِ الدَّارِ، فَقَالُوا: يَا رَسُولَ اللهِ، إِنَّ قَتَادَةَ بْنَ النُّعْمَانِ وَعَمَّهُ عَمَدَا إِلَى أَهْلِ بَيْتٍ مِنَّا أَهْلِ إِسْلَامٍ وَصَلَاحٍ يَرْمُونَهُمْ بِالسَّرِقَةِ مِنْ غَيْرِ بَيِّنَةٍ وَلَا ثَبْتٍ، قَالَ قَتَادَةُ: فَأَتَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكَلَّمْتُهُ، فَقَالَ: عَمَدْتَ إِلَى أَهْلِ بَيْتٍ ذُكِرَ مِنْهُمْ إِسْلَامٌ وَصَلَاحٌ تَرْمِيهِمْ بِالسَّرِقَةِ عَلَى غَيْرِ ثَبْتٍ وَلَا بَيِّنَةٍ، قَالَ: فَرَجَعْتُ وَلَوَدِدْتُ أَنِّي خَرَجْتُ مِنْ بَعْضِ مَالِي وَلَمْ أُكَلِّمْ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي ذَلِكَ، فَأَتَانِي عَمِّي رِفَاعَةُ، فَقَالَ: يَا ابْنَ أَخِي، مَا صَنَعْتَ فَأَخْبَرْتُهُ بِمَا قَالَ لِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

وَسَلَّمَ. فَقَالَ: اللَّهُ الْمُسْتَعَانُ فَلَمْ يَلْبَثْ أَنْ نَزَلَ الْقُرْآنُ إِنَّا أَنْزَلْنَا إِلَيْكَ الْكِتَابَ بِالْحَقِّ لِتَحْكُمَ بَيْنَ النَّاسِ بِمَا أَرَاكَ اللَّهُ وَلا تَكُنْ لِلْخَائِنِينَ خَصِيمًا (النساء :١٠٥)بَنِي أُبَيْرِقٍ وَاسْتَغْفِرِ اللَّهَ النساء :١٠٦)أَيْ مِمَّا قُلْتَ لِقَتَادَةَ: إِنَّ اللَّهَ كَانَ غَفُورًا رَحِيمًا ١٠٦) وَلا تُجَادِلْ عَنِ الَّذِينَ يَخْتَانُونَ أَنْفُسَهُمْ إِنَّ اللَّهَ لا يُحِبُّ مَنْ كَانَ خَوَّانًا أَثِيمًا ١٠٧) يَسْتَخْفُونَ مِنَ النَّاسِ وَلا يَسْتَخْفُونَ مِنَ اللَّهِ إِلَى قَوْلِهِ غَفُورًا رَحِيمًا (النساء :١٠٦-١١٠) أَيْ لَوِ اسْتَغْفَرُوا اللَّهَ لَغَفَرَ لَهُمْ وَمَنْ يَكْسِبْ إِثْمًا فَإِنَّمَا يَكْسِبُهُ عَلَى نَفْسِهِ إِلَى قَوْلِهِ وَإِثْمًا مُبِينًا (النساء :١١١ قَوْلَهُ لِلَبِيدٍ وَلَوْلا فَضْلُ اللَّهِ عَلَيْكَ وَرَحْمَتُهُ إِلَى قَوْلِهِ فَسَوْفَ نُؤْتِيهِ أَجْرًا عَظِيمًا (النساء :١١٣-١١٤). فَلَمَّا نَزَلَ الْقُرْآنُ أَتَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالسِّلاحِ فَرَدَّهُ إِلَى رِفَاعَةَ. فَقَالَ قَتَادَةُ: لَمَّا أَتَيْتُ عَمِّي بِالسِّلاحِ وَكَانَ شَيْخًا قَدْ عَشَا أَوْ عَسَى فِي الْجَاهِلِيَّةِ وَكُنْتُ أُرَى إِسْلامُهُ مَدْخُولاً. فَلَمَّا أَتَيْتُهُ بِالسِّلاحِ. قَالَ: يَا ابْنَ أَخِي. هُوَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ. فَعَرَفْتُ أَنَّ إِسْلامَهُ كَانَ صَحِيحًا. فَلَمَّا نَزَلَ الْقُرْآنُ لَحِقَ بُشَيْرٌ بِالْمُشْرِكِينَ فَنَزَلَ عَلَى سُلافَةَ بِنْتِ سَعْدِ ابْنِ سُمَيَّةَ فَأَنْزَلَ اللَّهُ وَمَنْ يُشَاقِقِ الرَّسُولَ مِنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُ الْهُدَى وَيَتَّبِعْ غَيْرَ سَبِيلِ الْمُؤْمِنِينَ نُوَلِّهِ مَا تَوَلَّى وَنُصْلِهِ جَهَنَّمَ وَسَاءَتْ مَصِيرًا . إِنَّ اللَّهَ لا يَغْفِرُ أَنْ يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَلِكَ لِمَنْ يَشَاءُ وَمَنْ يُشْرِكْ بِاللَّهِ فَقَدْ ضَلَّ ضَلالا بَعِيدًا (النساء ١١٥-١١٦). فَلَمَّا نَزَلَ عَلَى سُلافَةَ رَمَاهَا حَسَّانُ بْنُ ثَابِتٍ بِأَبْيَاتٍ مِنْ شِعْرِهِ. فَأَخَذَتْ رَحْلَهُ فَوَضَعَتْهُ عَلَى رَأْسِهَا. ثُمَّ خَرَجَتْ بِهِ فَرَمَتْ بِهِ فِي الأَبْطَحِ ثُمَّ قَالَتْ: أَهْدَيْتَ لِي شِعْرَ حَسَّانَ مَا كُنْتَ تَأْتِينِي بِخَيْرٍ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ. لَا نَعْلَمُ أَحَدًا أَسْنَدَهُ غَيْرَ مُحَمَّدِ بْنِ سَلَمَةَ الْحَرَّانِيِّ. وَرَوَى يُونُسُ بْنُ بُكَيْرٍ وَغَيْرُ وَاحِدٍ هَذَا الْحَدِيثَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ. عَنْ عَاصِمِ بْنِ عُمَرَ بْنِ قَتَادَةَ مُرْسَلٌ. لَمْ يَذْكُرُوا فِيهِ عَنْ أَبِيهِ. عَنْ جَدِّهِ. وَقَتَادَةُ بْنُ النُّعْمَانِ هُوَ أَخُو أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ لِأُمِّهِ. وَأَبُو سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ اسْمُهُ سَعْدُ بْنُ مَالِكِ بْنِ سِنَانٍ. [1]

**ترجمه** قتاده بن نعمان رضي الله عنه وائي په انصارو کي دبنو ابيرق په نوم يو خاندان وو او په دي خاندان کي دري رونړه وو بشر. بشير. او مبشر بشير منافق وو شعرونه به يې ونيل. او په شعرونو کي به يې دصحابه کرامو هجوه بيانوله بيا به يې دا شعر بعضي عربو ته منسوب کړو او ونيل به يې چې فلاني داسي ونيلي دي او فلاني داسي ونيلي .

[1] ــ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ١١٠٧٥)

دي صحابه کرامو چې دا شعرونه واوريدل نو ونيل يې په الله قسم دا دبل چا نه دي بلکه دا هم ددي خبيث کار دي او يا دا چې راوي د خبيث په ځاي الرجل لفظ استعمال کړو هغوئ اوونيل دا شعرونه دابن ابيرق دخولې دي دوئ داسې خلق وو چې دجاهليت او اسلام په دواړو زمانو کې ولږې او فقر زپلي وو، په مدينه کې به دخلقو خوراك کجورې او وربشې وې او چې دکوم بنده سره به وسعت زيات وو او مالدار به وو او چرته به کوم تاجر دشام نه غله او سپين اوړه راوړل نو دې مالدار کس به ورنه لږ واخستل او دا به يې دخان دخوراك دپاره خاص کړل او بال بچ به يې کجورې او وربشې خوړلې يو ځل داسې اوشول چې يو مال بردار اوښ سوار دشام نه راغلو نو زما تره رفاعه بن زيد دسپينو اوړو يوه بورئ واخستله او دا يې پخپل گودام کې کېخودله او په دې گودام کې اسلحه، زغره، او توره هم ايخودلې شوې وه. په دوئ باندې دا ظلم شوې وو چې چا دبهرنه د گودام په کوټه کې سورې اوکړو او تمام راشن او اسلحه يې غلا کړه سحر وخت کې زما تره رفاعه ماته راغلو او ونيل يې اې وراره نن شپه خو ماسره ډير ظلم او زياتې شوې دې زما گودام وهلې شوې دې او زمونږ راشن او اسلحه ټول غلا کړې شوې دې ما په محله کې دمعلومات کولو کوشش اوکړو او دخلقو نه مې تپوسونه اوکړل نو دې باره کې مونږ ته اوونيلې شول چې مونږ بني ابيرق نن شپه ليدلې دي چې اور يې بل کړې وو او زمونږ خيال دادې چې ستاسو په راشن يې جشن مناوولو (يعنې دغلامال يې پخولو) کله چې مونږ په کلي کې تپوسونه کول نو بني ابيرق اوونيل په الله قسم مونږ ته خو ستاسو غل صرف لبيد بن سهل ښکاري لبيد په مونږ کې يو صالح او ربښتونې مسلمان وو کله چې لبيد واوريدل چې بني ابيرق وربانديې دغلام الزام لګوي نو هغه خپله توره راوويستله او ويې ونيل زه غل يم په الله مې دې قسم وي زما دا توره به ستاسو په مينځ کې وي او يا خو به تاسو ددې غلا پته لګوئ خلقو ورته اوونيل توره دې زمونږ نه لرې اوساته ته غل نشې کيدې، مونږ په محله کې مزيد لټول اوکړل نو شك زمونږ صرف په دې کې پاتې شو چې زمونږ غلا بني ابيرق کړې ده زما تره اوونيل اې وراره که ته رسول الله صلي الله عليه وسلم ته ورغلې وې او زما دحادثې ذکر دې ورته کړې وې نو کيدې شي چې زما مال ماته په لاس راغلې وې قتاده بن نعمان وائي زه درسول الله صلي الله عليه وسلم په خدمت کې حاضر شوم او عرض مې اوکړو چې زمونږ دخاندان په کورونو کې په يو کور والا باندې ظلم او زياتې شوې دې (غلا ورنه شوې ده) او زمونږ په تره رفاعه بن زيد باندې ورغلي دي دهغه دکور گودام يې سورې کړې دې او اسلحه او راشن يې غلا کړې دي مونږ دا غواړو چې زمونږ اسلحه مونږ ته واپس راکړې شي او دراشن دواپسئ مطالبه نه کوو، رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل زه په دې باره کې دمشورې او تحقيق کولو نه پس فيصله کوم ، کله چې دا خبره بني ابيرق واوريدله نو هغوئ دخپل قوم يو کس ته ورغلل چې په اسير بن عروه ياديدو

هغه په دي معامله کي خبري اتري اوکړي او دمحلي څه کسان هم په دي معامله کي دهغه سره متفق شول او دوی تول رسول الله صلي الله عليه وسلم ته ورغلل او ونيل يي اي دالله رسوله قتاده بن نعمان او دهغه تره دواړه زمونږ دجملي نه دي او مسلمانان دي او نيک خلق دي بغير دکوم ګواه او بغير دکوم ثبوت نه هغوی په مونږ باندي دغلا الزام لګوي او حال دادي الله تعالي فرمائي " وَمَنْ يَكْسِبْ إِثْمًا فَإِنَّمَا يَكْسِبُهُ عَلَى نَفْسِهِ إِلَى قَوْلِهِ وَإِثْمًا مُبِينًا " په دي کي دابن ابيرق خبري ته اشاره ده چي هغوی ونيلي وو چي مونږ ته ښکاره چي دا غل لبيد بن سهل دي. وړاندي الله تعالي فرمائيل " وَلَوْلا فَضْلُ اللَّهِ عَلَيْكَ وَرَحْمَتُهُ إِلَى قَوْلِهِ فَسَوْفَ نُؤْتِيهِ أَجْرًا عَظِيمًا " کله چي دا ايت نازل شو نو بني ابيرق رسول الله ته راغلل او رسول الله رفاعه ته واپس کړه قتاده وائي چي زما تره بوډا وو او داسلام راوړلو نه مخکي دجاهليت په زمانه کي دهغه نظر کمزوري شوي وو او زه پوهيدم چي دده په ايمان کي څه خلل دي ليکن ماچي کله توره راواخستله او خپل تره ته راورسيدم نو هغه اوونيل اي زما وراره دا زه دالله په لار کي په صدقه کي ورکول غواړم نو زه په دي وخت کي پوهه شوم او يقين مي اوکړو چي زما دتره اسلام پوخ او درست وو پاتي شوه دا چي دقران ايتونه نازل شول نو بشير لاړو او دمشرکانو سره شامل شو او دسلافه بنت سعد بن سميه سره اوسيدو نو دي وخت کي الله تعالي ايت کريمه " وَمَنْ يُشَاقِقِ الرَّسُولَ مِنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُ الْهُدَى وَيَتَّبِعْ غَيْرَ سَبِيلِ الْمُؤْمِنِينَ نُوَلِّهِ مَا تَوَلَّى وَنُصْلِهِ جَهَنَّمَ وَسَاءَتْ مَصِيرًا . إِنَّ اللَّهَ لا يَغْفِرُ أَنْ يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَلِكَ لِمَنْ يَشَاءُ وَمَنْ يُشْرِكْ بِاللَّهِ فَقَدْ ضَلَّ ضَلالا بَعِيدًا " او چا چي خلاف اوکړو د رسول الله صلى الله عليه وسلم پس د هغی نه چي ښکاره شو هغه ته هدايت او روان شو په غير د لاری د مومنانو نو وابه روؤ ده لره کوم خواته چي اوری او داخل به کړو دی جهنم ته او بد دی خائی د ورتللو دا جهنم، يقينا الله تعالی نه بخی چي شرك اوکړی شی د هغه سره او بخنه کوی د هغه ګناهونو چي کم دی د دی نه هغه چاته چي اوغواړی او چا چي شرك اوکړو الله تعالی سره نو يقينا ګمراه شو په ګمراهی لری سره ، نازل کړو کله چي ده دسلافه سره اوسيدل شروع کړل نو حسان بن ثابت رضي الله عنه پخپلو شعرونو کي دهغه هجوه اوکړه ددي په اوريدو هغه دصدافه بن سعد سامان پخپل سر کيخودو او دکور نه اووتلو او په يو ميدان کي يي اوغورځولو او بيا يي اوونيل تاسو مونږ ته دحسان دشعر تحفه راکړي ده؟ ستاسو نه مونږ ته هيڅ فائده نه راخي.

امام ترمذي وايي: داحديث غريب دي او مونږ نه دمحمد بن سلمه حراني نه علاوه بل څوك نه دي معلوم چي دا يي مرفوع بيان کړي وي. يونس بن بکير او بعضي نورو راويانو دا حديث دمحمد بن اسحاق نه او هغه دعاصم بن عمرو بن قتاده نه مرسل نقل کړي دي او هغوی دا نه

دي ذكر كړي چې عاصم دخپل بلار نه او هغه دده دنيكه نه نقل كړي دي، قتاده بن نعمان دابو سعيد خدري رضي الله عنه مورني ورور دي. او دابوسعيد خدري نوم سعد بن مالك بن سنان دي

**تشريح**: په دی ايت كي د رسول الله صلی الله عليه وسلم د اتباع ذكر كوی چې په هغی سره اخلاص كي ثمره پيدا كيږی او د رسول الله صلی الله عليه وسلم د مخالفت نه د خان بچ كولو دپاره ترغيب وركوی د تخويف په طريقه سره. يعنی د رسول الله صلی الله عليه وسلم اتباع وكړی او د رسول الله صلی الله عليه وسلم د مخالفت نه خان بچ كړیٰ او د صحابه كرامو رضی الله عنهم طريقه اختيار كړیٰ چې هغوی د رسول الله صلی الله عليه وسلم پوره اتباع اختيار كړی ود. گنی نو د مخالفت په صورت كي جهنم ته به ورداخل شی

ومن يشاقق الرسول چې يو سړی په غير شرعی طريقه روان وی او شرع بل طرف ته وی د دذ لار يوه وی او د رسول الله طريقه بله وی حالانكه په دی سړی باندی حق واضح شوی وی د هغی د حقانيت دليل ورته معلوم وی بيا هم د رسول الله مخالفت كوی نو الله تعالی فرمائی چې مونږه هم داسی سړی په كړه لار روان كړو

سبيل المؤمنين نه مراد حق دين دی (ابو حيان) د مومنانو عقيده او اعمال او فروع ټولو ته شامل دی (الوسی) المومنين كي الف لام د استغراق د پاره دی د هری زمانی د مومنانو د پاره دی يا الف لام عهدی دی يعنی صحابه كرام فقط او دا قول غوره دی دا رنگ د غلطی لاری اتباع كول مذموم كار دی او هغه خاص دی په مسلك او مذهب جوړولو پوری او مخالفت عام دی مخالفت د فسق په طور او مخالفت په اجتهادی خطائی سره دواړو ته شامل دی د فسق په طور خو مخالفت ښكاره خبره ده ليكن چې عالم اجتهادی خطا كړی وی او يو بل سړی د تقليد د وجی نه د هغهٔ د اجتهادی خطا اتباع كوی او صحيح او صريح حديث د رسول الله صلی الله عليه وسلم رد كوی نو دا هم لويه گناه ده او دا مرض په ډيرو مقلدينو كي شته دی

ضلال دوه قسمه دی يو هغه چې د ايمان سره نهٔ شی يو خایٔ كيدلی نو هغی ته ضلال بعيد وائی او بل ضلال گناهونه دی

***************

٣٠٣٧ـ حَدَّثَنَا خَلَّادُ بْنُ أَسْلَمَ الْبَغْدَادِيُّ، حَدَّثَنَا النَّضْرُ بْنُ شُمَيْلٍ. عَنْ إِسْرَائِيلَ، عَنْ ثُوَيْرِ بْنِ أَبِي فَاخِتَةَ. عَنْ أَبِيهِ. عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ. قَالَ: " مَا فِي الْقُرْآنِ :أَحَبُّ إِلَيَّ مِنْ هَذِهِ الْآيَةِ إِنَّ اللَّهَ لَا يَغْفِرُ أَنْ يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَلِكَ لِمَنْ يَشَاءُ (النساء :٤٨)". قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.

وَأَبُو فَاخِتَةَ اسْمُهُ سَعِيدُ بْنُ عِلَاقَةَ، وَثُوَيْرٌ يُكْنَى أَبَا جَهْمٍ وَهُوَ رَجُلٌ كُوفِيٌّ مِنَ التَّابِعِينَ، وَقَدْ سَمِعَ مِنَ ابْنِ عُمَرَ، وَابْنِ الزُّبَيْرِ، وَابْنُ مَهْدِيٍّ كَانَ يَغْمِزُهُ قَلِيلًا. (1)

**ترجمه** د علي رضي الله عنه بيان دی فرماني چي ماته په قران کي د ټولو نه زيات محبوب آيت دادی "إِنَّ اللَّهَ لَا يَغْفِرُ أَنْ يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَلِكَ لِمَنْ يَشَاءُ"

امام ترمذي وايي. دا حديث حسن غريب دی. اود ابو فاخته نوم سعيد بن علاقه دی. اود ثوير اسم كنيه ابو جهم ده، چي يو كوفي تابعي دی. اود عبدالله بن زبير او ابن عمر نه يي سماع كړي ده، ليكن ابن مهدي به ورباندي تنقيدونه كول

***************

۳۰۳۸ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ أَبِي عُمَرَ، وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي زِيَادٍ الْمَعْنَى وَاحِدٌ، قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنِ ابْنِ مُحَيْصِنٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ قَيْسِ بْنِ مَخْرَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: "لَمَّا نَزَلَ مَنْ يَعْمَلْ سُوءًا يُجْزَ بِهِ (النساء: ۱۲۳) شَقَّ ذَلِكَ عَلَى الْمُسْلِمِينَ فَشَكَوْا ذَلِكَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "قَارِبُوا وَسَدِّدُوا وَفِي كُلِّ مَا يُصِيبُ الْمُؤْمِنَ كَفَّارَةٌ حَتَّى الشَّوْكَةَ يُشَاكُهَا أَوِ النَّكْبَةَ يُنْكَبُهَا". ابْنُ مُحَيْصِنٍ هُوَ عُمَرُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ مُحَيْصِنٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. (2)

**ترجمه** دابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی چي كله ايت كريمه "مَنْ يَعْمَلْ سُوءًا يُجْزَ بِهِ (النساء ۱۲۳)" نازل شول نو مسلمانانو ته ورباندي عمل ګران ښكاره شو نو رسول الله صلي الله عليه وسلم ته يي شكايت وكړو نو رسول الله اوفرمائيل اعتدال سره ددين په لاره باندي چليږئ او دی باندي مضبوطيا سره كلك پاتي شئ مسلمان ته چي څه تكليف اورسي ستوماني، بيماري، پريشاني، غم، تكليف او خفګان تردی چي كه اغزی يی په خپه كي مات شي ددی بدله كي ورته الله تعالي ګناهونه معاف كوي

امام ترمذي وايي دابن محيصن نوم عمر بن عبد الرحمن بن محيصن دی. او دا حديث حسن غريب دی

**لغات**: الشوكة واحد يي شوكة راځي او جمع يي اشواك ده په معني دازغو سره.

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ۱۰۱۱۱)

[2] ـ صحيح مسلم/البر والصلة ۱۴ (۲۵۷۴) (تحفة الاشراف: ۱۴۵۹۸)

**تشريح** "حتي الشوكة يشاكها الا كفر الله بها من خطاياه" يعني تردي چې په خپه کې دا زعي تلو په وجه سري ته کومه پريشاني اورسيږي نو دهغي په بدل کې هم دده گناهونه معاف کيږي
ددينه معلومه شوه چې کله هم کوم انسان ته څه قسم راحت يا تکليف اورسيږي نو دهغه ذهن فورا الله تعالي ته ورځي چې دا دهغه دطرفه دی او صبر دي اوکړي او که صبر اونکړي او دصبر په ځاي جزع فزع او دتقدير نه شکايت شروع کړي نو يو خودده دپاره دنياوي تکليف شو ليکن ددي سره سره به دده دپاره په اخرت کې دثواب نه محروميدل هم وي بلکه ددينه علاوه به دی گنهگار هم وي.

*****************

٣٠٣٩ـ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُوسَى، وَعَبْدُ بْنُ حميد، قَالَا: حَدَّثَنَا رَوْحُ بْنُ عُبَادَةَ، عَنْ مُوسَى بْنِ عُبَيْدَةَ، أَخْبَرَنِي مَوْلَى ابْنِ سِبَاعٍ، قَالَ: سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ يُحَدِّثُ، عَنْ أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ، قَالَ: كُنْتُ عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأُنْزِلَتْ عَلَيْهِ هَذِهِ الآيَةَ: مَنْ يَعْمَلْ سُوءًا يُجْزَ بِهِ وَلا يَجِدْ لَهُ مِنْ دُونِ اللَّهِ وَلِيًّا وَلا نَصِيرًا (النساء: ١٢٣)، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَا أَبَا بَكْرٍ، أَلَا أُقْرِئُكَ :أُنْزِلَتْ عَلَيَّ؟ قُلْتُ: بَلَى يَا رَسُولَ اللَّهِ، قَالَ: فَأَقْرَأَنِيهَا فَلَا أَعْلَمُ إِلَّا أَنِّي قَدْ كُنْتُ وَجَدْتُ انْقِصَامًا فِي ظَهْرِي فَتَمَطَّأْتُ لَهَا، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا شَأْنُكَ يَا أَبَا بَكْرٍ؟ قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، بِأَبِي أَنْتَ وَأُمِّي وَأَيُّنَا لَمْ يَعْمَلْ سُوءًا وَإِنَّا لَمُجْزَوْنَ بِمَا عَمِلْنَا، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَمَّا أَنْتَ يَا أَبَا بَكْرٍ وَالْمُؤْمِنُونَ فَتُجْزَوْنَ بِذَلِكَ فِي الدُّنْيَا، حَتَّى تَلْقَوْا اللَّهَ وَلَيْسَ لَكُمْ ذُنُوبٌ، وَأَمَّا الآخَرُونَ فَيُجْمَعُ ذَلِكَ لَهُمْ حَتَّى يُجْزَوْا بِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، وَفِي إِسْنَادِهِ مَقَالٌ، وَمُوسَى بْنُ عُبَيْدَةَ يُضَعَّفُ فِي الْحَدِيثِ، ضَعَّفَهُ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، وَأَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، وَمَوْلَى ابْنِ سِبَاعٍ مَجْهُولٌ، وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ مِنْ غَيْرِ هَذَا الْوَجْهِ عَنْ أَبِي بَكْرٍ، وَلَيْسَ لَهُ إِسْنَادٌ صَحِيحٌ أَيْضًا، وَفِي الْبَابِ، عَنْ عَائِشَةَ. [1]

**ترجمه** د ابوبکر صديق رضي الله عنه نه مروي دي فرماني چې زه درسول الله صلي الله عليه وسلم سره موجود وم چې دا ايت کريمه " مَنْ يَعْمَلْ سُوءًا يُجْزَ بِهِ وَلا يَجِدْ لَهُ مِنْ دُونِ اللَّهِ وَلِيًّا وَلا نَصِيرًا " نازل شو نو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل اي ابوبکر ايا زه درته يو ايت

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٦٦٠٣)

(چې همدا اوس نازل شو) بیان نکړم؟ ما اووئیل اي دالله رسوله ولي نه ابوبکر رضي الله عنه وائي چې رسول الله ماته مذکوره ایت بیان کړو زه نه پوهیږم چې څه خبره وه مګر دومره مې محسوس کړه چې ملا مي ماتیږي نو ما په دي وجه خان تاؤ کړو رسول الله اوفرمائیل اي ابوبکر څه حال دي ما اووئیل اي دالله رسوله زما مور او پلار دي په تا قربان شي په مونږ کي به څوك داسي وي چې څه بدي او ګناه ورنه نه وي شوي او حال دادي چې زمونږ نه کوم عمل صادریږي زمونږ نه به دهغي بدله اخستلي کیږي رسول الله اوفرمائیل ویریږه مه اي ابو بکر ته او ټول مومنان به وړي وړي سزاګاني تیروي او په همدي دنیا کي به ورته وړکولي کیږي تردي پوري چې کله تاسو دالله تعالي سره مخامخ شوئ نو ستاسو په ذمه به هیڅ ګناه نه وي پاتي شوي البته دنورو خلقو حال به داوي چې ګناهونه به یي جمع شوي وي چې دقیامت په ورځ به ورنه دهغي بدله اخستلي شي.

امام ترمذي وایي: داحدیث غریب دي او محدثینو ددي په سند کلام کړي دي موسي بن عبیده په باب دحدیث کي ضعیف ګڼرلي شوي وي یحي بن سعید او احمد بن حنبل وربانديي کلام کړي دي او مولي بن سباع مجهول دي، او دا حدیث ددي سند نه علاوه په یو بل سند دابوبکر نه هم مروي دي لیکن سند یي صحیح نه دي او په دي باب کي دعائشه رضي الله عنها نه هم روایت وارد دي.

## دابوبکر صدیق رضي الله عنه مختصر حالات

نوم عبدالله کنیه ابوبکر عتیق او صدیق یي لقب وو دپلار نوم یي عثمان وو چې په ابو قحافه مشهور وو او دمور نوم یي سلمي وه چې په ام الخیر مشهوره وه دپلار دطرفه یي نسب نامه داده عبدالله بن عثمان بن عامر بن عمرو بن کعب بن سعد بن تمیم بن مره بن کعب بن لوئ القریشي التمیمي اؤ دمور دطرفه یي نسب نامه داده ام الخیر بنت الصخر بن عامر بن عمرو بن کعب بن سعد بن تمیم بن مرۃ (طبقات ابن سعد).

شپږم پشت مره کي صدیق اکبر رضي الله عنه نسب درسول الله صلي الله علیه وسلم دنسب سره یوخاي کیږي دماشوموالي نه یي درسول الله سره دوستي وه او په تجارت کي به هم ورسره یوخاي تلو (کنز العمال ۳۱۳/۲).

دټولو انسانانو نه مخکي داسلام قبلولو سعادت ورته هم په نصیب شوی وو او په هره غزوه کي درسول الله سره شریك شوی دی او هیڅ کله درسول الله صلي الله علیه وسلم نه جدا شوی نه دی نه داسلام نه مخکي او نه داسلام نه پس بلکه په زندګئ کي او دمرګ نه پس هم یوخاي دي رسول الله صلي الله علیه وسلم دوفات نه پس دهجرت په یولسم کال تمامو خلقو په اتفاق سره اولني خلیفه مقرر کړو دخلافت موده یي دوه کاله او څلور میاشتي وه واضحه کارنامه یي داده چې دقران کریم متفرق اجزاء یي دیوکتاب په شکل کي جمع کړل او ددینه مخکي به قران په

يوخاي نشو موندلی او په ځلورو واړو اطرافو کې چې داسلام خلاف کومي خبري خوريدلي دهغي مخه يي اونيوله او دين ته يي دوباره هغه نوی ترتيب ورکړو په کوم چې رسول الله صلی الله عليه وسلم پريخودلی وو

وفات په صديق اکبر رضي الله عنه باندي تبه راغله او تقريبا پنځلس ورځي په همدي حالت کې تيري شوي چې بيا دګل په ورځ دسه شنبي په شپه د۶۳ کلونو په عمر کې او دجمالي الاولي په ديارلسم ددي دنيا نه سفر اوکړو (ربيع الاول).

دمروياتو شمير يي ۱۴۲ دی چې شپږ پکې متفق عليه دي او يولس صرف په بخاري کې دي او يو په مسلم کې دی.

****************

٣٠٤٠_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ الطَّيَالِسِيُّ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ مُعَاذٍ، عَنْ سِمَاكٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: " خَشِيَتْ سَوْدَةُ أَنْ يُطَلِّقَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقَالَتْ: لَا تُطَلِّقْنِي وَأَمْسِكْنِي وَاجْعَلْ يَوْمِي لِعَائِشَةَ. فَفَعَلَ فَنَزَلَتْ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا أَنْ يُصْلِحَا بَيْنَهُمَا صُلْحًا وَالصُّلْحُ خَيْرٌ (النساء :١٢٨)". فَمَا اصْطَلَحَا عَلَيْهِ مِنْ شَيْءٍ فَهُوَ جَائِزٌ كَأَنَّهُ مِنْ قَوْلِ ابْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. ([1])

**ترجمه** : دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما بيان دي فرمائي چې دسوده رضي الله عنها سره دا ويره وه چې نبي کريم صلي الله عليه وسلم راته چرته طلاق رانکړي نو په دي وجه يي عرض اوکړو ماته طلاق مه راکوه او ما پخپلو بي بيانو کي شامل پريږده او زما دشپي نمبر عائشي ته ورکړه نورسول الله همدا بسي اوکړل تردي چې دي باره کي ايت کريمه " فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا أَنْ يُصْلِحَا بَيْنَهُمَا صُلْحًا وَالصُّلْحُ خَيْرٌ " نازل شو داسي ښکاري چې دا دابن عباس قول دي
امام ترمذي وايي: داحديث حسن غريب دي.

****************

٣٠٤١_حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ، حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ مِغْوَلٍ، عَنْ أَبِي السَّفَرِ، عَنِ الْبَرَاءِ، قَالَ: " آخِرُ :أُنْزِلَتْ أَوْ آخِرُ شَيْءٍ نَزَلَ يَسْتَفْتُونَكَ قُلِ اللَّهُ يُفْتِيكُمْ فِي الْكَلَالَةِ (النساء :١٧٦)". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَأَبُو السَّفَرِ اسْمُهُ سَعِيدُ بْنُ أَحْمَدَ الثَّوْرِيُّ، وَيُقَالُ ابْنُ

---

[1] تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ٦١٢٣)

يُخِيبَ. ([1])

**ترجمه** دبراء بن عازب رضي الله عنه بيان دي فرماني اخري چې کوم ایت نازل شوي وو هغه دادي "يَسْتَفْتُونَكَ قُلِ اللَّهُ يُفْتِيكُمْ فِي الْكَلَالَةِ "
امام ترمذي وايي داحديث حسن دي

****************

٣٠٤٢ـحَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ: حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ عَيَّاشٍ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنِ الْبَرَاءِ، قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ يَسْتَفْتُونَكَ قُلِ اللَّهُ يُفْتِيكُمْ فِي الْكَلَالَةِ (النساء :١٧٦)، فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "تُجْزِئُكَ :الصَّيْفِ".([2])

**ترجمه** دبراء بن عازب رضي الله عنه بيان دي فرمائي چې يو كس درسول الله صلي الله عليه وسلم په خدمت کي حاضر شو او عرض يې اوكړو اي دالله رسوله دايت كريمه "يَسْتَفْتُونَكَ قُلِ اللَّهُ يُفْتِيكُمْ فِي الْكَلَالَةِ " تفسير څه دي؟ رسول الله اوفرمائيل په دي سلسله كي ستاسو دپاره ايت دصيف كافي دي.

****************

## ٦ـ باب وَمِنْ سُورَةِ الْمَائِدَةِ

### دسورة مائدي دبعضي ايتونو تفسير

د دی سورة نوم د دی ايت نه اخستلی شويدی هل يستطيع ربك ان تنزل علينا مائدة من السماء . د قرآن پاك د اكثرو سورتونو د نومونو په شان د دی نوم د سورة د موضوع سره څه خاص تعلق نشته صرف د نورو سورتونو نه د جدا كولو دپاره د علامت په طور دا نوم ايخودلی شويدی

**د نزول زمانه:** د سورة د مضمون نه معلوميږی او د رواياتو نه هم د دی تصديق كيږی چې دا

[1] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح المغازي ٦٦ (٤٣٦٤)، وتفسير النساء ٢٧ (٤٦٠٥)، والفرائض ١٣ (٦٧٤٤)، صحيح مسلم الفرائض ٣ (١٦١٨)، سنن ابي داود الفرائض ٣ (٢٨٨٨) (تحفة الأشراف ١٨٦٥)

[2] ـ انظر ماقبله (تحفة الأشراف ١٩٠٦)

سورة د صلح حديبيه ۶ هـ په اخر یا د ۷ هـ په شروع کي نازل شوی دی. هر کله چې مشرکانو نبی صلی الله علیه وسلم او صحابه کرام په ۶ هـ کي د عمری کولو نه منع کړل. او د حدیبیی په مقام کي فیصله اوشوه چې دا عمره به په راتلونکی کال کي کیږي. نو په دی موقع کي مومنانو ته د بیت الله شریف د سفر اداب اوخودلی شول چې په راتلونکی کال کي د عمری سفر په پوره اسلامی شان سره اوکړی شی او مومنانو ته تاکید اوکړی شی چې کوم زیاتی کافرانو د دوی سره کړی دی د هغی په جواب کي مومنان د کافرانو سره ناروا زیاتی اونه کړی.
د دی سورة د بیان نه معلومیږی چې په دی سورة کي یو خُطبه ده چې دا ټول سورت په یو ځایٔ نازل شوی دی. کیدی شی چې څو ایتونه روستو نازل شوی وی او د مضمون د مناسبت د وجی نه په دی سورة کي لیکلی شوی وی.
**شان نزول:** هر کله چې د سورة العمران او سورة نساء نزول پوری حالات ډیر بدل شوی ؤو او په عرب کي اسلام یو داسی طاقت جوړ شو. چې د مشرکانو د وس او طاقت نه مومنانو له شکست ورکول بهر شو. او باقاعده اسلامی ریاست جوړ شو. او مومنان په اخلاقو. معاشرت او تمدن او په هر څیز کي د کافرانو نه جُدا شول. نو غیر مسلم نا اُمیده شول چې مومنان به بیا د دوی سره په دین کي یو شان شی. او چې کله صلح حدیبیه اوشوه. نو مومنانو ته د دین د تبلیغ یوه بله موقع په لاس راغله او د خوا او شا په علاقو کي خواره شول او د دعوت کار ئی شروع کړو. او د دی کار افتتاح نبی صلی الله علیه وسلم اوکړه. د ایران. روم. مصر او عرب بادشاهانو ته ئی خطونه اولیکل په دی حالاتو کي سورۂ مائده نازل شو.
مضمون او بحث. په دی سورة کي دری ضروری بحثونه دی.
(۱) د مسلمینو د مذهبی. تمدنی او سیاسی ژوند د پاره نور احکام او هدایات په دی کي د حج د سفر اداب مقرر شول. د شعائر الله احترام. د خوراك څښکاك په څیزونو کي د حلال او حرام حدود اوخودلی شول. او د جاهلیت د زمانی خود ساخته حلال او حرام بند کړی شول. د اهل کتابو سره د خوراك څښکاك او د هغوی د زنانو سره د نکاح اجازت ورکړی شو. د اودس. غسل او تیمم قاعدی ذکر شوی. د بغاوت فساد او غلا سزاگانی مقرر شوی. شراب او جواری قطعًا حرام کړی شول. د قسم کفّاره مقرر کړی شوه. او د قانون شهادت د پاره نوری دفعی ذکر شوی.
(۲) مسلمانانو ته نصیحت. چونکه مومنان حاکمان شوی ؤو. د هغوی لاس ته نور طاقت راغلو چې د دی طاقت او حکمرانی په وجه اکثر قومونه گمراه کیږی. د مظلومیت دور په ختمیدلو ؤو. نو دوی ته بار بار نصیحت اوکړی شو. چې په عدل او انصاف سره قائم اوسیږی. د اهل کتابو دروش نه ځان بچ اوساتی. د الله اطاعت او فرمان برداری کویٔ. او کوم لوظونه چې تاسو کړی دی. هغه مهٔ ماتویٔ. او د ټولو معاملو په فیصلو کي د الله د کتاب پابند اوسیږیٔ او د منافقت دروش نه هم ځان بچ ساتی.

۳، یهودیانو او عیسایانو ته نصیحت د یهودیانو زور او طاقت ختم شوی ؤو او د شمالی عرب ټول کلی د یهودیانو د مومنانو د حکومت د لاندی راغلل نو یهودیانو ته تنبیه ورکړی شوه او نیغی لاری طرف ته ورته دعوت ورکړی شو. عیسایانو ته هم د هغوی غلطی عقیدی په تفصیل سره اوخودلی شوی. او دویته په نبی صلی الله علیه وسلم باندی د ایمان راوړلو دعوت ورکړی شو او چې کوم قومونه بُت پرست او مجوسیان ؤو. نو هغوی ته نیغ په نیغه خطاب نه دی کړی شوی د هغوی د پاره هغه خطبی کافی دی کومی چې د عرب مشرکانو ته په دی سورة کې شوی دی

***************

۳۰٤۳_حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ. حَدَّثَنَا سُفْيَانُ. عَنْ مِسْعَرٍ وَغَيْرِهِ. عَنْ قَيْسِ بْنِ مُسْلِمٍ. عَنْ طَارِقِ بْنِ شِهَابٍ. قَالَ: " قَالَ رَجُلٌ مِنَ الْيَهُودِ لِعُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ: يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ. لَوْ عَلَيْنَا أُنْزِلَتْ هٰذِهِ الْآيَةَ الْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ وَأَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِي وَرَضِيتُ لَكُمُ الْإِسْلَامَ دِينًا (المائدة : ۳) لَاتَّخَذْنَا ذَلِكَ الْيَوْمَ عِيدًا. فَقَالَ لَهُ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ: أَنِّي أَعْلَمُ أَيَّ يَوْمٍ أُنْزِلَتْ هٰذِهِ الْآيَةَ أُنْزِلَتْ يَوْمَ عَرَفَةَ فِي يَوْمِ الْجُمُعَةِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** . دطارق بن شهاب نه روایت دي فرمائي چې یو یهودي عمرفاروق رضي الله عنه ته اووئیل اي امیرالمؤمنین که چري دا ایت کریمه "الْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ وَأَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِي وَرَضِيتُ لَكُمُ الْإِسْلَامَ دِينًا " نن ورځ پوره کړو ما تاسو لره دین ستاسو او پوره م کړو نعمت خپل په تاسو او غوره کړی دی ما تاسو لره اسلام دین. په مونږ باندي (په تورات کي) نازل شوي وي نو مونږ به ددي دنازلیدو ورځ اختر مقرر کړي وو عمر فاروق رضي الله عنه ورته اووئیل ماته ښه معلومه ده چې دا ایت په کومه ورځ نازل شوي وو هغه دعرفي ورځ (نهم ذي الحجه) دجمعي ورځ وه

امام ترمذي وایي. داحدیث حسن صحیح دي.

اَلْيَوْمَ اَكْمَلْتُ لَكُمْ دِيْنَكُمْ . یعني داصولو او عقائدو صراحت مي اوکړو یعني فرائض، واجبات. مستحبات. حلال. حرام، مکروه، مفسدات، مشروعات، بیع وغیره اوپه غیر منصوص کي داجتهاد قوانین مي بیان کړل ، دا هم کیدي شي چې ددین دتکمیل نه مراد

[1] ــ اورده البخاري في الجامع الصحيح /الإيمان ۳۳ (٤٥) . والمغازي ٧٧ (٤٤٠٧) . وتفسير المائدة ۲ (٤٦٠٦) . والإعتصام ۱ (٧٢٦٨) . صحيح مسلم /التفسير (۳۰۱۷) . سنن النسائي/الحج ۱۹۲ (۳۰۰٦) . والإيمان ۱۸ (٥٠١٥) (تحفة الأشراف : ۱۰۴۹۸) . و مسند احمد (۲۸/۱ .۳۹)

درسول الله هغي مرتبي ته رسول دي كوم چې دمخكنو او ورستنو ټولو كاملينو خلقو ارمان دي ترديږ پوري چې دنبي عليه السلام دمحبوبيت په درجه دفائز كيدو په وجه الله تعالي دده تمام امت ته ګناهونه معاف كړي دي برابره خبره ده چې دالله حقوق وي اوكه دبندګانو دحقوقو نه وي

دعباس بن مرداس نه روايت دي چې دعرفي په شپه رسول الله صلي الله عليه وسلم دخپل امت دمعافۍ دپاره دعا اوكړه كومه چې يې قبوله كړي شوه او ويې فرمائيل ما علاوه دهغي ظلمونونه كوم چې تاسوپخپل مينځ كي په يوبل كړي وي دټولوګناهونومعافي اوغوښتله اومظلوم بدله به دظالم نه ضرور اخستلي شي، نبي عليه السلام عرض اوكړو زما پروردګاره كه چري ته غواړي نومظلوم ته په بدله كي دجنت كومه حصه وركړه اوظالم معاف كړه خودمابنامه پوري دا سوال قبول نه شو سحربياپه مزدلفه كي رسول الله صلي الله عليه وسلم دخپلي دعا اعاده اوكړه نوپه دغه وخت كي دده درخواست قبول كړي شو اوويې خاندل ابوبكر رضي الله عنه او عمر رضي الله عنه عرض اوكړو الله تعالي دي خنديدونكي اوساته تاخويه داسي وخت كي نه خاندل دننه ني خاندلو وجه څه ده ؟ نو ويې فرمائيل دالله تعالي دشمن ابليس ته چې كله معلومه شوه چې الله تعالي زمادعا قبوله كړه او زماامت ته يې بخشش اوكړو نوپخپل سر يې خاوري شيندلي او چغي يې وهلي ماچې دده ګډوډ كيدل اوليدل نو ومي خندل (رواه البيهقي وابن ماجه في كتاب البعث).

دابن عباس رضي الله عنهمانه روايت دي فرمائي چې ددي ايت دنزول نه پس دحلالو اوحرامو اوفرائضو اوسننو اوحدودو او احكاموپه باره كي هيڅ حكم نه دي نازل شوي

دجابررضي الله عنه په روايت سره دحجة الوداع په قصه كي درسول الله دا فرمان مروي دي چې دجهالت دزماني سود ساقطوم او پخپلو سودونو كي زه اول د عباس بن عبدالمطلب سود ساقطوم اوهغه ټول سود معاف كړي شو.

سعيد بن جبير دمذكوره ايت تشريح داسي كړي ده چې ما اوس ستاسو دين كامل كړو او اوس ستاسو سره په حج كي كوم مشرك شريك نه دي، ددي دا مطلب هم بيان شوي دي چې په ټولو دينونو مي ستاسو دين غالب كړو اوتاسو مي دد: سنانونه بې ويري كړئ

په حجة الوداع كي دعرفي په مقام دجمعي په ورځ دمازيګر دمونځ نه پس دا ايت نازل شو اوپه دغه وخت كي رسول الله صلي الله عليه وسلم په عرفه كي پخپله اوښه عضباء باندي ولاړ وو چې دوحي دبوج په وجه داوښي خپې ماتيدو ته نزدي شوي او دا ايت كريمه نازل شو

بخاري او مسلم په صحيحينو كي يو روايت بيان كړي دي چې يو يهودي عمر رضي الله عنه ته عرض اوكړو چې اي اميرالمؤمنين يو ايت ستاسوپه كتاب كي دي چې تاسو يې لولئ كه چري دا په مونږ نازل شوي وي نومونږ به ددي دنازليدو ورځ داختر ورځ ګرځولي وه عمر

رضي الله عنه تپوس اوکړو چې کوم يو ايت نويهودي اووئيل اَلْيَوْمَ اَكْمَلْتُ لَكُمْ دِيْنَكُمْ عمر رضي الله عنه اوفرمائيل مونږ ته هغه ورځ او هغه مقام معلوم دي په کوم کې چې دا ايت په رسول الله نازل شوي وو په عرفه کې دجمعې په ورځ رسول الله ولاړ وو چې دا ايت نازل شو عمررضي الله عنه پخپل کلام کې دي خبري ته اشاره وکړه چې ددي ايت دنازليدوورځ زمونږ دپاره دوچنده اختر شو يو دعرفې ورځ اوبله دجمعې ورځ

بغوي وئيلي دي کله چې دا ايت نازل شو نوددي په اوريدو سره عمر رضي الله عنه اوژړل رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل اي عمر ولي ژاړې عمر رضي الله عنه عرض اوکړو اي دالله رسوله مالره دا خبره ژړوي چې اوس زمونږ دين په ترقئ کې شروع شو اوکامل شو نودترقئ اوکامل کيدونه پس په ائينده کې دنقصان داحتمال نه علاوه نور څه نشته نبي عليه السلام اوفرمائيل تاربنتيا اووئيل دا ايت درسول الله صلي الله عليه وسلم دوفات کيدو يوخبروو اوچنانچې ددي دنزول نه پس نبي عليه السلام يو اتيا ورځې ژوند تير کړي دي اوپه دريم ربيع الاول په يولسم کال دهجرت ددوشمبې په ورځ دزوال نه پس وفات شو اودهجرت کولوتاريخ يې دولسم ربيع الاول وو.

***************

٣٠٤٤ـ حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، أَخْبَرَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ عَمَّارِ بْنِ أَبِي عَمَّارٍ، قَالَ: "قَرَأَ ابْنُ عَبَّاسٍ اَلْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ وَأَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِي وَرَضِيتُ لَكُمُ الإِسْلَامَ دِينًا (المائدة: ٣) وَعِنْدَهُ يَهُودِيٌّ، فَقَالَ: لَوْ أُنْزِلَتْ هَذِهِ عَلَيْنَا لَاتَّخَذْنَا يَوْمَهَا عِيدًا. قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: فَإِنَّهَا نَزَلَتْ فِي يَوْمِ عِيدٍ فِي يَوْمِ جُمُعَةٍ وَيَوْمِ عَرَفَةَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ حَدِيثِ ابْنِ عَبَّاسٍ وَهُوَ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه** دعمار بن ابي عمار بيان دي فرماني چې ابن عباس رضي الله عنهما ايت کريمه "اَلْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ وَأَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِي وَرَضِيتُ لَكُمُ الإِسْلَامَ دِينًا" اولوستلو او يو يهودي يې خوا کې ناست وو هغه اووئيل که چرې دا ايت په مونږ يهوديانو نازل شوي وي نو ددې دنازليدو ورځ به مونږ داختر ورځ مقرر کړې وه ددې خبرې په اوريدو ابن عباس اووئيل دا ايت هم داختر په ورځ نازل شوي دي او په دغه ورځ جمعه او عرفه وه.

[1] ــ اورده البخاري في الجامع الصحيح/الإيمان ٣٣(٤٥). والمغازي ٧٧(٤٤٠٧). وتفسير المائدة ٢(٤٦٠٦). والاعتصام ١ (٧٢٦٨). صحيح مسلم/التفسير (٣٠١٧). سنن النسائي/الحج ١٩٤(٣٠٠٦). والإيمان ١٨(٥٠١٥) (تحفة الأشراف: ١٠٤٦٨). ومسند احمد (١/٢٨، ٣٩)

امام ترمذي وايي. داحديث دابن عباس په روايت حسن غريب دي.

## دبراء بن عازب رضي الله عنه دزندګۍ حالات

نوم براء كنيه ابو عماره او دبنو حارثه سره يي تعلق وو دپلار نوم يي عازب دی دده ماما ابوبرده بن نيار چې بدري صحابي دی په عقبه کې اسلام قبول كړی دی او دهغه په بركت سره دهغه په خاندان کې اسلام خور شو او چې مسلمان شو نو په مدينه کې يي دمصعب بن عمير او ابن ام مكتوم نه قران يادول شروع كړل په بدر کې براء حاضر شوی وو ليكن دماشوم توب په وجه رسول الله صلي الله عليه وسلم واپس كړی وو (بخاري).

عرض دا چې په احد ، خندق، حديبيه، خيبر،او حنين کې يي شركت كړی دی او دطائف په محاصره حجة الوداع کې يي هم درسول الله صلي الله عليه وسلم ملګرتيا كړي ده ترديچې په پنځلس غزواتو کې شريك شوی دی (مسند احمد).

تواضع او عاجزي او انكساري يي امتيازي صفات دي خپل ځان به يي ناچيز ګڼړلو په كوفه کې يي يو كور جوړ كړی وو او په هغې کې اوسيدو په رواياتو کې به يي ډير احتياط كولو چې دمروياتو شمير يي ۳۰۵ دی ۳۲متفق عليه دي په احاديثو نقل كولو کې به يي داحتياط په مناسبت وئيل "ماكل الحديث سمعناه من رسول الله صلي الله عليه وسلم كان يحدثنا اصحابنا عنه كانت شغلنا عنه رعية الابل ، مسند احمد"

يعني ځومره احاديث چې زه بيانوم په هغې کې دا ضروري نه ده چې ټول مي دي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي دي موږ خو به اوښان څرول نو په دي وجه به هر وخت درسول الله په خدمت کې حاضريدی نشو

*****************

۳۰٤٥_حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنِ الأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " يَمِينُ الرَّحْمَنِ مَلْأَى سَحَّاءُ لَا يُغِيضُهَا اللَّيْلُ وَالنَّهَارُ، قَالَ: أَرَأَيْتُمْ مَا أَنْفَقَ مُنْذُ خَلَقَ السَّمَوَاتِ وَالأَرْضَ؟ فَإِنَّهُ لَمْ يَغِضْ مَا فِي يَمِينِهِ، وَعَرْشُهُ عَلَى المَاءِ، وَبِيَدِهِ الأُخْرَى المِيزَانُ يَرْفَعُ وَيَخْفِضُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ وَهَذَا الحَدِيثُ فِي تَفْسِيرِ هَذِهِ الآيَةِ وَقَالَتِ اليَهُودُ يَدُ اللَّهِ مَغْلُولَةٌ غُلَّتْ أَيْدِيهِمْ وَلُعِنُوا بِمَا قَالُوا بَلْ يَدَاهُ مَبْسُوطَتَانِ يُنْفِقُ كَيْفَ يَشَاءُ (المائدة: ٦٤) وَهَذَا حَدِيثٌ قَدْ رَوَتْهُ الأَئِمَّةُ نُؤْمِنُ بِهِ كَمَا جَاءَ مِنْ غَيْرِ أَنْ يُفَسَّرَ أَوْ يُتَوَهَّمَ. هَكَذَا قَالَ غَيْرُ وَاحِدٍ مِنَ الأَئِمَّةِ مِنْهُمْ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، وَمَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، وَابْنُ عُيَيْنَةَ، وَابْنُ المُبَارَكِ أَنَّهُ تُرْوَى هَذِهِ الأَشْيَاءُ وَيُؤْمَنُ بِهَا

وَلَا يُقَالُ كَيْفَ. (1)

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دالله تعالي ښي لاس ډك وي (هيڅ كله نه خالي كيږي. بخشش او عطاء كوي او په شپه او ورځ وركولو سره هيڅ كله په دي كي كمي نه راځي ايا تاسو وينئ كله نه چې الله تعالي اسمانونه پيدا كړي دي دهغه وخت نه به څومره خرچ شوي وي ددومره خرچ كولو باوجود چې دالله تعالي په لاس كي څه دي په هغي كي هيڅ كمي نه دي راغلي او دهغه عرش داوبو دپاسه دي. او په دويم لاس كي يې ميزان دي چې پورته كوي يې او ښكته كوي يې (چاته چې زيات وركول غواړي زيات ورته وركوي او چاته چې كم وركول غواړي او هغه ته كم وركوي).

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي او داحديث ددي ايت كريمه " وَقَالَتِ الْيَهُودُ يَدُ اللَّهِ مَغْلُولَةٌ غُلَّتْ أَيْدِيهِمْ وَلُعِنُوا بِمَا قَالُوا بَلْ يَدَاهُ مَبْسُوطَتَانِ يُنْفِقُ كَيْفَ يَشَاءُ " تفسير دي، ددي حديث باره كي داهل علمو قول دادي چې په دي به همداسي ايمان راوړلي شي څنګه چې ددي ذكر راغلي دي نه به ددي څه تفسير كولي شي او نه به هيڅ كله وهم او قياس جنګولي شي همدا رنګي ډيرو اهل علمو لكه سفيان ثوري ، مالك بن انس، سفيان بن عيينه، ابن مبارك وغيره هم قول كړي دي چې دا څيزونه به همداسي بيانولي شي څنګه چې بيان شوي او ايمان لرل وراندي ضروري دي ليكن ددي دكيفيت باره كي به سوال نشي كيدي

****************

٣٠٤٦_حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ. حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ. حَدَّثَنَا الْحَارِثُ بْنُ عُبَيْدٍ. عَنْ سَعِيدٍ الْجُرَيْرِيِّ. عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ شَقِيقٍ. عَنْ عَائِشَةَ. قَالَتْ: " كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحْرَسُ حَتَّى نَزَلَتْ هَذِهِ الآيَةَ وَاللَّهُ يَعْصِمُكَ مِنَ النَّاسِ (المائدة :٦٧) فَأَخْرَجَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأْسَهُ مِنَ الْقُبَّةِ. فَقَالَ لَهُمْ: يَا أَيُّهَا النَّاسُ. انْصَرِفُوا فَقَدْ عَصَمَنِي اللَّهُ ".

حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ. حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ بِهَذَا الإِسْنَادِ نَحْوَهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ. وَرَوَى بَعْضُهُمْ هَذَا الْحَدِيثَ عَنِ الْجُرَيْرِيِّ. عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ شَقِيقٍ. قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحْرَسُ. وَلَمْ يَذْكُرُوا فِيهِ عَنْ عَائِشَةَ. (2)

---

[1] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /تفسير هود ٢ (٤٦٨٤) . والتوحيد ١٩ (٧٤١١) . و ٢٢ (٧٤١٩) . صحيح مسلم /الزكاة ١١ (٩٩٣) سنن ابن ماجه/المقدمة ١٣ (١٩٧) (تحفة الأشراف . ١٣٨٦٣) . ومسند احمد (٢/٣١٣ . ٥٠٠)

[2] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ١٦٢١٥)

**ترجمه** دعائشه رضي الله عنها بيان دي فرمائي چې درسول الله صلي الله عليه وسلم نگراني او حفاظت به كيدل تردي پوري چې كله ايت كريمه "والله يعصمك من الناس" نازل شو نو رسول الله صلي الله عليه وسلم خپل سر دخيمي نه راوويستلو او پهره دارانو ته يي اووئيل تاسو واپس لاړ شئ ځكه چې زما دحفاظت ذمه داري الله تعالي پخپله اخستلي ده

***************

٣٠٤٧_حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، أَخْبَرَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا شَرِيكٌ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ بَذِيمَةَ، عَنْ أَبِي عُبَيْدَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَمَّا وَقَعَتْ بَنُو إِسْرَائِيلَ فِي الْمَعَاصِي نَهَتْهُمْ عُلَمَاؤُهُمْ فَلَمْ يَنْتَهُوا " فَجَالَسُوهُمْ فِي مَجَالِسِهِمْ، وَوَاكَلُوهُمْ، وَشَارَبُوهُمْ، فَضَرَبَ اللَّهُ قُلُوبَ بَعْضِهِمْ بِبَعْضٍ، وَلَعَنَهُمْ عَلَى لِسَانِ دَاوُدَ، وَعِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ ذَلِكَ بِمَا عَصَوْا وَكَانُوا يَعْتَدُونَ، قَالَ: فَجَلَسَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَكَانَ مُتَّكِئًا، فَقَالَ: لَا وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ حَتَّى تَأْطُرُوهُمْ عَلَى الْحَقِّ أَطْرًا ". قَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، قَالَ يَزِيدُ: وَكَانَ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ لَا يَقُولُ فِيهِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ مُسْلِمِ بْنِ أَبِي الْوَضَّاحِ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ بَذِيمَةَ، عَنْ أَبِي عُبَيْدَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ، وَبَعْضُهُمْ يَقُولُ عَنْ أَبِي عُبَيْدَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرْسَلٌ. [1]

**ترجمه** دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل بني اسرائيل په گناهونو کې گنده شول نو اول خو به خپلو عالمانو هغوي منع کول، نو چې کله هغوي منع نه شول او عالمان به هم ورسره په مجلسونو کې کيناستل او خوراك څښاك به يې ورسره كولو نو الله تعالي دبعضي تورو زړونو والو پشان دهغوي زړونه هم خيرن كړل او د داود او عيسي عليهما السلام په ژبه يې پري لعنت اوكړو او سبب دلعنت دا وو چې هغوي دحكم نافرماني اوكړه او دحد نه اووتل (راوي وائي چه) رسول الله صلي الله عليه وسلم ددې فرمان په وخت ډډه وهلې وه بيا پاسيدو كيناستو او ويې فرمائيل په هغه ذات قسم دچا په قبضه كې چې ځما ساه ده چې تاسو خلاصي نشئ موندی ترڅو چې هغوي حق ته رانه ولئ (ترمذي) دتاطروهم، معني ده حق ته مائل كول او دتقصرونه معني او مطلب په حق باندې قائمول او مضبوطول دي

---

[1] ـ سنن ابي داود/ الملاحم ١٧ (٤٣٣٦) سنن ابن ماجه/الفتن ٢٠ (٤٠٠٦) (تحفة الأشراف : ٩٦١٣)

امام ترمذي وايي داحديث حسن غريب دي دارنګي دا حديث محمد بن مسلم بن ابي الوضاح دعلي بن بذيمه نه او هغه دابو عبيده نه دابن مسعود رضي الله عنه په واسطه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه ددي هم معني نقل كړي دي او بعضي راويانو عن ابي عبيدة عن النبي صلي الله عليه وسلم سند سره مرسل نقل كوي.

**لغات** ولتاطرنه: اطره اطرا دضرب اونصر نه په معني دتاوولو.

**تشريح** : "ضرب الله قلوب بعضهم ببعض" يعني الله تعالي ددوئ دعلماؤ او بدعمله خلقو زړونه ګډ وډ كړل (ملا علي قاري).

ملا علي قاري داهم وايي چې په ببعض كې باء دسببيت دپاره ده نومعني به داوي چې الله تعالي دګناهګارانو دنحوست په وجه به ددوئ دنيكانو زړونه هم تور كړي. ددوئ ټولو زړونه به سخت شي او بيا به ورباندي عذاب نازل شي.

په شروع كې دبني اسرائيلوعلماؤ خپلو عوامو لره پوهه كول بيادهغوئ دنه پوهيدو نه پس دهغوئ پشان اعمال دوئ هم شروع كړل حالانكه دعلماؤ دپاره داسي كول نه وو پكار دقران كريم او احاديثو نه معلوميږي چې نهي عن المنكر او امر بالمعروف ددي امت ذمه واري ده . كنتم خير امة اخرجت للناس تامرون بالمعروف وتنهون عن المنكر .

****************

٣٠٤٨_حَدَّثَنَا بُنْدَارٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ بَذِيمَةَ، عَنْ أَبِي عُبَيْدَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ بَنِي إِسْرَائِيلَ لَمَّا وَقَعَ فِيهِمُ النَّقْصُ كَانَ الرَّجُلُ فِيهِمْ يَرَى أَخَاهُ عَلَى الذَّنْبِ فَيَنْهَاهُ عَنْهُ. فَإِذَا كَانَ الغَدُ لَمْ يَمْنَعْهُ مَا رَأَى مِنْهُ أَنْ يَكُونَ أَكِيلَهُ وَشَرِيبَهُ وَخَلِيطَهُ. فَضَرَبَ اللَّهُ قُلُوبَ بَعْضِهِمْ بِبَعْضٍ وَنَزَلَ فِيهِمُ القُرْآنُ. فَقَالَ: لُعِنَ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ بَنِي إِسْرَائِيلَ عَلَى لِسَانِ دَاوُدَ وَعِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ ذَلِكَ بِمَا عَصَوْا وَكَانُوا يَعْتَدُونَ (المائدة :٧٨) فَقَرَأَ حَتَّى بَلَغَ وَلَوْ كَانُوا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالنَّبِيِّ وَمَا أُنْزِلَ إِلَيْهِ مَا اتَّخَذُوهُمْ أَوْلِيَاءَ وَلَكِنَّ كَثِيرًا مِنْهُمْ فَاسِقُونَ (المائدة :٨١. قَالَ: وَكَانَ نَبِيُّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُتَّكِئًا فَجَلَسَ. فَقَالَ: لَا حَتَّى تَأْخُذُوا عَلَى يَدِي الظَّالِمِ فَتَأْطُرُوهُ عَلَى الحَقِّ أَطْرًا".[1]

**ترجمه** : د ابو عبيده رضي الله عنه نه روايت دى چې رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل چې په بني اسرائيلو كې كومه ړومبئ خرابي پيدا شوه هغه دا وه چې يو كس به دبل

[1] _ تفرد به المؤلف. وانظر ماقبله (تحفة الأشراف: ٩٥٩٠)

(گناه كونكي) سره ملاؤ شو نو ونيل به يې چې ګوره دالله نه اويريږه او ته چې دا څه كوې دا پريږده ځكه چې دا ستا دپاره جائز نه دي او كله چې به ورسره په صبا ملاؤ شو او هم په هغه حالت كې به يې اخته اوليدو نو بيابه يې ورسره ناسته پاسته او خوراك څښاك كولو هر كله چې عام طور داسې كار شروع شو نو الله تعالي دهغوي زړونه خپل مينځ كې يو شان كړل . بيا دا ايتونه نازل شول :لُعِنَ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ بَنِي إِسْرَائِيلَ عَلَى لِسَانِ دَاوُدَ وَعِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ ذَلِكَ بِمَا عَصَوْا وَكَانُوا يَعْتَدُونَ يعني د داود او عيسي عليهما السلام په ژبه الله تعالي دبني اسرائيلو په هغه خلقو باندې لعنت اوكړو چاچې كفر اوكړو سبب دلعنت دا وو چې هغوي نافرماني كړې وه او دالله تعالي دحدودو نه يې تجاوز كړې وو او دناروا كارونو نه به يې يو بل نه منع كولو ددوي دا حركت ډيريد وو دوي كې به ته ډير داسې كسان اوويني چې كافرانو سره يې دوستي كړي ده مخكې دپاره چې هغوي كوم څه ليږلي دي هغه ډير زيات بد دي.د ايت تر اخره. فاسقون پورې ، راوي وايي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم دي وخت كې ډډه وهلې وه اوددې بيان په اوريدو سره كيناستلو او ويې فرمائيل: هيڅ كله (نه دي پكار) تاسو به ضرور امر بالمعروف او نهي عن المنكر كوئ او دظالم لاس به نيسئ او هغه به حق خبرې ته رابكلئ راولئ.

****************

حَدَّثَنَا بُنْدَارٌ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ الطَّيَالِسِيُّ، وَأَمْلاهُ عَلَيَّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُسْلِمِ بْنِ أَبِي الْوَضَّاحِ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ بَذِيمَةَ، عَنْ أَبِي عُبَيْدَةَ، عَنْ عَبْدِ اللهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهُ. [1]

**ترجمه** . ابوعبيده دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه په واسطه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه دماقبل هم معني روايت نقل كړي دي.

****************

٣٠٤٩_حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ، أَخْبَرَنَا إِسْرَائِيلُ، حَدَّثَنَا أَبُو إِسْحَاقَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُرَحْبِيلَ أَبِي مَيْسَرَةَ، عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ، أَنَّهُ قَالَ: " اللَّهُمَّ بَيِّنْ لَنَا فِي الْخَمْرِ بَيَانَ شِفَاءٍ، فَنَزَلَتِ الَّتِي فِي الْبَقَرَةِ يَسْأَلُونَكَ عَنِ الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ (البقرة :٢١٩). فَدُعِيَ عُمَرُ فَقُرِئَتْ عَلَيْهِ، فَقَالَ: اللَّهُمَّ بَيِّنْ لَنَا فِي الْخَمْرِ بَيَانَ شِفَاءٍ، فَنَزَلَتِ الَّتِي فِي النِّسَاءِ يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لا تَقْرَبُوا الصَّلاةَ وَأَنْتُمْ سُكَارَى (النساء :٤٣) فَدُعِيَ عُمَرُ فَقُرِئَتْ عَلَيْهِ، ثُمَّ قَالَ: اللَّهُمَّ بَيِّنْ لَنَا فِي

[1] _ انظر حديث رقم ٣٠٤٧

الْخَمْرِ بَيَانَ شِفَاءٍ فَنَزَلَتِ الَّتِي فِي الْمَائِدَةِ إِنَّمَا يُرِيدُ الشَّيْطَانُ أَنْ يُوقِعَ بَيْنَكُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَاءَ فِي الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ إِلَى قَوْلِهِ فَهَلْ أَنْتُمْ مُنْتَهُونَ (المائدة :٩١ فَدُعِيَ عُمَرُ . فَقُرِئَتْ عَلَيْهِ. فَقَالَ: انْتَهَيْنَا انْتَهَيْنَا". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَقَدْ رُوِيَ عَنْ إِسْرَائِيلَ هَذَا الْحَدِيثُ مُرْسَلٌ. ([1])

**ترجمه** .دعمر فاروق ﷺنه روايت دی فرمائي كله چې دشرابو دحرمت متعلق ايت نازل شو نو ما اوونيل اي الله زمونږ دپاره دشرابو متعلق واضح حكم بيان كړي . نوبه دي وخت كې د سورت بقري ايت . يَسْأَلُونَكَ عَنِ الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ .نازل شو. نو عمرفاروقﷺ راوغوښتلی شو اوداحكم ورته واورولی شو هغه اوونيل اي الله مونږ ته صاف صاف حكم بيان كړي نوبه دي وخت كې دسورة النساء دا ايت كريمه (يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لاَ تَقْرَبُوا الصَّلاَةَ وَأَنْتُمْ سُكَارَى) نازل شو نو عمرفاروقﷺ راوغوښتلی شو اوداحكم ورته واورولی شو هغه اوونيل اي الله مونږ ته صاف صاف حكم بيان كړي نوبه دي وخت كې مائدي ايت كريمه نازل شو (إِنَّمَا يُرِيدُ الشَّيْطَانُ أَنْ يُوقِعَ بَيْنَكُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَاءَ فِي الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ إِلَى قَوْلِهِ فَهَلْ أَنْتُمْ مُنْتَهُونَ) ، نو عمرفاروقﷺ راوغوښتلی شو اوداحكم ورته واورولی شو هغه اوونيل اي الله مونږ منع شو مونږ منع شو
امام ترمذي وايي. داحديث داسرائيل په واسطه په مرسل سند مروي دي

*****************

حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلاَءِ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ إِسْرَائِيلَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ أَبِي مَيْسَرَةَ عَمْرِو بْنِ شُرَحْبِيلَ، أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ، قَالَ: اللَّهُمَّ بَيِّنْ لَنَا فِي الْخَمْرِ بَيَانَ شِفَاءٍ فَذَكَرَ نَحْوَهُ، وَهَذَا أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ مُحَمَّدِ بْنِ يُوسُفَ. ([2])

**ترجمه** ابوميسره عمرو بن شرحبيل دعمرفاروق رضي الله عنه بيان نقل كوي چې فرمائيل يي اي الله زمونږ دپاره دشرابو باره كې فيصله كونكي بيان نازل كړه او باقي حديث يي دماقبل پشان بيان كړو او داحديث دمحمد بن يوسف دحديث نه زيات صحيح دي.

*****************

٣٠٥٠ـ حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُوسَى، عَنْ إِسْرَائِيلَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنِ الْبَرَاءِ، قَالَ: " مَاتَ رِجَالٌ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَبْلَ أَنْ تُحَرَّمَ الْخَمْرُ، فَلَمَّا

---

[1] ـ سنن ابي داود/الأشربة١(٣٦٧٠). سنن النسائي/الأشربة١(٥٥٤٢)(تحفة الأشراف : ١٠٦١٤). و مسند احمد(١/٥٣)

[2] ـ سنن ابي داود/الأشربة١(٣٦٧٠). سنن النسائي/الأشربة١(٥٥٤٢)(تحفة الأشراف ١٠٦١٤) و مسند احمد(١/٥٣)

حُرِّمَتِ الخَمْرُ قَالَ رِجَالٌ: كَيْفَ بِأَصْحَابِنَا وَقَدْ مَاتُوا يَشْرَبُونَ الخَمْرَ ؟ فَنَزَلَتْ لَيْسَ عَلَى الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ جُنَاحٌ فِيمَا طَعِمُوا إِذَا مَا اتَّقَوْا وَآمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ (المائدة: ٩٣)".

قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رَوَاهُ شُعْبَةُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاق، عَنِ البَرَاءِ أَيْضًا. (١)

**ترجمه** . دبراه بن عازب رضي الله عنه بيان دي فرماني چې دشرابو دحرمت نازليدو نه مخکې دنبي کريم صلي الله عليه وسلم بعضي صحابه کرام وفات شوي وو نو کله چې شراب حرام شول نو بعضي کسانو اووئيل زمونږ دهغه ملګرو سره به څه کيږي چاچې دحرمت دزماني نه مخکي شراب څکل او اوس وفات شوي دي نو دي باره کي دا ايت کريمه " لَيْسَ عَلَى الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ جُنَاحٌ فِيمَا طَعِمُوا إِذَا مَا اتَّقَوْا وَآمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ"

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي، شعبه هم دابواسحاق په واسطه دبراء نه دا روايت نقل کړي دي

***************

٣٠٥١_حَدَّثَنَا بِذَلِكَ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ بُنْدَارٌ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاق بِهَذَا، قَالَ: قَالَ البَرَاءُ بْنُ عَازِبٍ: "مَاتَ نَاسٌ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُمْ يَشْرَبُونَ الخَمْرَ، فَلَمَّا نَزَلَ تَحْرِيمُهَا، قَالَ نَاسٌ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: فَكَيْفَ بِأَصْحَابِنَا الَّذِينَ مَاتُوا وَهُمْ يَشْرَبُونَهَا ؟ فَنَزَلَتْ لَيْسَ عَلَى الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ جُنَاحٌ فِيمَا طَعِمُوا (المائدة: ٩٣)". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (٢)

**ترجمه** او په همدي سند ابو اسحاق دبراء بن عازب رضي الله عنه نه روايت نقل کوي چې درسول الله صلي الله عليه وسلم بعضي صحابه کرام دشرابو دحرمت نه مخکي په داسي حال کي وفات شوي وو چې شراب به يي څکل بيا چې دشرابو حرمت نازل شو نو بعضي کسانو اووئيل زمونږ دهغه ملګرو به څه حال وي چاچې دحرمت نه مخکي شراب څکلي دي او اوس وفات شوي دي نو دي باره کي دا ايت کريمه " لَيْسَ عَلَى الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ جُنَاحٌ فِيمَا طَعِمُوا إِذَا مَا اتَّقَوْا وَآمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ " نازل شو

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي

---

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٨٢١)

[2] _ انظر ماقبله (تحفة الأشراف: ١٨٨٣)

*****************

٣٠٥٢_حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ العَزِيزِ بْنُ أَبِي رِزْمَةَ، عَنْ إِسْرَائِيلَ، عَنْ سِمَاكٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالُوا: "يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَرَأَيْتَ الَّذِينَ مَاتُوا وَهُمْ يَشْرَبُونَ الْخَمْرَ لَمَّا نَزَلَ تَحْرِيمُ الْخَمْرِ؟ فَنَزَلَتْ لَيْسَ عَلَى الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ جُنَاحٌ فِيمَا طَعِمُوا إِذَا مَا اتَّقَوْا وَآمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ (المائدة: ٩٣)". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** دابن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي كله چې دشرابو حرمت نازل شو صحابه كرامو اوفرمائيل اي دالله رسوله كومو كسانو چې مخكې شراب څكل او اوس وفات شوي دي دهغوئ به څه حال وي نو دي وخت كې دا ايت كريمه " لَيْسَ عَلَى الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ جُنَاحٌ فِيمَا طَعِمُوا إِذَا مَا اتَّقَوْا وَآمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ " نازل شو

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي.

*****************

٣٠٥٣_حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ وَكِيعٍ، حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ مَخْلَدٍ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ مُسْهِرٍ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَلْقَمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: "لَمَّا نَزَلَتْ لَيْسَ عَلَى الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ جُنَاحٌ فِيمَا طَعِمُوا إِذَا مَا اتَّقَوْا وَآمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ (المائدة: ٩٣)، قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَنْتَ مِنْهُمْ". قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [2]

**ترجمه** دابن مسعود رضي الله عنه بيان دي فرمائي كله چې ايت كريمه " لَيْسَ عَلَى الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ جُنَاحٌ فِيمَا طَعِمُوا إِذَا مَا اتَّقَوْا وَآمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ " نازل شو نو رسول الله صلي الله عليه وسلم ماته اوفرمائيل ته هم ددوئ نه يي

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي

*****************

٣٠٥٤_حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ أَبُو حَفْصٍ الفَلَّاسُ، حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ، حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ سَعْدٍ، حَدَّثَنَا عِكْرِمَةُ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، "أَنَّ رَجُلًا أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنِّي

---

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٦١١٨)

[2] _ صحيح مسلم/فضائل الصحابة ٢٢ (٢٤٥٩) (تحفة الأشراف: ٩٤٢٤)

إِذَا أَصَبْتُ اللَّحْمَ انْتَشَرْتُ لِلنِّسَاءِ وَأَخَذَتْنِي شَهْوَتِي فَحَرَّمْتُ عَلَيَّ اللَّحْمَ. فَأَنْزَلَ اللَّهُ: يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لا تُحَرِّمُوا طَيِّبَاتِ مَا أَحَلَّ اللَّهُ لَكُمْ وَلا تَعْتَدُوا إِنَّ اللَّهَ لا يُحِبُّ الْمُعْتَدِينَ . وَكُلُوا مِمَّا رَزَقَكُمُ اللَّهُ حَلالا طَيِّبًا (المائدة: ٨٧،٨٦)". قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ وَرَوَاهُ بَعْضُهُمْ، عَنْ عُثْمَانَ بْنِ سَعْدٍ مُرْسَلًا لَيْسَ فِيهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَرَوَاهُ خَالِدٌ الْحَذَّاءُ، عَنْ عِكْرِمَةَ مُرْسَلًا. [1]

**ترجمه** دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما بيان دي فرماني چې يو کس دنبي کريم صلي الله عليه وسلم په خدمت کي حاضر شو او عرض يې اوکړو اي دالله رسوله کله چې زه غوښه خورم نو ښځي ته مي توجه پيدا شي او شهوت راباندي غالب شي چنانچې ما پخپل خان باندي غوښه حرامه کړي ده نو په دي باره کي ايت کريمه " يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لا تُحَرِّمُوا طَيِّبَاتِ مَا أَحَلَّ اللَّهُ لَكُمْ وَلا تَعْتَدُوا إِنَّ اللَّهَ لا يُحِبُّ الْمُعْتَدِينَ . وَكُلُوا مِمَّا رَزَقَكُمُ اللَّهُ حَلالا طَيِّبًا " نازل شو
امام ترمذي وايي: داحديث حسن غريب دي، بعضي محدثينو دا روايت دعثمان بن سعد نه مرسل نقل کړي دي او په سند کي يې دابن عباس واسطه نه ده ذکر کړي، خالد خزاء هم دا حديث دعکرمه نه مرسل نقل کړي دي.

*****************

٣٠٥٥ـ حَدَّثَنَا أَبُو سَعِيدٍ الْأَشَجُّ، حَدَّثَنَا مَنْصُورُ بْنُ وَرْدَانَ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ عَبْدِ الْأَعْلَى، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي الْبَخْتَرِيِّ، عَنْ عَلِيٍّ، قَالَ: "لَمَّا نَزَلَتْ وَلِلَّهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلا (آل عمران: ٩٧)، قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، فِي كُلِّ عَامٍ، فَسَكَتَ، قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، فِي كُلِّ عَامٍ، قَالَ: لَا، وَلَوْ قُلْتُ نَعَمْ لَوَجَبَتْ، فَأَنْزَلَ اللَّهُ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لا تَسْأَلُوا عَنْ أَشْيَاءَ إِنْ تُبْدَ لَكُمْ تَسُؤْكُمْ (المائدة: ١٠١)". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ حَدِيثِ عَلِيٍّ، وَفِي الْبَابِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ. [2]

**ترجمه** : دعلي رضي الله عنه بيان دي فرماني چې کله ايت کريمه " وَلِلَّهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلا " نازل شو خلقو عرض اوکړو اي دالله رسوله ايا هر کال به حج فرض وي رسول الله خاموشي اختيار کړه خلقو بيا اووئيل اي دالله رسوله اياهر کال به حج فرض وي رسول الله اوفرمائيل نه دي سړي دا خبره دري خله وکړه بيا رسول الله اوفرمائيل که ما هو

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٦١٥٣)

[2] ـ انظر حديث رقم ٨١٣

ونيلی وی، نو هر کال به درباندی فرض شوی وو. او بیا الله تعالي دا ایت کریمه نازل کړو "يَأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لا تَسْأَلُوا عَنْ أَشْيَاءَ إِنْ تُبْدَ لَكُمْ تَسُؤْكُمْ "
امام ترمذي وايي. داحديث دعلي رضيّ الله عنه په سند حسن غريب دي. او په دي باب کي دابوهريره او ابن عباس رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي.
**تشريح** ددي سوال کونکي صحابي نوم په نورو احاديثو کې اقرع بن حابث ذکر شوی دی او دا سوال يي ځکه اوکړو چې حج يي په نورو عبادتونو قياس کړو لکه مونځ او روژه او زکوة وغيره نو په دي وخت کي رسول الله صلي الله عليه وسلم دخفګان اظهار اوکړو او دايي اوفرمائيل که چري ما هو ونيلي وی نو هر کال به په تاسو فرض شوی وو ځکه چې زه جواب دالله دحکم په موجب ورکوم او دالله تعالي دحکم نه بغير زما دژبي نه کومه تشريعي خبره نه وځي او که چري هر کال فرض شوی وی نو په هر چاکي دومره طاقت چرته دی چې بيايي اوکړی شي
*****************

٣٠٥٦_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مَعْمَرٍ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا رَوْحُ بْنُ عُبَادَةَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، أَخْبَرَنِي مُوسَى بْنُ أَنَسٍ، قَالَ: سَمِعْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ، يَقُولُ: قَالَ رَجُلٌ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، مَنْ أَبِي؟ قَالَ: " أَبُوكَ فُلَانٌ. فَنَزَلَتْ يَأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لا تَسْأَلُوا عَنْ أَشْيَاءَ إِنْ تُبْدَ لَكُمْ تَسُؤْكُمْ (المائدة :١٠١)
قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ. [1]
**ترجمه** : دانس بن مالك رضي الله عنه بيان دي يو کس عرض اوکړو اي دالله رسوله زما پلار څوك دي؟ هغه اوفرمائيل ستا پلار فلاني دي راوي وائي چې بيا دا ايت " يَأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لا تَسْأَلُوا عَنْ أَشْيَاءَ إِنْ تُبْدَ لَكُمْ تَسُؤْكُمْ "نازل شو.
امام ترمذي وايي. داحديث حسن صحيح غريب دي
*****************

٣٠٥٧_حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ. حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيل بْنُ أَبِي خَالِدٍ، عَنْ قَيْسِ بْنِ أَبِي حَازِمٍ. عَنْ أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ، أَنَّهُ قَالَ: " يَا أَيُّهَا النَّاسُ، إِنَّكُمْ تَقْرَءُونَ هَذِهِ الْآيَةَ يَأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا عَلَيْكُمْ أَنْفُسَكُمْ لا يَضُرُّكُمْ مَنْ ضَلَّ إِذَا اهْتَدَيْتُمْ (المائدة :١٠٥) ، وَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ

[1] _ اورده البخاري في الجامع الصحيح /تفسير المائدة ١٢ (٤٦٢١) . والاعتصام ٣ (٧٢٩٥) . صحيح مسلم /الفضائل ٣٧ (٢٣٥٩) (تحفة الأشراف : ١٦٠٨)

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. يَقُولُ: " إِنَّ النَّاسَ إِذَا رَأَوْا ظَالِمًا فَلَمْ يَأْخُذُوا عَلَى يَدَيْهِ أَوْشَكَ أَنْ يَعُمَّهُمُ اللهُ بِعِقَابٍ مِنْهُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رَوَاهُ غَيْرُ وَاحِدٍ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ أَبِي خَالِدٍ نَحْوَ هَذَا الْحَدِيثِ مَرْفُوعًا، وَرَوَى بَعْضُهُمْ عَنْ إِسْمَاعِيلَ، عَنْ قَيْسٍ، عَنْ أَبِي بَكْرٍ، قَوْلَهُ: وَلَمْ يَرْفَعُوهُ. ([1])

**ترجمه** دابوبكر صديق رضي الله عنه نه مروي دي چې ويې فرمانيل اې خلقو تاسو خو دا ايت " يَا أَيُّهَا النَّاسُ، إِنَّكُمْ تَقْرَءُونَ هَذِهِ الآيَةَ يَأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا عَلَيْكُمْ أَنْفُسَكُمْ لا يَضُرُّكُمْ مَنْ ضَلَّ إِذَا اهْتَدَيْتُمْ " لوستلي دي او ما درسول الله صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي دي چې كله خلق ظالم لره په ظلم كولو اويني او بيا دهغه لاس اونه نيسي ‹دظلم نه يې منع نكړي› ډيره نژدي ده چې په دوئ به دالله دطرفه عام عذاب راشي او په دوئ ټولو به احاطه اوكړي
امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي بعضي راويانو داحديث داسماعيل بن خالد نه مرفوعا په همدي مضمون نقل كړي دي، او بعضي راويانو دا مرفوع نه دي بيان كړي بلكه دابوبكر قول يې گرخولي دي چې داسماعيل نه يې دقيس په واسطه دابوبكر رضي الله عنه نه نقل كړي دي.

*****************

٣٠٥٨ـ حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ يَعْقُوبَ الطَّالَقَانِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، أَخْبَرَنَا عُتْبَةُ بْنُ أَبِي حَكِيمٍ، حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ جَارِيَةَ اللَّخْمِيُّ، عَنْ أَبِي أُمَيَّةَ الشَّعْبَانِيِّ، قَالَ: أَتَيْتُ أَبَا ثَعْلَبَةَ الْخُشَنِيَّ، فَقُلْتُ لَهُ: كَيْفَ تَصْنَعُ بِهَذِهِ الآيَةِ؟ قَالَ: أَيَّةُ آيَةٍ؟ قُلْتُ: قَوْلُهُ تَعَالَى: يَأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا عَلَيْكُمْ أَنْفُسَكُمْ لا يَضُرُّكُمْ مَنْ ضَلَّ إِذَا اهْتَدَيْتُمْ (المائدة: ١٠٥)، قَالَ: أَمَا وَاللهِ لَقَدْ سَأَلْتَ عَنْهَا خَبِيرًا، سَأَلْتُ عَنْهَا رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: " بَلِ ائْتَمِرُوا بِالْمَعْرُوفِ، وَتَنَاهَوْا عَنِ الْمُنْكَرِ، حَتَّى إِذَا رَأَيْتَ شُحًّا مُطَاعًا، وَهَوًى مُتَّبَعًا، وَدُنْيَا مُؤْثَرَةً، وَإِعْجَابَ كُلِّ ذِي رَأْيٍ بِرَأْيِهِ فَعَلَيْكَ بِخَاصَّةِ نَفْسِكَ وَدَعِ الْعَوَامَّ، فَإِنَّ مِنْ وَرَائِكُمْ أَيَّامًا الصَّبْرُ فِيهِنَّ مِثْلُ الْقَبْضِ عَلَى الْجَمْرِ، لِلْعَامِلِ فِيهِنَّ مِثْلُ أَجْرِ خَمْسِينَ رَجُلًا يَعْمَلُونَ مِثْلَ عَمَلِكُمْ ". قَالَ عَبْدُ اللهِ بْنُ الْمُبَارَكِ: وَزَادَنِي غَيْرُ عُتْبَةَ، قِيلَ: يَا رَسُولَ اللهِ، أَجْرُ خَمْسِينَ مِنَّا أَوْ مِنْهُمْ؟ قَالَ: بَلْ أَجْرُ خَمْسِينَ مِنْكُمْ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ

---

[1] ـ انظر حديث رقم ٢١٦٨

غَرِيبٌ.(1)

**ترجمه** : دابو اميه شعباني نه روايت دي فرمائي چې دابوثعلبه خشني ﷺ نه مي تپوس وکړوچې اي ابوثعلبه ددي ايت کريمه (عَلَيْكُمْ أَنْفُسَكُمْ) په باره کې ته څه وائي؟هغه ووئيل ددي په باره کې مادرسول الله صلي الله عليه وسلم نه تپوس وکړونو راته ئې اوفرمائيل تاسو امربالمعروف اونهي عن المنکرکوئ تردي پوري چې تاسووويني چې دکنجوس پيروي کيږي اودنفساني خواهش تابع داري کيږي اوپه دنياپسي منډي وهلي شي اوهريو ذي راي په دپسندئ کې مبتلادي نوپداسي وخت کې تاسودخپل خان خيال اوساتئ اودعواموخيال دزړه نه اوباسئ خکه چې ستاسونه پس يوه داسي ورځ را روانه ده په کومه کې چې به صبرکول داسي مشکل وي لکه په لاس کې سکروټه نيول اوپداسي ورځوکې به په دين باندي عمل کونکي ته دپنځوسو کسانوداجربرابر اجر ورکولي شي ، راوي وائي چې يوبل راوي دا اضافه کړي ده چې يوصحابي عرض وکړو اي دالله رسوله ايا دهغوي نه دپنځوس کسانو اجر؟رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل نه بلکه ستاسونه دپنځوسوکسانو داجر برابراجربه ورته ورکړي شي.

امام ترمذي وايي. داحيث حسن غريب دي

**دمعروربن سويد رضي الله عنه حالات**

نوم معروف دپلار نوم سويد دبني اسد قبيلي سره تعلق لري او کنيه يي ابو اميه ده دلويو تابعينو دجملي نه دی دعمر فاروق او عبدالله بن مسعود رضي الله عنهما نه يي احاديث اوريدلي دي او داکثر اسماء الرجال والاپه نزد ثقه دی دهجرت په ۱۲۰کال وفات شوی دی او مرويات يي په صحاح سته کې موجود دی.

**************

٣٠٥٩_حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ أَحْمَدَ بْنِ أَبِي شُعَيْبٍ الْحَرَّانِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ الْحَرَّانِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ، عَنْ أَبِي النَّضْرِ، عَنْ بَاذَانَ مَوْلَى أُمِّ هَانِئٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنْ تَمِيمٍ الدَّارِيِّ، فِي هٰذِهِ الآيَةِ "يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا شَهَادَةُ بَيْنِكُمْ إِذَا حَضَرَ أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ (المائدة:١٠٦) ، قَالَ: بَرِئَ مِنْهَا النَّاسُ غَيْرِي وَغَيْرَ عَدِيِّ بْنِ بَدَّاءٍ، وَكَانَا نَصْرَانِيَّيْنِ يَخْتَلِفَانِ إِلَى الشَّامِ قَبْلَ الإِسْلاَمِ، فَأَتَيَا الشَّامَ لِتِجَارَتِهِمَا وَقَدِمَ عَلَيْهِمَا مَوْلًى لِبَنِي سَهْمٍ، يُقَالُ لَهُ: بُدَيْلُ بْنُ أَبِي مَرْيَمَ بِتِجَارَةٍ، وَمَعَهُ جَامٌ مِنْ فِضَّةٍ يُرِيدُ بِهِ الْمَلِكَ، وَهُوَ عُظْمُ تِجَارَتِهِ، فَمَرِضَ فَأَوْصَى إِلَيْهِمَا وَأَمَرَهُمَا أَنْ

1 _ سنن ابي داود/ الملاحم ١٧(٤٣٤١) . سنن ابن ماجه/الفتن ٢١(٤٠١٤) (تحفة الأشراف : ١١٨٨١)

يَبْلُغَا مَا تَرَكَ أَهْلَهُ. قَالَ تَمِيمٌ: فَلَمَّا مَاتَ أَخَذْنَا ذَلِكَ الجَامَ فَبِعْنَاهُ بِأَلْفِ دِرْهَمٍ، ثُمَّ اقْتَسَمْنَاهُ أَنَا وَعَدِيُّ بْنُ بَدَّاءٍ. فَلَمَّا قَدِمْنَا إِلَى أَهْلِهِ دَفَعْنَا إِلَيْهِمْ مَا كَانَ مَعَنَا، وَفَقَدُوا الجَامَ فَسَأَلُونَا عَنْهُ، فَقُلْنَا: مَا تَرَكَ غَيْرَ هَذَا وَمَا دَفَعَ إِلَيْنَا غَيْرَهُ. قَالَ تَمِيمٌ: فَلَمَّا أَسْلَمْتُ بَعْدَ قُدُومِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ المَدِينَةَ تَأَثَّمْتُ مِنْ ذَلِكَ فَأَتَيْتُ أَهْلَهُ فَأَخْبَرْتُهُمُ الخَبَرَ وَأَدَّيْتُ إِلَيْهِمْ خَمْسَ مِائَةِ دِرْهَمٍ وَأَخْبَرْتُهُمْ أَنَّ عِنْدَ صَاحِبِي مِثْلَهَا، فَأَتَوْا بِهِ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَأَلَهُمُ البَيِّنَةَ. فَلَمْ يَجِدُوا. فَأَمَرَهُمْ أَنْ يَسْتَحْلِفُوهُ بِمَا يُعْظَمُ بِهِ عَلَى أَهْلِ دِينِهِ فَحَلَفَ، فَأَنْزَلَ اللَّهُ يَأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا شَهَادَةُ بَيْنِكُمْ إِذَا حَضَرَ أَحَدَكُمُ المَوْتُ إِلَى قَوْلِهِ أَوْ يَخَافُوا أَنْ تُرَدَّ أَيْمَانٌ بَعْدَ أَيْمَانِهِمْ (المائدة: ١٠٦-١٠٨)، فَقَامَ عَمْرُو بْنُ العَاصِ وَرَجُلٌ آخَرُ فَحَلَفَا. فَنُزِعَتِ الخَمْسُ مِائَةِ دِرْهَمٍ مِنْ عَدِيِّ بْنِ بَدَّاءٍ".

قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، وَلَيْسَ إِسْنَادُهُ بِصَحِيحٍ، وَأَبُو النَّضْرِ الَّذِي رَوَى عَنْهُ مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ هَذَا الحَدِيثَ هُوَ عِنْدِي مُحَمَّدُ بْنُ السَّائِبِ الكَلْبِيُّ، يُكْنَى أَبَا النَّضْرِ، وَقَدْ تَرَكَهُ أَهْلُ العِلْمِ بِالحَدِيثِ وَهُوَ صَاحِبُ التَّفْسِيرِ، سَمِعْتُ مُحَمَّدَ بْنَ إِسْمَاعِيلَ، يَقُولُ: مُحَمَّدُ بْنُ السَّائِبِ الكَلْبِيُّ يُكْنَى أَبَا النَّضْرِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَلَا نَعْرِفُ لِسَالِمٍ أَبِي النَّضْرِ المَدَنِيِّ رِوَايَةً عَنْ أَبِي صَالِحٍ مَوْلَى أُمِّ هَانِئٍ وَقَدْ رُوِيَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ شَيْءٌ مِنْ هَذَا عَلَى الِاخْتِصَارِ مِنْ غَيْرِ هَذَا الوَجْهِ.[1]

**ترجمه** : دتميم داري رضي الله عنه بيان دي چې دايت كريمه "يَأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا شَهَادَةُ بَيْنِكُمْ إِذَا حَضَرَ أَحَدَكُمُ المَوْتُ" باره كي يي فرمائيل زما او دعدي بن بداء نه علاوه نور ټول خلق ددي ايت لاندي دراتلو نه محفوظ دي، مونږ دواړه نصرانيان وو داسلام نه مخكي به مونږ شام ته تلو راتلو يو خل مونږ دواړه دتجارت دپاره شام ته لاړو او زمونږ سره دبني هاشم يو غلام هم روان شو چې بديل بن ابي مريم به ورته ونيلي كيدل هغه هم دتجارت دپاره شام ته راغلي وو او دهغه سره دسپينو زرو يو جام وو چې هغه يي په بادشاه باندي خرڅول غوښتل او همدا جام دده دتجارت سامان كي دېولو نه لوي څيز وو اتفاقا داسي اوشول چې هغه بيمار شو نو مونږ دواړو ته يي وصيت اوكړو او مونږ ته يي عرض اوكړو كه زه مړ شوم او مانه څه پاتي شول دا به زما كور والا ته رسوئ، كله چې دي مړ شو نو مونږ دا جام واخستلو او په زر درهمه مو خرڅ كړو او بيا ما او عدي بن بداء پخپل مينځ كي تقسيم كړو كله چې مونږ دده بچو او دده ښځو ته ورغلو او چې مونږ سره دده كوم سامان وو دا مونږ هغوئ ته واپس كړو كله چې هغوئ ته دسپينو زرو جام په لاس ورنغلو نو زمونږ نه يي په دي باره كي تپوس اوكړو مونږ ورته

---

[1] ـ تفرد به المؤلف

اوونيل مونږ چې درله څه راوړي دي او درموکړل ددينه علاوه زمونږ سره نور هيڅ نه دي پاتې مګر بيا چې کله مديني ته درسول الله صلي الله عليه وسلم دتلو نه پس ما اسلام قبول کړو نو زه ددي ګناه نه اوويريدم چنانچې زه دهغه کور ته ورغلم او دجام باره کې مي صحيح خبر ورکړو او دخپلي حصي پنځه سوه درهم مي ورته ورکړل او هغوئ ته مي دا هم اوونيل چې زما په شان د عدي بن بداء سره هم ددي جام دقيمت پنځه سوه درهم موجود دي بيا هغوئ رسول الله صلي الله عليه وسلم ته نيولي راوستو رسول الله ددوئ نه دثبوت مطالبه اوکړه نو هغوئ ثبوت نشو پيش کولي بيا رسول الله صلي الله عليه وسلم دوئ ته حکم اوکړو چې دوئ په داسې څيز قسم اوکړي کوم چې په دين کې لوئ ګڼرلي کيږي نو دوئ قسم اوخوړلو ترديچې په دې باره کې " يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا شَهَادَةُ بَيْنِكُمْ إِذَا حَضَرَ أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ إِلَى قَوْلِهِ أَوْ يَخَافُوا أَنْ تُرَدَّ أَيْمَانٌ بَعْدَ أَيْمَانِهِمْ " نو عمرو بن العاص رضي الله عنه او دبديل په وارثانو کې يو کس اودريدل او هغوئ قسم اوخوړلو چې عدي دروغژن دي او بيا دهغه نه پنځه سوه درهم په زور واخستلي شول

امام ترمذي وايي: داحديث غريب دي او سند يې صحيح نه دي، ابو النضر دچانه چې محمد بن اسحاق دا روايت نقل کړي دي هغه زما په نزد محمد بن سائب کلبي دي او ابو النضر دده اسم کنيه ده دمحدثينو په نزد متروک دي او دده يو تفسير هم دي چې په تفسير کلبي مشهور دي مادامام بخاري نه اوريدلي دي چې دمحمد بن سائب کلبي اسم کنيه ابوالنضر ده او مونږ دسالم ابوالنضر مديني کوم روايت دام هاني دازاد کړي غلام صالح نه نه پيژنو ددي حديث بعضي حصه مختصرا په يو بل سند هم دابن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي چې عنقريب راتلونکي ده.

***************

٣٠٦٠ـ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ وَكِيعٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ آدَمَ، عَنِ ابْنِ أَبِي زَائِدَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ أَبِي الْقَاسِمِ، عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: " خَرَجَ رَجُلٌ مِنْ بَنِي سَهْمٍ مَعَ تَمِيمٍ الدَّارِيِّ، وَعَدِيِّ بْنِ بَدَّاءٍ فَمَاتَ السَّهْمِيُّ بِأَرْضٍ لَيْسَ فِيهَا مُسْلِمٌ. فَلَمَّا قَدِمَا بِتَرِكَتِهِ فَقَدُوا جَامًا مِنْ فِضَّةٍ مُخَوَّصًا بِالذَّهَبِ، فَأَحْلَفَهُمَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. ثُمَّ وُجِدَ الْجَامُ بِمَكَّةَ، فَقِيلَ: اشْتَرَيْنَاهُ مِنْ عَدِيٍّ، وَتَمِيمٍ. فَقَامَ رَجُلَانِ مِنْ أَوْلِيَاءِ السَّهْمِيِّ، فَحَلَفَا بِاللَّهِ لَشَهَادَتُنَا أَحَقُّ مِنْ شَهَادَتِهِمَا وَأَنَّ الْجَامَ لِصَاحِبِهِمْ. قَالَ: وَفِيهِمْ نَزَلَتْ يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا شَهَادَةُ بَيْنِكُمْ (المائدة

:١٠٦". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ وَهُوَ حَدِيثُ ابْنِ أَبِي زَائِدَةَ. (١)

**ترجمه** د عبدالله بن عباس رضي الله عنهما بيان دي فرمائي چې ذبني سهم قبيلي يو كس دتميم داري او عدي بن بداء سره په سفر روان شو او دا كس په يو داسي زمكه كي مړ شو چرته چې هيڅوك مسلمان نه وو كله چې دده دواړه ملګرو ترکه راوړله نو دده كور والادده په متروكه سامان كي هغه دسپينو زرو جام اونه موندلو په كوم چې يي دسرو زرو كار شوي وو كله چې رسول الله صلي الله عليه وسلم ته مقدمه پيش شوه نو دوئ دواړو ته يي قسم وركړو او هغه قسم اوخوړلو چې مونږ ته جام نه دي ملاؤ شوي ليكن هغه جام دسهمي كور والاته په مكه كي دبل چاسره ملاؤ شو او هغوئ ورته اووئيل چې دا مونږ دتميم او عدي نه په قيمت اخستلي دي دي وخت كي دسهمي په وارثانو كي دوه كسان راغلل او قسم يي اوخوړلو او وئيل يي چې زمونږ شهادت ددوئ دواړو دګواهئ نه زيات رښتوني دي او دا جام زمونږ دكس دي ابن عباس رضي الله عنهما وائي هم ددوئ په باره كي ايت كريمه " يَأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا شَهَادَةُ بَيْنِكُمْ" نازل شوى.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن غريب دي او دابن ابي زائده په سند مروي دي

******************

٣٠٦١_حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ قَزَعَةَ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ حَبِيبٍ، حَدَّثَنَا سَعِيدٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ خِلَاسِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " أُنْزِلَتْ الْمَائِدَةُ مِنَ السَّمَاءِ خُبْزًا وَلَحْمًا، وَأُمِرُوا أَنْ لَا يَخُونُوا وَلَا يَدَّخِرُوا لِغَدٍ، فَخَانُوا وَادَّخَرُوا وَرَفَعُوا لِغَدٍ فَمُسِخُوا قِرَدَةً وَخَنَازِيرَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، قَدْ رَوَاهُ أَبُو عَاصِمٍ وَغَيْرُ وَاحِدٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي عَرُوبَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ خِلَاسٍ، عَنْ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ مَوْقُوفًا، وَلَا نَعْرِفُهُ مَرْفُوعًا إِلَّا مِنْ حَدِيثِ الْحَسَنِ بْنِ قَزَعَةَ.

حَدَّثَنَا حُمَيْدُ بْنُ مَسْعَدَةَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ حَبِيبٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي عَرُوبَةَ نَحْوَهُ وَلَمْ يَرْفَعْهُ، وَهَذَا أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ الْحَسَنِ بْنِ قَزَعَةَ، وَلَا نَعْلَمُ لِلْحَدِيثِ الْمَرْفُوعِ أَصْلًا. (٢)

**ترجمه** د عمار بن ياسر رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي

[1] _ اورده البخاري في الجامع الصحيح/الوصايا ٣٥ (٢٧٨٠). سنن ابي داود/ الأقضية ١٩ (٣٦٠٦) (تحفة الأشراف: ٥٥٥١)

[2] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٠٣٢٨)

دعيسي عليه السلام په قوم باندي داسمان نه د ډوډۍ او غوښي دسترخوان نازل کړي شو او حکم ورته اوشو چې خیانت به نه کوئ او دبلي ورځي دپاره به يي نه ساتئ مګر هغوئ خیانت هم اوکړو او دنورو ورځو دپاره جمع کول به يي هم کول او دسبانئ ورځي دپاره به يي هم ساتل نو ددوئ مخونه مسخ کړي شول تردي چې شادوګان او خنزيران ورنه جوړ کړي شول
امام ترمذي وايي داحدیث ابو عاصم او بعضي نورو راویانو په سند دسعید بن ابي عروبه عن قتادة عن خلاس عن عمار بن یاسر موقوفا نقل کړي دي

## دعماربن یاسر رضي الله عنه حالات

نوم عمار کنیه ابو الیقظان دپلار نوم یاسر د مور نوم سمیه عمار او صهیب بن سنان په یو خاي دارقم بن ابي ارقم په کور کې مسلمانان شوي وو او تردغه وخته تقريبا ديرشت کسان مسلمانان شوي وو (فتح الباري).
دي خاندان ددين دپاره ډير مشقت برداشت کړو دده مور داسلام په تاريخ کې هغه اولنئ زنانه ده کومه چې داسلام دپاره شهیده شوي ده او دده پلار یاسر او دده ورور عبدالله هم شهیدان شوي وو (اصابه).
یوځل نبي کریم صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل ای دعمار خاندان ستاسو دپاره دي بشارت وي جنت ستاسو انتظار کوي.
لیکن دتاریخ والا په دي کې اختلاف دی چې حبشي ته يي هجرت کړی وو او که نه وو لیکن مديني ته يي هجرت کړی وو او رسول الله صلي الله علیه وسلم دده وروروولي دحذيفه بن اليمان انصاري سره مقرر کړي وه په ټولو غزواتو کې درسول الله سره شريك شوی وو او په جنګ يمامه کې يي يوغوږ شهيد شو بیاعمر رضي الله عنه دهجرت په دريم كال صفر کې دکوفي والي مقرر کړو یو کال او نهه میاشتي والي پاتي شوی.
شهادت په جنګ صفين کې شهيد شو کله چې ده ته دڅکلو دپاره شوده ورکړی شو نو وئيل يي چې رسول الله صلي الله علیه وسلم فرمائيلي دي چې په دنیا کې به ستا اخري توخه شوده وي ابن الغاویه په نیزه اووهلو او زخمي شو او بیایو بل شامي دده سر دتن نه جدا کړو (طبقات ابن سعد).
علي رضي الله عنه ورباندي جنازه اوکړه او په دي وخت کې دده عمر ۹۱ کلونه وو او په کوفه کې هغدا صحابي دفن شوی دی ۱۲۲ احادیث دده نه مروي دي چې دوه په دي کې متفق علیه دي

*****************

۳۰۶۲ـ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ طَاوُسٍ، عَنْ أَبِي

هُرَيْرَةَ، قَالَ: " يُلَقَّى عِيسَى حُجَّتَهُ وَلَقَّاهُ اللَّهُ فِي قَوْلِهِ: وَإِذْ قَالَ اللَّهُ يَا عِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ أَأَنْتَ قُلْتَ لِلنَّاسِ اتَّخِذُونِي وَأُمِّيَ إِلَهَيْنِ مِنْ دُونِ اللَّهِ (المائدة :١١٦)، قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ: عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَلَقَّاهُ اللَّهُ سُبْحَانَكَ مَا يَكُونُ لِي أَنْ أَقُولَ مَا لَيْسَ لِي بِحَقٍّ (المائدة :١١٦) الْآيَةَ كُلَّهَا ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (1)

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه بيان دي عيسي عليه السلام ته به خپل جواب القاء کړي شي، الله تعالي به هغه ته خپل جواب دخپل دي قول په جواب کي القاء کوي " وَإِذْ قَالَ اللَّهُ يَا عِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ أَأَنْتَ قُلْتَ لِلنَّاسِ اتَّخِذُونِي وَأُمِّيَ إِلَهَيْنِ مِنْ دُونِ اللَّهِ" دابوهريره رضي الله عنه بيان دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل چې بيا الله تعالي عيسي عليه السلام ته ددي دا جواب القاء کړو " سُبْحَانَكَ مَا يَكُونُ لِي أَنْ أَقُولَ مَا لَيْسَ لِي بِحَقٍّ ".

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي.

****************

٣٠٦٣_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ وَهْبٍ، عَنْ حُيَيٍّ، عَنْ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْحُبُلِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، قَالَ: " آخِرُ (أُنْزِلَتْ الْمَائِدَةُ" ، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَرُوِي عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّهُ قَالَ: " آخِرُ (أُنْزِلَتْ" إِذَا جَاءَ نَصْرُ اللَّهِ وَالْفَتْحُ ". (2)

**ترجمه** : دعبدالله بن عمرو رضي الله عنهما بيان دي فرمائي چې په ټولو سورتونو کي اخري نازليدونکي سورة سورة المائده دي.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن غريب دي. اود ابن عباس نه دا هم مروي دي چي فرمائيل يي: اخري نازليدونکي سورت ، سورت نصر او سورت فتح دی

****************

## ٧_باب وَمِنْ سُورَةِ الأَنْعَامِ

### دسورة انعام دبعضي ايتونو تفسير

وجه دتسميه د دی سورة : په ايت ١٣٨ او وریسی د بعضِ څاروو (انعام) د حرمت او د

---

1 _ تفرد به المؤلف (أخرجه النسائي في الكبرى) (تحفة الأشراف: ١٣٥٢١)

2 _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٨٨٦٣)

بعضِ د حلت متعلق د اهل وعرب د رسمونو تردید کړی شویدی د دی مناسبت د وجی نه د دی سورت نوم ,,الانعام،، کیخودلی شوی دی

**د نزول زمانه** د دی سورة په مضمون باندی د غور کولو نه روستو دا معلومیږی چې دا سورت به د مکّی دور په آخری زمانه کي نازل شوی وی

**شان نزول** د دی سورت د نزول په وخت کي د اسلام په دعوت او تبلیغ باندی دولس کالونه تیر شوی ؤو د قریشو ظلمونه او مخالفت انتها ته رسیدلی ؤو د مشرکانو د ظلمونو د وجی نه د مومنانو ډیر لویٔ تعداد حبشي ته هجرت کړی ؤو د رسول الله صلی الله علیه وسلم د حمایت او د تائید د پاره هیڅوك ملاتړ د نبی صلی الله علیه وسلم په خاندان کي نهٔ وو. ابو طالب او خدیجه رضی الله عنها وفات شوی ؤو د نبی صلی الله علیه وسلم د تبلیغ د اثر د وجی نه په قبائلو کي ډیر خلق اسلام ته راتلل لیکن بیا هم په مجموعی حیثیت مشرکین په سخته دښمنیٔ کي پراته ؤو او څوك چې هم اسلام ته مائله کیدلو نو هغهٔ ته به ئی تکلیفونه رسول او معاشرتی او معاشی مقاطعه به ئی ورسره کوله د ظلم او د کفر په دی تیارو کي د یثرب د طرف نه د اوس او خزرج قبیلو اثرناك خلق په اسلام کي داخل شوی ؤو او د نبی صلی الله علیه وسلم سره ئی بیعت کړی ؤو. او ورځ په ورځ اسلام مخ په وړاندی ترقی کوله. خو بیا هم مخالفینو دا ګنړله. چې دا یو کمزوری تحریك دی مادی طاقت ورسره هم نیشته او د داعی د خپل خاندان ملګرتیا ورسره هم نیشته نو د دوی ختمول ډیر آسان دی.

دانس رضي الله عنه بیان دي چې کله په رسول الله سورة انعام نازل شو نوسبحان الله یي اوونیل اوبیا یي اوفرمائیل پدي سورة پسي دومره فرشتي وریسي وي چې داسمان کناري یي بندي کړي وي (یعني دټول اسمان په کنارو خوري شوي وي) (رواه الحاکم في المستدرك) داحدیث هم پدي دلالت کوي چې سورة انعام په یو خل ټول نازل شوي دي اودمختلفو ایتونو چې کوم اسباب دنزول جدا جدا بیان شوي دي شاید چې ددي صورة دا وو چې مختلف واقعات په قریب قریب وختونو کي ظاهر شوي وو اوچونکه دایت دبعضي اسبابو سره دایت دنورو اسبابو سره ربط او تناسب وو نوپدي وجه ددي ایت دنزول سبب دا واقعه اوګرځولي شوه او وونیلي شول چې دا ایت دفلاني واقعي متعلق دي او دا ایت دفلاني سبب لاندي نازل شوي دي (ورنه دذکر شوو احادیثو نه معلومیږي چې تمام سورة په یو خل نازل شوي وو).

امیرالمؤمنین عمر فاروق رضي الله عنه فرمائیلي دي چې سورة انعام دقران کریم په لویو سورتونو کي یو سورة دي بیهقي په شعب الایمان کي په مجهول سند سره دعلي رضي الله عنه قول موقوفا نقل کړي دي چې سورة انعام دکومي بیمارۍ په باره کي اولوستلي شي نو الله تعالي ورته شفا ورکوي

**************

٣٠٦٤_حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ هِشَامٍ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاق، عَنْ نَاجِيَةَ بْنِ كَعْبٍ، عَنْ عَلِيٍّ، أَنَّ أَبَا جَهْلٍ، قَالَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّا لَا نُكَذِّبُكَ وَلَكِنْ نُكَذِّبُ بِمَا جِئْتَ بِهِ، فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى " فَإِنَّهُمْ لا يُكَذِّبُونَكَ وَلَكِنَّ الظَّالِمِينَ بِآيَاتِ اللَّهِ يَجْحَدُونَ (الأنعام: ٣٣)" [1]

**ترجمه** . دعلي رضي الله عنه نه مروي دي چې ابو جهل نبي كريم صلي الله عليه وسلم ته اووئيل مونږ ستا تكذيب نه كوو بلكه مونږ دهغه دين تكذيب كوو كوم چې تا راوړي دي نو الله تعالي دا ايت كريمه " فَإِنَّهُمْ لا يُكَذِّبُونَكَ وَلَكِنَّ الظَّالِمِينَ بِآيَاتِ اللَّهِ يَجْحَدُونَ " اودوئ تالره دروغژن نه ګڼړي مګر د' ظالمان دالله تعالي داياتونو نه انكار كوي.

**تشريح** . بيضاوي ليكلي دي دلته قد لفظ دفعل زيادت اودكثرت ظاهرولو دپاره راغلي دي لكه چې په ولكنه قد يملك المال نائله، كي راغلي دي او په انه كي ضمير شان دي (دكوم چې كومي مرجع ته ضرورت نه وي) دسدي بيان دي چې اخنس بن شريق دابو جهل سره ملاقات اوكړو او ويي وئيل اي ابو الحكم دمحمد بن عبد الله متعلق راته اووايه چې رښتوني دي او كه دروغژن اوپدغه وخت كي زمانه علاوه دده دخبرو بل څوك اوريدونكي نه وو، ابو جهل اووئيل په الله قسم په يقيني طور سره محمد (صلي الله عليه وسلم) رښتوني دي ليكن كله چې دقصي اولاد ته جهنډه او دحاجيانو اوبه وركول او دكعبي حواله كيدل او نبوت وركړي شو نو باقي قريشو ته څه پاتي شول (زه څكه دمحمد دنبوت نه انكار كوم) نوپه دي باره كي دا ايت كريمه فانهم لا يكذبونك نازل شو.

دناجيه بن كعب بيان دي چې ابو جهل رسول الله صلي الله عليه وسلم ته اووئيل مونږ په تا باندي ددروغژنتوب شك نه كوو اونه دي تكذيب كوو بلكه كوم څيز چې تا پيش كړي دي دهغي تكذيب كوو.

په خاي د غائب ضمير په الظالمين لفظ سره صراحت كول په دي خبره دلالت كوي چې دانكار كولو په وجه دغه خلق ظالمان شوي وو، يادي داسي اووئيلي شي چې حق پټول چونكه ددوئ عادت وو نو څكه يي انكار كړي وو او چونكه په جهود كي دتكذيب مفهوم داخل دي (اودتكذيب نه پس راځي) نو څكه يي دايات نه مخكي ب ذكر كړه، مطلب دا دي چې ستا تكذيب په حقيقت كي دالله تكذيب دي څكه چې ستا تكذيب خو هغوئ دنبوت په اعتبار

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف، ١٠٢٨٨)

سره کوي ،هسې خو په نورو خبرو کې تا دروغژن نه ګڼري، او په حقیقت کې دا د نبوت تکذیب دي

*****************

حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ نَاجِيَةَ، أَنَّ أَبَا جَهْلٍ، قَالَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَذَكَرَ نَحْوَهُ وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ عَنْ عَلِيٍّ وَهَذَا أَصَحُّ. [1]

**ترجمه** سفیان دابواسحاق په سند کې دناجیه قول نقل کړی دی چې ابو جهل نبي کریم صلي الله علیه وسلم ته اوونیل او باقي حدیث یې دماقبل پشان ذکر کړو او په سند کې یې دعلي رضي الله عنه واسطه نه ده ذکر کړې او دا روایت دنورو نه زیات صحیح دی

*****************

۳۰٦٥_حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ يَقُولُ: لَمَّا نَزَلَتْ هَذِهِ الآيَةُ قُلْ هُوَ الْقَادِرُ عَلَى أَنْ يَبْعَثَ عَلَيْكُمْ عَذَابًا مِنْ فَوْقِكُمْ أَوْ مِنْ تَحْتِ أَرْجُلِكُمْ (الأنعام :٦٥) . قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَعُوذُ بِوَجْهِكَ. فَلَمَّا نَزَلَتْ أَوْ يَلْبِسَكُمْ شِيَعًا وَيُذِيقَ بَعْضَكُمْ بَأْسَ بَعْضٍ (الأنعام :٦٥. قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: هَاتَانِ أَهْوَنُ أَوْ هَاتَانِ أَيْسَرُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [2]

**ترجمه** : دجابر رضي الله عنهما نه مروي دي فرمائي چې کله ایت کریمه "قُلْ هُوَ الْقَادِرُ عَلَى أَنْ يَبْعَثَ عَلَيْكُمْ عَذَابًا مِنْ فَوْقِكُمْ أَوْ مِنْ تَحْتِ أَرْجُلِكُمْ " اووایه چې الله تعالی په دې خبره قدرت لري چې په تاسو دبره نه کوم عذاب رانازل کړي، یا ستاسو دخپو دلاندي نه کوم عذاب راولیږي، ، نازل شو نو رسول الله صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل زه ستا په ذات پوري پناه غوارم او بیا چې کله وراندي "أَوْ يَلْبِسَكُمْ شِيَعًا وَيُذِيقَ بَعْضَكُمْ بَأْسَ بَعْضٍ " یاچې تاسو لره ډلې ډلې کړي او وڅکوي بعضو ستاسو باندي دجنګ مزه دنورو نازل شو نو رسول الله اوفرمائیل دا دواړه خبرې الله تعالی ته اساني دي.

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف ١٠٢٨٨)

[2] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /تفسير الأنعام ٢ (٤٦٢٨) والإعتصام ١١ (٧٣١٣) . والتوحيد ١٦ (٧٤٠٦) (تحفة الأشراف : ٢٥٣٦) . ومسند احمد (٣/٣٠٩)

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي.
**تشريح**: ... لکه قوم نوح ، قوم عاد ، او قوم لوط او اصحاب الفيل سره چې يې کړي وو
لکه دنوح عليه السلام دقوم سره چې يې کړي وو چې دزمکي دلاندي نه يې چيني جاري کړي او طوفان يې ټول ډوب کړل او يا فرعون چې يې غرق کړي وو او يا قارون چې يې په زمکه کي ښخ کړي وو. عبدالله بن عباس اودمجاهد قول دي چې دعذاب فوق نه ظالم بادشاه او تحت ارجلکم نه بد کرداره غلام مراد دي، دضحاك قول دي دفوق او تحت دواړو نه لوي او وړوکي عذاب مراد دي، بعضي علماؤ وئيلي دي فوقکم نه باران مراد دي او تحت ارجلکم نه دزمکي شنه کيدلو بنديدل مراد دي
يلبس په معني د يخلط دي او شيعا په معني دمختلفو ډلودي دچاچې خيالات او خواهشات جدا جدا وي، او دباس معي عذاب او دجگ سختي ده (قاموس)
مراد دا دي چې په تاسو کي به بعضي بعضو لره قتل کول شروع کړي، جابر بن عبدالله رضي الله عنه نه روايت دي چې کله دمذکوره ايت کريمه اولنۍ حصه يعني: قُلْ هُوَ الْقَادِرُ عَلَى أَنْ يَبْعَثَ عَلَيْكُمْ عَذَابًا مِنْ فَوْقِكُمْ. نازل شو نورسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل: اعوذ بوجهك الكريم ، خو کله چې دويمه حصه يعني: أَوْ يَلْبِسَكُمْ شِيَعًا وَيُذِيقَ بَعْضَكُمْ بَأْسَ بَعْضٍ. نازل شو نو ويې فرمائيل دا عذاب داولني عذاب نه اسان دي (رواه البخاري وغيره).
دايت داخري حصي تعبير دهجرت نه ۳۵ کلونه مخکي ظاهر شوي وو کله چې په جنګ جمل او صفين کي مسلمانان پخپل مينځ کي په جنګ جګړو کي مبتلا شول.
دسعد بن ابي وقاص رضي الله عنه بيان دي چې مونږ درسول الله صلي الله عليه وسلم په ملګرتيا کي دبني معاويه دمسجد په خوا کي تير شو اورسول الله مسجد ته داخل شو دوه رکعاته مونځ يې اوکړو او مونږ هم اوکړو او بيا يې دډير ساعته پوري ددعا کولو نه پس اوفرمائيل چې مادخپل رب نه د دري خبرو سوال اوکړو ما دا سوال اوکړو چې زما امت به په عمومي عذاب دغرق کيدو سره نه هلاکوي (لکه چې دنوح عليه السلام امت سره يې کړي وو) نو الله تعالي زما دا دعا قبوله کړه او بله مي دا دعا کړي وه چې زما امت به په قحط نه هلاکوي دا دعا مي هم قبوله شوه اوبله مي دا دعا غوښتلي وه چې زما امت لره پخپل مينځ کي په جنګ جګړو کي مبتلا نکړي نو دا دعا مي قبوله نه شوه (رواه البغوي).
دعبدالله بن عبدالرحمن انصاري بيان دي چې عبدالله بن عمر رضي الله عنهما زمونږ خواته تشريف راوړو اويې فرمائيل چې رسول الله صلي الله عليه وسلم په يو مسجد کي دري دعاګاني کړي وي او الله تعالي يې دوه دعاګاني قبولي کړي او يوه دعا يې قبوله نکړه يوه دعا يې دا کړي وه چې زما په امت باندي کوم غير دشمن مسلط نکړي تردي چې هغه په ټولو

حمله اوکړي نو الله تعالي يي دا دعا قبوله کړه، بله دعا يي دا کړي وه چې زما امت دعمومي قحط سالئ نه اوساتلي شي نو الله تعالي يي دا دعا هم قبوله کړه ليکن اخري دعا يي دا کړي وه چې زما امت په کورنئ جګړو کي مبتلا نکړي نو الله تعالي يي دا دعا قبوله نکړه (رواه البخاري).

ابن ابي حاتم دزيد بن اسلم بيان نقل کړي دي چې کله ايت کريمه قُلْ هُوَ الْقَادِرُ عَلَى أَن يَبْعَثَ عَلَيْكُمْ عَذَابًا مِنْ فَوْقِكُمْ. نازل شو نو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل زما نه پس به کفر ته نه واپس کيږئ تر دي چې پخپل مينځ کي د يو بل څټونه په تورو اووهئ صحابه کرامو عرض اوکړو مونږه ګواهي ورکوو چې دالله نه علاوه بل کوم معبود نشته او ته دالله رسول يي (نو ايا ددي شهادت باوجود به هم مونږ داسي کوو) يو کس اوونيل داسي هرګز نشي کيدي يعني مونږ مسلمانان يو اوبيا به مونږه ديو بل څټونه وهو داسي نه شي کيدي نوددي په باره کي لاندېني ايت کريمه نازل شو.

****************

٣٠٦٦_حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَرَفَةَ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيل بْنُ عَيَّاشٍ، عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ أَبِي مَرْيَمَ الْغَسَّانِيِّ عَنْ رَاشِدِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي هٰذِهِ الآيَةِ قُلْ هُوَ الْقَادِرُ عَلَى أَنْ يَبْعَثَ عَلَيْكُمْ عَذَابًا مِنْ فَوْقِكُمْ أَوْ مِنْ تَحْتِ أَرْجُلِكُمْ (الأنعام :٦٥) . فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " أَمَا إِنَّهَا كَائِنَةٌ وَلَمْ يَأْتِ تَأْوِيلُهَا بَعْدُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. [1]

**ترجمه** : دسعد بن ابي وقاص رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چې نبي کريم صلي الله عليه وسلم دايت کريمه "قُلْ هُوَ الْقَادِرُ عَلَى أَنْ يَبْعَثَ عَلَيْكُمْ عَذَابًا مِنْ فَوْقِكُمْ أَوْ مِنْ تَحْتِ أَرْجُلِكُمْ" متعلق اوفرمائيل خبردار دا کيدونکي خبره ده او دي وخته پوري ددي وقوع او ظهور نه دي شوي (يعني عذاب لانه دي راغلي).

امام ترمذي وايي. داحديث حسن غريب دي.

****************

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٣٨٥١)

٣٠٦٧_حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ خَشْرَمٍ، أَخْبَرَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَلْقَمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: لَمَّا نَزَلَتْ الَّذِينَ آمَنُوا وَلَمْ يَلْبِسُوا إِيمَانَهُمْ بِظُلْمٍ (الأنعام :٨٢) شَقَّ ذَلِكَ عَلَى الْمُسْلِمِينَ، فَقَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، وَأَيُّنَا لَا يَظْلِمُ نَفْسَهُ؟ قَالَ: "لَيْسَ ذَلِكَ إِنَّمَا هُوَ الشِّرْكُ، أَلَمْ تَسْمَعُوا مَا قَالَ لُقْمَانُ لِابْنِهِ: يَا بُنَيَّ لَا تُشْرِكْ بِاللَّهِ إِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيمٌ (لقمان :١٣)". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه** . دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه بيان دي فرمائي كله چې ايت كريمه "الذين امنوا ولم يلبسوا ايمانهم بظلم" نازل شو نو مسلمانانو ته دا خبره ګرانه ښكاره شوه خلقو عرض اوكړو اي دالله رسوله په مونږ كي څوك داسي دي چاچې دخپل ذات په حق كي ظلم او زياتي نه وي كړي رسول الله اوفرمائيل خبره هرګز داسي نه ده ددي ظلم نه مراد صرف شرك دي ايا تاسو نه دي اوريدلي چې لقمان عليه السلام خپل خوي ته څه نصيحت كړي وو هغه داسي وئيلي وو "يابني لاتشرك بالله ان الشرك لظلم عظيم".
امام ترمذي وايي. داحديث حسن صحيح دي.

***************

٣٠٦٨_حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ يُوسُفَ الأَزْرَقُ، حَدَّثَنَا دَاوُدُ بْنُ أَبِي هِنْدٍ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ مَسْرُوقٍ، قَالَ: كُنْتُ مُتَّكِئًا عِنْدَ عَائِشَةَ، فَقَالَتْ: "يَا أَبَا عَائِشَةَ، ثَلَاثٌ مَنْ تَكَلَّمَ بِوَاحِدَةٍ مِنْهُنَّ فَقَدْ أَعْظَمَ عَلَى اللَّهِ الْفِرْيَةَ: مَنْ زَعَمَ أَنَّ مُحَمَّدًا رَأَى رَبَّهُ فَقَدْ أَعْظَمَ الْفِرْيَةَ عَلَى اللَّهِ، وَاللَّهُ يَقُولُ: لَا تُدْرِكُهُ الأَبْصَارُ وَهُوَ يُدْرِكُ الأَبْصَارَ وَهُوَ اللَّطِيفُ الْخَبِيرُ (الأنعام :١٠٣) وَمَا كَانَ لِبَشَرٍ أَنْ يُكَلِّمَهُ اللَّهُ إِلَّا وَحْيًا أَوْ مِنْ وَرَاءِ حِجَابٍ (الشورى :٥١) وَكُنْتُ مُتَّكِئًا فَجَلَسْتُ فَقُلْتُ: يَا أُمَّ الْمُؤْمِنِينَ، أَنْظِرِينِي وَلَا تُعْجِلِينِي أَلَيْسَ يَقُولُ اللَّهُ تَعَالَى: وَلَقَدْ رَآهُ نَزْلَةً أُخْرَى (النجم :١٣) وَلَقَدْ رَآهُ بِالأُفُقِ الْمُبِينِ (التكوير :٢٣)، قَالَتْ: أَنَا وَاللَّهِ أَوَّلُ مَنْ سَأَلَ عَنْ هَذَا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: إِنَّمَا ذَاكَ جِبْرِيلُ، مَا رَأَيْتُهُ فِي الصُّورَةِ الَّتِي خُلِقَ فِيهَا غَيْرَ هَاتَيْنِ الْمَرَّتَيْنِ، رَأَيْتُهُ مُنْهَبِطًا مِنَ السَّمَاءِ سَادًّا عِظَمُ خَلْقِهِ مَا بَيْنَ السَّمَاءِ وَالأَرْضِ، وَمَنْ زَعَمَ أَنَّ مُحَمَّدًا كَتَمَ شَيْئًا مِمَّا

---

[1] _ اورده البخاري في الجامع الصحيح /الإيمان ٢٣ (٣٢) ، وأحاديث الأنبياء ٨ (٣٣٦٠) ، و٤١ (٣٤٢٨، ٣٤٢٩) ، تفسير الإنعام ولقمان ١ (٤٧٧٦) ، والمرتدين ١ (٦٩١٨) ، و٩ (٦٩٣٧) ، صحيح مسلم /الإيمان ٥٦ (١٢٤) (تحفة الأشراف : ٩٤٢٠)

أَنْزَلَ اللَّهُ عَلَيْهِ فَقَدْ أَعْظَمَ الْفِرْيَةَ عَلَى اللَّهِ يَقُولُ اللَّهُ: يَأَيُّهَا الرَّسُولُ بَلِّغْ مَا أُنْزِلَ إِلَيْكَ مِنْ رَبِّكَ (المائدة: ٦٧) ، وَمَنْ زَعَمَ أَنَّهُ يَعْلَمُ مَا فِي غَدٍ فَقَدْ أَعْظَمَ الْفِرْيَةَ عَلَى اللَّهِ وَاللَّهُ يَقُولُ: قُلْ لا يَعْلَمُ مَنْ فِي السَّمَوَاتِ وَالأَرْضِ الْغَيْبَ إِلا اللَّهُ (النمل: ٦٥) ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَمَسْرُوقُ بْنُ الأَجْدَعِ يُكْنَى أَبَا عَائِشَةَ وَهُوَ مَسْرُوقُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ. وَهَكَذَا كَانَ اسْمُهُ فِي الدِّيوَانِ. [1]

**ترجمه** : دمسروق بيان دي فرماني چې ما دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها كره ډېره وهلي وه او ناست وم چې هغوئ اوونيل اي ابو عائشه دري څيزونه داسي دي كه چا په دي كي يو هم اوكړو نو دي به په الله باندي لوي بهتان اوتړي اول دادي چاچې دا خيال اوكړو چې محمد صلي الله عليه وسلم دمعراج په شپه الله تعالي ليدلي دي نو هغه دالله تعالي په ذات پوري لوي بهتان اوتړلو خكه چې الله تعالي دخپل ذات باره كي فرمائي " لا تُدْرِكُهُ الأَبْصَارُ وَهُوَ يُدْرِكُ الأَبْصَارَ وَهُوَ اللَّطِيفُ الْخَبِيرُ " او دهغه ذات لطيف او خبير دي او همدارنگي "وماكان لبشر ان يكلمه الله الا وحيا او من وراء حجاب" راوي وائي چې ما دغه وخت كي ډېره وهلي وه خو چې دا مي اوريدل نو نيغ كيناستم او ما اووئيل اي ام المؤمنين ماته دخه ويلو اجازت اكړه او زما باره كي په حكم لگولو كي جلتي مه كوه، ايا الله تعالي دا نه دي فرمائيلي "ولقد راه نزلة اخري. ولقد راه بالافق المبين" دي وخت كي عائشه رضي الله عنها اوونيل زما دي په الله قسم وي زه هغه اولني ذات يم چاچې درسول الله صلي الله عليه وسلم نه په دي باره كي تپوس كړي وو رسول الله فرمائيلي وو هغه خو جبرائيل عليه السلام دي "او په دي ايتونو كي زما دليدو نه مراد جبرائيل عليه السلام دي او دالله تعالي ليدل ورنه مراد نه دي" او ددي دوه مواقعو نه علاوه داسي كومه موقعه نه ده راغلي په كوم كي چې ما جبرائيل عليه السلام خپل اصلي صورت كي ليدلي وي په كوم صورت كي چې دهغه تخليق شوي دي ما هغه لره داسمان نه په كوزيدلو كي ليدلي وو دهغه دخاخت لوي والي يعني جسامت دزمكي او اسمان په مينځ كي توله خلاء راگيره كړي وه، او دويم هغه كس څوك چې په الله باندي د دروغو الزام لگولو لوي جرم اوكړي هغه دادي څوك چې دا خيال اوكړي الله تعالي چې په محمد صلي الله عليه وسلم څه نازل كړي دي په هغي كي محمد څه پټ كړي دي مگر الله تعالي فرمائي "يا ايهالرسول بلغ ما انزل اليك من ربك" او هغه كس هم په الله پوري د دروغو الزام تړونكي دي

[1] اورده البخاري في الجامع الصحيح /تفسير سورة النجم ١ (٤٨٥٥) . والتوحيد ٢ (٧٣٨٠) . و ٣٦ (٧٥٣١) . صحيح مسلم/الإيمان ٧٧ (١٧٧) (تحفة الأشراف ١٧٦١٣)

څوك چې دا ګمان كوي چې سبا څه كيدونكي دي محمد صلي الله عليه وسلم په هغې باندي خبردار دي او حال دادي چې الله تعالي پخپله فرمائي "قل لايعلم من في السماوات والارض الغيب الا الله" يعني په زمكه او اسمانونو كي دالله تعالي نه علاوه بل هيڅوك عيب دان نشته.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي.

## دمسروق رضي الله عنه حالات

نوم مسروق كنيه ابو عائشه دجاهليت په زمانه كې يي دپلار نوم اجدع وو بيا په عبدالرحمان باندي تبديل شو په يمن كې يي دهمدان خاندان سره يي تعلق لرلو دده داسلام راوړو په باره كې دومره معلوميږي چې دصديق اكبر رضي الله عنه په زمانه كې مسلمان شوى وو دى پخپل وائي زما په ابوبكر صديق رضي الله عنه پسي مونځ كړى دى (طبقات ابن سعد).

كله چې دعمر فاروق په زمانه كې مديني ته راغى نو دنوم په باره كې ورنه اميرالمؤمنين تپوس اوكړو نو ده ورته اووئيل مسروق بن اجدع عمر فاروق ورته اوفرمائيل داسي مه وايه ته مسروق بن عبدالرحمان شوي.

دشعبي قول دى چې د مسروق پشان دعلم زده كولو شوقي ما بل څوك چرته نه دى ليدلى عائشه رضي الله عنها به ده ته دخپل خوي درجه وركوله او ورته به يي وئيل بچيه دهغي نه يي كافي علم حاصل كړى وو حافظ ذهبي وائي مسروق فقيه وو د علامه نووي قول دى چې دده جلالت شان ، توثيق، او فضيلت او امامت باندي دټولو علماؤ اتفاق دى ددي هر څه سره سره مسروق دالله تعالي نه يريدونكى هم ډير وو او ښكلى عبادت به يي هم كولو توبه او استغفار كونكى وو او ددنيا نه اعراض كونكى وو او دالله تعالي په ذات ډير اعتماد كونكى وو چې دهجرت په ۶۳ كال وفات شو.

***************

۳۰۶۹_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُوسَى الْبَصْرِيُّ الْحَرَشِيُّ، حَدَّثَنَا زِيَادُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الْبَكَّائِيُّ، حَدَّثَنَا عَطَاءُ بْنُ السَّائِبِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: " أَتَى أُنَاسٌ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَنَأْكُلُ مَا نَقْتُلُ وَلَا نَأْكُلُ مَا يَقْتُلُ اللَّهُ ؟ فَأَنْزَلَ اللَّهُ فَكُلُوا مِمَّا ذُكِرَ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ إِنْ كُنْتُمْ بِآيَاتِهِ مُؤْمِنِينَ إِلَى قَوْلِهِ: وَإِنْ أَطَعْتُمُوهُمْ إِنَّكُمْ لَمُشْرِكُونَ (الأنعام :۱۱۸-۱۲۱) ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ مِنْ غَيْرِ هَذَا الْوَجْهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَيْضًا، وَرَوَاهُ بَعْضُهُمْ عَنْ عَطَاءِ بْنِ السَّائِبِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

وَسَلَّمَ مُرْسَلًا. (1)

**ترجمه** . دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما بيان دي فرمائي چې څه كسان دنبي كريم صلي الله عليه وسلم په خدمت كي حاضر شول او عرض يي اوكړو اي دالله رسوله ايا مونږ هغه ځاروي خوړلي شو كوم چې مونږ ذبح كوو او هغه ځاروي به نه خورو كوم چې الله تعالي ذبح كړي دي نو دي وخت كي الله تعالي دا ايت " فَكُلُوا مِمَّا ذُكِرَ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ إِنْ كُنْتُمْ بِآيَاتِهِ مُؤْمِنِينَ إِلَى قَوْلِهِ: وَإِنْ أَطَعْتُمُوهُمْ إِنَّكُمْ لَمُشْرِكُونَ " نازل كړو.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن غريب دي او دا حديث ددي سند نه علاوه په نورو سندونو هم دابن عباس نه مروي دي بعضو داحديث دعطاء بن سائب نه او عطاء دسعيد بن جبير په واسطه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه مرسل نقل كړي دي.

*****************

٣٠٧٠ـ حَدَّثَنَا الْفَضْلُ بْنُ الصَّبَّاحِ الْبَغْدَادِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُضَيْلٍ، عَنْ دَاوُدَ الأَوْدِيِّ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ عَلْقَمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: "مَنْ سَرَّهُ أَنْ يَنْظُرَ إِلَى الصَّحِيفَةِ الَّتِي عَلَيْهَا خَاتَمُ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلْيَقْرَأْ هَذِهِ الآيَاتِ قُلْ تَعَالَوْا أَتْلُ مَا حَرَّمَ رَبُّكُمْ عَلَيْكُمْ إِلَى قَوْلِهِ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ (الأنعام :١٥١ـ١٥٣)". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. (2)

**ترجمه** . دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه بيان دي فرمائي كه څوك دا خواهش لري چې هغه صحيفه اويني په كومه چې درسول الله صلي الله عليه وسلم مهر لګولي شوي دي دهغه دپاره ددي ايت كريمه "قُلْ تَعَالَوْا أَتْلُ مَا حَرَّمَ رَبُّكُمْ عَلَيْكُمْ إِلَى قَوْلِهِ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ " تلاوت كړي

امام ترمذي وايي: داحديث حسن غريب دي

*****************

٣٠٧١ـ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ وَكِيعٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنِ ابْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ عَطِيَّةَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي قَوْلِ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ: أَوْ يَأْتِيَ بَعْضُ آيَاتِ رَبِّكَ (الأنعام :١٥٨) . قَالَ: " طُلُوعُ الشَّمْسِ مِنْ مَغْرِبِهَا ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ وَرَوَاهُ بَعْضُهُمْ وَلَمْ يَرْفَعْهُ. (3)

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ٩٤٦٤)

[2] ـ تفرد به المؤلف رحمه الله تعالي.

[3] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ٤٢٣٦)

**ترجمه:** ابوسعيد خدري رضي الله عنه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم دا ارشاد نقل كوي چې دا ايت كريمه " أَوْ يَأْتِيَ بَعْضُ آيَاتِ رَبِّكَ " دتفسير متعلق يي اوفرمائيل په دي ايت كي دمغرب دطرفه دنمر راختل مراد دي
امام ترمذي وايي داحديث حسن غريب دي او بعضو راويانو موقوف ذكر كړي دي او مرفوع يي نه دي بيان كړي

***************

٣٠٧٢_حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، حَدَّثَنَا يَعْلَى بْنُ عُبَيْدٍ، عَنْ فُضَيْلِ بْنِ غَزْوَانَ، عَنْ أَبِي حَازِمٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " ثَلَاثٌ إِذَا خَرَجْنَ لَا يَنْفَعُ نَفْسًا إِيمَانُهَا لَمْ تَكُنْ آمَنَتْ مِنْ قَبْلُ (الأنعام :١٥٨) . الدَّجَّالُ، وَالدَّابَّةُ، وَطُلُوعُ الشَّمْسِ مِنَ الْمَغْرِبِ أَوْ مِنْ مَغْرِبِهَا ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَأَبُو حَازِمٍ هُوَ الْأَشْجَعِيُّ الْكُوفِيُّ وَاسْمُهُ سَلْمَانُ مَوْلَى عَزَّةَ الْأَشْجَعِيَّةِ. [1]

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه بيان دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دري علامات داسي دي كله چې دا ظاهر شي نو يو نفس ته به دغه وخت كي ايمان راوړل څه فائده نه وركوي مګر څو پوري چې مخكي يي ايمان نه وي راوړي يو خروج د دجال دي او بل ظهور د دابة الارض دي او بل دمغرب دطرفه دنمر راختل دي.
امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي او ابو حازم اشجعي قبيلي والا دكوفي اوسيدونكي دي او نوم يي سلمان دي او داشجعيه قبيلي ازاد كړي غلام دي.

***************

٣٠٧٣_حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنِ الْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " قَالَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ وَقَوْلُهُ الْحَقُّ: إِذَا هَمَّ عَبْدِي بِحَسَنَةٍ فَاكْتُبُوهَا لَهُ حَسَنَةً، فَإِنْ عَمِلَهَا فَاكْتُبُوهَا لَهُ بِعَشْرِ أَمْثَالِهَا، وَإِذَا هَمَّ بِسَيِّئَةٍ فَلَا تَكْتُبُوهَا، فَإِنْ عَمِلَهَا فَاكْتُبُوهَا بِمِثْلِهَا، فَإِنْ تَرَكَهَا وَرُبَّمَا قَالَ لَمْ يَعْمَلْ بِهَا فَاكْتُبُوهَا لَهُ حَسَنَةً، ثُمَّ قَرَأَ مَنْ جَاءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهُ عَشْرُ أَمْثَالِهَا (الأنعام :١٦٠) ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [2]

---

[1] _ صحيح مسلم/الإيمان ٧٢ (١٥٨) (تحفة الأشراف : ١٣٤٢١)

[2] _ صحيح مسلم/الإيمان ٥٩ (١٢٨) (وما بعده) (تحفة الأشراف : ١٣٦٧٩)

**ترجمه** . دابوهريره رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي الله تعالي فرمائي او فرمان يي درست او حق دي كله چې زما بنده دكومي نيكۍ اراده اوكړي نو اي زما فرشتو دده دپاره نيكياني اوليكئ، او كله چې زما بنده كوم نيك كار اوكړي نو دده دپاره لس نيكياني اوليكئ او كله چې زما بنده ديو بد كار اراده اوكړي نو دهغه دپاره هيڅ مه ليكئ او كله چې يو بد كار اوكړي نو صرف يوه ګناه دهغه دپاره اوليكئ او بيا كه چرې زما بنده دا ګناه پرېږدي (كله كله به راوي داسي وئيل چې دوباره ددې ګناه ارتكاب اونكړي) نو په هغې باندې هم دهغه دپاره يوه نيكي اوليكئ او بيا رسول الله دا ايت كريمه "من جاء بالحسنة فله عشر امثالها" تلاوت كړو

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي.

****************

## ٨ـ باب وَمِنْ سُورَةِ الأَعْرَافِ

### دسورة اعراف دبعضي ايتونو تفسير

**وجه دتسميه د دی سورة:** سورة اعراف نوم په دی وجه ايخودی شوی دی چې د دی په ۴۲ .۴۷ ايت كي د اعراف او اعراف والو ذكر راغلی دی. يعنی دا هغه سورة دی چې په هغی كي ,, د اعراف ذكر دی، ،

**د نزول زمانه:** د دی په مضمونونو باندی د غور كولو نه معلوميږی چې د دی زمانه هغه ده كومه چې د سورة انعام ده.

د دی سورة مركزی مضمون د رسالت دعوت دی يعنی د الله تعالی د رسول تابعداری او پيروی كول او د مخالفينو د پوهه كولو دپاره دوی ته ونيلی شوی دی چې كوم روش تاسو د خپل پيغمبر په مقابله كي اختيار كړي دی. نو داسی روش ستاسو نه مخكي خلقو هم د خپلو پيغمبرانو په مقابله كي اختيار كړی وؤ او د هغوی انجام ډير خراب وؤ په مشركينو باندی د حجت پوره كولو نه پس د تقرير په آخر كي اهل كتابو ته هم خطاب شويدی او يو ځای كي د ټولی دنيا خلقو ته خطاب دی. او دا خطاب د دی خبری علامت دی چې د هجرت وخت نزدی دی او په آخر كي د رسول الله صلی الله عليه وسلم خپلو خلقو ته خطاب دی. او صحابه كرامو ته د دعوت او تبليغ متعلق يو څو اداب خودلی شوی دی او صحابه كرامو ته نصيحت شوي دی چې د مخالفينو د تكليفونو او چالونو په مقابله كي د صبر نه كار اخلئ. او داسی كار مه كوئ چې د هغی نه اصل مقصد ته نقصان اورسيږی

٣٠٧٤_حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، أَخْبَرَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "قَرَأَ هَذِهِ الآيَةَ فَلَمَّا تَجَلَّى رَبُّهُ لِلْجَبَلِ جَعَلَهُ دَكًّا (الأعراف: ١٤٣)، قَالَ حَمَّادٌ: هَكَذَا وَأَمْسَكَ سُلَيْمَانُ بِطَرَفِ إِبْهَامِهِ عَلَى أُنْمُلَةِ إِصْبَعِهِ الْيُمْنَى قَالَ فَسَاخَ الْجَبَلُ: وَخَرَّ مُوسَى صَعِقًا (الأعراف :١٤٣)". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ صَحِيحٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ حَمَّادِ بْنِ سَلَمَةَ. [1]

**ترجمه** : دانس رضي الله عنه نه مروي دي فرماي چې نبي كريم صلي الله عليه وسلم دا ايت كريمه " فَلَمَّا تَجَلَّى رَبُّهُ لِلْجَبَلِ جَعَلَهُ دَكًّا " تلاوت كړو حماد راوي وائي چې داسي او بيا سليمان راوي دخپلي ګوتي په بند بله ګوته كيخوده چې نبي كريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل بس په هم دومره وخت كي به غرونه په زمكه كي ډوب كړي شي "فخرموسي صعقا".

امام ترمذي وايي: دا حديث حسن غريب صحيح دي او مونږ يي صرف دحماد بن سلمه په سند پيژنو.

*****************

حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ الْوَرَّاقُ الْبَغْدَادِيُّ، حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ مُعَاذٍ، عَنْ حَمَّادِ بْنِ سَلَمَةَ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ أَنَسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، نَحْوَهُ هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. [2]

**ترجمه** : ثابت دانس رضي الله عنه په واسطه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه دماقبل هم معني روايت نقل كړي دي.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن دي

*****************

٣٠٧٥_حَدَّثَنَا الأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا مَعْنٌ، حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، عَنْ زَيْدِ ابْنِ أَبِي أُنَيْسَةَ، عَنْ عَبْدِ الْحَمِيدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ زَيْدِ بْنِ الْخَطَّابِ، عَنْ مُسْلِمِ بْنِ يَسَارٍ الْجُهَنِيِّ، أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ سُئِلَ عَنْ هَذِهِ الآيَةِ وَإِذْ أَخَذَ رَبُّكَ مِنْ بَنِي آدَمَ مِنْ ظُهُورِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ وَأَشْهَدَهُمْ عَلَى أَنْفُسِهِمْ أَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ قَالُوا بَلَى شَهِدْنَا أَنْ تَقُولُوا يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِنَّا كُنَّا عَنْ هَذَا غَافِلِينَ (الأعراف :١٧٢)،

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٣٨٠)

[2] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٣٨٠)

فَقَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُسْأَلُ عَنْهَا. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ اللَّهَ خَلَقَ آدَمَ. ثُمَّ مَسَحَ ظَهْرَهُ بِيَمِينِهِ. فَاسْتَخْرَجَ مِنْهُ ذُرِّيَّةً. فَقَالَ: خَلَقْتُ هَؤُلَاءِ لِلْجَنَّةِ وَبِعَمَلِ أَهْلِ الْجَنَّةِ يَعْمَلُونَ. ثُمَّ مَسَحَ ظَهْرَهُ فَاسْتَخْرَجَ مِنْهُ ذُرِّيَّةً. فَقَالَ: خَلَقْتُ هَؤُلَاءِ لِلنَّارِ وَبِعَمَلِ أَهْلِ النَّارِ يَعْمَلُونَ". فَقَالَ رَجُلٌ: يَا رَسُولَ اللَّهِ فَفِيمَ الْعَمَلُ؟ قَالَ: فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ اللَّهَ إِذَا خَلَقَ الْعَبْدَ لِلْجَنَّةِ اسْتَعْمَلَهُ بِعَمَلِ أَهْلِ الْجَنَّةِ حَتَّى يَمُوتَ عَلَى عَمَلٍ مِنْ أَعْمَالِ أَهْلِ الْجَنَّةِ فَيُدْخِلَهُ اللَّهُ الْجَنَّةَ. وَإِذَا خَلَقَ الْعَبْدَ لِلنَّارِ اسْتَعْمَلَهُ بِعَمَلِ أَهْلِ النَّارِ حَتَّى يَمُوتَ عَلَى عَمَلٍ مِنْ أَعْمَالِ أَهْلِ النَّارِ فَيُدْخِلَهُ اللَّهُ النَّارَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. وَمُسْلِمُ بْنُ يَسَارٍ لَمْ يَسْمَعْ مِنْ عُمَرَ. وَقَدْ ذَكَرَ بَعْضُهُمْ فِي هَذَا الْإِسْنَادِ بَيْنَ مُسْلِمِ بْنِ يَسَارٍ وَبَيْنَ عُمَرَ رَجُلًا مَجْهُولًا. (١)

**ترجمه** : دمسلم بن يسار نه روايت دي فرمائي چې دعمر بن الخطاب رضي الله عنه نه ددې ايت مباركه ٱلْآيَةَ وَإِذْ أَخَذَ رَبُّكَ مِنْ بَنِي آدَمَ مِنْ ظُهُورِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ وَأَشْهَدَهُمْ عَلَى أَنْفُسِهِمْ أَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ قَالُوا بَلَى شَهِدْنَا أَنْ تَقُولُوا يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِنَّا كُنَّا عَنْ هَذَا غَافِلِينَ اوكله چې ستا رب دادم اودده داولاد دشا نه ددوئ نسل راوويستلو او ددوئ نه يې دهغوئ متعلق اقرار واغستلو چې ايا زه ستاسو رب نه يم نوتولو په جواب کې اوونيل ولې نه پس مونږ پدې باندې ګواهي کونکي يو، په باره کې تپوس وکړې شو نو عمر رضي الله عنه اوفرمائيل دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه مې اوريدلي ووچې ددې ايت په باره کې ورنه تپوس شوي وو .رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي ووچې الله تعالي ادم عليه السلام پيداکړوبيائي دهغه په شاباندې خپل ښي لاس راښکلونودهغي نه ئې بچي راوويستل الله تعالي اوفرمائيل دامخلوق مې دجنت دپاره پيداکړي دي دوي به دجنتيانوعملونه کوي . اوبيا ئې دهغه په شاباندې خپل ښي لاس راښکلونودهغي نه ئې بچي راوويستل الله تعالي اوفرمائيل دامخلوق مې ددوزخ دپاره پيداکړي دي دوي به ددوزخيا نوعملونه کوي. نويوکس عرض وکړو يارسول الله بيادعمل کولوڅه ضرورت دی؟رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل چالره چې الله تعالي دجنت دپاره پيداکوي نودهغه دلاس نه دجنتيانوعمل واخلي تردې چې دجنتيانوبه عملونوکې به کوم عمل باندې دده خاتمه وشي نوپدې وجه ده لره جنت ته داخل کړي ، اوهرهغه څوك چې ددوزخ دپاره پيداکوي

---

١ - سنن ابي داود/السنة ١٧(٤٧٠٣، و٤٧٠٤) (تحفة الأشراف : ١٠٦٥٤). ومسند احمد (١/٤٤ ٤٥)

نو هغه ددوزخيانو دعملونو توفيق ورته ورکړي ترڅو چې ددوزخيانو په کارونو کې په کوم کار کې مړشي او بيائي جهنم ته بوځي

امام ترمذي وايي. داحديث حسن دي او دعمر رضي الله عنه نه دمسلم بن يسار سماع ثابت نه ده او بعضي راويانو ددي حديث په سند کي دمسلم بن يسار اوعمر په مينځ کي يو بل مجهول راوي داخل کړي دي.

**تشريح** : دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي الله تعالي دادم پيدا کولو نه پس دهغه په شا لاس راښکلو نوکوم انسان چې دقيامت دورځي پوري دده په نسل کي پيدا کيدونکي وو راووتلو او الله تعالي دهر انسان ددوه سترګو په مينځ کي دنور يو پړق پيدا کړو، او بيا يي ټول ادم عليه السلام ته مخامخ کړل ادم عرض اوکړو اي زما پروردګاره دا څوك دي الله تعالي اوفرمائيل دا ستا اولاد دي، پس ادم عليه السلام په دوئ کي ديو کس ددواړو سترګو په مينځ کي يو چمك اوليدو و ډير ښائسته ورته ښکاره شو او عرض يي اوکړو اي پروردګاره دا څوك دي الله تعالي اوفرمائيل دا داود دي ادم عليه السلام عرض اوکړو اي پروردګاره تا دده عمر څومره مقرر کړي دي الله تعالي اوفرمائيل شپيته کاله، عرض يي اوکړو چې اي پروردګاره زما دعمرٌ نه ورته څلويښت کاله نور ورکړي چنانچې کله دادم عليه السلام عمر پوره شو اوصرف هغه څلويښت کلونه پاتي شول کوم چې يي داود عليه السلام ته ورکړي وو نو دمرګ فرښته ورته راغله، ادم عليه السلام اووئيل اوس خو لازما څلويښت کلونه باقي دي ملك الموت اووئيل ايا تا خپل خوي داود عليه السلام ته څلويښت کلونه نه وو ورکړي ؟نو ادم عليه السلام انکار اوکړو، نوپدي وجه دادم عليه السلام اولاد هم (دکړو وعدو نه) انکار کوي او ادم عليه السلام دالله تعالي حکم هير کړو او دممنوعه وني نه يي خوراك اوکړو نو پدي وجه دده اولاد هم هيرول کوي. او ادم عليه السلام خطا کړي وه نوپدي وجه دده اولاد هم خطاګاني کوي

ترمذي دا روايت دابو الدرداء رضي الله عنه په روايت سره نقل کړي دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په کوم وخت کي چې الله تعالي ادم عليه السلام پيدا کړو نو دهغه په ښي اوږه يي لاس راښکلو نوددي په ذريعه دوړو ميګانو په شکل کي ټول سپين رنګي نسل راووتلو او چې په چپه اوږه يي لاس راښکلو نو د کونلي پشان طور نسل راووتلو دښي طرف والامتعلق الله تعالي اوفرمائيل دوئ دجنت طرف ته تلونکي دي او زه ددوئ داطاعت څه پرواه نه ساتم اودچپ طرف والامتعلق يي اوفرمائيل دوئ ددوزخ طرف ته تلونکي دي او زه ددوئ دنافرماني څه پرواه نه کوم (رواه احمد) مقاتل او نورو مفسرينو هم دي پشان روايت ذکر کړي دي ليکن دمقاتل درروايت په اخر کي دومره اضافه ده چې الله تعالي بيا ټولو لره دادم عليه السلام په شا کي واپس کړل ترڅو چې تمام ميثاق دازل والا

ډېلرونو دشاګانو او دمیندو دخیټو نه راوتلي نه وي او قبرونو والاپه قبرونو کي موجود وي (ترهغي به قیامت نه راځي اونه به حشر وي، پس ددي د ازل میثاق ماتونکو متعلق الله تعالي اوفرمائیل "وما وجدنا لاکثرهم من عهد".

دابن عباس رضي الله عنهما روایت دي چي رسول الله صلي الله علیه وسلم فرمائیلي دي الله تعالي دادم علیه السلام دشا نه اولاد راوویستلو او په عرفات کي یې ورنه عهد واخستلو او څومره نسل چي الله تعالي په اننده کي پیدا کوي دا یې ټول دادم علیه السلام دشا نه راوویستل او خپلي مخي ته یې دوړو میږو پشان وشیندل اودوئ ته یې په مخامخ اوفرمائیل ایا زه ستاسو رب نه یم ؟ ټولو په جواب کي اووئیل ولي نه مونږ په دي باندي ګواهي کونکي یو (الي اخر الایه) (رواه احمد والنسائي والحاکم) او حاکم ددي روایت تصحیح کړي ده.

دابي بن کعب رضي الله عنه بیان دي چي الله تعالي دادم علیه السلام ټول اولاد راجمع کړو او بیا یې ددوئ قسمونه جدا جدا کړل او بیا یې دوئ ته شکلونه ورکړل او بیا یې دوئ ګویا کړل نوټولو خبري اوکړي او بیا یې ددوئ نه عهد او میثاق واخستو او ددوئ نه یې پخپله په دوئ باندي اقرار واخستو او ویې فرمائیل ایا زه ستاسو رب نه یم نو ټولو اووئیل ولي نه. الله تعالي اوفرمائیل زه ستاسو په دي اقرار باندي په تاسو اوه اسمانونه او اوه زمکي ګواه کوم او ستاسو پلار ادم هم درباندي ګواه کوم ددي دپاره چي دقیامت په ورځ تاسو داسي اونه وائي چي مونږ ددي توحید نه خبر نه وو ، ښه واورئ چي زما نه علاوه بل معبود نشته اوزماسره به هیڅوك نه شریکوئ زه به تاسو ته خپل پیغمبر درلیږم څوك چي به تاسو ته دا عهد او میثاق رایادوي اوزه به په تاسو خپل کتابونه نازلوم، نو ټولو په جواب کي اووئیل مونږ ګواهي ورکوو چي هم ته په یقیني طور سره زمونږ رب یې او زمونږ معبود یې او ستا نه علاوه کوم بل معبود او رب نشته. ددینه پس ادم علیه السلام رامخامخ کړي شو نو ادم علیه السلام دپورته نه ذدوئ معائنه اوکړه مالدار او نادار ښکلي اوبدرنګه ټول یې اولیدل او عرض یې اوکړو چي اي پروردګاره تادوئ ټول یو شان ولي نه دي پیدا کړي الله تعالي اوفرمائیل زه غواړم چي زما شکر دي ادا کړي شي (امیر چي کله فقیر اووینې نو شکر دي ادا کړي او ښکلي چي بدرنګه اووینې نو شکر دي ادا کړي) ادم علیه السلام پخپل اولاد کي پیغمبران دچراغونو پشان پړقیدونکي اولیدل بیا دانبیاؤ نه په خاص طور سره درسالت او نبوت متعلق یو جدا میثاق واخستلي شو هم ددي میثاق متعلق الله تعالي فرمائیلي دي وَإِذْ أَخَذْنَا مِنَ النَّبِيِّينَ مِيثَاقَهُمْ وَمِنْكَ وَمِنْ نُوحٍ وَإِبْرَاهِيمَ وَمُوسَىٰ وَعِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ.

عيسي بن مريم عليه السلام هم په هغه روحونو كي شامل وو كوم چې الله تعالي مريم ته ليږلي وو. دابي بن كعب رضي الله عنه قول په يو روايت كي راغلي دي چې عيسي عليه السلام مريم ته دخولې دطرفه داخل شوي وو (رواه احمد)

***************

٣٠٧٦ـ حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ، حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَمَّا خَلَقَ اللَّهُ آدَمَ مَسَحَ ظَهْرَهُ فَسَقَطَ مِنْ ظَهْرِهِ كُلُّ نَسَمَةٍ هُوَ خَالِقُهَا مِنْ ذُرِّيَّتِهِ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ، وَجَعَلَ بَيْنَ عَيْنَيْ كُلِّ إِنْسَانٍ مِنْهُمْ وَبِيصًا مِنْ نُورٍ، ثُمَّ عَرَضَهُمْ عَلَى آدَمَ، فَقَالَ: أَيْ رَبِّ مَنْ هَؤُلَاءِ؟ قَالَ: هَؤُلَاءِ ذُرِّيَّتُكَ، فَرَأَى رَجُلًا مِنْهُمْ فَأَعْجَبَهُ وَبِيصُ مَا بَيْنَ عَيْنَيْهِ، فَقَالَ: أَيْ رَبِّ مَنْ هَذَا؟، فَقَالَ: هَذَا رَجُلٌ مِنْ آخِرِ الْأُمَمِ مِنْ ذُرِّيَّتِكَ يُقَالُ لَهُ: دَاوُدُ، فَقَالَ: رَبِّ كَمْ جَعَلْتَ عُمْرَهُ؟، قَالَ: سِتِّينَ سَنَةً، قَالَ: أَيْ رَبِّ زِدْهُ مِنْ عُمْرِي أَرْبَعِينَ سَنَةً، فَلَمَّا قُضِيَ عُمْرُ آدَمَ جَاءَهُ مَلَكُ الْمَوْتِ، فَقَالَ: أَوَلَمْ يَبْقَ مِنْ عُمْرِي أَرْبَعُونَ سَنَةً؟، قَالَ: أَوَلَمْ تُعْطِهَا ابْنَكَ دَاوُدَ، قَالَ: فَجَحَدَ آدَمُ، فَجَحَدَتْ ذُرِّيَّتُهُ، وَنَسِيَ آدَمُ فَنَسِيَتْ ذُرِّيَّتُهُ، وَخَطِئَ آدَمُ فَخَطِئَتْ ذُرِّيَّتُهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. [1]

**ترجمه**: دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي هر كله چې الله تعالي ادم عليه السلام پيدا كړو نو دده په ملا يې لاس راښكلو نو ددينه دده داولاد هغه ټول روحونه بهر راووتل كوم چې دقيامت دورځي پوري پيداكيدونكي دي او بيا په دي كي دهر يو انسان دستركي په مينځ كي دنور يو پرق واچولي شي او بيا دوئ ادم عليه السلام ته پيش كړي شو نو ادم عليه السلام اووئيل اي زما ربه دوئ څوك دي؟ الله تعالي اوفرمائيل دا ستا اولاد دي بيا هغه په دوئ كي يو كس اوليدلو دچا ددواړو ستركو په مينځ كي چې چمك ډير زيات ښكاريدو او ښه ښكاريدو ادم عليه السلام اووئيل اي زما ربه دا څوك دي الله تعالي اوفرمائيل ستا داولاد په اخري امتونو كي يو كس دي چې داود ورته وئيلي شي هغه اووئيل اي زما پروردګاره دده دپاره دي عمر څومره مقرر كړي دي الله تعالي اوفرمائيل شپيته كاله ادم عليه السلام اووئيل اي زما ربه زما دعمر نه څلويښت كاله واخله او دده په عمر كي اضافه اوكړه بيا چې كله د ادم عليه السلام عمر پوره شو ملك الموت ورته ورغلو نو هغه اووئيل زما

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٢٢٢٥)

په زندګۍ کي خو ځلويښت کاله لاباقي دي ملکوت الموت ورته اوونيل ايا هغه دي خپل خوي داود ته نه ووږ کړي رسول الله اوفرمائيل چې ادم عليه السلام انکار اوکړو نو په دي وجه دده اولاد هم انکاريان اوګرځيدل او د ادم عليه السلام نه هيريدل اوشول نو دده اولاد هم هيرونکي دي ادم عليه السلام غلطي اوکړه نو دده اولاد هم خطاکار اوګرځولي شو
امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي. داحديث په يو څو سندونو دابوهريره رضي الله عنه په واسطه دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه مروي دي

****************

٣٠٧٧ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ بْنُ عَبْدِ الْوَارِثِ، حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَمَّا حَمَلَتْ حَوَّاءُ طَافَ بِهَا إِبْلِيسُ وَكَانَ لَا يَعِيشُ لَهَا وَلَدٌ، فَقَالَ: سَمِّيهِ عَبْدَ الْحَارِثِ فَسَمَّتْهُ عَبْدَ الْحَارِثِ فَعَاشَ، وَكَانَ ذَلِكَ مِنْ وَحْيِ الشَّيْطَانِ وَأَمْرِهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ مَرْفُوعًا إِلَّا مِنْ حَدِيثِ عُمَرَ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ قَتَادَةَ، وَرَوَاهُ بَعْضُهُمْ عَنْ عَبْدِ الصَّمَدِ وَلَمْ يَرْفَعْهُ. عُمَرُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ شَيْخٌ بَصْرِيٌّ. ([1])

**ترجمه**. دسمره بن جندب رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي کله چې حواء بي بي حامله شوه نو شيطان ورته راغلو او دهغي ولادت نه وو شوي شيطان ورته اوونيل کله چې دي بچي پيدا شي نو نوم ورله عبدالحارث کيږده چنانچې حواء وربانذي عبدالحارث نوم کيخودو نو هغه ژوندي پاتي شو او دا کار هغي دشيطان په وسوسه او مشهوري کړي وو.
امام ترمذي وايي. داحديث حسن غريب دي او دا مونږ ته صرف دعمر بن ابراهيم په روايت مرفوع معلوم دي اوهغه يي دقتاده نه نقل کوي، بعضي راويانوداحديث دعبدالصمد نه نقل کړي دي ليکن مرفوع يي نه دي بيان کړي او عمر بن ابراهيم يو بصري شيخ دي.

****************

٣٠٧٨ـ حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ، حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَمَّا خُلِقَ آدَمُ" الحَدِيثَ.

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٤٦٠٢)

(١)

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي هر كله چې ادم عليه السلام پيدا كړي شو او بيا يي پوره حديث تراخره پوري بيان كړو.

**************

## ٩_باب وَمِنْ سُورَةِ الأَنْفَالِ

### دسورة انفال دبعضي ايتونو تفسير

ددي سورت نوم د ړومبنى ايت يَسْئَلُوْنَكَ عَنِ الْاَنْفَالِ نه اغستى شوى دى.

**شان نزول**. دا سورة په ٢ هـ كي د جنګ بدر نه پس نازل شوى دى

بحث: په دى سورة كي هغه كمزورى په ګوته كړى شوى دى چې هغه په اخلاقى حيثيت سره په مومنانو كي باقى وى.

بيا په دى كي مومنانو ته خودلى شوى دى چې په دى فتح كي د الله تعالى د طرف نه تاسو سره نصرت او امداد شوى دى. نو د دينه په الله تعالى باندى د توكل او د رسول د اطاعت سبق حاصل كړى.

بيا هغه اخلاقى مقصد واضح كړى شوى دى. چې د هغى دپاره مسلمانانو هغه معركه د حق او باطل شروع كړه.

بيا هغه مشركين او منافقان او يهوديان چې په دى جنګ كي قيد شوى ؤو هغوى ته سبق آموز خطاب دى.

په دى جنګ كي چې كوم مالونه مسلمانانو ته په لاس راغلى ؤو. د هغى متعلق دوي ته اوونيلى شول. چې خومره حصه الله تعالى تاسو له په دى مالونو كي مقرر كړى ده هغه په خوشحالى او شكريه سره واخلى. او چې كومه حصه الله تعالى د خپل كار او خپلو غريبانانو بندګانو دپاره مقرر كړى ده، نو په هغى هم خوشحاله شى بيا د جنګ او د صلح د قانون اخلاقى هدأيات بيان شوى دى چې په دنيا باندى دويته اخلاقى برترى حاصله شى او په جنګ او صلح كي د جاهليت د طريقو نه خان بچ اوساتى.

بيا د اسلامى رياست د دستورى قانون بعض دفعات بيان شوى دى. چې په هغى كي د دارالاسلام د مسلمانانو آئينى حيثيت د هغه مسلمانانو نه جدا بيان شوى دى. كوم مسلمانان چې د اسلامى رياست د حدودو نه بهر اوسيږى.

---

[1] _ لفرد به المؤلف.

ابن مردويه د کلبي په واسطي سره دابوصالح نه اوهغه دعطاء نه اوهغه دابن عجلان نه اوهغه عکرمه نه دابن عباس رضي الله عنهما دقول موافق بیان نقل کړي دي څوك چې کوم دشمن لره قتل کړي نودهغه نه اخستلي شوي مال (اسلحه وغیره) به هم دده وي . پس ددي فرمان نه پس بوډاګان خلق خو دجهنډو نیولو دپاره کلك شول اوخوانان په تیزئ سره قتل کولو اولوټ کولو ته ورمخکي شول ، بوډاګانو خوانانو ته وونیل مونږ هم دخان سره په غنیمت کي شریك کړئ څکه چې مونږ ستاسو شاته ولاړ یو که چرې پتاسو څه کیږي نوتاسو دپناه دپاره مونږ ته راځئ . غرض داچې دواړو ډلو خپله مقدمه رسول الله ته پیش کړه ، او ابو الیسر دوه کسان قید کړي راوستل او عرض یي وکړو اي دالله رسوله تازمونږ سره وعده کړي وه نوپدي وخت کي سعد بن معاذ ودریدو اوعرض یي وکړو تاسو دي خلقو ته هرڅه ورکړل اودملګرو دپاره دي هيڅ پاتي نشول ، مونږ خوپدي وجه نه وو پاتي شوي چې ګني داخرت طلب مو غرض نه وو او یا دقتل نه ویریدو او یا مودبزدلئ په وجه دخپل نفس متعلق بخل کولو لکه چې زمونږ ورونړو وکړل مګر خبره داوه مونږ ولیدل چې تاسو یواخي پاتي شوئ اومونږ دامناسب ونه ګڼل چې تالره پریږدو اویواخي ورمخکي شو ستاد حفاظت دپاره مونږ دلته پاتي شوي یو چې دشادطرف نه درباندي دشمن حمله ونکړي ، خلاصه داده چې په خلقو کي ډیر اختلاف پیدا شونوپدغه وخت کي دا ایت نازل شو.

دابن عباس رضي الله عنهما بیان دي چې رسول الله صلي الله علیه وسلم فرمائیلي دي. څوك چې کوم دشمن لره قتل کړي نوهغه ته به دا ، دا ، ورکړي شي اوڅوك چې چالره قید کړي هغه ته به دا ، دا ، ورکړي شي. (ابن ابي شیبه ، ابوداود ، حاکم ، ابن حبان ، عبد الرزاق ، عبد بن حمید ، ابن عابد ، ابن مردویه)

٣٠٧٩ـ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ عَيَّاشٍ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ بَهْدَلَةَ، عَنْ مُصْعَبِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: لَمَّا كَانَ يَوْمُ بَدْرٍ جِئْتُ بِسَيْفٍ، فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّ اللَّهَ قَدْ شَفَى صَدْرِي مِنَ الْمُشْرِكِينَ أَوْ نَحْوَ هَذَا، هَبْ لِي هَذَا السَّيْفَ، فَقَالَ: "هَذَا لَيْسَ لِي وَلَا لَكَ". فَقُلْتُ: عَسَى أَنْ يُعْطَى هَذَا مَنْ لَا يُبْلِي بَلَائِي، فَجَاءَنِي الرَّسُولُ فَقَالَ: "إِنَّكَ سَأَلْتَنِي وَلَيْسَ لِي وَإِنَّهُ قَدْ صَارَ لِي وَهُوَ لَكَ. قَالَ: فَنَزَلَتْ يَسْأَلُونَكَ عَنِ الْأَنْفَالِ (الأنفال :١)". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رَوَاهُ سِمَاكُ بْنُ حَرْبٍ، عَنْ مُصْعَبِ بْنِ سَعْدٍ أَيْضًا، وَفِي الْبَابِ، عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ. [1]

---

[1] ـ صحيح مسلم/الجهاد ١٢ (١٧٤٨) ، سنن ابي داود/ الجهاد ١٥٦ (٢٧٤٠) (تحفة الأشراف : ٣٩٣٠)

**ترجمه** دسعد بن ابي وقاص رضي الله عنه بيان دي فرماني چې ما دجنګ بدر په ورځ يوه توره راواخستله او رسول الله صلي الله عليه وسلم ته راورسيدم ما عرض اوكړو اي دالله رسوله ما په مشركانو خپل زړه ښه يخ كړي دي (يعني ښه ډير مي قتل كړل) راوي وائي چې داسي يي اوونيل او كه ددي پشان يي كومه بله جمله اوونيله. تاسو دا توره ماته راكړئ رسول الله اوفرمائيل دا نه زما ده او نه ستا ده ما په زړه كي اوونيل كيدي شي دا كوم داسي كس ته وركړي شي چاچې به په جنګ كي كارنامه نه وي كړي زه دهغوئ دخوا نه په حسرت كي ډوب حالت كي واپس راغلم تردي چې په ما پسي درسول الله صلي الله عليه وسلم قاصد راغلو او درسول الله دطرفه يي راته اوونيل تا زما نه توره غوښتلي وه نو دا توره هغه وخت زما نه وه او اوس دالله تعالي په حكم زما په اختيار كي ده او دا اوس ستا شوه راوي وائي په دي موقعه باندي "يسئلونك عن الانفال" والا ايت نازل شو.

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي او دا حديث سماك بن حرب هم دمصعب نه نقل كړي دي، او په دي باب كي دعباده بن صامت رضي الله عنه نه هم حديث وارد دي

****************

٣٠٨٠_حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنْ إِسْرَائِيلَ، عَنْ سِمَاكٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: لَمَّا فَرَغَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ بَدْرٍ قِيلَ لَهُ: عَلَيْكَ الْعِيرَ لَيْسَ دُونَهَا شَيْءٌ. قَالَ: فَنَادَاهُ الْعَبَّاسُ وَهُوَ فِي وَثَاقِهِ لَا يَصْلُحُ، وَقَالَ: "لِأَنَّ اللَّهَ وَعَدَكَ إِحْدَى الطَّائِفَتَيْنِ وَقَدْ أَعْطَاكَ مَا وَعَدَكَ". قَالَ: صَدَقْتَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** · دابن عباس رضي الله عنهما بيان دي كله چې رسول الله صلي الله عليه وسلم دغزوه بدر نه فارغ شو ورته اوونيلي شول دشام نه راتلونكي قافله ستاسو دلاس لاندي ده او په دوئ باندي په غالب كيدو كي هيڅ مانع او ركاوټ نشته دي وخت كي عباس رسول الله ته چغه كړل او دا وخت هغه قيدي وو په زنځيرونو تړلي شوي وو او ونيل يي ستاسو دا اقدام درست نه دي او درست به خكه نه وي چې الله تعالي تاسو سره په دوه ډلو كي (قافله يا لښكر) باندي په يوي دغالب كيدو وعده كړي وه او الله تعالي به تاسو سره خپلي كړي وعده پوره كوي رسول الله اوفرمائيل ته رښتيا وائي

امام ترمذي وايي. دا حديث حسن صحيح دي او په دي كي دالله تعالي قول "واذ يعدكم الله في احدي الطائفتين انها لكم" ته اشاره ده.

---

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ٦١٢)

* * * * * * * * * * * * * * * * * *

٣٠٨١_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ يُونُسَ الْيَمَامِيُّ، حَدَّثَنَا عِكْرِمَةُ بْنُ عَمَّارٍ، حَدَّثَنَا أَبُو زُمَيْلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبَّاسٍ، حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ، قَالَ: " نَظَرَ نَبِيُّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى الْمُشْرِكِينَ وَهُمْ أَلْفٌ وَأَصْحَابُهُ ثَلَاثُ مِائَةٍ وَبِضْعَةَ عَشَرَ رَجُلًا . فَاسْتَقْبَلَ نَبِيُّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْقِبْلَةَ ثُمَّ مَدَّ يَدَيْهِ وَجَعَلَ يَهْتِفُ بِرَبِّهِ: اللَّهُمَّ أَنْجِزْ لِي مَا وَعَدْتَنِي. اللَّهُمَّ آتِنِي مَا وَعَدْتَنِي. اللَّهُمَّ إِنْ تُهْلِكْ هَذِهِ الْعِصَابَةَ مِنْ أَهْلِ الْإِسْلَامِ لَا تُعْبَدُ فِي الْأَرْضِ. فَمَا زَالَ يَهْتِفُ بِرَبِّهِ مَادًّا يَدَيْهِ مُسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةِ حَتَّى سَقَطَ رِدَاؤُهُ مِنْ مَنْكِبَيْهِ. فَأَتَاهُ أَبُو بَكْرٍ فَأَخَذَ رِدَاءَهُ فَأَلْقَاهُ عَلَى مَنْكِبَيْهِ ثُمَّ الْتَزَمَهُ مِنْ وَرَائِهِ. فَقَالَ: يَا نَبِيَّ اللَّهِ كَفَاكَ مُنَاشَدَتَكَ رَبَّكَ إِنَّهُ سَيُنْجِزُ لَكَ مَا وَعَدَكَ فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَبَارَكَ وَتَعَالَى إِذْ تَسْتَغِيثُونَ رَبَّكُمْ فَاسْتَجَابَ لَكُمْ أَنِّي مُمِدُّكُمْ بِأَلْفٍ مِنَ الْمَلَائِكَةِ مُرْدِفِينَ (الأنفال: ٩) فَأَمَدَّهُمُ اللَّهُ بِالْمَلَائِكَةِ ". قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ مِنْ حَدِيثِ عُمَرَ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ عِكْرِمَةَ بْنِ عَمَّارٍ، عَنْ أَبِي زُمَيْلٍ، وَأَبُو زُمَيْلٍ اسْمُهُ سِمَاكٌ الْحَنَفِيُّ، وَإِنَّمَا كَانَ هَذَا يَوْمَ بَدْرٍ. [1]

**ترجمه** دعمرفاروق رضي الله عنه بيان دي فرمائي چې دجنګ بدر په موقعه رسول الله صلي الله عليه وسلم په مشرکانو نظر واچولو او هغوئ دزرو په تعداد کي وو او درسول الله صحابه کرام څه دپاسه دري سوه (٣١٣) وو، بيا رسول الله قبلي ته مخامخ شو او دواړه لاسونه يي دالله تعالي په حضور کي اوغوړول او خپل رب ته يي فرياد او چغه شروع کړه او ويې فرمائيل اي زما پروردګاره ماسره خپله کړي وعده پوره کړي، دغه دراکولو چې تا ماسره وعده کړي ده هغه راته راکړي او اي زماپروردګاره که دمسلمانانو دا مختصر جماعت تا هلاک کړو نو بيا به په مخ دزمکه ستا عبادت اونه شي، رسول الله قبلي ته مخامخ حالت کي خپل دواړه لاسونه غوړولي وو او خپل رب ته زاري او فرياد کوي تردي پوري چې څادر يي ددواړو اوګو نه راپريوتو، بيا ابوبکر رضي الله عنه راغلو او درسول الله څادر يي راپورته کړو او دهغه په اوګو يي واچولو او دشا دطرفه رسول الله صلي الله عليه وسلم پوري جوخت شو او ونيل يي اي دالله نبي بس کړه خومره دعاچې دي دخپل رب نه اوغوښتله هم دومره کافي ده، الله تعالي چې تاسره کومه وعده کړي ده هغه به انشاء الله ضرور پوره کوي او بيا الله تعالي

[1] ـ صحيح مسلم/الجهاد ١٨ (١٧٦٣) (تحفة الأشراف: ١٠٣٩٦) ، و مسند احمد (١/٣٠)

دا ايت كريمه "إِذْ تَسْتَغِيثُونَ رَبَّكُمْ فَاسْتَجَابَ لَكُمْ أَنِّي مُمِدُّكُمْ بِأَلْفٍ مِنَ الْمَلَائِكَةِ مُرْدِفِينَ" نازل كړو.
امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح غريب دي مونږ دعمر رضي الله عنه داحديث صرف دعكرمه بن عمار په روايت پيژنو چې دابوزميل نه يي نقل كوي او دابو زميل نوم سماك حنفي دي او دا واقعه دبدر په ورځ شوي وه.

*****************

٣٠٨٢_حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ وَكِيعٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ نُمَيْرٍ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ إِبْرَاهِيمَ بْنِ مُهَاجِرٍ، عَنْ عَبَّادِ بْنِ يُوسُفَ، عَنْ أَبِي بُرْدَةَ بْنِ أَبِي مُوسَى، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَنْزَلَ اللَّهُ عَلَيَّ أَمَانَيْنِ لِأُمَّتِي وَمَا كَانَ اللَّهُ لِيُعَذِّبَهُمْ وَأَنْتَ فِيهِمْ (الأنفال:٣٣) وَمَا كَانَ اللَّهُ مُعَذِّبَهُمْ وَهُمْ يَسْتَغْفِرُونَ (الأنفال:٣٣) فَإِذَا مَضَيْتُ تَرَكْتُ فِيهِمُ الِاسْتِغْفَارَ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ".
هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، وَإِسْمَاعِيلُ بْنُ مُهَاجِرٍ يُضَعَّفُ فِي الْحَدِيثِ. [1]

**ترجمه** دابوموسي اشعري رضي الله عنه نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي زما دامت دپاره الله تعالي په ما باندي دوه امانونه نازل كړي دي يو په " وَمَا كَانَ اللَّهُ لِيُعَذِّبَهُمْ وَأَنْتَ فِيهِمْ " كي، او دويم په " وَمَا كَانَ اللَّهُ مُعَذِّبَهُمْ وَهُمْ يَسْتَغْفِرُونَ" كي. كله چې زه ددي دنيا نه لاړ شم نو ددوئ دپاره به دويم امان يعني استغفار دقيامت ورځي پوري پريږدم.
امام ترمذي وايي: داحديث غريب دي، اسماعيل بن مهاجر په باب دحديث كي ضعيف ګڼړلي شوي دي

*****************

٣٠٨٣_حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ، عَنْ صَالِحِ بْنِ كَيْسَانَ، عَنْ رَجُلٍ لَمْ يُسَمِّهِ، عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَرَأَ هَذِهِ الآيَةَ عَلَى الْمِنْبَرِ: وَأَعِدُّوا لَهُمْ مَا اسْتَطَعْتُمْ مِنْ قُوَّةٍ (الأنفال:٦٠)، قَالَ: أَلَا إِنَّ الْقُوَّةَ الرَّمْيُ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ، أَلَا إِنَّ اللَّهَ سَيَفْتَحُ لَكُمُ الأَرْضَ وَسَتُكْفَوْنَ الْمُؤْنَةَ فَلَا يَعْجِزَنَّ أَحَدُكُمْ أَنْ يَلْهُوَ بِأَسْهُمِهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَقَدْ رَوَى بَعْضُهُمْ هَذَا الْحَدِيثَ عَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ، عَنْ صَالِحِ بْنِ كَيْسَانَ، عَنْ عُقْبَةَ بْنِ

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٩١٠٩)

عَامِرٍ. رَوَاهُ أَبُو أُسَامَةَ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ، وَحَدِيثُ وَكِيعٍ أَصَحُّ، وَصَالِحُ بْنُ كَيْسَانَ لَمْ يُدْرِكْ عُقْبَةَ بْنَ عَامِرٍ وَقَدْ أَدْرَكَ ابْنَ عُمَرَ. [1]

**ترجمه** دعقبه بن عامر رضي الله عنه بيان دي فرمائي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم په منبر باندي دا ايت كريمه " وَأَعِدُّوا لَهُمْ مَا اسْتَطَعْتُمْ مِنْ قُوَّةٍ" تلاوت كړو او بيا يي اوفرمائيل په دي كي د "قوة" نه مراد غشي ويشتل دي او دا خبره يي دري پيري تكرار كړه او فرمائيل يي واورئ ډيره نزدي ده چې الله تعالي به په زمكه تاسو ته فتح دركړي او تاسو به مستغني او بي پرواه كړي پس داسي كول هركز نه دي پكار چې په تاسو كي څوك هم دغشو ويشتلو نه عاجز او غافل شي

امام ترمذي وايي بعضي راويانو داحديث داسامه بن زيد نه نقل كړي دي او صالح بن كيسان نه نقل كړي دي، ابو اسامه او بعضي نورو راويانو دا دعقبه بن عامر نه نقل كړي دي، اودوكيع حديث دنورو په نسبت زيات صحيح دي، او دصالح بن كيسان ملاقات دعقبه بن عامر سره ثابت نه دي مكر دابن عمر سره يي ملاقات شوي دي.

## دعقبه بن عامر رضي الله عنه حالات

نوم عقبه كنيه ابوعمرو دپلار نوم عامر رسول الله صلي الله عليه وسلم چې كله مديني ته راغی نو عقبه په اسلام مشرف شو علامه ذهبي ليكلي دي چې عقبه فقيه او دكتاب الله قاري وو او دفرائضو ماهر او فصيح اللسان شاعر وو (تذكرة الحفاظ).

دقران كريم سره يي خصوصي مينه وه يوه نسخه دقران كريم يي پخپل لاس هم ليكلي وه (تهذيب التهذيب)

دنبي كريم صلي الله عليه وسلم ښه خدمت يي كړی دی په سفر كې به درسول الله سورلئ رابنكل دده متعلق وو لكه چې په روايتونو كې راځي كان صاحب بغلة رسول الله صلي الله عليه وسلم الشهباء.

دده دوفات دتاريخ باره كې مختلف اقوال مروي دي صحيح قول دادی چې په ۵۸هجري كې وفات شوی دی، او دده دمروياتو شمير ۵۵ دی چې يو په دي كې متفق عليه دی او يو په بخاري كې دی او اوه په مسلم كې دي (تهذيب الكمال)

داكابرو صحابه كرامو نه نقل دروايت كوي تردي چې صرف ديو حديث اوريدو دپاره مصر ته دابوايوب انصاري سره دملاويدو دپاره تلی وو خو چې هغه يي واوريدو نو فورا واپس لاړو

---

[1] صحيح مسلم/الإمارة ٥٢ (١٩١٧) . سنن ابي داود/الجهاد ٢٤ (٢٥١٣) . سنن ابن ماجه/الجهاد ١٩ (٢٨١٣) (تحفة الأشراف : ٩٩٦٥) . ومسند احمد (٤/١٥٧) . وسنن الدارمي/الجهاد ١٤ (٢٤٤٨)

****************

٣٠٨٤_حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ، عَنْ أَبِي عُبَيْدَةَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: لَمَّا كَانَ يَوْمُ بَدْرٍ وَجِيءَ بِالأَسَارَى، قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَا تَقُولُونَ فِي هَؤُلاَءِ الأَسَارَى؟ فَذَكَرَ فِي الحَدِيثِ قِصَّةً طَوِيلَةً. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لاَ يَنْفَلِتَنَّ مِنْهُمْ أَحَدٌ إِلاَّ بِفِدَاءٍ أَوْ ضَرْبِ عُنُقٍ". قَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْعُودٍ: فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِلاَّ سُهَيْلَ ابْنَ بَيْضَاءَ فَإِنِّي قَدْ سَمِعْتُهُ يَذْكُرُ الإِسْلاَمَ. قَالَ: فَسَكَتَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ: فَمَا رَأَيْتُنِي فِي يَوْمٍ أَخْوَفَ أَنْ تَقَعَ عَلَيَّ حِجَارَةٌ مِنَ السَّمَاءِ مِنِّي فِي ذَلِكَ اليَوْمِ. قَالَ: حَتَّى قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِلاَّ سُهَيْلَ بْنَ بَيْضَاءٍ". قَالَ: وَنَزَلَ القُرْآنُ بِقَوْلِ عُمَرَ: مَا كَانَ لِنَبِيٍّ أَنْ يَكُونَ لَهُ أَسْرَى حَتَّى يُثْخِنَ فِي الأَرْضِ (الأنفال: ٦٧) إِلَى آخِرِ الآيَاتِ".
قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَأَبُو عُبَيْدَةَ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ لَمْ يَسْمَعْ مِنْ أَبِيهِ. (١)

**ترجمه** دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه بيان دي فرمائي كله چې جنګ بدر اوشو او قيديان نيولي شوي راوستلي شوْل نورسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل دقيديانو باره کي ستاسوڅه خيال دي؟ او بيا راوي په حديث کي دصحابه کرامو دمشوري يو اوږده قصه بيان کړه، رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل بغير دفديه اخستلو نه دي هيڅوك پرينخودلي شي او يا دي دهغه څټ اووهلي شي، عبدالله بن مسعود وائي ماعرض اوکړو اي دالله رسوله سهيل بن بيضاء پريږده خکه چې ما دده نه داسلام خبري اوريدلي دي زما اميد دي چې ايمان به راوړي، ددي په اوريدو رسول الله صلي الله عليه وسلم خاموشي اختيار کړه نو په دي ورځ ما دومره ويره محسوس کړه چې چرته ما باندي دکاڼړو باران اونه شي او دومره ويره په بله ورځ ما چرته نه وه ليدلي تردي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل سهيل بن بيضاء پريږده او دعمر رضي الله عنه په تائيد کي "مَا كَانَ لِنَبِيٍّ أَنْ يَكُونَ لَهُ أَسْرَى حَتَّى يُثْخِنَ فِي الأَرْضِ" نازل شو دهيڅ يو نبي سره مناسب نه دي چې دده سره قيديان موجود وي تر څو پوري چې هغه پوره خونريزي نه وي کړي

امام ترمذي وايي داحديث حسن دي ابوعبيده دخپل پلار عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه اوريدل نه دي کړي

****************

١ انظر حديث رقم ١٦١٣

٣٠٨٥_حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، أَخْبَرَنِي مُعَاوِيَةُ بْنُ عَمْرٍو، عَنْ زَائِدَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَمْ تَحِلَّ الغَنَائِمُ لِأَحَدٍ سُودِ الرُّءُوسِ مِنْ قَبْلِكُمْ كَانَتْ تَنْزِلُ نَارٌ مِنَ السَّمَاءِ فَتَأْكُلُهَا". قَالَ سُلَيْمَانُ الأَعْمَشُ: فَمَنْ يَقُولُ هَذَا إِلَّا أَبُو هُرَيْرَةَ الآنَ. فَلَمَّا كَانَ يَوْمُ بَدْرٍ وَقَعُوا فِي الغَنَائِمِ قَبْلَ أَنْ تَحِلَّ لَهُمْ فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى: لَوْلا كِتَابٌ مِنَ اللَّهِ سَبَقَ لَمَسَّكُمْ فِيمَا أَخَذْتُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ (الأنفال :٦٨). قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ مِنْ حَدِيثِ الأَعْمَشِ. [1]

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي تاسو مسلمانانو نه مخكي دكوم تورو ويختو والا انسان دپاره مالونه دغنيمت حلال نه وو داسمان نه به يو اور راتلو او غنيمتونه به يي خوړل. سليمان اعمش وائي دا دابوهريره نه علاوه بل څوك ونيلي شي دغه وخت دغزوه بدر په موقعه دمسلمانانو داحال وو مخكي ددينه چي مالونه دغنيمت تقسيم کړي او هر يو ته يي ورکړي او دا ددوئ دپاره حلال شوي دي ددينه مخكي دوئ دغنيمت په مالونو راپريوتل نو دي وخت كي الله تعالي دا ايت كريمه "لَوْلا كِتَابٌ مِنَ اللَّهِ سَبَقَ لَمَسَّكُمْ فِيمَا أَخَذْتُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ" نازل شو يعني كه دمخكي نه دالله تعالي دطرفه ستاسو په حق كي ليكل شوي نه وي چي تاسو ته غنائم دركولي كيږي نو تاسو ته به ددي دركولو په وجه سخت او لوي عذاب دركړي شوي وو

امام ترمذي وايي داحديث داعمش په روايت حسن صحيح غريب دي

****************

## ١٠_بَاب وَمِنْ سُورَةِ التَّوْبَةِ

### دسورة توبي دبعضي ايتونو تفسير

سورة التوبة مدني سورت دي اوپه ١٢٩ يا ١٣٠ ايتونو مشتمل دي

قاضي ثناء الله پاني پتي دابوعطيه همداني نه روايت نقل كرى دي چي عمر فاروق رضي الله عنه تحرير ليگلي وو چي سورت توبه پخپله هم زده كړئ اوخپلو ښخونه هم ددي تعليم وركړئ . ددي وجه دا ښكاري چي په سورة براءت كي ترغيب دي جهاد ته اوپه سورة النور كي دپردي كولو تلقين دي ،اولني فريضه دسړوده اودويمه فريضه دښخوده، عثمان بن عفان رضي الله عنه فرمانيلي دي درسول

---

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف ١٢٣٤٨) ومسلم/الجهاد (١٧٤٣)، ومسند احمد (٢/٢٥٢، ٣١٤، ٣١٨)

الله صلي الله عليه وسلم په زمانه كي به مونږ دسورة انفال اوسورة براءت په يوبل پسې متصل لوستل همدا وجه ده چې په سبع طوال كي مادي لره په يوځاي ليكلي دي

ددي سورة متعدد نومونه دي (١) براءت ، خكه چې پدي كي دكافرانو نه دبېزارئ اعلان دي (٢) توبه خكه چې پدي كي دتوبي دقبليدو ذكر دي (٣) المقشقشة ، دنفاق نه بيزاري كونكي، ابوالشيخ او ابن مردويه دزيد بن اسلم په روايت سره بيان كړي دي چې عبدالله بن عمر رضي الله عنهما به فرمائيل چې دمقشقشه ونيلو وجه داده چې دا سورة دنفاق نه بيزاري كول ظاهروي

(۴) مبعثره ، دانوم ابن المنذر دمحمد بن اسحاق په روايت سره بيان كړي دي، چونكه دخلقو دپټو رازونو نه پرده پورته كوي نوپدي وجه ورته مبعثره ونيلي شوي دي

(۵) البحوث، دانوم ابن ابي حاتم، طبراني اوحاكم دابو رشد حرافي په روايت سره دمقداد بن اسود نه بيان كړي دي

(٦) المثيرد، دانوم ابن المنذر او ابوالشيخ او ابن ابي حاتم دقتاده په حواله نقل كړي دي، وجه دتسميه داده چې دا سورة دنفاق حالت لره دجرړو نه اوباسي او خلقوته يې راوراندي كوي اودمنافقانو نفاق لره خلقو ته ظاهروي

(٧) منكله، (عذاب والا)، (٨)مدمدمه تباهي راوستونكي، (٩) سورة عذاب دا نوم حذيفه رضي الله عنه بيان كړي دي اوفرمائيلي يي دي كوم سورة ته چې تاسو سورة توبه وايي هغه دعذب سورة دي په الله قسم دي سورة هيچا لره بغير داثر كولو نه ندي پريخودي ، رواه ابن ابي شيبه والطبراني وابو الشيخ والحاكم وابن مردويه.

ابن عباس رضي الله عنهما هم عمرفاروق رضي الله عنه ته په نسبت كولو سره ددي سورة نوم سورة عذاب ذكر كړي دي (اخرجه ابو عوانه وابن المنذر وابو الشيخ وابن مردويه).

(١٠) الفاضحه ، داهم ددي سورة نوم دي اودا دمنافقانو دپاره رسوا كونكي دي.

بغوي دسعيد بن جبير نه روايت نقل كړي دي چې ابن عباس رضي الله عنهماته مي اوونيل تا اوونيل چې دسورة توبي نوم الفاضحه دي يعني مسلسل نازل شوي دي اوخلقوته اطلاع وركوي تردي چې دخلقو داګمان پيدا شو چې څوك يي بغير دتذكري كولو ندي پريخودلي ما اوونيل سورة انفال نو ويي فرمائيل دا خوسورة بدر دي بيا مي اوونيل سورة حشر نو ويي فرمائيل ديته سورة نفير وائي (پدي كي دقبرونونه دمړو راوتلو اودحشر په ميدان كي دجمع كيدو بيان دي)

## دسورة توبي په شروع كي بسم الله نه راوړلو وجه

دابن عباس رضي الله عنهما بيان دي چې عثمان بن عفان رضي الله عنه ته مي عرض اوكړو چې ايا سورة انفال دسبع المثاني نه دي او براءت دمئين نه دي؟ داخودواړه يوځاي كړي دي اودواړو په مينځ كي دي بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ نده ليكلي اوبه سبع طوال كي دي درج كړي ندي ددي وجه څه ده عثمان رضي الله عنه اوفرمائيل په مختلفوزمانو كي درسول الله صلي الله عليه وسلم دمتعددو سورتونو دنزول سلسله جاري وه كله چې به څه نازليدل نوخپل كاتب به يي راوغوښتلو اوحكم به يي ورسره كولو چې داايت په فلاني سورة كي اوليكه ، سورة انفال دمديني په ابتدائي ورځو كي (يعني

دهجرت نه فورا بعد نازل شوي وو وسورة براءت په اخري زمانه کي او ددواړو بيان ديوبل سره مشابه وو او رسول الله صلي الله عليه وسلم پخپله زندګئ کي دا صراحت نه دي فرمائيلي چې سورة انفال دسورة براءت جز دي نوېدي وجه مادواړه يوځاي کړل اوسورة برءت مي په سبع طوال کي درج کړو اوددواړو په مينځ کي مي د بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ کرخه اونه ليکله . رواه البغوي واحمد وابوداود والنساني وابن حبان والحاكم والترمذي. حاكم دا روايت صحيح اوترمذي حسن ګڼړلي دي.

دبسم الله دترك كولو يوه وجه دا هم بيان شوي ده چې دبراءت نزول دامان دحكم دختمولو دپاره شوي دي اوبِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ دامان تعليم وركوي ، دابن عباس رضي الله عنهما بيان دي چې دعلي بن ابي طالب رضي الله عنه نه مي تپوس اوكړو چې په سورة براءت كي بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ولي نده ليكلي شوي نو ويې فرمائيل بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ امان دي اوبراءت توره نازله كړي ده (اخرجه ابوشيخ وابن مردويه).

په بعضي رواياتو كي راغلي دي چې دصحابه كرامو اراء پخپل مينځ كي مختلف وو دبعضي خلقو خيال دا وو چې سورة انفال او براءت ديو سورة مجموعه ده او بعضي خلقو به ونيل دواړه جدا جدا سورتونه دي چاچې دا دوه سورتونه ګڼړل دهغوئ دقول په رعايت كولو سره ددواړو سورتونو په مينځ كي فاصله پريخودي شوه اوچاچې دواړه مستقل سورتونه ګڼړل و دا يي په سبع طوال كي اوم سورت ګڼړلو ذكوم نزول چې دجهاد متعلق شوي وو نودهغوئ دقول په رعايت كولو سره يي ددواړو په مينځ كي بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ اونه ليكله.

بغوي ليكلي دي دمفسرينو بيان دي چې كله رسول الله صلي الله عليه وسلم تبوك طرف ته روان شو نو منافقانو افواه ګاني شروع كړي اوداسي خبري يي شروع كړي چې په مسلمانانو كي يي انتشار پيدا كولو اوكومه معاهده چې رسول الله صلي الله عليه وسلم كړي وه دهغي ماتول يي شروع كړل، زه وايم ددي وجه دا وه چې ددوئ دا يقين وو چې دمسلمانانو بادشاه دشام يعني دقيصر مقابله نشي كولي (اوهم هلته به تباه كيږي) نوېدي بنا الله تعالي خپل پيغمبر ته دكافرانو سره دمعاهدي ختمولو حكم اوكړو او ويي فرمائيل :

٣٠٨٦ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، وَمُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، وَابْنُ أَبِي عَدِيٍّ، وسهل بن يوسف. قَالُوا: حَدَّثَنَا عَوْفُ بْنُ أَبِي جَمِيلَةَ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ الفَارِسِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ عَبَّاسٍ، قَالَ: قُلْتُ لِعُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ: مَا حَمَلَكُمْ أَنْ عَمَدْتُمْ إِلَى الأَنْفَالِ وَهِيَ مِنَ المَثَانِي، وَإِلَى بَرَاءَةٌ وَهِيَ مِنَ المِئِينَ فَقَرَنْتُمْ بَيْنَهُمَا وَلَمْ تَكْتُبُوا بَيْنَهُمَا سَطْرَ بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ، وَوَضَعْتُمُوهَا فِي السَّبْعِ الطُّوَلِ، مَا حَمَلَكُمْ عَلَى ذَلِكَ؟ فَقَالَ عُثْمَانُ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِمَّا يَأْتِي عَلَيْهِ الزَّمَانُ وَهُوَ تَنْزِلُ عَلَيْهِ السُّوَرُ ذَوَاتُ العَدَدِ، فَكَانَ إِذَا نَزَلَ عَلَيْهِ الشَّيْءُ دَعَا بَعْضَ مَنْ كَانَ يَكْتُبُ

فَيَقُولُ: ضَعُوا هَؤُلَاءِ الآيَاتِ فِي السُّورَةِ الَّتِي يُذْكَرُ فِيهَا كَذَا وَكَذَا، وَإِذَا نَزَلَتْ عَلَيْهِ الآيَةُ فَيَقُولُ ضَعُوا هَذِهِ الآيَةَ فِي السُّورَةِ الَّتِي يُذْكَرُ فِيهَا كَذَا وَكَذَا. وَكَانَتِ الأَنْفَالُ مِنْ أَوَائِلِ مَا أُنْزِلَتْ بِالْمَدِينَةِ، وَكَانَتْ بَرَاءَةُ مِنْ آخِرِ الْقُرْآنِ، وَكَانَتْ قِصَّتُهَا شَبِيهَةً بِقِصَّتِهَا فَظَنَنْتُ أَنَّهَا مِنْهَا، فَقُبِضَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَمْ يُبَيِّنْ لَنَا أَنَّهَا مِنْهَا فَمِنْ أَجْلِ ذَلِكَ قَرَنْتُ بَيْنَهُمَا. وَلَمْ أَكْتُبْ بَيْنَهُمَا سَطْرَ بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ فَوَضَعْتُهَا فِي السَّبْعِ الطُّوَلِ".

قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ عَوْفٍ، عَنْ يَزِيدَ الْفَارِسِيِّ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَيَزِيدُ الْفَارِسِيُّ هُوَ مِنَ التَّابِعِينَ، قَدْ رَوَى عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ غَيْرَ حَدِيثٍ، وَيُقَالُ هُوَ يَزِيدُ بْنُ هُرْمُزَ. وَيَزِيدُ الرَّقَاشِيُّ هُوَ يَزِيدُ بْنُ أَبَانَ الرَّقَاشِيُّ، وَهُوَ مِنَ التَّابِعِينَ وَلَمْ يُدْرِكِ ابْنَ عَبَّاسٍ إِنَّمَا رَوَى عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ وَكِلَاهُمَا مِنَ التَّابِعِينَ مِنْ أَهْلِ الْبَصْرَةِ، وَيَزِيدُ الْفَارِسِيُّ أَقْدَمُ مِنْ يَزِيدَ الرَّقَاشِيِّ. (1)

**ترجمه**: ابن عباس ﷺ فرمائي چې ما عثمان ﷺ ته اووئيل څه خبره ده چې تاسو دسوره براة كوم چې مئين (يعني سلو ايتونو والا) سورتونونه دي اوسورة انفال كوم چې دمثاني نه دی يوځاي كړي دي؟ اوبه اوه طوال سورتونو كې شامل كړی دی اوددي دواړو په مينځ كې بسم الله الرحمن الرحيم كرخه نه ده ليكلي عثمان رضي الله عنه اووئيل په نبي ﷺ چې به كله دقران ايتونه نازليدل نوهغه به يوكاتب راغوښتلو اوفرمائيل به يې دا ايت په دي سورة كې اوليكئ چې په هغې كې دفلانكي فلانكي نه روايت دی بيابه يو يادوه ايتونه نازل شو نو هم داسې به يې فرمائيل او سورة انفال په هغو سورتونو كې دی چې دهغه دمدينې ته دراتلو نه پس په ابتدائي ورځو كې نازل شوي وو اوسورة براة دنزول قران داخيري دوردسورتونو نه دی اوددي مضامين ديوبل سره مشابه دي لهٰذا ماداګنړل دي چې سورة براءت دسورة انفال حصه ده اوهم ددي وجې نه مادا په طوال كې درج كړل اوددوي په مينځ كې دبسم الله الرحمن الرحيم كرخه نه ده ليكلي

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي دا موږ صرف دعوف په روايت پيژنو كوم چې هغه ديزيد فارسي په واسطه دابن عباس نه نقل كوي او يزيد فارسي دتابعينو نه دي دابن عباس نه يې متعدد احاديث نقل كړي دي او وئيلي شوي دي دده نوم يزيد بن هرمز دي او يزيد رقاشي يزيد بن ابان رقاشي دي دي هم دتابعينو نه دي او دابن عباس سره يې ملاقات نه دي شوي رقاشي صرف دانس بن مالك نه روايت نقل كړي دي او دا دواړه دبصري اوسيدونكي

---

1 _ سنن ابي داود/ الصلاة ١٢٥ (٧٨٦) (تحفة الأشراف: ٩٨١٩)، و مسند احمد (١/٥٧، ٦٩)

دي مګر يزيد فارسي په يزيد رقاشي متقدم دي

*****************

۳۰۸۷ـ حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الْخَلَّالُ، حَدَّثَنَا حُسَيْنُ بْنُ عَلِيٍّ الْجُعْفِيُّ، عَنْ زَائِدَةَ، عَنْ شَبِيبِ بْنِ غَرْقَدَةَ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ عَمْرِو بْنِ الأَحْوَصِ، حَدَّثَنَا أَبِي، أَنَّهُ شَهِدَ حَجَّةَ الْوَدَاعِ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَحَمِدَ اللَّهَ وَأَثْنَى عَلَيْهِ وَذَكَّرَ وَوَعَظَ، ثُمَّ قَالَ: "أَيُّ يَوْمٍ أَحْرَمُ؟ أَيُّ يَوْمٍ أَحْرَمُ؟ أَيُّ يَوْمٍ أَحْرَمُ؟ قَالَ: فَقَالَ النَّاسُ: يَوْمُ الْحَجِّ الأَكْبَرِ يَا رَسُولَ اللَّهِ، قَالَ: "فَإِنَّ دِمَاءَكُمْ وَأَمْوَالَكُمْ وَأَعْرَاضَكُمْ عَلَيْكُمْ حَرَامٌ كَحُرْمَةِ يَوْمِكُمْ هَذَا، فِي بَلَدِكُمْ هَذَا، فِي شَهْرِكُمْ هَذَا، أَلاَ لاَ يَجْنِي جَانٍ إِلاَّ عَلَى نَفْسِهِ، وَلاَ يَجْنِي وَالِدٌ عَلَى وَلَدِهِ وَلاَ وَلَدٌ عَلَى وَالِدِهِ، أَلاَ إِنَّ الْمُسْلِمَ أَخُو الْمُسْلِمِ فَلَيْسَ يَحِلُّ لِمُسْلِمٍ مِنْ أَخِيهِ شَيْءٌ إِلاَّ مَا أَحَلَّ مِنْ نَفْسِهِ، أَلاَ وَإِنَّ كُلَّ رِبًا فِي الْجَاهِلِيَّةِ مَوْضُوعٌ لَكُمْ رُءُوسُ أَمْوَالِكُمْ لاَ تَظْلِمُونَ وَلاَ تُظْلَمُونَ، غَيْرَ رِبَا الْعَبَّاسِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ، فَإِنَّهُ مَوْضُوعٌ كُلُّهُ، أَلاَ وَإِنَّ كُلَّ دَمٍ كَانَ فِي الْجَاهِلِيَّةِ مَوْضُوعٌ، وَأَوَّلُ دَمٍ وُضِعَ مِنْ دِمَاءِ الْجَاهِلِيَّةِ دَمُ الْحَارِثِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ كَانَ مُسْتَرْضَعًا فِي بَنِي لَيْثٍ فَقَتَلَتْهُ هُذَيْلٌ، أَلاَ وَاسْتَوْصُوا بِالنِّسَاءِ خَيْرًا فَإِنَّمَا هُنَّ عَوَانٍ عِنْدَكُمْ لَيْسَ تَمْلِكُونَ مِنْهُنَّ شَيْئًا غَيْرَ ذَلِكَ، إِلاَّ أَنْ يَأْتِينَ بِفَاحِشَةٍ مُبَيِّنَةٍ فَإِنْ فَعَلْنَ فَاهْجُرُوهُنَّ فِي الْمَضَاجِعِ، وَاضْرِبُوهُنَّ ضَرْبًا غَيْرَ مُبَرِّحٍ، فَإِنْ أَطَعْنَكُمْ فَلاَ تَبْغُوا عَلَيْهِنَّ سَبِيلاً، أَلاَ إِنَّ لَكُمْ عَلَى نِسَائِكُمْ حَقًّا وَلِنِسَائِكُمْ عَلَيْكُمْ حَقًّا، فَأَمَّا حَقُّكُمْ عَلَى نِسَائِكُمْ فَلاَ يُوطِئْنَ فُرُشَكُمْ مَنْ تَكْرَهُونَ وَلاَ يَأْذَنَّ فِي بُيُوتِكُمْ مَنْ تَكْرَهُونَ، أَلاَ وَإِنَّ حَقَّهُنَّ عَلَيْكُمْ أَنْ تُحْسِنُوا إِلَيْهِنَّ فِي كِسْوَتِهِنَّ وَطَعَامِهِنَّ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رَوَاهُ أَبُو الأَحْوَصِ، عَنْ شَبِيبِ بْنِ غَرْقَدَةَ. [1]

**ترجمه**: سليمان بن عمرو بن احوص وائي ز . پلار ماته حديث بيان كړي دي فرمائيل يې چې زه په حجة الوداع كي درسول الله صلي الله عليه وسلم سره موجود وم او هغوئ دالله تعالي تعريف او ثناء بيان كړه، وعظ او نصيحت يې اوكړو بيا يې اوفرمائيل په ورځو كي كومه يوه ورځ زيات حرمت او تقدس والا ده، په ورځو كي كومه يوه ورځ زيات حرمت او تقدس والا ده، په ورځو كي كومه يوه ورځ زيات حرمت او تقدس والا ده؟ خلقو اووئيل اي دالله رسوله دحج اكبر ورځ زيات شرف او تقدس والا ورځ ده، رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل ستاسو وينه او ستاسو مالونه او ستاسو عزتونه په تاسو باندي داسي حرام دي لكه څرنګه چې دنته نن

[1] ـ انظر حديث رقم ۲۱۵۹

ورځي حرمت دي ستاسو په دې ښار کي او ستاسو په دې مياشت کي، واورئ هيڅ يو انسان يو جرم نه کوي مګر ددې وبال به په هم هغه باندې راځي او هيڅ يو پلار به قصور نه کوي چې سزا يي بيا ځوي ته ورکړي شي او نه به داسي ځوك ځوي وي چې ګناه يي کړي وي او سزا يي پلار ته ورکړي شي خبردار يو مسلمان دبل مسلمان ورور دي ديو مسلمان دپاره دخپل ورور کوم ځيز حلال نه دي مګر علاوه دهغه ځيز نه کوم چې ده ته هغه پخپله ورکړي وي، واورئ دجاهليت دوخت هر يو سود باطل دي او تاسو صرف خپل اصل مال اخستلي شئ تاسو به نه په چا باندې ظلم او زياتي کوئ او نه دبل چا دپاره داحق شته چې په تاسو ظلم او زياتي اوکړي. مګر علاوه د عباس بن عبدالمطلب دسود نه ځکه چې دا ټول په ټوله معاف دي، خبردار دجاهليت دوخت هر يو خون ختم کړي شوي دي اودجاهليت دوخت په خونونو کي کوم چې زه اول معاف کوم هغه دحارث بن عبدالمطلب خون دي هغه په بني ليث قبيله کي پئ خوړل ترڅو چې بني هزيل قبيلي والاقتل کړو، واورئ دښځو سره ښه سلوك کوئ ځکه چې دوئ تاسو سره دبې کسئ او بې چارګئ په حالت کي اوسيږي او تاسو په دوئ باندې لاس نشئ پورته کولي مګر دا چې دوئ کله ښکاره بدکاري اوکړي او که چرې دوئ کومه قبيحه ګناه اوکړي نو بستري ورنه جدا کړئ او وېي وهئ مګر داسي يي مه وهئ چې هډوکي او پوختئ يي ماتي شي بيا که چرې دوئ ستاسو دخبرې منل اوکړي نو په دوئ باندې دظلم او زياتي کولو دپاره لار مه لټوئ خبردار ستاسودپاره ستاسو په ښځو باندې حقوق دي او ستاسو دښځو دپاره په تاسو باندې حقوق دي ستاسو دپاره ستاسو په ښځو حق دادي چې چالره تاسو نه خوښوئ دوئ به هغه لره ستاسو په بستره کيناستو ته نه پرېږدي او نه به ستاسو کورونو ته د داخليدو دپاره هغوئ ته اجازت ورکوي او ددوئ حق په تاسو باندې دادي چې تاسو ورسره ښه سلوك اوکړئ او ښه جامه او ښه خوراك ورکړئ.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي او داحديث ابوالاحوص دشبيب بن غرقده نه نقل کړي دي

**تشريح:** "ان الله حرم عليكم دمائكم واموالكم" يعني بيشکه الله تعالى په تاسو باندې ستاسو وينې او مالونه حرام کړي دي ددې مطلب دادی چې هر يو مسلمان دبل مسلمان ورور دی او دهغه د جان او مال او عزت حفاظت کول دده ذمه واري ده همداوجه ده چې دمسلمانانو پخپل مينځ کي خنريزي کول خيانت او قبيح جرم ګڼرلی شوی دی

لکه څرنګه چې دذي الحجي لسم يعني لوي اختر ورځ دحرمت والاده او د ذي الحجي مياشت هم حرمت والاده او دمکي ښار هم حرمت والا دی نو ددې ټولو حرمتونو پشان دمسلمان وينه مال او عزت هم حرمت لري او په يو بل باندې حرام دي بلکه دانسان حرمت ددينه زيات دی لکه چې په يو روايت کي راغلي دي چې ابن عمر رضي الله عنهما يو ځل بيت الله ته اوکتل او

ويي فرمائيل ته څومره عظمت والا يي او څومره عظيم دی حرمت ستا ليکن دمومن حرمت ستا دحرمت په مقابله کې نور هم زيات دی أَيُّ شَهْرٍ هَذَا . يعني رسول الله دمياشتي او ورځي اودښار دنوم په باره کې تپوس اوکړو ددي دپاره چې دخلقو په ذهن کې ددي مياشتي او ورځي او ښار عظمت پيدا شي او ددي په اهميت باندي پوهه شي

****************

٣٠٨٨_حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ بْنُ عَبْدِ الصَّمَدِ بْنِ عَبْدِ الْوَارِثِ، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاق، عَنْ أَبِي إِسْحَاق، عَنِ الْحَارِثِ، عَنْ عَلِيٍّ، قَالَ: سَأَلْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ يَوْمِ الْحَجِّ الأَكْبَرِ ؟ فَقَالَ: "يَوْمُ النَّحْرِ ".(١)

**ترجمه** دعلي رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چې درسول الله صلي الله عليه وسلم نه مي دحج اکبر ورځي باره کي تپوس اوکړو نو ويي فرمائيل دادلوي اختر ورځ ده

****************

٣٠٨٩_حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاق، عَنِ الْحَارِثِ، عَنْ عَلِيٍّ، قَالَ: " يَوْمُ الْحَجِّ الأَكْبَرِ يَوْمُ النَّحْرِ ". قَالَ: هَذَا الْحَدِيثُ أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاق لِأَنَّهُ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ. هَذَا الْحَدِيثُ عَنْ أَبِي إِسْحَاق، عَنِ الْحَارِثِ، عَنْ عَلِيٍّ مَوْقُوفًا. وَلَا نَعْلَمُ أَحَدًا رَفَعَهُ إِلَّا مَا رُوِيَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاق، وَقَدْ رَوَى شُعْبَةُ هَذَا الْحَدِيثَ عَنْ أَبِي إِسْحَاق، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُرَّةَ، عَنِ الْحَارِثِ، عَنْ عَلِيٍّ مَوْقُوفًا. (٢)

**ترجمه** دعلي رضي الله عنه بيان دي دحج اکبر ورځ دلوي اختر ورځ ده

امام ترمذي وايي دارو ايت دمحمد بن اسحاق دروايت نه زيات صحيح دي ځکه چې دا حديث په يو څو سندونو دابو اسحاق نه مروي دي او ابو اسحاق دحارث په واسطه دعلي رضي الله عنه نه موقوفا نقل کړي دي او مونږ ته دمحمد بن اسحاق نه علاوه بل څوک داسي نه دي معلوم چې دا يي مرفوع بيان کړي دي. شعبه داحديث دابواسحاق نه او هغه دعبدالله بن مره نه او هغه دحارث په واسطه دعلي رضي الله عنه نه موقوفا نقل کړي دي

****************

[1] ـ انظر حديث رقم ٩٥٧

[2] ـ تفرد به المؤلف. انظر حديث رقم ٩٥٧

٣٠٩٠_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَفَّانُ بْنُ مُسْلِمٍ، وَعَبْدُ الصَّمَدِ بْنُ عَبْدِ الْوَارِثِ، قَالَا: حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: بَعَثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِبَرَاءَةَ مَعَ أَبِي بَكْرٍ ثُمَّ دَعَاهُ، فَقَالَ: "لَا يَنْبَغِي لِأَحَدٍ أَنْ يُبَلِّغَ هَذَا إِلَّا رَجُلٌ مِنْ أَهْلِي، فَدَعَا عَلِيًّا فَأَعْطَاهُ إِيَّاهَا". قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ حَدِيثِ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ. (1)

**ترجمه** دانس بن مالك رضي الله عنه بيان دي فرمائي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم سورة برائت دابوبكر رضي الله عنه سره اوليږلو او بيا يې ابوبكرراوغوښتلو او ورته يې اوفرمائيل زما دخاندان دكوم فرد نه علاوه دبل چا دپاره دا مناسب نه دي چې لاړ شي او دا پيغام هلته اورسوي (نو په دي وجه دا پيغام ته مه اوړه) بيا يې علي رضي الله عنه راوغوښتلو سورة برائت يې ورته ورکړو او مکي ته يې اوليږلو
امام ترمذي وايي: داحديث دانس بن مالك په روايت حسن غريب دي

***************

٣٠٩١_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ سُلَيْمَانَ، حَدَّثَنَا عَبَّادُ بْنُ الْعَوَّامِ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ حُسَيْنٍ، عَنِ الْحَكَمِ بْنِ عُتَيْبَةَ، عَنْ مِقْسَمٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "بَعَثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَبَا بَكْرٍ وَأَمَرَهُ أَنْ يُنَادِيَ بِهَؤُلَاءِ الْكَلِمَاتِ، ثُمَّ أَتْبَعَهُ عَلِيًّا، فَبَيْنَا أَبُو بَكْرٍ فِي بَعْضِ الطَّرِيقِ إِذْ سَمِعَ رُغَاءَ نَاقَةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْقَصْوَاءِ، فَخَرَجَ أَبُو بَكْرٍ فَزِعًا فَظَنَّ أَنَّهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَإِذَا هُوَ عَلِيٌّ فَدَفَعَ إِلَيْهِ كِتَابَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَأَمَرَ عَلِيًّا أَنْ يُنَادِيَ بِهَؤُلَاءِ الْكَلِمَاتِ، فَانْطَلَقَا فَحَجَّا، فَقَامَ عَلِيٌّ أَيَّامَ التَّشْرِيقِ، فَنَادَى ذِمَّةُ اللَّهِ وَرَسُولِهِ بَرِيئَةٌ مِنْ كُلِّ مُشْرِكٍ، فَسِيحُوا فِي الْأَرْضِ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَلَا يَحُجَّنَّ بَعْدَ الْعَامِ مُشْرِكٌ، وَلَا يَطُوفَنَّ بِالْبَيْتِ عُرْيَانٌ، وَلَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ إِلَّا مُؤْمِنٌ، وَكَانَ عَلِيٌّ يُنَادِي فَإِذَا عَيِيَ قَامَ أَبُو بَكْرٍ فَنَادَى بِهَا".
قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ مِنْ حَدِيثِ ابْنِ عَبَّاسٍ. (2)

**ترجمه** دابن عباس رضي الله عنه بيان دي فرمائي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم ابوبكر رضي الله عنه لره مکي ته وليږلو او ورته يې اوفرمائيل چې هلته ورسيږي نو خلقو ته ددي كلماتو (دسورة توبي دابتدائي ايتونو) اعلان اوكړه او بيا يې دهغه دليږلو نه پس فورا

---

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٨٩٦)

[2] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٦٣٤٦)

علي رضي الله عنه اوليږلو ابوبكر رضي الله عنه چرته په لاره وو چې يو دم يې درسول الله صلي الله عليه وسلم دقصوي اوښې اواز واوريدو او دخيمې نه رابهر شو او دا خيال يې اوكړو چې رسول الله صلي الله عليه وسلم راروان دي ليكن دهغوئ په ځاي علي رضي الله عنه وو علي رضي الله عنه ورته درسول الله صلي الله عليه وسلم خط وركړو او رسول الله علي رضي الله عنه ته حكم كړي وو چې ته به دا كلمات پخپله خوله خلقو ته رسوي بيا دوئ دواړه روان شو دواړو حج اوكړو اوعلي رضي الله عنه په ايام تشريق كي اودريدو او اعلان يې اوكړو چې الله تعالي او دهغه رسول دهر مشرك او كافر نه بيزاره دي ، صرف څلور مياشتې دمكي په زمكه كي اوگرځي او بيا به ددي كال نه پس هيڅ يو مشرك حج نه كوي او هيڅ يو كس به په بربنډه طواف نه كوي جنت ته به صرف مومنان داخليږي علي رضي الله عنه اعلان كولو كله چې به ستړي شو نو ابوبكر به ددي كلماتو اعلان شروع كړو.

امام ترمذي وايي: داحديث په دي سند دابن عباس رضي الله عنه په روايت سره حسن غريب دي.

***************

٣٠٩٢ـ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ زَيْدِ بْنِ يُثَيْعٍ، قَالَ: "سَأَلْنَا عَلِيًّا بِأَيِّ شَيْءٍ بُعِثْتَ فِي الحَجَّةِ؟ قَالَ: بُعِثْتُ بِأَرْبَعٍ: أَنْ لَا يَطُوفَ بِالبَيْتِ عُرْيَانٌ، وَمَنْ كَانَ بَيْنَهُ وَبَيْنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَهْدٌ فَهُوَ إِلَى مُدَّتِهِ، وَمَنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ عَهْدٌ فَأَجَلُهُ أَرْبَعَةُ أَشْهُرٍ، وَلَا يَدْخُلُ الجَنَّةَ إِلَّا نَفْسٌ مُؤْمِنَةٌ، وَلَا يَجْتَمِعُ المُشْرِكُونَ وَالمُسْلِمُونَ بَعْدَ عَامِهِمْ هَذَا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ مِنْ حَدِيثِ سُفْيَانَ بْنِ عُيَيْنَةَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، وَرَوَاهُ الثَّوْرِيُّ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ بَعْضِ أَصْحَابِهِ، عَنْ عَلِيٍّ، وَفِي البَابِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ.

حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ، قَالُوا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ زَيْدِ بْنِ يُثَيْعٍ، عَنْ عَلِيٍّ نَحْوَهُ.

حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ خَشْرَمٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أُثَيْعٍ، عَنْ عَلِيٍّ، نَحْوَهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَقَدْ رُوِيَ عَنِ ابْنِ عُيَيْنَةَ كِلْتَا الرِّوَايَتَيْنِ، يُقَالُ عَنْهُ، عَنِ ابْنِ أُثَيْعٍ، وَعَنِ ابْنِ يُثَيْعٍ، وَالصَّحِيحُ هُوَ زَيْدُ بْنُ أُثَيْعٍ، وَقَدْ رَوَى شُعْبَةُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ زَيْدٍ، غَيْرَ هَذَا

الحَدِيثِ فَوَهِمَ فِيهِ وَقَالَ زَيْدُ بْنُ أُثَيْلٍ، وَلَا يُتَابَعُ عَلَيْهِ. وَفِي البَابِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. ([1])

**ترجمه** زيد بن يثيع وائي چې دعلي رضي الله عنه نه مي تپوس اوکړو چې ته حج ته دکوم پيغام رسولو دپاره ليږلي شوي وې؟ هغه اووئيل زه دڅلورو خبرو داعلان کولو دپاره ليږلي شوي وم يوه خبره دا وه راتلونکي وخت کي به څوك په کعبه کي په بربنډه طواف نه کوي دويمه خبره دا وه درسول الله او دکافرانو په مينځ کي چې کومي معاهدي دي دا معاهدي به دختميدو مودي پوري قائم وي او دچا سره چې معاهده نشته دهغوئ دپاره دڅلور مياشتو نيته تاکلي شوي ده، دريمه خبره دا وه چې صرف ايمان والابه او مسلمان به جنت ته داخليږي. څلورمه خبره داوه چې ددي کال نه پس به مسلمانانو سره مشرکان په حج کي نشي شريکيدي امام ترمذي وايي: داحديث دسفيان بن عيينه په روايت چې دابو اسحاق نه يې نقل کوي حسن صحيح دي دا روايت سفيان ثوري دابواسحاق دبعضي استاذانو نه نقل کړي دي او هغوئ دعلي رضي الله عنه نه نقل کړي دي، او په دي باب کي دابوهريره رضي الله عنه نه هم حديث وارد دي.

*****************

٣٠٩٣ـ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا رِشْدِينُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ الحَارِثِ، عَنْ دَرَّاجٍ، عَنْ أَبِي الهَيْثَمِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا رَأَيْتُمُ الرَّجُلَ يَعْتَادُ المَسْجِدَ فَاشْهَدُوا لَهُ بِالإِيمَانِ، قَالَ اللَّهُ تَعَالَى: إِنَّمَا يَعْمُرُ مَسَاجِدَ اللَّهِ مَنْ آمَنَ بِاللَّهِ وَاليَوْمِ الآخِرِ (التوبة: ١٨)". ([2])

**ترجمه** دابوسعيد خدري رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي کله چې تاسو يو کس اووينئ چې دمسجد سره عادت دي (يعني مسلسل مسجد ته تلل کوي) نو تاسو دده په مومن کيدو ګواهي ورکړئ ځکه چې الله تعالي فرمائيلي دي "إِنَّمَا يَعْمُرُ مَسَاجِدَ اللَّهِ مَنْ آمَنَ بِاللَّهِ وَاليَوْمِ الآخِرِ" يعني دالله تعالي مساجد هغه څوك اباد ساتي څوك چې په الله تعالي او په ورځ داخرت ايمان لري.

*****************

حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ وَهْبٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ الحَارِثِ، عَنْ دَرَّاجٍ، عَنْ أَبِي الهَيْثَمِ،

---

[1] ـ انظر حديث رقم ٨٧١

[2] ـ انظر حديث رقم ٢٦١٧

عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ، إِلَّا أَنَّهُ قَالَ: "يَتَعَاهَدُ الْمَسْجِدَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَأَبُو الْهَيْثَمِ اسْمُهُ سُلَيْمَانُ بْنُ عَمْرِو بْنِ عَبْدٍ الْعُتْوَارِيُّ، وَكَانَ يَتِيمًا فِي حِجْرِ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ. (1)

**ترجمه**: ابوالهيثم هم دابوسعيد خدري رضي الله عنه په واسطه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه دماقبل هم معني روايت نقل كړي دي مگر دده په روايت كي ددي الفاظو اضافه ده چي دمسجد سره ترون لري

امام ترمذي وايي: داحديث حسن غريب دي او دابو الهيثم نوم سليمان بن عمرو بن عبدالعتواري دي او دي د ابوسعيد خدري رضي الله عنه په پرورش كي يتيم پاتي شوي دي.

***************

٣٠٩٤ـ حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُوسَى، عَنْ إِسْرَائِيلَ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ سَالِمِ بْنِ أَبِي الْجَعْدِ، عَنْ ثَوْبَانَ، قَالَ: "لَمَّا نَزَلَتْ وَالَّذِينَ يَكْنِزُونَ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ (التوبة: ٣٤ قَالَ: كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي بَعْضِ أَسْفَارِهِ، فَقَالَ بَعْضُ أَصْحَابِهِ: أُنْزِلَ فِي الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ مَا أُنْزِلَ لَوْ عَلِمْنَا أَيُّ الْمَالِ خَيْرٌ فَنَتَّخِذَهُ، فَقَالَ: "أَفْضَلُهُ لِسَانٌ ذَاكِرٌ، وَقَلْبٌ شَاكِرٌ، وَزَوْجَةٌ مُؤْمِنَةٌ تُعِينُهُ عَلَى إِيمَانِهِ". قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ سَأَلْتُ مُحَمَّدَ بْنَ إِسْمَاعِيل، فَقُلْتُ لَهُ: سَالِمُ بْنُ أَبِي الْجَعْدِ سَمِعَ مِنْ ثَوْبَانَ؟ فَقَالَ: لَا، فَقُلْتُ: لَهُ مِمَّنْ سَمِعَ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ قَالَ: سَمِعَ مِنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، وَأَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، وَذَكَرَ غَيْرَ وَاحِدٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. (2)

**ترجمه**: دثوبان رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي كله ايت كريمه " وَالَّذِينَ يَكْنِزُونَ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ " نازل شو دغه وخت كي مونږ دنبي كريم صلي الله عليه وسلم سره په يو سفر كي موجود وو بعضي صحابه كرامو اووئيل دسرو زرو او سپينو زرو په باره كي چي څه نازل شول هغه خو نازل شول كه چري مونږ ته معلومه وي چي په مال كي كوم مال بهتر دي نو هم هغه به مونږ حاصل كړي وو، رسول الله اوفرمائيل بهترين مال هغه دي دچا سره چي الله لره يادونكي ژبه وي، او شكرويستونكي زړه وي او دده ښځه يوه داسي مومنه ښځه وي څوك چي دده

---

1 ـ انظر حديث رقم ٢٦١٧

2 ـ سنن ابن ماجه/النكاح ٥ (١٨٥٦) (تحفة الأشراف: ٢٠٨٣) ، و مسند احمد (٢٧٨/٥، ٢٨٢)

دایمان په مضبوطولو کي مددګار وي
امام ترمذي وايي داحديث حسن دي ما دامام بخاري نه تپوس اوکړو چې ايا دثوبان نه دسالم بن ابي الجعد سماع ثابت ده؟ نو هغه اوونيل نه ده ما ورته اوونيل بيا هغه په صحابه کرامو کي دچانه سماع کړي ده؟ هغه اوويل دجابر بن عبدالله او انس بن مالك رضي الله عنهما نه يي اوريدل کړي دي او امام بخاري ددوی نه علاوه نور يو څو صحابه کرام هم ذکر کړل

**دثوبان رضي الله عنه حالات**

نوم ثوبان کنيه ابو عبدالله چې په يمن کې دمشهور خاندان حمير سره يي تعلق وو ثعبان يو غلام وو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل که خوښه دي وي خپل خاندان ته لاړ شه او که زمونږ سره دي اوسيدل خوښ وي نو اوسيږه ته به داهل بيتو نه شميرلی شي نو په دي بنا ثوبان په اهل بيتو کې شميرلو ته پخپل خاندان ترجيح ورکړه.
هميشه به يي درسول الله صلي الله عليه وسلم خدمت کولو او د رسول الله دفرمان سره به يي دخان نه زيات محبت کولو يو خل نبي کريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل هيڅ کله به چاته لاس نه خوروي نو ددينه پس که به دده نه داس چابك هم اوغورځيدو نو پخپله به وريسي کوځيدو او اوچتولو به يي خو دچانه به يي سوال نه کولو (مسند احمد).
دنبي کريم صلي الله عليه وسلم دخدمت کولو په وجه يي پخپله بهترينه استفاده اوکړه په همدي وجه ابن عبدالبر ليکلي دي چې ثوبان دهغه دري کسانو نه دی چاچې احاديث محفوظ کړي دي او ددي اشاعت يي هم کړی دی (استيعاب) دمروياتو شمير يي ۱۲۷ دی.

***************

۳۰۹۵ـ حَدَّثَنَا الْحُسَيْنُ بْنُ يَزِيدَ الْكُوفِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ السَّلَامِ بْنُ حَرْبٍ، عَنْ غُطَيْفِ بْنِ أَعْيَنَ، عَنْ مُصْعَبِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ، قَالَ: أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَفِي عُنُقِي صَلِيبٌ مِنْ ذَهَبٍ، فَقَالَ: "يَا عَدِيُّ، اطْرَحْ عَنْكَ هَذَا الوَثَنَ، وَسَمِعْتُهُ يَقْرَأُ فِي سُورَةِ بَرَاءَةٌ اتَّخَذُوا أَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ أَرْبَابًا مِنْ دُونِ اللَّهِ (التوبة :۳۱) ، قَالَ: "أَمَا إِنَّهُمْ لَمْ يَكُونُوا يَعْبُدُونَهُمْ، وَلَكِنَّهُمْ كَانُوا إِذَا أَحَلُّوا لَهُمْ شَيْئًا اسْتَحَلُّوهُ وَإِذَا حَرَّمُوا عَلَيْهِمْ شَيْئًا حَرَّمُوهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ عَبْدِ السَّلَامِ بْنِ حَرْبٍ، وَغُطَيْفُ بْنُ أَعْيَنَ لَيْسَ بِمَعْرُوفٍ فِي الحَدِيثِ.[1]

**ترجمه** : دعدي بن حاتم رضي الله عنه بيان دي فرمائي چې زه درسول الله په خدمت کي

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ۹۸٤٤)

حاضر شوم او زما په مرئ كي دسرو زرو صليب زوړند وو رسول الله اوفرمائيل اي عدي دا بوت لري كړه او ويي غورځوه او ما ورنه اوريدلي وو چې په سورة توبه كي يې لوستل "اتخذوا احبارهم ورهبانهم اربابا من دون الله" رسول الله اوفرمائيل هغوئ دا دي څيزونو عبادت نه كولو ليكن كله چې به هغوئ كوم څيز لره حلا بيانولو نو دوئ به هغه حلال اوګڼړلو او چې كله به هغوئ كوم څيز حرام اوګڼړلو نو هغه به دوئ هم حرام ګڼړلو

امام ترمذي وايي. داحديث غريب دي دا حديث مونږ صرف دعبدالسلام بن حرب په روايت پيژنو، غطيف بن اعين په حديث كي معروف نه دي.

**************

٣٠٩٦_حَدَّثَنَا زِيَادُ بْنُ أَيُّوبَ البَغْدَادِيُّ، حَدَّثَنَا عَفَّانُ بْنُ مُسْلِمٍ. حَدَّثَنَا هَمَّامٌ. حَدَّثَنَا ثَابِتٌ. عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ أَبَا بَكْرٍ حَدَّثَهُ. قَالَ: قُلْتُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَنَحْنُ فِي الْغَارِ: لَوْ أَنَّ أَحَدَهُمْ يَنْظُرُ إِلَى قَدَمَيْهِ لَأَبْصَرَنَا تَحْتَ قَدَمَيْهِ. فَقَالَ: "يَا أَبَا بَكْرٍ، مَا ظَنُّكَ بِاثْنَيْنِ اللَّهُ ثَالِثُهُمَا". قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ، إِنَّمَا يُعْرَفُ مِنْ حَدِيثِ هَمَّامٍ تَفَرَّدَ بِهِ، وَقَدْ رَوَى هَذَا الْحَدِيثَ حَبَّانُ بْنُ هِلَالٍ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ، عَنْ هَمَّامٍ نَحْوَ هَذَا. [1]

**ترجمه** :انس رضي الله عنه وايي چي ماته ابوبكر صديق رضي الله عنه (چې نوم يې عبدالله بن عثمان بن عامر بن عمر بن كعب بن سعد بن تيم بن مره ابن كعب بن لوي بن غالب قريشي تيمي دی او مور او پلار يې تول اصحاب دي) روايت بيان كړو فرمائيل يې چې ما رسول الله صلي الله عليه وسلم ته عرض اوكړو يا رسوله الله ! كه دوئ يو كس هم خپلو پښو لاندي خاي ته اوګوري نو مونږ به اوويني رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل اى ابوبكر! دهغي دوو كسانو په باره كي دي څه خيال دی چې دريم ورسره الله وي (يعني الله زمونږ نګهبان دی مشركان به لاندي كتوته نه پريږي

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح غريب دي دحمام حديث مشهور دي او حمام ددوئ په روايت كي منفرد دي داحديث حبان بن هلال او بعضي نورو راويانو ددي پشان ذكر كړي دي

**لغات** ظنك ظنّ ظنا دنصر نه په معني ديقين او ګمان كولو باندي راخي

---

[1] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /مناقب الصحابة ٢ (٣٦٥٣) . ومناقب الأنصار ٣٥ (٣٩٢٢) . وتفسير التوبة ٩ (٣٦٦٣) . صحيح مسلم /فضائل الصحابة ١ (٢٣٨١) (تحفة الأشراف : ٦٥٨٣)

**تشريح** : په دي حديث کې چې کومه واقعه بيان شوي ده ددي مختصر خلاصه داده چې کله نبي کريم صلي الله عليه وسلم دابوبکر رضي الله عنه سره دمکي نه مديني ته هجرت کولو نو ددينه مخکې باقي مسلمانانو هجرت کړی وو مشرکانو درسول الله دګرفتار راوستلو دپاره سل اوښان انعام مقرر کړی وو چې ددي په لالچ کې ډير خلق درسول الله په تلاش کې سرګردانه وو ترديچې مشرکان غارثور (په کوم کې چې رسول الله او ابوبکر قيام کړی وو) ته هم اورسيدل مګر الله تعالي دخپل قدرت اظهار داسي اوکړو چې د يو جولا په ذريعه يي جال جوړ کړو او ديوي ځنګلي کمتري دهګو په ذريعه يي دوی بچ کړل مشرکانو چې کله دا منظر اوليدو نو هغوی اووئيل چې دخپو دقدمونو نشانات خو ترديځاي پوري رارسيدلي دي خو بيا پته نه لګي چې ددي ځاي نه کوم خواته تلي دي که دي غار ته ورغلی وی نو بيا خو دجولا دا جال او اندي روغي نشوي پاتي کيدی او ددنه نه ابوبکر رضي الله عنه ددوی خبې ليدلي دهغه سره دا ويره وه که چري ددوی نظر په مونږ اولګي نو مونږ به ګير شو ليکن په دي وخت کې رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل ای ابوبکر الله تعالي زمونږ سره دی دا واقعه قران مجيد هم نقل کړي ده: إِلَّا تَنصُرُوهُ فَقَدْ نَصَرَهُ اللَّهُ إِذْ أَخْرَجَهُ الَّذِينَ كَفَرُوا ثَانِيَ اثْنَيْنِ إِذْ هُمَا فِي الْغَارِ إِذْ يَقُولُ لِصَاحِبِهِ لَا تَحْزَنْ إِنَّ اللَّهَ مَعَنَا فَأَنزَلَ اللَّهُ سَكِينَتَهُ عَلَيْهِ وَأَيَّدَهُ بِجُنُودٍ لَّمْ تَرَوْهَا وَجَعَلَ كَلِمَةَ الَّذِينَ كَفَرُوا السُّفْلَىٰ وَكَلِمَةُ اللَّهِ هِيَ الْعُلْيَا وَاللَّهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ (التوبة: ٤٠)

يعني کله چې ته کفارو په وتلو مجبوره کړي وي ، کله چې نبي دويم ددوو نه وو چې ويل يي خپل ملګري ته خفګان مه کوه يقينا الله تعالي زمونږ سره دي نو الله تعالي ورباندي خپل خاص سکون نازل کړو اود فرشتو په لښکر سره يي دده مدد وکړو کوم چې تاسو نه ليدلو ، دکافرو خبره ښکته وي اود الله کلام بلند او بالا وي. نوحسان بن ثابت رضي الله عنه پدی باره کې مندرجه زيل اشعار ووئيل

وثاني اثنين في الغار المنيف وقد طاف العداء به اذا صعد الجبلا

وكل حب رسول الله قد علموا من الخلائق لم يعدل به رجلا

نو رسول الله صلي الله عليه وسلم ددي اشعارو په اوريدو سره مسکی شو.

## دابوبکر صديق رضي الله عنه حالات

نوم عبدالله کنيه ابوبکر عتيق او صديق يي لقب وو دپلار نوم يي عثمان وو چې په ابو قحافه مشهور وو او دمور نوم يي سلمي وه چې په ام الخير مشهوره وه دپلار دطرفه يي نسب نامه داده عبدالله بن عثمان بن عامر بن عمرو بن كعب بن سعد بن تميم بن مره بن كعب بن لوی القريشي التميمي او دمور دطرفه يي نسب نامه داده ام الخير بنت الصخر بن عامر بن عمرو بن كعب بن سعد بن تميم بن مره (طبقات ابن سعد)

شپږم پشت مره کې صديق اکبر رضي الله عنه نسب درسول الله صلي الله عليه وسلم دنسب سره يوځاي کيږي دماشوموالي نه يي درسول الله سره دوستي وه او په تجارت کې به هم ورسره يوځاي تلو (کنز العمال ٦ ٣١٢)

دټولو انسانانو نه مخکې داسلام قبلولو سعادت ورته هم په نصيب شوی وو او په هره غزوه کې درسول

الله سره شريك شوی دی او هيڅ كله درسول الله صلي الله عليه وسلم نه جدا شوی نه دی نه داسلام نه مخكې او نه داسلام نه پس بلكه په زند ګئ كې او دمرګ نه پس هم يوخاي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم دوفات نه پس دهجرت په يولسم كال تمامو خلقو په اتفاق سره اولنی خليفه مقرر كړو دخلافت موده يي دوه كاله او ځلور مياشتي وه واضحه كارنامه يي داده چې دقران كريم متفرق اجزاء يي ديوكتاب په شكل كې جمع كړل او دينه مخكې به قران په يوځاي نشو موندلی او په ځلورو واړو اطرافو كې چې داسلام خلاف.كومي خبري خوريدلي دهغي مخه يي اونيوله او دين ته يي دوباره هغه نوی ترتيب وركړو په كوم چې رسول الله صلي الله عليه وسلم پريخودلی وو

وفات يه صديق اكبر رضي الله عنه باندي تبه راغله او تقريبا پنځلس ورځي په همدي حالت كې تيري شوي چې بيا دګل په ورځ دسه شنبي په شپه د۶۳ كلونو په عمر كې او دجمادي الاولي په ديارلسم ددي دنيا نه سفر اوكړو (ربيع الاول).

دمروياتو شمير يي ۱۴۲ دی چې شپږ پكې متفق عليه دي او يولس صرف په بخاري كې دي او يو په مسلم كې دی.

****************

۳۰۹۷_حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: سَمِعْتُ عُمَرَ بْنَ الخَطَّابِ، يَقُولُ: لَمَّا تُوُفِّيَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أُبَيٍّ، دُعِيَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلصَّلَاةِ عَلَيْهِ، فَقَامَ إِلَيْهِ فَلَمَّا وَقَفَ عَلَيْهِ يُرِيدُ الصَّلَاةَ تَحَوَّلْتُ حَتَّى قُمْتُ فِي صَدْرِهِ، فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَعَلَى عَدُوِّ اللَّهِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أُبَيٍّ القَائِلِ يَوْمَ كَذَا وَكَذَا كَذَا يَعُدُّ أَيَّامَهُ، قَالَ: وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَبَسَّمُ، حَتَّى إِذَا أَكْثَرْتُ عَلَيْهِ، قَالَ: " أَخِّرْ عَنِّي يَا عُمَرُ، إِنِّي خُيِّرْتُ فَاخْتَرْتُ قَدْ قِيلَ لِي: اسْتَغْفِرْ لَهُمْ أَوْ لَا تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ إِنْ تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ سَبْعِينَ مَرَّةً فَلَنْ يَغْفِرَ اللَّهُ لَهُمْ (التوبة :۸۰) لَوْ أَعْلَمُ أَنِّي لَوْ زِدْتُ عَلَى السَّبْعِينَ غُفِرَ لَهُ لَزِدْتُ، قَالَ: ثُمَّ صَلَّى عَلَيْهِ وَمَشَى مَعَهُ فَقَامَ عَلَى قَبْرِهِ حَتَّى فُرِغَ مِنْهُ قَالَ: فَعَجَبٌ لِي وَجُرْأَتِي عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَاللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ، فَوَاللَّهِ مَا كَانَ إِلَّا يَسِيرًا حَتَّى نَزَلَتْ هَاتَانِ الآيَتَانِ وَلَا تُصَلِّ عَلَى أَحَدٍ مِنْهُمْ مَاتَ أَبَدًا وَلَا تَقُمْ عَلَى قَبْرِهِ (التوبة :۸٤) إِلَى آخِرِ الآيَةِ، قَالَ: فَمَا صَلَّى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَهُ عَلَى مُنَافِقٍ، وَلَا قَامَ عَلَى قَبْرِهِ حَتَّى قَبَضَهُ اللَّهُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ. [1]

---

[1] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /الجنائز ۸۴ (۱۳۶۶) . وتفسير التوبة ۱۲ (۴۶۷۱) . سنن النسائي/الجنائز ۶۹ (۱۹۶۸) (تحفة الأشراف : ۱۰۵۰۹) . و مسند احمد (۱/۱۶)

**ترجمه** دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما بيان دي فرمائي چې دعمر رضي الله عنه نه مي اوريدلي دي فرمائي چې كله عبدالله بن ابئ مړ شو رسول الله صلي الله عليه وسلم په هغه باندي دجنازي كولو دپاره راوغښوتلي شو رسول الله اودريدو او دده طرف ته ورمخكي شو او دده په مخامخ اودريدو او د مونځ شروع كولو اراده يي كوله تردي چې ما ورتوپ كړل او دهغه دسيني مخامخ اودريدم ما اووئيل اي دالله رسوله ايا ته دالله تعالي په دشمن عبدالله بن ابئ باندي دجنازي مونځ كوي دا هغه كس دي چاچې په فلانئ فلانئ داسي داسي وئيلي وو هغه دده دبي ادبئ او بدتميزئ ورځو دشميرلو په حال كي بيانولي او رسول الله صلي الله عليه وسلم خاندل تردي پوري چې ما ډير څه اووئيل (دحد نه مي تجاوز اوكړو)، نو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل (بس بس) اي عمر زما نه لړ دراخوا شه ماته اختيار راكړي شوي دي ما دده دپاره مغفرت غوښتلو ته ترجيح وركړه خكه چې ماته وئيلي شوي دي " اسْتَغْفِرْ لَهُمْ أَوْ لا تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ إِنْ تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ سَبْعِينَ مَرَّةً فَلَنْ يَغْفِرَ اللَّهُ لَهُمْ " بيا رسول الله په عبدالله بن ابئ باندي جنازه اوكړه او دجنازي سره يي لاړو او دده په قبر باندي اودريدو تردي پوري چې دده دكفن او دفن نه فارغ شو، نو رسول الله صلي الله عليه وسلم په شان كي زه پخپل جرئت باندي حيران شوم الله او دهغه رسول بهتر پوهيږي زما دي په الله قسم وي لږ وخت نه وو تير شوي چې دا دوه ايتونه نازل شول " وَلا تُصَلِّ عَلَى أَحَدٍ مِنْهُمْ مَاتَ أَبَدًا وَلا تَقُمْ عَلَى قَبْرِهِ " بيا ددينه پس رسول الله صلي الله عليه وسلم دوفات كيدو پوري هيڅ كله په كوم منافق باندي دجنازي مونځ نه دي كړي او نه يي په قبر باندي د دعا كولو دپاره اودريدلي دي

امام ترمذي وايي. داحديث حسن صحيح غريب دي

****************

٣٠٩٨ـحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ، أَخْبَرَنَا نَافِعٌ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: جَاءَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أُبَيٍّ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ مَاتَ أَبُوهُ، فَقَالَ: أَعْطِنِي قَمِيصَكَ أُكَفِّنْهُ فِيهِ، وَصَلِّ عَلَيْهِ، وَاسْتَغْفِرْ لَهُ. فَأَعْطَاهُ قَمِيصَهُ وَقَالَ: إِذَا فَرَغْتُمْ فَآذِنُونِي ". فَلَمَّا أَرَادَ أَنْ يُصَلِّيَ جَذَبَهُ عُمَرُ، وَقَالَ: أَلَيْسَ قَدْ نَهَى اللَّهُ أَنْ تُصَلِّيَ عَلَى الْمُنَافِقِينَ ؟ فَقَالَ: " أَنَا بَيْنَ خِيرَتَيْنِ اسْتَغْفِرْ لَهُمْ أَوْ لا تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ (التوبة :٨٠) فَصَلَّى عَلَيْهِ. فَأَنْزَلَ اللَّهُ وَلا تُصَلِّ عَلَى أَحَدٍ مِنْهُمْ مَاتَ أَبَدًا وَلا تَقُمْ عَلَى قَبْرِهِ (التوبة :٨٤) فَتَرَكَ الصَّلَاةَ عَلَيْهِمْ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ

حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** د ابن عمر رضي الله عنهما نه روايت دی فرمائي چي کله د عبد الله بن ابئ پلار مړ شو نو عبد الله د نبي كريم صلي الله عليه وسلم په خدمت كې حاضر شو اوعرض يې اوكړو اي دالله رسوله عبدالله بن ابي مړشو تاسوراته دهغه دكفن دپاره خپل قميص مبارك راكړئ، رسول الله ورباندي جنازه وكړله او دهغه دمغفرت دعا يي اوغوښتله او خپل قميص اوويستلو او ورته يې وركړو او ورته يي اوفرمائيل كه ويره درباندي راغله نو بيا ما خبر كړئ. راوي وايي كله چي رسول الله په هغه باندي د جنازي كولو اراده وكړله نو عمر رضي الله عنه راښكلو او عرض يي وكړو ايا ته الله تعالي په منافقانو دجنازي كولو نه نه يي منع كړی نو ونې فرمائيل زه د دوه اختيارونو په مينځ كي يم چي ددوئ دپاره مغفرت اوغواړم اوكه نه نو چي جنازه يي ورباندي وكړله نو الله تعالي دا ايت نازل كړو وَلا تُصَلِّ عَلَى أَحَدٍ مِنْهُمْ مَاتَ أَبَدًا وَلا تَقُمْ عَلَى قَبْرِهِ نو بيا رسول الله ددينه پس په منافقانو جنازه كول پريښودل

امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح دی.

**تشريح** ددي حديث نه يوه مسئله معلومه شوه چې ديهوديانوسره محبت كول دبدي خاتمي سبب دی ، اوددوي سره بغض اوحسد ساتل دقرب الهي اودخاتمه بالخير سبب دی.

***************

٣٠٩٩_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ أَبِي أَنَسٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الخُدْرِيِّ، أَنَّهُ قَالَ: "تَمَارَى رَجُلَانِ فِي المَسْجِدِ الَّذِي أُسِّسَ عَلَى التَّقْوَى مِنْ أَوَّلِ يَوْمٍ فَقَالَ رَجُلٌ هُوَ مَسْجِدُ قُبَاءَ، وَقَالَ الآخَرُ: هُوَ مَسْجِدُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "هُوَ مَسْجِدِي هَذَا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ مِنْ حَدِيثِ عِمْرَانَ بْنِ أَبِي أَنَسٍ، وَقَدْ رُوِيَ هَذَا عَنْ أَبِي سَعِيدٍ مِنْ غَيْرِ هَذَا الوَجْهِ، وَرَوَاهُ أُنَيْسُ بْنُ أَبِي يَحْيَى، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ. [2]

---

[1] _ اورده البخاري في الجامع الصحيح /الجنائز ٢٢ (١٢٦٩) . وتفسير التوبة ١٢ (٤٦٧٠) . و١٣ (٤٦٧٢) . واللباس ٨ (٥٧٩٦) ، صحيح مسلم /فضائل الصحابة ٢ (٢٤٠٠) . والمنافقين (٢٧٧٤) . سنن ابن ماجه/الجنائز ٣١ (١٥٢٣) (تحفة الأشراف : ٨١٣٩) ومسند احمد (٢/١٨)

[2] _ صحيح مسلم /المناسك ٩٦ (١٣٩٨) (تحفة الأشراف : ٤١١٨) (تحفة الأشراف : ١٣٣٠٩)

**ترجمه** دابوسعيد خدري رضي الله عنه بيان دي فرماني چې دوه كسان وو دهغه مسجد باره كي اختلاف كولو دكوم تاسيس او تعمير چې داولي ورځې نه په تقوي باندي شوي وو يو كس اوونيل دا مسجد قبا دي او بل كس اوونيل هغه مسجد نبوي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل هغه زما همدامسجد (مسجد نبوي) دي

امام ترمذي وايي دعمران بن ابي انس په روايت داحديث حسن صحيح غريب دي دا حديث دابوسعيد خدري نه ددي سند دا حديث انيس بن ابي يحي دخپل پلار نه او هغه دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه هم نقل كړي دي.

*******************

٣١٠٠_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ هِشَامٍ، حَدَّثَنَا يُونُسُ بْنُ الْحَارِثِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ أَبِي مَيْمُونَةَ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " نَزَلَتْ هَذِهِ الْآيَةُ فِي أَهْلِ قُبَاءَ فِيهِ رِجَالٌ يُحِبُّونَ أَنْ يَتَطَهَّرُوا وَاللَّهُ يُحِبُّ الْمُطَّهِّرِينَ (التوبة :١٠٨)، قَالَ: كَانُوا يَسْتَنْجُونَ بِالْمَاءِ فَنَزَلَتْ هَذِهِ الْآيَةُ فِيهِمْ ". قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ أَبِي أَيُّوبَ، وَأَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، وَمُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَلَامٍ.[1]

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي ايت كريمه " فِيهِ رِجَالٌ يُحِبُّونَ أَنْ يَتَطَهَّرُوا وَاللَّهُ يُحِبُّ الْمُطَّهِّرِينَ " داهل قبا باره كي نازل شوي دي دهغوئ دا عادت وو چې استنجاء به يي په اوبو باندي كوله نو ځكه ددوئ په شان كي دا ايت نازل شو

امام ترمذي وايي دا حديث په دي سند غريب دي، او په دي باب كي دابوايوب ، انس بن مالك. محمد بن عبدالله بن سلام رضي الله عنه نه هم حديث وارد دي

*******************

٣١٠١_حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاق، عَنْ أَبِي الْخَلِيلِ كُوفِيٌّ، عَنْ عَلِيٍّ، قَالَ: " سَمِعْتُ رَجُلًا يَسْتَغْفِرُ لِأَبَوَيْهِ وَهُمَا مُشْرِكَانِ، فَقُلْتُ لَهُ: أَتَسْتَغْفِرُ لِأَبَوَيْكَ وَهُمَا مُشْرِكَانِ؟ فَقَالَ: أَوَلَيْسَ اسْتَغْفَرَ إِبْرَاهِيمُ لِأَبِيهِ وَهُوَ مُشْرِكٌ؟ فَذَكَرْتُ ذَلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَزَلَتْ مَا كَانَ لِلنَّبِيِّ وَالَّذِينَ آمَنُوا أَنْ يَسْتَغْفِرُوا لِلْمُشْرِكِينَ (التوبة :١١٣) ". قَالَ أَبُو

---

[1] ـ سنن ابي داود/ الطهارة ٢٣ (٤٤)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٢٨ (٣٥٧) (تحفة الأشراف : ١٢٣٠٩)

عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. قَالَ: وَفِي الْبَابِ. عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ. عَنْ أَبِيهِ. (1)

**ترجمه** دعلي رضي الله عنه بيان دي فرمائي چې ما ديو کس نه دخپل مشرك مور پلار دپاره دمغفرت غوښتلو دعا واوريدله نو ما ورته اوونيل ايا دخپل مشرك مور پلار دپاره دمغفرت دعا غواړې؟ هغه اوونيل ايا ابراهيم عليه السلام دخپل مشرك پلار دپاره دمغفرت دعانه وه غوښتلې بيا ما ددې خبرې ذکر نبي کريم صلي الله عليه وسلم ته اوکړو نو دا ايت کريمه "ماكان للنبي والذين امنوا ان يستغفروا للمشركين" نازل شو

امام ترمذي وايي: داحديث حسن دی ، او په دې باب کې دسعيد بن مسيب رضي الله عنه نه هم روايت وارد دی او هغه دخپل پلار نه روايت نقل کوي.

****************

٣١٠٢ـ حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: لَمْ أَتَخَلَّفْ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي غَزْوَةٍ غَزَاهَا حَتَّى كَانَتْ غَزْوَةُ تَبُوكَ، إِلَّا بَدْرًا وَلَمْ يُعَاتِبِ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحَدًا تَخَلَّفَ عَنْ بَدْرٍ، إِنَّمَا خَرَجَ يُرِيدُ الْعِيرَ فَخَرَجَتْ قُرَيْشٌ مُغَوِّثِينَ لِعِيرِهِمْ، فَالْتَقَوْا عَنْ غَيْرِ مَوْعِدٍ، كَمَا قَالَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ: وَلَعَمْرِي إِنَّ أَشْرَفَ مَشَاهِدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي النَّاسِ لَبَدْرٌ، وَمَا أُحِبُّ أَنِّي كُنْتُ شَهِدْتُهَا مَكَانَ بَيْعَتِي لَيْلَةَ الْعَقَبَةِ حَيْثُ تَوَاثَقْنَا عَلَى الإِسْلاَمِ، ثُمَّ لَمْ أَتَخَلَّفْ بَعْدُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، حَتَّى كَانَتْ غَزْوَةُ تَبُوكَ وَهِيَ آخِرُ غَزْوَةٍ غَزَاهَا، وَآذَنَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ النَّاسَ بِالرَّحِيلِ فَذَكَرَ الْحَدِيثَ بِطُولِهِ، قَالَ: فَانْطَلَقْتُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَإِذَا هُوَ جَالِسٌ فِي الْمَسْجِدِ وَحَوْلَهُ الْمُسْلِمُونَ، وَهُوَ يَسْتَنِيرُ كَاسْتِنَارَةِ الْقَمَرِ، وَكَانَ إِذَا سُرَّ بِالأَمْرِ اسْتَنَارَ فَجِئْتُ فَجَلَسْتُ بَيْنَ يَدَيْهِ، فَقَالَ: " أَبْشِرْ يَا كَعْبُ بْنَ مَالِكٍ بِخَيْرِ يَوْمٍ أَتَى عَلَيْكَ مُنْذُ وَلَدَتْكَ أُمُّكَ ". فَقُلْتُ: يَا نَبِيَّ اللَّهِ، أَمِنْ عِنْدِ اللَّهِ أَمْ مِنْ عِنْدِكَ؟ قَالَ: " بَلْ مِنْ عِنْدِ اللَّهِ، ثُمَّ تَلاَ هَؤُلاَءِ الآيَاتِ لَقَدْ تَابَ اللَّهُ عَلَى النَّبِيِّ وَالْمُهَاجِرِينَ وَالأَنْصَارِ الَّذِينَ اتَّبَعُوهُ فِي سَاعَةِ الْعُسْرَةِ مِنْ بَعْدِ مَا كَادَ يَزِيغُ قُلُوبُ فَرِيقٍ مِنْهُمْ ثُمَّ تَابَ عَلَيْهِمْ إِنَّهُ بِهِمْ رَءُوفٌ رَحِيمٌ (التوبة :١١٧)، قَالَ: وَفِينَا أُنْزِلَتْ أَيْضًا اتَّقُوا اللَّهَ وَكُونُوا مَعَ الصَّادِقِينَ (التوبة :١١٩) ". قَالَ: قُلْتُ: يَا نَبِيَّ اللَّهِ، إِنَّ مِنْ تَوْبَتِي أَنْ لاَ أُحَدِّثَ إِلَّا صِدْقًا وَأَنْ أَنْخَلِعَ مِنْ مَالِي كُلِّهِ صَدَقَةً إِلَى اللَّهِ وَإِلَى رَسُولِهِ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "

---

[1] ـ سنن النسائي/الجنائز ١٠٢ (٢٠٣٨) (تحفة الأشراف: ١٠١٨١) ومسند احمد (١/١٣٠، ١٣١)

أَمْسِكْ عَلَيْكَ بَعْضَ مَالِكَ فَهُوَ خَيْرٌ لَكَ ". فَقُلْتُ: فَإِنِّي أُمْسِكُ سَهْمِيَ الَّذِي بِخَيْبَرَ. قَالَ: " فَمَا أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيَّ نِعْمَةً بَعْدَ الإِسْلاَمِ أَعْظَمَ فِي نَفْسِي مِنْ صِدْقِي رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ صَدَقْتُهُ أَنَا وَصَاحِبَايَ لاَ نَكُونُ كَذَبْنَا فَهَلَكْنَا كَمَا هَلَكُوا، وَإِنِّي لأَرْجُو أَنْ لاَ يَكُونَ اللَّهُ أَبْلَى أَحَدًا فِي الصِّدْقِ مِثْلَ الَّذِي أَبْلاَنِي. مَا تَعَمَّدْتُ لِكَذِبَةٍ بَعْدُ وَإِنِّي لأَرْجُو أَنْ يَحْفَظَنِي اللَّهُ فِيمَا بَقِيَ ".

قَالَ: وَقَدْ رُوِيَ عَنِ الزُّهْرِيِّ هَذَا الْحَدِيثُ بِخِلاَفِ هَذَا الإِسْنَادِ. وَقَدْ قِيلَ: عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ، عَنْ عَمِّهِ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ كَعْبٍ، وَقَدْ قِيلَ غَيْرُ هَذَا، وَرَوَى يُونُسُ بْنُ يَزِيدَ هَذَا الْحَدِيثَ عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ أَبَاهُ حَدَّثَهُ عَنْ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ. (1)

**ترجمه**: عبد الرحمن بن كعب بن مالك رضي الله عنه د خپل پلار نه روايت كوي چي د تبوك نه علاوه په يوه غزا كې رسول الله صلي الله عليه وسلم دملګرتيا نه نه يم پاتي شوی كومو ته چې رسول الله صلي الله عليه وسلم پخپله تلی دی ليكن دبدر نه پاتي كيدونكو ته زورنه نه ده وركړي شوي تردي چي غزوه تبوك واقع شوه، خكه چي رسول الله صلي الله عليه وسلم او مسلمانان دقريشو دقافلی مخي ته وتلي وو، دجنګ اراده يي نه وه، ليكن بي ارادي الله تعالي دشمن سره مخامخ كړل لكه چي الله تعالي فرمائيلي دي ، او زه درسول الله صلي الله عليه وسلم په خدمت كې حاضر وم دعقبې په شپه كله چي مونږ په اسلام دمضبوط پاتي كيدو قول او اقرار كړی وو او زه دا نه خوښوم چي دعقبې په بدل كې دبدر په غزا كې شريك شوی وی اګر چي خلقو كې ددي شهرت زيات دی ، بيا ددي نه پس په بله غزا كې زه چرته درسول الله نه وروسته نه يم پاتي شوی تردي چي غزوه تبوك راغله او دا يي د ټولو نه اخري غزوه وه. بيا رسول الله خلقو ته د تلو حكم وكړو، بيا راوي اوږد حديث ذكر كړو، كعب وايي چي بيا زه رسول الله طرف ته روان شوم چي ورغلم نو په مسجد كې ناست وو چي مسلمانان ورنه چاپيره ناست وو، او مخ مبارك يي د سپوږمۍ پشان ړقيدو دهغوی دا عادت وو چي كله به خوشحاله وو نو مخ به يي ړقيدو نو زه ورغلم او مخامخ ورته كيناستم نو ماته يي وفرمائيل اي كعب تاته بشارت دی ، ستا دپيدائش د ورځي نه تردي ورځي پوري دا ستا دپاره د ټولو نه لوي د نيك بختۍ خبر دی، ما عرض وكړو اي دالله رسوله دا بشارت ستاسو د طرفه دي او كه د الله تعالي دطرفه دی راته يي وفرمائيل بلكه د الله تعالي دطرفه دی او بيا يي دا ايتونه: لَقَدْ تَابَ

---

1 _ البخاري في الجامع الصحيح /الجهاد ١٠١ (٢٩٤٧، ٢٩٤٨) ، والمغازي ٧٩ (٤٤١٨) ، و سنن ابي داود/ الجهاد ١٠١ (٢٦٣٤) (تحفة الأشراف: ١١١٥٣)

اللَّهُ عَلَى النَّبِيِّ وَالْمُهَاجِرِينَ الخ. تلاوت كړل كعب وايي دا ايت اتَّقُوا اللَّهَ وَكُونُوا مَعَ الصَّادِقِينَ هم زمونږ باره كي نازل شوى دى . كعب وايي ما عرض وكړو يا رسول الله زما دتوبي تكميل به په دي كيږي چې د رښتياؤ نه علاوه به درته بل څه نه وايم. او په دي چي د ټول مال نه خان خلاص كړم زه ټول مال دالله او دهغه رسول ته صدقه پيش كړم. رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل ټول مه صدقه كوه څه خان ته پريږده داسي بهتره ده، ما عرض اوكړو ښه نو دخيبر خپله حصه خان ته پريږدم او عرض مي اوكړو، يا رسول الله ا الله تعالي راباندي دا نجات او احسان دصداقت په وجه اوكړو نو زما دتوبي يوه حصه دا هم شوه چي تر څو ژوندي يم رښتيا به وايم كعب رضي الله عنه اوفرمائيل كله نه چې ما دا خبره كړي ده والله يومسلمان باندي هم الله تعالي په رښتيا وينا كي دومره ازمائش نه دى كړى . والله دكله نه چې ما درسول الله صلي الله عليه وسلم په مخ كي دا اقرار كړى دى ددينه پس مي هيڅ كله د دروغو اراده هم نه ده كړي او دالله تعالي نه اوميد لرم چي باقي پاتي عمر كي به مي هم د دروغو نه بچ كړي.

امام ترمذي وايي. دا روايت د زهري نه ددي سند په خلاف په بل سند هم مروي دي. او بدي سند هم مروي دي عن عبد الرحمن بن عبد الله بن كعب بن مالك عن عمه عبيد الله عن كعب. او ددي سند نه په علاوه په سند د يونس بن يزيد عن الزهري عن عبد الرحمن بن عبد الله بن كعب بن مالك ان اباء حدثه عن كعب بن مالك.روايت كړي.

**لغات** تخلف: خلف دخلفا نه ماخوذ دي په معني دوروسته پاتي كيدو خلف خلفا دسمع نه په معني د چپ لاس ته كيدل او بيوقوف كيدو دي.

يعاتب ، عتب عتبا وعتبانا د نصر او ضرب نه په معني درټلو دي .

شهدت، شهد شهودا دسمع باب نه دي په معني دحاضريدو په مجلس كي اود كرم نه هم راځي په معني دګواهئ وركولو.

تواثق دمفاعله نه په معني دمعاهدي كولو پخپل مينځ كي وريّ دتوريه نه په معني دپټولو

يعتذرون اعتذر اعتذارا دباب افتعال نه معني دعذر بيانولو دي او كله كله په معني دعذر قبلولو هم راځي

تبسم: تبسم تبسما په معني دمسكا سره دي.

**تشريح**: ددي حديث نه دا اهمه خبره معلومه شوه:: په دروغو كي نجات نشته

زيري وركونكو ته تحفه وركول مستحب دي همدارنګي يعقوب عليه السلام ته چې كله قميص راوړى شو نو هغه هم انعام وركړى وو داهل تاريخ خيال دى چې دزيري وركولو دپاره راتلونكي دوه كسان صديق اكبر او عمر فاروق رضي الله عنهما وو.

## دكعب بن مالك رضي الله عنه حالات

نوم كعب كنيه ابو عبدالله دپلار نوم يي مالك او دمور نوم يي ليلي بنت زيد بن ثعلبه وه. دبنو سلمه

قبيلي سره ىي تعلق وو دجاهليت په زمانه کې ىې كنيه ابوبشر وه نو رسول الله صلى الله عليه وسلم ورباندې بدل کړه نو بيايي كنيه ابوعبدالله شوه، په عقبه ثانيه کې داو با كسانو سره وو بخاري ١ ٥٥٠،

په بدر کې يې شرکت اونکړې شو او داحد نه پس په تمامو غزاواتو کې شريك شوى دى

دعلي او معاويه رضي الله عنهما په جنګونو کې ددوارو نه جدا پاتې شوى وو دنبي كريم صلى الله عليه وسلم په زمانه کې دري شاعران وو او يو په هغوى کې كعب وو نو دده په كلام کې ډير اثر وو کله چې دوس قبيلې والا دده صرف دوه شعرونه واوريدل نو ټول مسلمانان شول

| | |
|---|---|
| فقضينا من تهامة كل وير | وخيبر ثم اغمدنا السيوفا |
| بخيرها ولو نطقت لقالت | قوا طعهن دوسا وثقيفا |

وفات دامير معاويه رضي الله عنه په زمانه کې دهجرت په ٥٠ كال داويا كالو په عمر کې وفات شو

تعداد درواياتو يې ٨٠ دى كوم چې په بخاري او مسلم کې متفق عليه دي او دوه صرف په مسلم کې دي او دري صرف په بخاري کې دي

***************

٣١٠٣ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُبَيْدِ بْنِ السَّبَّاقِ، أَنَّ زَيْدَ بْنَ ثَابِتٍ حَدَّثَهُ، قَالَ: بَعَثَ إِلَيَّ أَبُو بَكْرٍ الصِّدِّيقُ مَقْتَلَ أَهْلِ الْيَمَامَةِ، فَإِذَا عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ عِنْدَهُ، فَقَالَ: إِنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ قَدْ أَتَانِي، فَقَالَ: " إِنَّ الْقَتْلَ قَدِ اسْتَحَرَّ بِقُرَّاءِ الْقُرْآنِ يَوْمَ الْيَمَامَةِ، وَإِنِّي لَأَخْشَى أَنْ يَسْتَحِرَّ الْقَتْلُ بِالْقُرَّاءِ فِي الْمَوَاطِنِ كُلِّهَا، فَيَذْهَبَ قُرْآنٌ كَثِيرٌ وَإِنِّي أَرَى أَنْ تَأْمُرَ بِجَمْعِ الْقُرْآنِ، قَالَ أَبُو بَكْرٍ لِعُمَرَ: كَيْفَ أَفْعَلُ شَيْئًا لَمْ يَفْعَلْهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ؟ فَقَالَ عُمَرُ: هُوَ وَاللَّهِ خَيْرٌ، فَلَمْ يَزَلْ يُرَاجِعُنِي فِي ذَلِكَ حَتَّى شَرَحَ اللَّهُ صَدْرِي لِلَّذِي شَرَحَ لَهُ صَدْرَ عُمَرَ، وَرَأَيْتُ فِيهِ الَّذِي رَأَى، قَالَ زَيْدٌ: قَالَ أَبُو بَكْرٍ: إِنَّكَ شَابٌّ عَاقِلٌ لَا نَتَّهِمُكَ، قَدْ كُنْتَ تَكْتُبُ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْوَحْيَ فَتَتَبَّعِ الْقُرْآنَ، قَالَ: فَوَاللَّهِ لَوْ كَلَّفُونِي نَقْلَ جَبَلٍ مِنَ الْجِبَالِ مَا كَانَ أَثْقَلَ عَلَيَّ مِنْ ذَلِكَ، قَالَ: قُلْتُ: كَيْفَ تَفْعَلُونَ شَيْئًا لَمْ يَفْعَلْهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ؟ فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ: هُوَ وَاللَّهِ خَيْرٌ، فَلَمْ يَزَلْ يُرَاجِعُنِي فِي ذَلِكَ أَبُو بَكْرٍ، وَعُمَرُ حَتَّى شَرَحَ اللَّهُ صَدْرِي لِلَّذِي شَرَحَ لَهُ صَدْرَهُمَا صَدْرَ أَبِي بَكْرٍ، وَعُمَرَ، فَتَتَبَّعْتُ الْقُرْآنَ أَجْمَعُهُ مِنَ الرِّقَاعِ، وَالْعُسُبِ، وَاللِّخَافِ يَعْنِي الْحِجَارَةَ، وَصُدُورِ الرِّجَالِ، فَوَجَدْتُ آخِرَ سُورَةِ بَرَاءَةٌ مَعَ خُزَيْمَةَ بْنِ ثَابِتٍ لَقَدْ جَاءَكُمْ رَسُولٌ مِنْ أَنْفُسِكُمْ عَزِيزٌ عَلَيْهِ مَا عَنِتُّمْ حَرِيصٌ عَلَيْكُمْ بِالْمُؤْمِنِينَ رَءُوفٌ رَحِيمٌ ١٢٨ فَإِنْ تَوَلَّوْا فَقُلْ حَسْبِيَ اللَّهُ لا إِلَهَ إِلا هُوَ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَهُوَ رَبُّ الْعَرْشِ

الْعَظِيمِ ١٢٩ (التوبة :١٢٨-١٢٩)". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (١)

**ترجمه** دعبيد بن سباق بيان دي فرمائي چې زه زيد بن ثابت رضي الله عنه ماته حديث بيان کړی دی چې ابو بکر صديق رضي الله عنه داهل يمامه دقتل باره کې په ما پسې څوك راوليګلو زه چې ورغلم نو دي وخت کې عمر فاروق ور سره ناست وو ماته يې ووئيل عمر فاروق ماته راغلو او داسې يې اوونيل په جنګ يمامه کې دقران کريم ډير زيات حافظان شهيدان شوي دي او ماسره دا ويره ده که په همدې طريقه په مختلفو مقاماتو کې دحافظانو دشهادت سلسله جاري پاتې شي نو ددې په نتيجه کې دقران کريم يوه لويه حصه ضايع کيدې شي په دې وجه مناسب ګنړم چې دا قران په يو کتابي شکل کې راجمع کړې شي او په دې باندې حکم اوکړئ دې باره کې ابوبکر عمر رضي الله عنه ته اوونيل زه هغه کار څنګه کولې شم کوم چې رسول الله صلي الله عليه وسلم نه دې کړې عمر رضي الله عنه اوونيل په الله مې دې قسم وي داډير بهتر کار دې او هغه په دې باره کې مسلسل زما سره خبرې کول جاري اوساتل تردې پورې چې الله تعالي په دې باره کې زما سينه هم پرانيستله څنګه چې يې دعمر سينه پرانيستلې وه او ما هم په دې باره کې هغه رائې قائم کړه کومه چې دعمر وه. دزيد بن ثابت بيان دې ابوبکر رضي الله عنه اوفرمائيل ته يو خوان او قابل انسان يې مونږ په تا باندې هيڅ الزام نه لګوو (يعني ستا کردار دتعريف قابل دې)، تا درسول الله صلي الله عليه وسلم دپاره دوحې کتابت هم کړې دې نو په دې وجه ته دقران پاك تلاش کوه زيد بن ثابت رضي الله عنه وائې په الله مې دې قسم وي که هغه ماته دا حکم کړې وې چې زه يو غر دځېل ځاې نه منتقل کړم نو دغه کار به ماته ددې کار نه زيات ګران نه وو ماورته اوونيل تاسو ولې يو داسې کار کول غواړې کوم چې رسول الله صلي الله عليه وسلم پخپله نه دې کړې ابوبکر رضي الله عنه اوفرمائيل په الله مې دې قسم وي دا ډير بهتر کار دې او بيا ددينه پس ابوبکر او عمر مسلسل ماسره په دې باره کې خبرې اترې کولې تردې پورې چې الله تعالي زما سينه هم پرانيستله څنګه چې يې ددوئ دواړو سينه پرانيستلې وه نو ما دقران پاك تلاش شروع کړو او ما دا د چمړې دمختلفو تکړو او دکجورو دپاڼړو او دخلقو دسينو نه راجمع کړل . او دسورة توبې اخرې ايت مې دخزيمه بن ثابت رضي الله عنه سره اوموندلو " لَقَدْ جَاءَكُمْ رَسُولٌ مِنْ أَنْفُسِكُمْ عَزِيزٌ عَلَيْهِ مَا عَنِتُّمْ حَرِيصٌ عَلَيْكُمْ بِالْمُؤْمِنِينَ رَءُوفٌ رَحِيمٌ ١٢٨ فَإِنْ تَوَلَّوْا فَقُلْ حَسْبِيَ اللَّهُ لا إِلَهَ إِلا هُوَ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَهُوَ رَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيمِ " يعني تاسو ته يوداسې رسول راغلې دې څوك چې تاسو سره تعلق لرې او ستاسو په تکليف کې واقع کيدل نه خوښوې او .

---

[1] اورده البخاري في الجامع الصحيح /تفسير التوبة ٢٠ (٤٦٧٩) ، وفضائل القرآن ٣ (٤٩٨٦) (تحفة الأشراف : ٣٤٢٩)

هغه ستاسو دښيګړې حريص دي او په مومنانو مهربان او رحم کونکي دي مګر که تاسو بيا هم مخ واړولو نو اې رسوله ته ورته اووايه چې زما دپاره الله تعالي کافي دي او دهغه نه علاوه زما بل هيڅ معبود او کارساز نشته ما خاص په هغه توکل کړي دي او هغه دعرش دعظيم پروردګار دي

امام ترمذي وائي: داحديث حسن صحيح دي

**لغات** فعرفت: عرف يعرف عرفة وعرفانا په معني دمعرفت سره دي دباب سمع نه عقال معني بړې جمع يې اعقال راځي

## دزيد بن ثابت رضي الله عنه حالات

نوم زيد کنيه ابوسعيد ، ابوخارجه ، ابوعبدالرحمان لقب مقري ، فرضي. کاتب الوحي ، حبرالامت.

په خزرج قبيله کې دبنو نجار سره تعلق لري او دشپږو کالو عمر کې يې پلار وفات شوی و او ديولسو کالو په عمر کې دمصعب بن عمير په لاس مسلمان شوی وو کله چې رسول الله صلي الله عليه وسلم مديني ته راغی نو دی داولسو سورتونو حافظ وو دده عمر په ديارلسو کالو کې روان وو چې دبدرغزوه راغله دده دا خواهش وو چې دی هم پکې شرکت اوکړي مګر دعمر دکموالي په وجه واپس کړی شو او په غزوه خندق کې درسول الله صلي الله عليه وسلم سره يوځاي وو.

په جنګ يمامه کې هم شريك شوی وو او په دې جنګ کې په يو غشي هم لګيدلی وو ليکن جسم ته يې څه نقصان نه وو رسيدلی ، رسول الله صلي الله عليه وسلم دوحي دليکلو کار دډيرو صحابه کرامو نه اخستلی وو په دوی کې زيد بن ثابت رضي الله عنه هم شامل وو

زيد يو عقلمند او انتهائي ذکي انسان وو دهجرت په پنځم کال رسول پاك صلي الله عليه وسلم وفرمائيل ماته دخلقو خطونه راځي چې په عبراني ژبه کې دي په يهوديانو مې اعتبار نشته نو په دې وجه زيد صرف په پنځلسو ورځو کې عبراني او سرياني ژبې زده کړې (مسند احمد)

زيد دفقه امام وو ګويا کې زيد دخلفاء راشده او معاويه رضي الله عنه په زمانه کې مفتي اعظم وو (اعلام الموقعين)

دهجرت په ۴۵کال د ۵۵يا ۵۲کالو په عمر کې وفات شو دده دوفات کيدو په مناسبت ابوهريره رضي الله عنه اوفرمائيل نن دعلم يوه خزانه ختمه شوه دده دمروياتو شمير ۹۲دی پنځه په دې کې متفق عليه دي

****************

۳۱۰۴_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ. حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ. حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ،

عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ حُذَيْفَةَ قَدِمَ عَلَى عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ وَكَانَ يُغَازِي أَهْلَ الشَّامِ فِي فَتْحِ أَرْمِينِيَةَ وَأَذْرَبِيجَانَ مَعَ أَهْلِ الْعِرَاقِ، فَرَأَى حُذَيْفَةُ اخْتِلَافَهُمْ فِي الْقُرْآنِ، فَقَالَ لِعُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ: يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ، أَدْرِكْ هَذِهِ الأُمَّةَ قَبْلَ أَنْ يَخْتَلِفُوا فِي الْكِتَابِ كَمَا اخْتَلَفَتِ الْيَهُودُ وَالنَّصَارَى، فَأَرْسَلَ إِلَى حَفْصَةَ أَنْ أَرْسِلِي إِلَيْنَا بِالصُّحُفِ نَنْسَخُهَا فِي الْمَصَاحِفِ، ثُمَّ نَرُدُّهَا إِلَيْكِ، فَأَرْسَلَتْ حَفْصَةُ إِلَى عُثْمَانَ بِالصُّحُفِ، فَأَرْسَلَ عُثْمَانُ إِلَى زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، وَسَعِيدِ بْنِ الْعَاصِ، وَعَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ هِشَامٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ، أَنِ انْسَخُوا الصُّحُفَ فِي الْمَصَاحِفِ، وَقَالَ لِلرَّهْطِ الْقُرَشِيِّينَ الثَّلَاثَةِ، مَا اخْتَلَفْتُمْ أَنْتُمْ وَزَيْدُ بْنُ ثَابِتٍ فَاكْتُبُوهُ بِلِسَانِ قُرَيْشٍ فَإِنَّمَا نَزَلَ بِلِسَانِهِمْ، حَتَّى نَسَخُوا الصُّحُفَ فِي الْمَصَاحِفِ بَعَثَ عُثْمَانُ إِلَى كُلِّ أُفُقٍ بِمُصْحَفٍ مِنْ تِلْكَ الْمَصَاحِفِ الَّتِي نَسَخُوا، قَالَ الزُّهْرِيُّ: وَحَدَّثَنِي خَارِجَةُ بْنُ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، أَنَّ زَيْدَ بْنَ ثَابِتٍ، قَالَ: فَقَدْتُ :مِنْ سُورَةِ الأَحْزَابِ، كُنْتُ أَسْمَعُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَؤُهَا مِنَ الْمُؤْمِنِينَ رِجَالٌ صَدَقُوا مَا عَاهَدُوا اللَّهَ عَلَيْهِ فَمِنْهُمْ مَنْ قَضَى نَحْبَهُ وَمِنْهُمْ مَنْ يَنْتَظِرُ سورة الأحزاب :٢٣) فَالْتَمَسْتُهَا فَوَجَدْتُهَا مَعَ خُزَيْمَةَ بْنِ ثَابِتٍ، أَوْ أَبِي خُزَيْمَةَ فَأَلْحَقْتُهَا فِي سُورَتِهَا، قَالَ الزُّهْرِيُّ: فَاخْتَلَفُوا يَوْمَئِذٍ فِي التَّابُوتِ وَالتَّابُوهِ، فَقَالَ الْقُرَشِيُّونَ: التَّابُوتُ، وَقَالَ زَيْدٌ: التَّابُوهُ، فَرُفِعَ اخْتِلَافُهُمْ إِلَى عُثْمَانَ، فَقَالَ: اكْتُبُوهُ التَّابُوتُ فَإِنَّهُ نَزَلَ بِلِسَانِ قُرَيْشٍ، قَالَ الزُّهْرِيُّ: فَأَخْبَرَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ: أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ مَسْعُودٍ كَرِهَ لِزَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ نَسْخَ الْمَصَاحِفِ، وَقَالَ: يَا مَعْشَرَ الْمُسْلِمِينَ أُعْزَلُ عَنْ نَسْخِ كِتَابَةِ الْمُصْحَفِ وَيَتَوَلَّاهَا رَجُلٌ، وَاللَّهِ لَقَدْ أَسْلَمْتُ وَإِنَّهُ لَفِي صُلْبِ رَجُلٍ كَافِرٍ، يُرِيدُ زَيْدَ بْنَ ثَابِتٍ، وَلِذَلِكَ قَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْعُودٍ: يَا أَهْلَ الْعِرَاقِ اكْتُمُوا الْمَصَاحِفَ الَّتِي عِنْدَكُمْ وَغُلُّوهَا، فَإِنَّ اللَّهَ يَقُولُ وَمَنْ يَغْلُلْ يَأْتِ بِمَا غَلَّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ (آل عمران :١٦١) فَالْقُوا اللَّهَ بِالْمَصَاحِفِ، قَالَ الزُّهْرِيُّ: فَبَلَغَنِي أَنَّ ذَلِكَ كَرِهَهُ مِنْ مَقَالَةِ ابْنِ مَسْعُودٍ رِجَالٌ مِنْ أَفَاضِلِ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَهُوَ حَدِيثُ الزُّهْرِيِّ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِهِ. [1]

**ترجمه** دانس رضي الله عنه بيان دي فرمائي چې حذيفه بن يمان رضي الله عنه عثمان رضي الله عنه ته راغلو او په دې ورځو کې هغه دشام والاسره دارمينيه په فتح کې او دعراق والاسره

---

[1] ـ اورده البخاري في الصحيح/المناقب ٣(٣٥٠٦) ، وفضائل القرآن ٢(٣٩٨٣) ، و٣(٣٩٨٤) (تحفة الأشراف : ٩٧٨٣)

6/17

دازربانيجان په فتح کي مشغول وو، حذيفه رضي الله عنه دقران په قرائت کي دخلقو اختلاف ته په کتلو سره عثمان رضي الله عنه ته اوونيل اي اميرالمؤمنين د امت په حالاتو سوچ اوکړه مخکي ددينه چې دا کتاب داختلاف ښکار شي (او پخپل مينځ کي جنګونه شروع شي) لکه چې يهود او نصاري پخپلو کتابونو کي اختلاف کړي دي نو عثمان رضي الله عنه حفصه رضي الله عنها ته پيغام اوليږلو (چې دابوبکر او عمر رضي الله عنهما تياري کړي صحيفي مونږ ته راوليږه مونږ يي په مصاحفو کي ليکو او بيا يي تاته واپس کوو چنانچې ام المؤمنن حفصه رضي الله عنها داصحيفي عثمان بن عفان ته ورواليږلي او بيا عثمان رضي الله عنه زيد بن ثابت او سعيد بن العاص او عبدالرحمن بن حارث بن هشام او عبدالله بن زبير رضي الله عنهم ته دا صحيفي دحکم سره اوليږلي چې دوئ دي ددي مصاحفو نه نقل کړي وي او دري واړه قريشي صحابه کرامو ته يي اوونيل کله چې په تاسو او زيد بن ثابت کي اختلاف راشي دغه وخت کي به قران دقريشو په لهجه کي ليکئ ځکه چې هم د دوئ په ژبه نازل شوي دي تردي پوري چې کله هغوئ صحيفي مصحف ته نقل کړي نو عثمان دا تيار مصاحف (داسلامي مملکت په حدود اربعه کي) هر يو طرف ته يو يو مصحف اوليږلو. زهري وائي ماته خارجه بن زيد بيان کړي دي چې زيد بن ثابت رضي الله عنه اوونيل ماته دسورة احزاب يو ايت کوم چې ما درسول الله صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي وو دي وخت کي ياد نه دي پاتي شوي او هغه ايت دادي " مِنَ الْمُؤْمِنِينَ رِجَالٌ صَدَقُوا مَا عَاهَدُوا اللَّهَ عَلَيْهِ فَمِنْهُمْ مَنْ قَضَى نَحْبَهُ وَمِنْهُمْ مَنْ يَنْتَظِرُ" نو ما ددي لټون اوکړو او دډير لټون نه پس مي دخزيمه بن ثابت سره اوموندلو خزيمه بن ثابت اوونيل يا ابو خزيمه اوونيل (دراوي شك دي) نو ما دا دده په سورة کي شامل کړو. زهري وائي دغه وخت کي به مسلمانانو کي په يو لفظ کي اختلاف پيدا شو قريشيانو به "التابوت" ونيلو او زيد "التابوه" ونيلو نو ددي اختلاف مي دعثمان رضي الله عنه په وړاندي پيش کړو هغه راته اوونيل التابوت اوليکه ځکه چې قران دقريشو په ژبه نازل شوي دي، ماته عبدالله بن عبيدالله بن عتبه ونيلي دي چې عبد الله بن مسعود رضي الله عنه په مصاحف کي دزيد بن ثابت رضي الله عنه ليکل خوښ نکړل او ونيل يي اي دمسلمانانو ډلي زه په مصاحفو کي دليکلو نه منع کړي شوي يم او دا کار هغه کس ته سپارلي شوي دي ځوك چې زما داسلام راوړلو وخت کي ديو کافر په خيټه کي پروت وو (يعني لاپيدا شوي هم نه وو) چې کله ما اسلام قبول کړي وو، دعبدالله بن مسعود مراد زيد بن ثابت رضي الله عنه وو، همدا وجه ده عبدالله بن مسعود رضي الله عنه به فرمائيل اي عراقيانو تاسو دخپل ځان سره قران پاك محفوظ اوساتئ ځکه چې الله تعالي فرمائيلي دي ځوك چې کوم څيز لره پټ کړي دي به دقيامت په ورځ خپل پټ کړي څيز دځان سره راوړي، عبدالله بن مسعود اوفرمائيل تاسو به خپل مصحف

دخان سره دالله تعالي دربار ته راوړئ، زهري وائي ماته دا خبره معلومه شوي ده چې دنبي کريم صلي الله عليه وسلم په صحابه کرامو کي بعضي دبعضي اکابرو صحابه کرامو دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه داخبره خوښه نه شوه، او دقران دجمع کولو په لفظ بعضي خلق دوکه کيږي او دا گمان کوي چې قران کريم دنبي کريم صلي الله عليه وسلم په زمانه کي جمع نه وو او بيا روسته صحابه کرامو جمع کړي دي او حال دادي چې دا خبره درست نه ده قران کريم بالکل جمع او مرتب وو او دا رنگي حافظانوته هم ياد وو مگر په يو خاي ليکلي شوي موجود نه وو او حکومت ته سپارلي شوي هم نه وو، دابوبکر رضي الله عنه په زمانه کي قران سرکاري رکاډ کي داخل شو لکه چې په اولني روايت کي راغلي دي، بيا عثمان رضي الله عنه دمخکي پشان مسلمانانو ته اوسپارلو (دکتاب په مقدمه کي) ددي موضوع تفصيلي بحث تير شوي دي چې مراجعه ورته کولي شئ.
امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي او دزهري په روايت داحديث ددي سند نه علاوه په بل سند مونږ ته معلوم نه دي.

***************

## ١١ـ بَابٌ وَمِنْ سُورَةِ يُونُسَ

### دسورة يونس دبعضي ايتونو تفسير

دَدی سورة نوم هم دَ علامت په طور دَ ايت ۹۸ نه اخستی شوی دی چې په هغی کي دَيُونُس عليه السلام ذکر دی دَ سورت موضوع بحث دَ يُونُس عليه السلام قصه نهٔ ده
دَ روایاتو او دَ دی سورة دَ موضوع نه دَ دی خبری تائيد کيږی چې دا پوره سورة په مکه کي نازل شويدی دَ بعض خلقو گمان دی چې دَ دی بعض ايتونه دَ مدنی دور دی ليکن دا خبره صحيح نهٔ ده.
دَ کلام په سلسله چې غور اوکړی شی نو دا خبره محسوس کيږی چې دا دَ مختلفو ايتونو يا مختلفو موقعو دَ نازل شوی ايتونو مجموعه نهٔ ده بلکه دَ شروع نه تر آخره پوری دا يو مربوط تقرير دی چې په يو وخت به دا نازل شوی وی او دَ کلام مضمون په دی خبره دلالت کوی چې دا دَ مکی دور کلام دی
دَ زمانه نزول متعلق په رواياتو کي څه ذکر نيشته ليکن دَ مضمون نه داسی معلوميږی چې دا سورة به دَ مکی په آخری دور کي نازل شوی وی ځکه چې دَ کلام دَ انداز نه صفا معلوميږی چې دَ دعوت دَ مخالفينو د طرف نه مزاحمت انتها ته رسيدلی وۀ هغوی نبی صلی الله عليه وسلم او صحابه کرام په خپل مينځ کي نه برداشت کول او دَ دوی نه دا أميد ختم شوی وۀ چې دوی به په نيغه لار راشی. نو دويته دَ هغه انجام نه دَ خبرولو وخت راغلو چې دوی به هغه انجام خامخا اووينی

٣١٠٥ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ ثَابِتٍ

الْبُنَانِيِّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ صُهَيْبٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي قَوْلِ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ: لِلَّذِينَ أَحْسَنُوا الْحُسْنَى وَزِيَادَةٌ (يونس: ٢٦) قَالَ: "إِذَا دَخَلَ أَهْلُ الْجَنَّةِ الْجَنَّةَ نَادَى مُنَادٍ إِنَّ لَكُمْ عِنْدَ اللَّهِ مَوْعِدًا يُرِيدُ أَنْ يُنْجِزَكُمُوهُ. قَالُوا: أَلَمْ تُبَيِّضْ وُجُوهَنَا وَتُنَجِّنَا مِنَ النَّارِ وَتُدْخِلْنَا الْجَنَّةَ؟ قَالَ: فَيُكْشَفُ الْحِجَابُ. قَالَ: فَوَاللَّهِ مَا أَعْطَاهُمُ اللَّهُ شَيْئًا أَحَبَّ إِلَيْهِمْ مِنَ النَّظَرِ إِلَيْهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ حَمَّادِ بْنِ سَلَمَةَ. هَكَذَا رَوَى غَيْرُ وَاحِدٍ، عَنْ حَمَّادِ بْنِ سَلَمَةَ، مَرْفُوعًا. وَرَوَى سُلَيْمَانُ بْنُ الْمُغِيرَةِ هَذَا الْحَدِيثَ عَنْ ثَابِتٍ. عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى قَوْلَهُ. وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ عَنْ صُهَيْبٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. [1]

**ترجمه** صهيب رضي الله عنه نه روايت دى چې رسول الله صلي الله عليه وسلم د ايت كريمه " لِلَّذِينَ أَحْسَنُوا الْحُسْنَى وَزِيَادَةٌ " دتفسير متعلق فرمائيلي دي كله چې جنتيان چې جنت ته لاړ شي نويو اعلان كونكي به ورنه تپوس اوكړي تاسو سره د الله تعالي يوه وعده ده چې پوره كول يې غواړي، جنتيان به اووائي ايا تازمونږ مخونه سپين نه كړل ايا مونږ ته دى جنت رانه كړو داور نه دى بچ كړو يعنى دا نعمتونه مو بس دي نور څه نه غواړو بيا به الله تعالي پرده پورته كړي نو جنتيان به دخپل رب ديدار اوكړي نو دالله تعالي دديدار نه به زيات هيڅ شى هغوئ ته محبوب نه وي «االله تعالي دى مونږ ټولو ته خپل ديدار نصيب كړي امين.»
امام ترمذي وايي دحماد بن سلمه حديث نورو راويانو هم مرفوعا نقل كړي دي او سليمان بن مغيرد داحديث عن ثابت عن عبدالرحمن عن ابي ليلي سند سره ذكر كړي دي او په سند كې يې عن صهيب عن النبي صلي الله عليه وسلم الفاظ نه دي ذكر كړي.

**لغات**: انظر. نظر دنصر او سمع نه نظرا ومنظرا ومنظرة وتنظارا معني كتل ، په غور سره كتل.

**تشريح** "فيكشف الهجاب" يعني پرده به پورته كړي، كله چې پرده پورته كړى شي نو جنتيان به په تعجب او حيرانئ كې وي او دا سوچ به كوي چې اخر كوم يو داسي نعمت به پاتې شوى وي چې الله به لاوسه پوري مونږ ته نه وي راكړى ليكن كله چې ورباندي الله تعالي خپل ديدار اوكړي نو ددي په مقابله كې به ورته تمام نعمتونه حقير ښكاره شي دالله تعالي ديدار به دالله دطرفه يو عظيم احسان وي دكوم چې په اصل كې بندګان مستحق نه دي الله تعالي به يې ورباندي دخپل فضل په بنا اوكړي

"فيكشف الحجاب" دالله تعالي ذات اقدس دپردي نه پاك او منزه دى، دا مطلب نه دى

---

[1] ـ صحيح مسلم/الإيمان ٨٠ (١٨١)، سنن ابن ماجه/المقدمة ١٣ (١٨٧) (تحفة الأشراف: ٤٩٦٨)

چه(معاذ الله) الله تعالي په پرده کې پټ شوی دی دالله تعالي ددیدار په وخت کې چې کوم منظر وي دا به داسې ښکاري لکه چې پرده پورته کړی شي خکه چې الله تعالي محجوب نه دی محبوب دی الله تعالي غالب مطلق دی نو پردي دپورته کولو مطلب دادی چې کتونکو ته به داسې ښکاري چې لکه پرده پورته کړی شي.

*****************

٣١٠٦_حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ. حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ ابْنِ الْمُنْكَدِرِ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ رَجُلٍ مِنْ أَهْلِ مِصْرَ، قَالَ: سَأَلْتُ أَبَا الدَّرْدَاءِ، عَنْ هٰذِهِ الآيَةِ لَهُمُ الْبُشْرَى فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا (يونس: ٦٤)، قَالَ: مَا سَأَلَنِي عَنْهَا أَحَدٌ مُنْذُ سَأَلْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْهَا، فَقَالَ: "مَا سَأَلَنِي عَنْهَا أَحَدٌ غَيْرُكَ مُنْذُ أُنْزِلَتْ فَهِيَ الرُّؤْيَا الصَّالِحَةُ يَرَاهَا الْمُسْلِمُ أَوْ تُرَى لَهُ".

حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ. حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ رُفَيْعٍ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ السَّمَّانِ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ رَجُلٍ مِنْ أَهْلِ مِصْرَ، عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ، فَذَكَرَ نَحْوَهُ.

حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَبْدَةَ الضَّبِّيُّ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ بَهْدَلَةَ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ، وَلَيْسَ فِيهِ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ قَالَ. وَفِي الْبَابِ، عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ. [1]

**ترجمه** : د ابو الدرداء ﷺ نه د ایت کریمه لَهُمُ الْبُشْرَى فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا متعلق منقول دي فرمائیل یي چې نبي ﷺ نه مې کله دي باره کي تپوس کړي وودهغي نه پس دي باره کي ما نه اوسه پوري بل چا تپوس نه دي کړي ، او بیا یي وفرمائیل کله نه چې دا ایت نازل شوي دي دهغي نه پس دي باره کي ما نه اوسه پوري بل چا تپوس نه دي کړي ، او هغه صرف ښه خوب لیدل باقي پاتی شوی دی چې یو مسلمان یي اووینی یا(دچادپاره) چاته ښودلی شي.

*****************

٣١٠٧_حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، حَدَّثَنَا الْحَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ زَيْدٍ، عَنْ يُوسُفَ بْنِ مِهْرَانَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَمَّا أَغْرَقَ اللهُ فِرْعَوْنَ قَالَ: آمَنْتُ أَنَّهُ لاَ إِلٰهَ إِلاَّ الَّذِي آمَنَتْ بِهِ بَنُو إِسْرَائِيلَ فَقَالَ جِبْرِيلُ: يَا مُحَمَّدُ! فَلَوْ رَأَيْتَنِي وَأَنَا آخُذُ مِنْ حَالِ الْبَحْرِ، فَأَدُسُّهُ فِي فِيهِ مَخَافَةَ أَنْ تُدْرِكَهُ الرَّحْمَةُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هٰذَا حَدِيثٌ

[1] _ انظر حدیث رقم ٢٢٧٣

حَسَنٌ. (١)

**ترجمه** دابن عباس رضي الله عنهما بيان دي فرمائي چې نبي کريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي کله چې الله تعالي فرعون غرق کړو نو هغه په دي موقعه اوونيل "امنت انه لا اله الا الذي امنت به بنو اسرائيل وانا من المسلمين" بيا جبرائيل عليه السلام اوونيل اي محمد (صلي الله عليه وسلم) کاش چې هغه وخت کي دي زما حالت ليدلي وي ما ددي ويري په وجه چې چرته دا مردود دالله درحم نه لاندي رانشي دسمندر ختي مي راويستلي او دده په خوله کي مي منډلي. امام ترمذي وايي. داحديث حسن دي

****************

٣١٠٨_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الأَعْلَى الصَّنْعَانِيُّ. حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ الحَارِثِ. أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ. أَخْبَرَنِي عَدِيُّ بْنُ ثَابِتٍ، وَعَطَاءُ بْنُ السَّائِبِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، ذَكَرَ أَحَدُهُمَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ ذَكَرَ أَنَّ جِبْرِيلَ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " جَعَلَ يَدُسُّ فِي فِي فِرْعَوْنَ الطِّينَ خَشْيَةَ أَنْ يَقُولَ: لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ فَيَرْحَمَهُ اللهُ، أَوْ خَشْيَةَ أَنْ يَرْحَمَهُ اللهُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. (٢)

**ترجمه** دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما بيان دي فرمائي چې نبي کريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل کله چې فرعون ډوبيدو دغه وخت جبرائيل عليه السلام دفرعون په خوله کي ختي منډلي او دا ددي ويري په وجه چې چرته لااله الا الله اونه وائي او دالله تعالي رحم وربانډي رانشي. راوي شك دي چې رسول الله "خشية ان تقول لااله الا الله" اوونيل او که "خشية ان يرحمه الله" اوونيل

امام ترمذي وايي داحديث په دي سند حسن صحيح غريب دي

****************

## ١٢_بَاب وَمِنْ سُورَةِ هُودٍ

### د سورة هود دبعضي ايتونو تفسير

ددي سورة نوم هم د علامي په طور.. سورة هُود ايخودلی شوی دی

---

[1] _ تفرد به المؤلف (أخرجه النسائي في الكبرى) (تحفة الأشراف: ٥٥٦١، ٥٥٤٢)

[2] _ تفرد به المؤلف (أخرجه النسائي في الكبرى) (تحفة الأشراف: ٥٥٦١، ٥٥٤٢)

د نزول زمانه د سورة د نزول زمانه هم هغه ده کومه چې د سورة يونس ده ليکن په دې کې په تنبيه او انداز کې لږه سختي ده
موضوع او مباحث د دې سورة د موضوع تقرير هم هغه شان دی لکه څنګه چې د سورة يونس دی په دې دعوت فهماليش او تنبيه ده د دې سورة دعوت مختصر دی او وعظ نصيحت په کې ډېر دی او په تنبيه کې تفصيل او زور دی.
دعوت دا دی چې د دې پيغمبر خبره اومنئ. شرك پريږدی د مخلوق بندګی مه کوی او د الله تعالی بندګی اختيار کړی. او خپل دنيوی نظام په دې احساس سره قائم کړی چې په آخرت کې تاسو جواب ورکونکی ئی.
حقيقت دا دی چې چا د دنيا په ظاهری ژوند اعتماد کړی دی او د رسولانو د خبری نه ئی انکار کړی دی د هغوی انجام ډير خراب ؤو نو تاسو د هغوی د نقش قدم نه خان بچ اوساتی تنبيه دا ده چې الله تعالی ستاسو په عذاب کې روستو والی کوی نو دا په اصل کې يو مهلت دی چې الله تعالی به خپل فضل سره تاسو ته درکړی دی. که په دې مهلت کې تاسو خپل طرز عمل صحيح نه کړو نو هغه عذاب به خامخا راخی. او بيا به نی څوك واپس کولی نه شی.
د دې مضمون دپاره د خطاب په ځای باندې براه راست د قوم نوح عاديانو. ثموديانو. قوم لوط مدين والو او د فرعون د قوم د واقعاتو بيانولو نه کار اخستی شوی دی. او په دې قصو کې چې کومه خبره ښکاره ده. نو هغه دا ده. چې الله تعالی يو ځل د عذاب فيصله اوکړی نو عذاب راولی په دې کې د هيچا سره هيڅ رعايت نه کيږی که هر څوك وی. او د هر څومره بزرګی. هستی سره د هغه تعلق وی خو چې نافرمان وی نو بچ کيدی نه شی او نه ئی هغه هستی بچ کولی شی. که د پيغمبر خوئ وی او که د پيغمبر بی بی وی. او رحمت په هغه چا کيږی چې په نيغه لار روان وی. بله دا چې د کفر او ايمان په مينځ کې آخری فيصله کيږی. نو د دين فطرت دا غواړی. چې دپلار او ځوی او د خاوند او ښځی رشته دی هيرد کړی. او د الله تعالی د انصاف د تورې په شان د حق نه علاوه ټولی رشتی دی ختم کړی شی او په داسی موقعه باندې د وينی او نسب د رشتی هيڅ لحاظ نه دی پکار.
او د دې تعليم د وجی نه د بدر په جنګ کې صحابه کرامو د دې جزيی مظاهره کړی ده

٣١٠٩ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ. حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ. أَخْبَرَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ. عَنْ يَعْلَى بْنِ عَطَاءٍ. عَنْ وَكِيعِ بْنِ حُدُسٍ، عَنْ عَمِّهِ أَبِي رَزِينٍ، قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ. أَيْنَ كَانَ رَبُّنَا قَبْلَ أَنْ يَخْلُقَ خَلْقَهُ ؟ قَالَ: " كَانَ فِي عَمَاءٍ مَا تَحْتَهُ هَوَاءٌ وَمَا فَوْقَهُ هَوَاءٌ وَخَلَقَ عَرْشَهُ عَلَى الْمَاءِ ". قَالَ أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ. قَالَ يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ الْعَمَاءُ: أَيْ لَيْسَ مَعَهُ شَيْءٌ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَكَذَا رَوَى حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ. وَكِيعُ بْنُ حُدُسٍ. وَيَقُولُ شُعْبَةُ. وَأَبُو عَوَانَةَ. وَهُشَيْمٌ: وَكِيعُ بْنُ عُدُسٍ وَهُوَ أَصَحُّ.

وَأَبُو رَزِينٍ اسْمُهُ لَقِيطُ بْنُ عَامِرٍ، قَالَ: وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. ([1])

**ترجمه**: دابورزين بيان دي فرمائي چې مادرسول الله صلي الله عليه وسلم نه تپوس اوکړو الله تعالي دمخلوق پيداکولو نه مخکي چرته وو ؟ رسول الله اوفرمائيل "عماء" کي وو، نه ورنه لاندي هواء وه او نه دپاسه او خپل عرش يي په اوبو باندي جوړکړي وو، احمد بن منيع وائي زمونږ داستاذ يزيد قول دي عماء مطلب دادي چې کوم څيز ورسره نه وو.
امام ترمذي وايي داحديث حسن دي دارنګي حماد بن سلمه پخپل روايت کي خدس واسطه ذکر کړي ده او شعبه او ابو عوانه او هشيم وکيع بن عدس ذکر کړي دي.او همدازيات صحيح دي او دابو رزين نوم لقيط بن عامر دي

***************

٣١١٠ـ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنْ بُرَيْدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِي بُرْدَةَ، عَنْ أَبِي مُوسَى، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " إِنَّ اللَّهَ تَبَارَكَ وَتَعَالَى يُمْلِي، وَرُبَّمَا قَالَ: يُمْهِلُ، لِلظَّالِمِ حَتَّى إِذَا أَخَذَهُ لَمْ يُفْلِتْهُ ثُمَّ قَرَأَ وَكَذَلِكَ أَخْذُ رَبِّكَ إِذَا أَخَذَ الْقُرَى وَهِيَ ظَالِمَةٌ (هود :١٠٢) الآيَةَ".
قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ، وَقَدْ رَوَاهُ أَبُو أُسَامَةَ، عَنْ بُرَيْدٍ نَحْوَهُ، وَقَالَ: يُمْلِي. ([2])

**ترجمه** : دابو موسي اشعري رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي يقينا الله تعالي ظالم ته مهلت ورکوي مګر کله چې ده لره اونيسي نو بيا يي نه پريږدي او بيا يي دا ايت کريمه " وَكَذَلِكَ أَخْذُ رَبِّكَ إِذَا أَخَذَ الْقُرَى وَهِيَ ظَالِمَةٌ" تلاوت کړو
امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح غريب دي او همدارنګي ابو اسامه هم دبريده نه دماقبل هم معني نقل کړي دي او يملي لفظ يي استعمال کړي دي

***************

حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعِيدٍ الْجَوْهَرِيُّ، عَنْ أَبِي أُسَامَةَ، عَنْ بُرَيْدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي بُرْدَةَ، عَنْ

---

[1] ـ سنن ابن ماجه/المقدمة ١٣ (١٨١) (تحفة الأشراف : ١١١٧٦)

[2] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /تفسير هود ٣ (٤٦٨٦) . صحيح مسلم/البر والصلة ١٥ (٢٥٨٣) . سنن ابن ماجه/الفتن ٢٢ (٤٠١٨) (تحفة الأشراف : ٩٠٣٧)

جَدِّهِ أَبِي بُرْدَةَ، عَنْ أَبِي مُوسَى، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ، وَقَالَ: يُمْلِي وَلَمْ يَشُكَّ فِيهِ. [1]

ترجمه ابوبرده دخپل پلار ابوموسي اشعري رضي الله عنه په واسطه هم دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه ددي هم معني روايت نقل كړي دي او يملي لفظ يي بغير دشك نه ذكر كړي دي.

## د ابوبرده بن ابوموسي اشعري رضي الله عنه حالات

نوم عامر كنيه ابوبرده عامر دمشهور صحابي ابوموسي اشعري ځوي دى چې زيات علم يي دعبدالله بن سلام نه حاصل كړى دى او دده سره سره يي دخپل پلار نه هم حاصل كړى دى په دي باره كې حافظ ذهبي داسي ليكلي دي ابو برده بن ابي موسي اشعري الفقيه احد الائمه الاثبات (تذكرة الحفاظ).
امام نووي په تهذيب الاسماء كې ليكلي دي چې دده په توثيق دټولو اهل علمو اتفاق دى علامه ابن سعد وائي كان ثقة كثير الحديث يعني ابو برده يو داسي ثقه راوي دى چې په كثرت سره احاديث بيانوي، قاضي شريح نه پس دكوفي قاضي پاتي شوى دى (شذرات الذهب) او بيا دده دوفات نه پس دده ځوي قاضي مقرر كړى شو ۱۰۴ كې وفات شوى دى

****************

۳۱۱۱_حَدَّثَنَا بُنْدَارٌ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عَامِرٍ الْعَقَدِيُّ هُوَ عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ عَمْرٍو، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ سُفْيَانَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ، قَالَ: "لَمَّا نَزَلَتْ هَذِهِ الْآيَةُ فَمِنْهُمْ شَقِيٌّ وَسَعِيدٌ (هود: ۱۰۵) سَأَلْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقُلْتُ: يَا نَبِيَّ اللَّهِ، فَعَلَى مَا نَعْمَلُ عَلَى شَيْءٍ قَدْ فُرِغَ مِنْهُ أَوْ عَلَى شَيْءٍ لَمْ يُفْرَغْ مِنْهُ؟ قَالَ: "بَلْ عَلَى شَيْءٍ قَدْ فُرِغَ مِنْهُ وَجَرَتْ بِهِ الْأَقْلَامُ يَا عُمَرُ وَلَكِنْ كُلٌّ مُيَسَّرٌ لِمَا خُلِقَ لَهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ عَمْرٍو. [2]

**ترجمه** دعمرفاروق رضي الله عنه بيان دي فرمائي كله چې ايت كريمه "فمنهم شقي وسعيد" نازل شو نو مادرسول الله صلي الله عليه وسلم نه تپوس اوكړو چې اي دالله رسوله بيا به مونږ دځه څيز موافق عمل كوو؟ ايا دهغه څيز موافق عمل به كوو دكوم نه چې فارغيدل

---

[1] _ اورده البخاري في الجامع الصحيح /التفسير هود ۴ (۴۶۸۶) . صحيح مسلم/البر والصلة ۱۵ (۲۵۸۳) . سنن ابن ماجه/الفتن ۲۲ (۴۰۱۸) (تحفة الأشراف : ۹۰۳۷)

[2] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ۱۰۵۲۰)

شوي دي (يعني دكوم ځيز چې فيصله شوي ده) او كه دداسي ځيز مطابق به عمل كوو دكوم نه چې فارغيدل نه دي شوي (يعني لاتراوسه يي فيصله نه ده شوي) رسول الله اوفرمائيل اي عمر مونږ دهغه ځيز موافق عمل كوو دكوم نه چې فارغيدل شوي دي او زمونږ دعمل نه مخكي دغه ځيز په ضبط او تحرير كي راغلي دي ليكن خبره صرف دومره ده هر يو كس ته هغه ځيز اسان كړي شوي دي دكوم دپاره چې دده پيدائش شوي دي

امام ترمذي وايي: داحديث په دي سند حسن غريب دي او مونږ يي صرف دعبدالملك بن عمرو په سند پيژنو

***************

٣١١٢حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا أَبُو الأَحْوَصِ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَلْقَمَةَ، وَالأَسْوَدِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: " جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: إِنِّي عَالَجْتُ امْرَأَةً فِي أَقْصَى الْمَدِينَةِ وَإِنِّي أَصَبْتُ مِنْهَا مَا دُونَ أَنْ أَمَسَّهَا، وَأَنَا هَذَا فَاقْضِ فِيَّ مَا شِئْتَ. فَقَالَ لَهُ عُمَرُ: لَقَدْ سَتَرَكَ اللَّهُ لَوْ سَتَرْتَ عَلَى نَفْسِكَ. فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيْهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَيْئًا. فَانْطَلَقَ الرَّجُلُ فَأَتْبَعَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلًا فَدَعَاهُ فَتَلَا عَلَيْهِ وَأَقِمِ الصَّلَاةَ طَرَفَيِ النَّهَارِ وَزُلَفًا مِنَ اللَّيْلِ إِنَّ الْحَسَنَاتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّئَاتِ ذَلِكَ ذِكْرَى لِلذَّاكِرِينَ (هود: ١١٤) إِلَى آخِرِ الآيَةِ. فَقَالَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ: هَذَا لَهُ خَاصَّةً. قَالَ: لَا بَلْ لِلنَّاسِ كَافَّةً ".

قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَهَكَذَا رَوَى إِسْرَائِيلُ، عَنْ سِمَاكٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَلْقَمَةَ، وَالأَسْوَدِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ. وَرَوَى سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، عَنْ سِمَاكٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهُ. وَرِوَايَةُ هَؤُلَاءِ أَصَحُّ مِنْ رِوَايَةِ الثَّوْرِيِّ. وَرَوَى شُعْبَةُ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنِ الأَسْوَدِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ.

حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى النَّيْسَابُورِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ، عَنْ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، عَنِ الأَعْمَشِ، وَسِمَاكٌ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ بِمَعْنَاهُ.

حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا الْفَضْلُ بْنُ مُوسَى، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ سِمَاكٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ بِمَعْنَاهُ.

وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ الأَعْمَشَ، وَقَدْ رَوَى سُلَيْمَانُ التَّيْمِيُّ هَذَا الحَدِيثَ عَنْ أَبِي عُثْمَانَ النَّهْدِيِّ، عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. (1)

**ترجمه** دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت دي فرماني چې يوکس رسول الله صلي الله عليه وسلم ته راغي او وني وئيل چې مادمديني دلاندي حصي ديوي ښخي نه فائده واخستله په خکلولواومعانقي وغيره سره اودجماع نه علاوه مي ورسره هرڅه وکړل ، زه ستاپه وړاندي حاضريم زمادپاره چې څه سزاوي ماته ني راکړه . عمر رضي الله عنه ورته ووئيل يقيناپټاباندي الله تعالي پرده اچولي وه خوکاش چې تاپه خپل ځان باندي په خپله پرده اچولي وي . اورسول الله صلي الله عليه وسلم ورته هيڅ جواب ورنکړو او دي روان شو. بياورپسي رسول الله صلي الله عليه وسلم څوك ورولیگلو اودي ني راوغوښتلواو دا ايت کريمه ني ورته تلاوت کړو (وَأَقِمِ الصَّلَاةَ طَرَفَيِ النَّهَارِ وَزُلَفًا مِنَ اللَّيْلِ) ايت تراخره پورې نوپه خلقوکي يوکس ووئيل اي دالله رسوله ايا داحکم دده دپاره خاص دي اوکه دهرچادپاره دي؟رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل بلکه دهرچادپاره دي.

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي دارنګي ددي پشان روايت اسرائيل دسماك نه او سماك دابراهيم نه او ابراهيم دعلقمه او اسود دواړو نه او دوئ دواړو دعبدالله بن مسعود په واسطه دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه نقل کړي دي، او همدي سفيان ثوري دا روايت دسماك نه او سماك دابراهيم نه او ابراهيم دعبدالرحمن بن يزيد نه او عبدالرحمن دعبدالله په واسطه درسول الله صلي الله عليه وسلم نه مگر ددوئ روايت دسفيان درروايت نه زيات صحيح دي، شعبه دسماك بن حرب نه او سماك دابراهيم نه او ابراهيم داسود نه او اسود دعبدالله په واسطه دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه

***************

٣١١٣ـ حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، حَدَّثَنَا حُسَيْنُ بْنُ عَلِيٍّ الجُعْفِيُّ، عَنْ زَائِدَةَ، عَنْ عَبْدِ المَلِكِ بْنِ عُمَيْرٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ، قَالَ: " أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلٌ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَرَأَيْتَ رَجُلًا لَقِيَ امْرَأَةً وَلَيْسَ بَيْنَهُمَا مَعْرِفَةٌ فَلَيْسَ يَأْتِي الرَّجُلُ شَيْئًا إِلَى

---

(1) ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /مواقيت الصلاة ٤ (٥٢٦) . وتفسير هود ٤ (٤٦٨٧) . صحيح مسلم/التوبة ٧ (٢٧٦٣) . سنن ابي داود/ الحدود ٣٢ (٤٤٦٨) . سنن ابن ماجه/الإقامة ١٩٣ (١٣٩٨) . ويأتي بعد حديث (تحف الأشراف : ٩١٦٢)

امْرَأَتِهِ إِلَّا قَدْ أَتَى هُوَ إِلَيْهَا إِلَّا أَنَّهُ لَمْ يُجَامِعْهَا. قَالَ: فَأَنْزَلَ اللهُ وَأَقِمِ الصَّلَاةَ طَرَفَيِ النَّهَارِ وَزُلَفًا مِنَ اللَّيْلِ إِنَّ الْحَسَنَاتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّئَاتِ ذَلِكَ ذِكْرَى لِلذَّاكِرِينَ (هود :١١٤) فَأَمَرَهُ أَنْ يَتَوَضَّأَ وَيُصَلِّيَ. قَالَ مُعَاذٌ: فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ، أَهِيَ لَهُ خَاصَّةً أَمْ لِلْمُؤْمِنِينَ عَامَّةً؟ قَالَ: بَلْ لِلْمُؤْمِنِينَ عَامَّةً". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ لَيْسَ إِسْنَادُهُ بِمُتَّصِلٍ، عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ أَبِي لَيْلَى لَمْ يَسْمَعْ مِنْ مُعَاذٍ، وَمُعَاذُ بْنُ جَبَلٍ مَاتَ فِي خِلَافَةِ عُمَرَ، وَقُتِلَ عُمَرُ، وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ أَبِي لَيْلَى غُلَامٌ صَغِيرٌ ابْنُ سِتِّ سِنِينَ وَقَدْ رَوَى عَنْ عُمَرَ وَرَآهُ، وَرَوَى شُعْبَةُ هَذَا الْحَدِيثَ عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ عُمَيْرٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرْسَلٌ.[1]

**ترجمه** : دمعاذ بن جبل رضي الله عنه بيان دي فرمائي چې يو كس درسول الله په خدمت كي حاضر شو او عرض يي اوكړو اي دالله رسوله ديوداسي كس باره كي راته اووايه څوك چې ديوي داسي ښځي سره ملاؤ شوي وي دچا په مينځ كي چې رشته داري اومعرفت نه وي او هغه ددي سره دجماع نه علاوه نور هر څه كړي وي كوم چې يو سړي دخپلي ښځي سره كوي؟ نو دي باره كي الله تعالي دا ايت كريمه " وَأَقِمِ الصَّلَاةَ طَرَفَيِ النَّهَارِ وَزُلَفًا مِنَ اللَّيْلِ إِنَّ الْحَسَنَاتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّئَاتِ ذَلِكَ ذِكْرَى لِلذَّاكِرِينَ" نازل شو رسول الله ده ته د اودس كولو نه پس دمونځ كولو حكم اوكړو ما عرض اوكړو اي دالله رسوله دا حكم به ددغه كس دپاره خاص وي او كه دعامو مومنانو دپاره دي؟ رسول الله اوفرمائيل نه بلكه دټولو مسلمانانو دپاره عام دي.

امام ترمذي وايي: ددي حديث سند متصل نه دي ځكه چې د معاذ بن جبل نه دعبدالرحمن بن ابي ليلي سماع ثابت نه ده معاذ بن جبل دعمرفاروق دخلافت په دور كي وفات شوي وو عمر فاروق چې كله شهيد كړي شو دغه وخت كي دعبدالرحمن بن ابي ليلي عمر شپږ كاله وو او حال دادي چې هغه دعمرفاروق نه روايت نقل كړي دي بلكه صرف ليدلي يي دي. شعبه دا حديث دعبدالملك بن عمير نه او هغه دعبدالرحمن بن ابي ليلي په واسطه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه مرسل نقل كړي دي

## دمعاذ بن جبل رضي الله عنه حالات

نوم معاذ كنيه ابو عبدالرحمان لقب امام الفقهاء نذيل العلماء چې دقبيله خزرج سره يي تعلق وو او داتلسو كالو په عمر كي دمصعب بن عمير په لاس مسلمان شوی وو درسول الله صلي الله عليه وسلم ورسره ډير محبت وو او په تمامو غزواتو كي درسول الله سره شريك شوی وو چې

[1] ـ تفرد به المؤلف (أخرجه النسائي في الكبرى) (تحفة الأشراف : ١١٣٢٢)

كله يي يمن ته ليږلو نو يمن والاته يي اوليكل "اني بعثت اليكم خيراهلي " يعني ماپخپلو کسانو کې تاسو ته بهترين کس درولیږلو کله چې عمرفاروق رضي الله عنه مجلس شورا جوړه کړه نو دهغې يو رکن معاذ رضي الله عنه هم وو امیرالمؤمنین دمعاذ په باره کې اوفرمائيل "اعلمهم بالحلال والحرام معاذ بن جبل" يعني په صحابه کرامو کې دحلال او حرام په علم زيات خبردار معاذ بن جبل دی او په يو بله موقعه کې يي هم فرمائيلي وو لولا معاذ لهلك عمر.
وفات: دطاعون عمواس په کال وفات شوی وو چې عمريي ۳۲ کلونه وو دهجرت په اتلسم کال په هغه خاي کې دفن کړی شو دکوم خاي نه چې عيسى عليه السلام اسمان ته پورته کړی شوی وو

****************

۳۱۱٤_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ التَّيْمِيِّ، عَنْ أَبِي عُثْمَانَ، عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، أَنَّ رَجُلًا أَصَابَ مِنَ امْرَأَةٍ قُبْلَةً حَرَامٍ، فَأَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَأَلَهُ عَنْ كَفَّارَتِهَا فَنَزَلَتْ وَأَقِمِ الصَّلَاةَ طَرَفَيِ النَّهَارِ وَزُلَفًا مِنَ اللَّيْلِ إِنَّ الحَسَنَاتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّئَاتِ (هود :۱۱٤)، فَقَالَ الرَّجُلُ: أَلِي هَذِهِ يَا رَسُولَ اللَّهِ، فَقَالَ: لَكَ وَلِمَنْ عَمِلَ بِهَا مِنْ أُمَّتِي". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه** دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چې يو کس يوه غيرمحرمه په ناجائزه طريقه بښکل کړه او بيا درسول الله په خدمت کې حاضر شو او عرض يي اوکړو چې ددې کفاره څه ده تردې چې ددې باره کې دا ايت کريمه " وَأَقِمِ الصَّلَاةَ طَرَفَيِ النَّهَارِ وَزُلَفًا مِنَ اللَّيْلِ إِنَّ الْحَسَنَاتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّئَاتِ ذَلِكَ ذِكْرَى لِلذَّاكِرِينَ "بازل شو دي کس تپوس اوکړو ايا دا کفاره صرف زما دپاره ده، رسول الله اوفرمائيل دا ستادپاره ده او زما په امت کې دهر هغه کس دپاره ده چاچې دا غلطي کړې وي
امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي.

****************

۳۱۱٥_حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، أَخْبَرَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا قَيْسُ بْنُ الرَّبِيعِ، عَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَوْهَبٍ، عَنْ مُوسَى بْنِ طَلْحَةَ، عَنْ أَبِي الْيَسَرِ، قَالَ: أَتَتْنِي امْرَأَةٌ تَبْتَاعُ

---
[1] ـ انظر حديث رقم ۳۱۱۲ (تحفة الأشراف: ۹۳۸٦)

تَمْرًا. فَقُلْتُ: إِنَّ فِي الْبَيْتِ تَمْرًا أَطْيَبَ مِنْهُ. فَدَخَلَتْ مَعِي فِي الْبَيْتِ فَأَهْوَيْتُ إِلَيْهَا فَتَقَبَّلْتُهَا. فَأَتَيْتُ أَبَا بَكْرٍ فَذَكَرْتُ ذَلِكَ لَهُ، قَالَ: اسْتُرْ عَلَى نَفْسِكَ وَتُبْ وَلَا تُخْبِرْ أَحَدًا. فَلَمْ أَصْبِرْ فَأَتَيْتُ عُمَرَ فَذَكَرْتُ ذَلِكَ لَهُ. فَقَالَ: اسْتُرْ عَلَى نَفْسِكَ وَتُبْ وَلَا تُخْبِرْ أَحَدًا. فَلَمْ أَصْبِرْ فَأَتَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرْتُ ذَلِكَ لَهُ. فَقَالَ: "أَخَلَفْتَ غَازِيًا فِي سَبِيلِ اللهِ فِي أَهْلِهِ بِمِثْلِ هَذَا حَتَّى تَمَنَّى أَنَّهُ لَمْ يَكُنْ أَسْلَمَ إِلَّا تِلْكَ السَّاعَةَ حَتَّى ظَنَّ أَنَّهُ مِنْ أَهْلِ النَّارِ. قَالَ: وَأَطْرَقَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَوِيلًا حَتَّى أَوْحَى اللهُ إِلَيْهِ وَأَقِمِ الصَّلَاةَ طَرَفَيِ النَّهَارِ وَزُلَفًا مِنَ اللَّيْلِ إِلَى قَوْلِهِ ذِكْرَى لِلذَّاكِرِينَ (هود: ١١٤). قَالَ أَبُو الْيَسَرِ: فَأَتَيْتُهُ فَقَرَأَهَا عَلَيَّ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقَالَ أَصْحَابُهُ: يَا رَسُولَ اللهِ، أَلِهَذَا خَاصَّةً أَمْ لِلنَّاسِ عَامَّةً؟ قَالَ: "بَلْ لِلنَّاسِ عَامَّةً". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ، وَقَيْسُ بْنُ الرَّبِيعِ ضَعَّفَهُ وَكِيعٌ وَغَيْرُهُ، وَأَبُو الْيَسَرِ هُوَ كَعْبُ بْنُ عَمْرٍو. قَالَ: وَرَوَى شَرِيكٌ، عَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَبْدِ اللهِ هَذَا الْحَدِيثَ مِثْلَ رِوَايَةِ قَيْسِ بْنِ الرَّبِيعِ. قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ أَبِي أُمَامَةَ، وَوَاثِلَةَ بْنِ الْأَسْقَعِ، وَأَنَسِ بْنِ مَالِكٍ. (1)

**ترجمه** : دابواليسر رضي الله عنه بيان دي فرمائي چې يوه ښځه ماته دكجورو اخستلو دپاره راغله ما ورته اووئيل كومې كجوري چې دلته ته وينې ددينه ښې كجوري زمونږ په كور كې پرتې دي چنانچې هغه ماسره كور ته راغله او زه ورته مائل شوم تردې چې بيا ابوبكر رضي الله عنه ته ورغلم او واقعه مې ورته بيان كړه ابوبكر اووئيل پخپل ځان باندي پرده واچوه او توبه اوباسه او بل چاته دا واقعه مه ذكركوه، ليكن زما نه صبر اونه شوچنانچې عمرفاروق رضي الله عنه ته ورغلم او هغه ته مې هم ددې واقعې ذكر اوكړو نو هغه راته هم دځپل ځان دپردې اچولو خبره اوكړه او دتوبې كولو حكم يې راته اوكړو او بل چاته په نه بيانولو يې راته اصرار اوكړو مګر زما زړه نه منل او په دې خبره قائم پاتې نشوم تردې چې رسول الله صلي الله عليه وسلم ته ورغلم او هغوئ ته مې هم خپله واقعه بيان كړه رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل ايا تا ديو غازي دښځې سره څوك چې دالله تعالي په لار كې جهاد ته تلې دي دهغه په غير موجودګئ كې داسې حركت كړې دې؟ درسول الله په دومره خبرې كولو سره په ماكې دومره غيرت راغلو چې ما دا تمنا اوكړه چې كاش ما ددينه مخكې ايمان نه وې راوړې بلكه همدا اوس مې راوړې وې دهغه دا خيال راغلو چې زه جهنمي شوم رسول الله صلي الله عليه وسلم په سوچ كې ډير ساعت سر ټيټ كړې وو تردې چې دوحي په ذريعه ورباندې دا ايت "

(1) ـ تفرد به المؤلف (أخرجه النسائي في الكبرى) (تحفة الأشراف: ١١١٢٥)

وَأَقِمِ الصَّلاةَ طَرَفَيِ النَّهَارِ وَزُلَفًا مِنَ اللَّيْلِ إِنَّ الْحَسَنَاتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّئَاتِ ذَلِكَ ذِكْرَى لِلذَّاكِرِينَ
" نازل شو ابواليسر واني زه درسول الله دخوانه راتلم نو هغوئ راته دا ايت كريمه بيان كړو صحابه كرامو عرض اوكړو اي دالله رسوله ايا دا بشارت دده دپاره خاص دي او كه دټولو خلقو دپاره عام دي رسول الله اوفرمائيل بالكل نه بلكه دټولو خلقو دپاره عام دي
امام ترمذي وايي. داحديث حسن صحيح دي قيس بن ربيع لره وكيع وغيره ضعيف ګڼلي دي او دابواليسر نوم كعب بن عمرو دي، شريك دعثمان بن عبدالله نه داحديث دقيس بن ربيع دروايت هم معني نقل كړي دي، او په دي باب كي دابوامامه، واثله بن اسقع، او انس بن مالك رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي

****************

## ۱۳_باب وَمِنْ سُورَةِ يُوسُفَ

### دسورة يوسف دبعضي ايتونو تفسير

د دى سورة نوم هم د علامي په طور سورة يوسف دى خكه چې په دى سورة كي د يوسف عليه السلام واقعه بيان شوى ده.

**شان نزول:** د دى سورة د مضمون نه معلوميږى چې دا سورة هم دَ مكى په آخرى دور كي نازل شوى دى. كله چې مشركينو په دى خبره باندى غور كولو چې نبى كريم صلى الله عليه وسلم قتل كړو يا ئى دَ ملك نه اوباسو يا ئى قيد كړو په دى زمانه كي بعض كافرانو (غالبًا دَ يهوديانو په اشاره) دَ نبى صلى الله عليه وسلم نه دَ امتحان اغستلو دَپاره دَ هغوى صلى الله عليه وسلم نه سوال اوكړو. چې بنى اسرائيل دَ مصر نه په څه وجه وتلى وو. عرب د دى قصى نه خبر نهٔ وو. دَ نبى صلى الله عليه وسلم نه ئى هم دَ دى په باره كي څه نهٔ وو. اوريدلى. نو د دوى دا خيال وو. چې نبى صلى الله عليه وسلم به هيڅ جواب اونه كړى. يا به دَ چا يهودى نه دَ دى په باره كي تپوس اوكړى او نبى صلى الله عليه وسلم به ملامته شى نو الله تعالى فوراً دَ يوسف عليه السلام قصه نازله كړه. او مخالفين ملامته شول او دوى ته اوخودلى شول چې څنګه دَ يوسف عليه السلام رونړو دَ خپل رور سره كړى وو. نو تاسو هم داسى غواړى.
په دى قصه كي دوه ضرورى مقصدونه دى يو دا چه دَ نبى صلى الله عليه وسلم دَ نبوت اثبات او ثبوت. او هغه هم دَ مخالفينو په غوختلى شوى مطالبه او امتحان كي دا خبره ثابته كړى شوى ده چې دا پغمبر دَ خان نه او نه دَ بل چا اوريدلى شوى خبرى نه بيانوى بلكه دهٔ ته وحى كيږى. دا مقصد په ايت.۳ او ۷ كي واضح كړى شوى دى او په ايت.۱۰۲، ۱۰۳ كي دَ

دی تصریح شوی ده
دویم مقصد دا دی چې دَ سردارانو دَ قریشو او دَ نبی صلی الله علیه وسلم په مینځ کي کومه معامله چليدله نو دَ دی دپاره دَ یوسف علیه السلام او دَ هغه دَ رونړو واقعه بیان کړی شوی ده چې تاسو د خپل رور سره څه کوئی نو داسی یوسف علیه السلام سره هم شوی وؤ لیکن څنګه چې هغوی په خپل مقصد کي کامیاب نه شول او آخر کار دَ خپل رور په خپو کي پریوتل چې هغوی دۀ لره په کوهی کي غورځولی وو.
دا رنګ ستاسو مخالفت هم دَ الله تعالی دَ تدبیر په وړاندی کامیابیدلی نشی او تاسو به هم دَ دی خپل رور (نبی صلی الله علیه وسلم) په خپو کي پریوځی او دَ دۀ نه به دَ رحم وکرم سوال کوئی
حقیقت کي د یوسف علیه السلام واقعه یو پیشن ګوئی ده. دَ نبی صلی الله علیه وسلم او صحابه کرامو دَ کامیابی او دَ اسلامی حکومت دَ قائم کیدلو او دَ جاهلیت دَ مغلوب کیدلو.
دا رنګ دَ دی سورة دَ نازلیدلو نه یو نیم یا ذوه کاله پس قریشو د یوسف علیه السلام د رونړو په شان دَ نبی صلی الله علیه وسلم دَ قتل سازش تیار کړو او نبی صلی الله علیه وسلم په هجرت باندی مجبور شو. بیا دَ مشرکینو د. توقعاتو خلاف په مدینه کي دَ جلا وطنۍ باوجود مومنانو ته اقتدار ملاؤ شو. لکه چې یوسف علیه السلام ته حاصل شوی وؤ بیا دَ فتح مکه په وخت کي هغه صورت وؤ. کوم چې دَ یوسف علیه السلام په اقتدار کي دَ خپلو رونړو سره وؤ. او دَ یوسف علیه السلام رونړه په انتهائی عاجزی سره مصر ته داخل شول. او د یوسف علیه السلام نه ئی د رحم وکرم سوال اوکړو. اوونیل ئی. تَصَدَّقْ عَلَيْنَا. إِنَّ اللهَ يَجْزِي الْمُتَصَدِّقِيْنَ. (په مونږه باندی صدقه اوکړه. یقینا الله تعالی صدقه کوونکو ته جزا ورکوی) نو یو سف علیه السلام د بد اخستلو دَ طاقت باوجود اوفرمائیل: لَاتَثْرِيْبَ عَلَيْكُمُ الْيَوْمَ. يَغْفِرُ اللهُ لَكُمْ. وَهُوَ أَرْحَمُ الرَّاحِمِيْنَ. (نن په تاسو څه ملامتیا نیشته. الله تعالی دی تاسو معاف کړی او هغه دَ ټولو رحم کوونکو نه زیات رحم کوونکی دی)
دا رنګ چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم په مخکي شکست خوړونکی قریش په ټیټ سر اودریدل او رسول الله صلی الله علیه وسلم د هر ظلم بدله اخستلی شوه. نو نبی صلی الله علیه وسلم هغوی ته اوفرمائیل چې ستاسو څه خیال دی چې زه د تاسو سره څه معامله کوونکی یم نو هغوی اونیل أَخٌ كَرِيْمٌ وَابْنُ كَرِيْمٍ. ته کرم کونکی رور ئی او د کرم کونکی رور خوئ ئی. نو نبی صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل فَإِنِّيْ أَقُوْلُ لَكُمْ كَمَا قَالَ يُوْسُفُ لِإِخْوَتِهِ لَا تَثْرِيْبَ عَلَيْكُمُ الْيَوْمَ. اِذْهَبُوْا فَأَنْتُمُ الطُّلَقَاءُ (څه تاسو ته هغه جواب درکووم کوم چې یوسف

عليه السلام خبلو زونړو نه وركړی وو چې په تاسو څه ملامتيا نيشته خې تاسو ازاد يې

٣١١٦_حَدَّثَنَا الحُسَيْنُ بْنُ حُرَيْثٍ الخُزَاعِيُّ المَرْوَزِيُّ، حَدَّثَنَا الفَضْلُ بْنُ مُوسَى، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ الكَرِيمَ ابْنَ الكَرِيمِ ابْنِ الكَرِيمِ ابْنِ الكَرِيمِ يُوسُفُ بْنُ يَعْقُوبَ بْنِ إِسْحَاقَ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، قَالَ: وَلَوْ لَبِثْتُ فِي السِّجْنِ مَا لَبِثَ يُوسُفُ ثُمَّ جَاءَنِي الرَّسُولُ أَجَبْتُ ثُمَّ قَرَأَ: فَلَمَّا جَاءَهُ الرَّسُولُ قَالَ ارْجِعْ إِلَى رَبِّكَ فَاسْأَلْهُ مَا بَالُ النِّسْوَةِ اللَّاتِي قَطَّعْنَ أَيْدِيَهُنَّ (يوسف :٥٠) قَالَ: وَرَحْمَةُ اللهِ عَلَى لُوطٍ إِنْ كَانَ لَيَأْوِي إِلَى رُكْنٍ شَدِيدٍ إِذْ قَالَ: لَوْ أَنَّ لِي بِكُمْ قُوَّةً أَوْ آوِي إِلَى رُكْنٍ شَدِيدٍ (هود :٨٠ فَمَا بَعَثَ اللهُ مِنْ بَعْدِهِ نَبِيًّا إِلَّا فِي ذِرْوَةٍ مِنْ قَوْمِهِ".[1]

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كريم بن كريم بن كريم بن كريم يوسف بن يعقوب بن اسحاق بن ابراهيم دي او بيا رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل خومره موده چې يوسف عليه السلام په جيل كې تيره كړې وه كه دومره موده زه په جيل كې پاتې شوي وې نو دقاصد دراتلو سره سم به مې فورا دبادشاه دعوت قبول كړي وو او بيا رسول الله صلي الله عليه وسلم دا ايت كريمه تلاوت كړو "فَلَمَّا جَاءَهُ الرَّسُولُ قَالَ ارْجِعْ إِلَى رَبِّكَ فَاسْأَلْهُ مَا بَالُ النِّسْوَةِ اللَّاتِي قَطَّعْنَ أَيْدِيَهُنَّ " او بيايې اوفرمائيل دالله رحمت دې وي په لوط عليه السلام هغه خو پناهې حاصلوله ركن شديد ته چې ونيلې يې وو " لَوْ أَنَّ لِي بِكُمْ قُوَّةً أَوْ آوِي إِلَى رُكْنٍ شَدِيدٍ" ارشاد نبوي دې چې بيا ددينه پس الله تعالي نه دې راليږلې مگر هم ددغه قوم نه يې ليږلې دي

***************

حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا عَبْدَةُ، وَعَبْدُ الرَّحِيمِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، نَحْوَ حَدِيثِ الفَضْلِ بْنِ مُوسَى، إِلَّا أَنَّهُ قَالَ: مَا بَعَثَ اللهُ بَعْدَهُ نَبِيًّا إِلَّا فِي ثَرْوَةٍ مِنْ قَوْمِهِ. قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرٍو: الثَّرْوَةُ الكَثْرَةُ وَالمَنَعَةُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا أَصَحُّ مِنْ رِوَايَةِ الفَضْلِ بْنِ مُوسَى وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. ([1])

**ترجمه** عبدالرحيم بن دمحمد بن عمرو نه دفضل بن موسي دحديث پشان روايت نقل كړي دي مگر دهغه دحديث الفاظ دادي " مَا بَعَثَ اللهُ بَعْدَهُ نَبِيًّا إِلَّا فِي ثَرْوَةٍ مِنْ قَوْمِهِ" مگر معني ددواړو يو ده مگر محمد بن عمرو وائي چې معني يې دكثرت او قوت ده او دا حديث دفضل

---

[1] _ تفرد به المؤلف (أخرجه النسائي في الكبرى) وانظر مسند احمد (٢/٣٣٢، ٣٨٤) (تحفة الأشراف : ١٥٠٨١)

6/38

بن موسي دروايت نه زيات صحيح دي
امام ترمذي وايي داحديث حسن دي
***************

## ١٤ـ باب وَمِنْ سُورَةِ الرَّعْدِ

### دسورة رعد دبعضي ايتونو تفسير

٣١١٧ـ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، أَخْبَرَنَا أَبُو نُعَيْمٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْوَلِيدِ، وَكَانَ يَكُونُ فِي بَنِي عِجْلٍ، عَنْ بُكَيْرِ بْنِ شِهَابٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: أَقْبَلَتْ يَهُودُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالُوا: يَا أَبَا الْقَاسِمِ، أَخْبِرْنَا عَنِ الرَّعْدِ مَا هُوَ ؟ قَالَ: " مَلَكٌ مِنَ الْمَلَائِكَةِ مُوَكَّلٌ بِالسَّحَابِ، مَعَهُ مَخَارِيقُ مِنْ نَارٍ يَسُوقُ بِهَا السَّحَابَ حَيْثُ شَاءَ اللَّهُ. فَقَالُوا: فَمَا هَذَا الصَّوْتُ الَّذِي نَسْمَعُ ؟ قَالَ: زَجْرُهُ بِالسَّحَابِ إِذَا زَجَرَهُ حَتَّى يَنْتَهِيَ إِلَى حَيْثُ أُمِرَ. قَالُوا: صَدَقْتَ. فَأَخْبِرْنَا عَمَّا حَرَّمَ إِسْرَائِيلُ عَلَى نَفْسِهِ ؟ قَالَ: اشْتَكَى عِرْقَ النَّسَا فَلَمْ يَجِدْ شَيْئًا يُلَائِمُهُ إِلَّا لُحُومَ الْإِبِلِ وَأَلْبَانَهَا فَلِذَلِكَ حَرَّمَهَا. قَالُوا: صَدَقْتَ ". قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ. (2)

**ترجمه** : دابن عباس رضي الله عنهمانه مروي دي چې يويهودي دنبي كريم صلي الله عليه وسلم په خدمت كي حاضر شو او ونيل يي اي ابوالقاسم مونږ ته درعد باره كي معلومات راكړه چې څه څيز دي رسول الله اوفرمائيل دا په فرشتو كي يوه فرشته ده چې وريځي ورته سپارلي شوي دي او د اور كوړي ورسره دي چې دالله دمشيت مطابق ورباندي وريځي شړي، هغه اوونيل دا كوم اواز چې مونږ اورو دا دڅه څيز دي رسول الله اوفرمائيل دا دهغي درټلو دي هغه وريځو لره رټي ترڅو چې دحكم مطابق رواني شي بهودي اوونيل رښتيا دي اوونيل او بيا يي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه تپوس اوكړو چې اسرائيل (يعقوب) په خان باندي څه څيز حرام كړي دي رسول الله اوفرمائيل په هغه باندي عرق النساء بيماري وه او هغه ته داوښ دغوښي او شودو نه علاوه بل مناسب څيز نه ملاويدو نو خكه يي دا په خان باندي حرام كړل يهودي اوونيل رښتيا دي اوونيل.

امام ترمذي وايي. داحديث حسن صحيح غريب دي.

---

1 ـ انظر ماقبله (تحفة الأشراف ١٥٠٢٣، ١٥٠٥٥)

2 تفرد به المؤلف (أخرجه النسائي في الكبرى) (تحفة الأشراف: ٥٤٢٥)

***************

٣١١٨_حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ خِدَاشٍ البَغْدَادِيُّ، حَدَّثَنَا سَيْفُ بْنُ مُحَمَّدٍ الثَّوْرِيُّ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فِي قَوْلِهِ: وَنُفَضِّلُ بَعْضَهَا عَلَى بَعْضٍ فِي الأُكُلِ (الرعد :٤)، قَالَ: " الدَّقَلُ وَالفَارِسِيُّ وَالحُلْوُ وَالحَامِضُ ". قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَقَدْ رَوَاهُ زَيْدُ بْنُ أَبِي أُنَيْسَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ نَحْوَ هَذَا، وَسَيْفُ بْنُ مُحَمَّدٍ هُوَ أَخُو عَمَّارِ بْنِ مُحَمَّدٍ، وَعَمَّارٌ أَثْبَتُ مِنْهُ وَهُوَ ابْنُ أُخْتِ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ. (١)

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چې نبي كريم صلي الله عليه وسلم دالله تعالي دقول "ونفضل بعضها علي بعض في الاكل" باره كي اوفرمائيل ددينه مراد ردي او اوچې كجوري دي، او ددينه مراد فارسي كجوري دي او ددينه مراد خوږي او تروشي كجوري دي.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن غريب دي، زيد بن ابي انيسه داعمش نه ددي پشان روايت نقل كړي دي او سيف بن محمد چې دعمار بن محمد ورور دي او عمار دده نه زيات ثقه دي او دسفيان ثوري دخور خوي دي هم ددي پشان روايت بيان كړي دي.

***************

## ١٥_بَاب وَمِنْ سُورَةِ إِبْرَاهِيمَ عَلَيْهِ السَّلاَمُ

### دسورة ابراهيم دبعضي ايتونو تفسير

دَ دی سورة نوم دَ ايت. ٣٥ دَ جملي واذ قال ابراهيم رب اجعل هذا البلد امنا ، نه اخستلی شوی دی. دَ دی نوم دا مطلب نه دی چې په دی كي دَ ابراهيم عليه السلام سوانح عمری بيان شويده بلكه دَ نورو سورتونو په شان دَ علامت په طور دا دَ دی سورة نوم دی يعنی هغه سورة چې په هغی كي دَ ابراهيم عليه السلام ذكر دی.

**شان نزول.** دَ دی سورة عام انداز بيان دَ مكی دَ اخری دور دَ سورتونو په شان دی او دَ دی زمانه دَ نزول دَ سورة رعد دَ زمانی سره نزدی معلوميږی خصوصا دَ ايت ١٣ دَ الفاظونه صفا معلوميږی چې په مكه كي په مومنانو باندی ظلمونه كيدل او انتهاء ته رسيدلی وو

٣١١٩_حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، حَدَّثَنَا أَبُو الوَلِيدِ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ شُعَيْبِ بْنِ

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٢٣٩١)

الحَبْحَابِ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: " أُتِيَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِقِنَاعٍ عَلَيْهِ رُطَبٌ، فَقَالَ: "مَثَلُ كَلِمَةً طَيِّبَةً كَشَجَرَةٍ طَيِّبَةٍ أَصْلُهَا ثَابِتٌ وَفَرْعُهَا فِي السَّمَاءِ ٢٤) تُؤْتِي أُكُلَهَا كُلَّ حِينٍ بِإِذْنِ رَبِّهَا (ابراهيم :٢٤ - ٢٥. قَالَ: هِيَ النَّخْلَةُ وَمَثَلُ كَلِمَةٍ خَبِيثَةٍ كَشَجَرَةٍ خَبِيثَةٍ اجْتُثَّتْ مِنْ فَوْقِ الأَرْضِ مَا لَهَا مِنْ قَرَارٍ (ابراهيم :٢٦ قَالَ: هِيَ الحَنْظَلُ ". قَالَ: فَأَخْبَرْتُ بِذَلِكَ أَبَا العَالِيَةِ. فَقَالَ: صَدَقَ وَأَحْسَنَ. (١)

**ترجمه** دانس بن مالك رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم ته د تازه او پخو كجورو يوه تكري راوړلي شوه رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمانيل "مَثَلُ كَلِمَةً طَيِّبَةً كَشَجَرَةٍ طَيِّبَةٍ أَصْلُهَا ثَابِتٌ وَفَرْعُهَا فِي السَّمَاءِ ٢٤) تُؤْتِي أُكُلَهَا كُلَّ حِينٍ بِإِذْنِ رَبِّهَا" يعني مثال د پاكي كلمي د پاكي وني پشان دي چي جرړي يي په زمكه كي مضبوطي وي او او بناخونه يي په اسمان كي وي او وركوي ميوه خپله هر وخت په حكم د رب خپل. په دي ايت كي دبيكاره بوټي نه مراد دمرعوني بوټي دي شعيب بن حجاب واني ما ددي حديث ذكر ابو العاليه ته اوكړو هغه اوونيل هغه رښتيا او صحيح ونيلي دي

******************

حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ شُعَيْبِ بْنِ الحَبْحَابِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ نَحْوَهُ بِمَعْنَاهُ، وَلَمْ يَرْفَعْهُ وَلَمْ يَذْكُرْ قَوْلَ أَبِي العَالِيَةِ، وَهَذَا أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ حَمَّادِ بْنِ سَلَمَةَ، وَرَوَى غَيْرُ وَاحِدٍ مِثْلَ هَذَا مَوْقُوفًا وَلَا نَعْلَمُ أَحَدًا رَفَعَهُ غَيْرَ حَمَّادِ بْنِ سَلَمَةَ، وَرَوَاهُ مَعْمَرٌ، وَحَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ وَلَمْ يَرْفَعُوهُ. حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَبْدَةَ الضَّبِّيُّ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ شُعَيْبِ بْنِ الحَبْحَابِ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ نَحْوَ حَدِيثِ قُتَيْبَةَ وَلَمْ يَرْفَعْهُ. (٢)

**ترجمه** په مذكوره سند هم دانس بن مالك رضي الله عنه نه دماقبل هم معني روايت مروي دي او مرفوع يي نه دي بيان كړي او دابوالعاليه قول يي نه دي ذكر كړي او دا حديث دحماد بن سلمه دحديث نه زيات صحيح دي او ددينه علاوه نورو راويانو هم ددي پشان موقوف روايت بيان كړي دي او دحماد بن سلمه نه علاوه مونږ نه بل څوك نه دي معلوم چي دا يي مرفوع بيان كړي وي دا رنګي دا روايت معمرو او حماد بن زيد او نورو راويانو هم بيان كړي

1 تفرد به المؤلف (أخرجه النسائي في الكبرى)

2 تفرد به المؤلف (أخرجه النسائي في الكبرى)

دي مکر مرفوع يې نه دي ذکر کړي

**************

٣١٢٠_حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، أَخْبَرَنِي عَلْقَمَةُ بْنُ مَرْثَدٍ، قَالَ: سَمِعْتُ سَعْدَ بْنَ عُبَيْدَةَ يُحَدِّثُ، عَنِ الْبَرَاءِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي قَوْلِ اللَّهِ تَعَالَى: يُثَبِّتُ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَفِي الآخِرَةِ (إبراهيم :٢٧) قَالَ: "فِي الْقَبْرِ إِذَا قِيلَ لَهُ مَنْ رَبُّكَ وَمَا دِينُكَ وَمَنْ نَبِيُّكَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([1])

**ترجمه** دبراء بن عازب رضي الله عنه بيان دي فرمائي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم دايت کريمه " يُثَبِّتُ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَفِي الآخِرَةِ " داسې تفسير بيان کړو چې دثابت ساتلو نه مراد په قبر کې هغه وخت کې ثابت ايخودل دي کله چې په قبر کې دمړي نه دا تپوس اوکړي شي "من ربك" يعني ستا رب څوك دی؟ "ومادينك" او ستا دين کوم يو دی؟ "ومن نبيك" ستا نبي څوك دی؟.

امام ترمذي وايي. داحديث حسن صحيح دي

****************

٣١٢١_حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ دَاوُدَ بْنِ أَبِي هِنْدٍ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ مَسْرُوقٍ، قَالَ: "تَلَتْ عَائِشَةُ هَذِهِ الآيَةَ يَوْمَ تُبَدَّلُ الأَرْضُ غَيْرَ الأَرْضِ (إبراهيم :٤٨) قَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، فَأَيْنَ يَكُونُ النَّاسُ؟ قَالَ: عَلَى الصِّرَاطِ". قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ وَقَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ هَذَا الْوَجْهِ عَنْ عَائِشَةَ. ([2])

**ترجمه** دمسروق بيان دي فرمائي چې عائشه رضي الله عنها "يوم تبدل الارض غير الارض" اولوستلو او سوال يې اوکړو اي دالله رسوله دغه وخت کې به خلق چرته وي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل "علي الصراط" يعني په پل صراط باندي به وي

---

[1] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /الجنائز ٨٦ (١٣٦٩) وتفسير سورة ابراهيم ٢ (٤٦٩٩) صحيح مسلم الجنة ١٧ (٢٨٧١) . سنن ابي داود/ السنة ٢٧ (٤٧٥٠) سنن النسائي/الجنائز ١١٤ (٢٠٥٩) سنن ابن ماجه/الزهد ٣٢ (٤٢٦٩) (تحفة الأشراف : ١٧٦٢) (وانظر أيضا ماعند د برقم ٣٢١٢، و٣٨٥٣)

[2] ـ صحيح مسلم/المنافقين ٢ (٢٧٩١) . سنن ابن ماجه/الزهد ٣٣ (٤٢٧٩) (تحفة الأشراف : ١٧٦١٧) . و مسند احمد (٣٥/٦، ١٠١، ١٣٤، ٢١٨) . وسنن الدارمي/الرقاق ٨٨ (٢٨٥١)

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي او دعائشه رضي الله عنها نه دا حديث په نورو سندونو هم مروي دي

***************

## ١٦_باب وَمِنْ سُورَةِ الْحِجْرِ

### دسورة حجر دبعضي ايتونو تفسير

### شان نزول

د دی سورة نوم د ایت ٨٠ د فقری كَذَّبَ اَصْحَابُ الْحِجْرِ الْمُرْسَلِيْنَ. نه اخستى شوى دى
د دی سورة په مضمونو باندی دَ غور کولو نه معلومیږی چې دَ دی دَ نزول زمانه دَ سورة ابراهیم علیه السلام سره متصل ده. او دَ دی په پس منظر کي دوه ځیزونه بالکل ښکاره دی یو دا چې دَ نبی صلی الله علیه وسلم په دعوت څه زمانه تیره شوی وه. او دَ مخالفینو ضد او عناد توقی مزاحمت او ظلم وستم حد ته رسیدلی وه. په دی کي دَ فهمائش اندازکم دی او دَ انذار انداز ډیر دی
بله دا چې دَ خپل قوم او دَ انکار په وجه نبی صلی الله علیه وسلم ډیر ستړی شوی وؤ او نبی صلی الله علیه وسلم به هر وخت دَ قوم دَ دی رویې نه په پریشانئی کي وؤ. نو په دی کي الله تعالی نبی صلی الله علیه وسلم ته تسلی ورکړی ده.
موضوع او مزکزی مضمون. هم دغه دوه خبری په دی سورة کي بیان شوی دی. هغه خلقو ته تنبه ده کوم چې انکار کوی او دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم پوری توقی مسخری کولی او دَ نبی په لاړ کي به نی بندونه جوړول. او نبی صلی الله علیه وسلم ته تسلی هم ده او ورسره نی دَ فهمائش او نصیحت دپاره دَ توحید دلیلونه هم ذکر کړی دی او دَ وعظ او نصیحت په طور دَ عبرت دپاره نی دَ ادم علیه السلام او ابلیس واقعه هم بیان کړي ده

٣١٢٢_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا نُوحُ بْنُ قَيْسٍ الْحُدَّانِيُّ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مَالِكٍ، عَنْ أَبِي الْجَوْزَاءِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: " كَانَتِ امْرَأَةٌ تُصَلِّي خَلْفَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَسْنَاءُ مِنْ أَحْسَنِ النَّاسِ، فَكَانَ بَعْضُ الْقَوْمِ يَتَقَدَّمُ حَتَّى يَكُونَ فِي الصَّفِّ الْأَوَّلِ لِئَلَّا يَرَاهَا، وَيَسْتَأْخِرُ بَعْضُهُمْ حَتَّى يَكُونَ فِي الصَّفِّ الْمُؤَخَّرِ فَإِذَا رَكَعَ نَظَرَ مِنْ تَحْتِ إِبْطَيْهِ فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى وَلَقَدْ عَلِمْنَا الْمُسْتَقْدِمِينَ مِنْكُمْ وَلَقَدْ عَلِمْنَا الْمُسْتَأْخِرِينَ (الحجر :٢٤)"

قَالَ أَبُو عِيسَى: وَرَوَى جَعْفَرُ بْنُ سُلَيْمَانَ هَذَا الْحَدِيثَ عَنْ عَمْرِو بْنِ مَالِكٍ، عَنْ أَبِي الْجَوْزَاءِ نَحْوَهُ.

وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَهَذَا أَشْبَهُ أَنْ يَكُونَ أَصَحَّ مِنْ حَدِيثِ نُوحٍ.(١)

**ترجمه** - دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما بيان دي يوي ښائسته ښځي به (دښځو په صف كي) په رسول الله صلي الله عليه وسلم پسي مونځ كولو نو بعضي كسان به دمخكي كيدو په حال كي اولني صف ته تلل ددي دپاره چې په دي بې نظر اونه لګي او بعضي كسان به دمخكي صف نه شاته راتلل (چې كوم صف دښځو دصف سره پيوست وو په هغي كي به اودريدل) او بيا چې به كله ركوع ته تلل نو پخپلو ترخونو لاندي به يي ورته كتل دي وخت كي الله تعالي دا ايت كريمه " وَلَقَدْ عَلِمْنَا الْمُسْتَقْدِمِينَ مِنكُمْ وَلَقَدْ عَلِمْنَا الْمُسْتَأْخِرِينَ " اويقينا پيژنومونږه دمخكيني ستاسونه اويقينا پيژنوروستني خلق ، نازل كړو

امام ترمذي وايي جعفر بن سليمان دا حديث دعمرو بن مالك نه او هغه دابوالجوزاء نه په همدي مضمون نقل كړي دي او په سند كي يي دابن عباس ذكر نه دي كړي په دي كي ددي خبري زيات امكان دي چې دا حديث دنوح دحديث نه زيات صحيح او درست وي

**تشريح** : ... يعني زمونږ نه ستاسو هيڅ حالت پټ نه دي ، په مخكي ايت كي يي دخپل قدرت كامله دليل بيان كړي دي نوپدي ايت كي يي هم دخپل علم داحاطي اظهار اوكړو كوم چې دقدرت دليل دي، علامه بغوي ليكلي دي ابن عباس رضي الله عنهما فرمائيلي دي د مستقدمين نه مراد مړي او دمستاخرين نه مراد ژوندي دي. دشعبي قول دي چې ددينه مخكني او وروستني خلق مراد دي دعكرمه قول دي دمستقدمين نه هغه خلق مراد دي څوك چې پيدا شوي دي اودخپلو پلارانو دشاګانونه وتلي وي اودمستاخرين نه هغه خلق مراد دي څوك چې لاتراوسه نه دي پيدا شوي اونه دپلرونو دشاګانو نه وتلي وي

د امام مجاهد رحمة الله عليه په نزد تير شوي اقوام مستقدمين دي او امت محمديه مستاخرين دي . دحسن قول دي په اطاعت اوخير كي مخكي كيدونكي مستقدمين دي اوپدي كي سستي كونكي مستاخرين دي

دبعضي علماؤ قول دي چې دمستقدمين اومستاخرين نه مراد دمونځ كونكو مخكني او وروستني صفونه دي، دابن مردويه بيان دي چې داود بن صالح دسهل بن حنيف انصاري نه تپوس اوكړو چې ايا دا ايت دجهاد په باره كي نازل شوي دي (يعني ايا دمستقدمين اومستاخرينو نه مراد مجاهدين دي؟) سهل اوفرمائيل نه. ددي نزول دمونځ كونكو دصفونو متعلق شوي دي. دمقاتل په نزد ددينه په جهاد كي مخكي او وروسته صفونه مراد دي اودابن عوينه په نزد هغه خلق مراد دي څوك چې مخكي مسلمانان شوي دي اوڅوك چې لاته

---

[1] سنن النسائي/الإمامة ٦٢ (٨٧١) ، سنن ابن ماجه/الإقامة ٦٨ (١٠٤٦) (تحفة الأشراف : ٥٣٦٤) ، و مسند احمد (١/٣٠٥)

دي مسلمانان شوي اود اوزاعي په نزد ددينه په اول وخت کي او په اخر وخت کي مونځ کونکي مراد دي
ابن عباس رضي الله عنهما فرمانيلي دي چي يوي ښانسه ښځي په رسول الله صلي الله عليه وسلم پسي (دجماعت سره) مونځ کولو نوېدي باندي دنظر نه لګيدو دپاره بعضي خلق وړنه دير مخکي شول چي پدي يي نظر اونه لګي، اوبعضي خلق دومرد وروسته شول چي اخري صف ته ورسيدل اوپدوئ کي بعضي خلقو به په رکوع کي دي ښځي ته په نخرګونو کي کتل نوپدي وخت کي دا ايت کريمه نازل شو (رواه الترمذي ، نسائي، ابن ماجه، ابن حبان، حاکم) اوحاکم دي لره صيح هم ګنړلي دي

****************

٣١٢٣_حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ عُمَرَ، عَنْ مَالِكِ بْنِ مِغْوَلٍ، عَنْ جُنَيْدٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لِجَهَنَّمَ سَبْعَةُ أَبْوَابٍ بَابٌ مِنْهَا لِمَنْ سَلَّ السَّيْفَ عَلَى أُمَّتِي أَوْ قَالَ عَلَى أُمَّةِ مُحَمَّدٍ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ مَالِكِ بْنِ مِغْوَلٍ. ([1])

**ترجمه** عبدالله بن عمر رضي الله عنهما دا ارشاد نبوي بيانوي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي دجهنم اوه دروازي دي او په دي دروازو کي يوه دروازه دهغه چاد پاره ده څوك چي زما په امتي توره (اسلحه) راوباسي
امام ترمذي وايي داحديث غريب دي او مونږ يي صرف دمالك بن مغول په سند پيژنو

****************

٣١٢٤_حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عَلِيٍّ الْحَنَفِيُّ، عَنِ ابْنِ أَبِي ذِئْبٍ، عَنِ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الْحَمْدُ لِلَّهِ أُمُّ الْقُرْآنِ وَأُمُّ الْكِتَابِ وَالسَّبْعُ الْمَثَانِي". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([2])

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي الحمد لله سورة ام القران، ام الکتاب، او سبع المثاني (هغه اوه ايتونه چي بار بار تکرار کيږي) ده

---

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف ٨٦٦٨)

[2] _ اورده البخاري في الجامع الصحيح /تفسير الحجر ٣(٤٧٠٤) سنن ابي داود/ الصلاة ٣٥١ (تحفة الأشراف ١٣٠١٢)

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي

*****************

٣١٢٥ـحَدَّثَنَا الحُسَيْنُ بْنُ حُرَيْثٍ، حَدَّثَنَا الفَضْلُ بْنُ مُوسَى، عَنْ عَبْدِ الحَمِيدِ بْنِ جَعْفَرٍ، عَنِ العَلَاءِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَا أَنْزَلَ اللَّهُ فِي التَّوْرَاةِ وَلَا فِي الإِنْجِيلِ مِثْلَ أُمِّ القُرْآنِ وَهِيَ السَّبْعُ المَثَانِي، وَهِيَ مَقْسُومَةٌ بَيْنِي وَبَيْنَ عَبْدِي وَلِعَبْدِي مَا سَأَلَ".[1]

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي ابي بن كعب به ونيل نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي الله تعالي نه په تورات كي او نه په انجيل كي دام القران (فاتحه پشان سورة نازل كړي دي او دا اوه ايتونه دي كوم چې (په هر ركعات كي د لوستلي كيدلو په وجه) بار بار تكرار كيدونكي دي الله تعالي فرمائيلي دي دا سورة زما او زما دبنده په مينځ كي تقسيم شوي دي او زما دبنده دپاره هغه څه دي كوم چې دي اوغواړي.

هي السبع المثاني والقران العظيم: يعني سورة فاتحه سبع المثاني اوقران عظيم دى سورة فاتحي ته سبع مثاني هم ونيلى شي خكه چې مثاني دمثني جمع ده په معني د دوو دوو سره او ددي سورة نزول هم دوه پيري شوى دى يو خل په مكه كې او بل خل په مدينه كې يا دا وجه ده چې دا سورة په هر يو ركعات كې بيا بيا لوستلى كيږي او قران عظيم ورته په دي وجه ونيلى شوي دي چې دقران بنيادي مضامين مبداء او معاد دي او هغه په دي سورة كې جمع دي ګويا كې دا د تسمية الكل باسم الجزء دقبيلي نه شو

*****************

حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ العَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنِ العَلَاءِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ عَلَى أُبَيٍّ وَهُوَ يُصَلِّي فَذَكَرَ نَحْوَهُ بِمَعْنَاهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَبْدِ العَزِيزِ بْنِ مُحَمَّدٍ أَطْوَلُ وَأَتَمُّ، وَهَذَا أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ عَبْدِ الحَمِيدِ بْنِ جَعْفَرٍ، هَكَذَا رَوَى غَيْرُ وَاحِدٍ عَنِ العَلَاءِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ.[2]

---

[1] ـ انظر حديث رقم ٢٨٧٥

[2] ـ تفرد به المؤلف وانظر ماقبله (تحفة الأشراف: ٣٠٧٠)

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم په داسي حال کي راووتلو چې ابئ بن کعب مونځ کولو او باقي حديث يې دماقبل پشان ذکر کړو امام ترمذي وايي داحديث عبدالعزيز بن محمد ددينه اورډ او کامل بيان کړي دي او داحديث دعبدالحميد بن جعفر دحديث نه زيات صحيح دي او دمذکوره راويانو نه علاوه نورو ډيرو راويانو دعلاء بن عبدالرحمن نه هم نقل کړي دي.

***************

٣١٢٦_حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَبْدَةَ الضَّبِّيُّ، حَدَّثَنَا مُعْتَمِرُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ لَيْثِ بْنِ أَبِي سُلَيْمٍ، عَنْ بِشْرٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فِي قَوْلِهِ: لَنَسْأَلَنَّهُمْ أَجْمَعِينَ ،عَمَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿الحجر ٩٢-٩٣﴾ قَالَ: " عَنْ قَوْلِ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، إِنَّمَا نَعْرِفُهُ مِنْ حَدِيثِ لَيْثِ بْنِ أَبِي سُلَيْمٍ، وَقَدْ رَوَى عَبْدُ اللَّهِ بْنُ إِدْرِيسَ، عَنْ لَيْثِ بْنِ أَبِي سُلَيْمٍ، عَنْ بِشْرٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ نَحْوَهُ وَلَمْ يَرْفَعْهُ.[1]

**ترجمه** انس بن مالك رضي الله عنه دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه دالله تعالي ددي قول باره کي نقل کوي " لَنَسْأَلَنَّهُمْ أَجْمَعِينَ ،عَمَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ " يعني دټولو خلقو نه به مونږ ضرور دقيامت په ورځ تپوس کوو راوي وائي چې دلته لااله الا الله يعني دتوحيد کلمه مراد ده او دا تپوس به ددي باره کي کيږي.
امام ترمذي وايي داحديث غريب دي او دا مونږ ته صرف دليث بن ابي سليم په سند معلوم دي دا رنګي دا روايت عبدالله بن ادريس عن ليث بن ابي سليم عن بشر عن انس بن مالك رضي الله عنه سند سره دماقبل هم معني نقل کړي دي او مرفوع يې نه دي بيان کړي

***************

٣١٢٧_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ أَبِي الطَّيِّبِ، حَدَّثَنَا مُصْعَبُ بْنُ سَلَّامٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ قَيْسٍ، عَنْ عَطِيَّةَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " اتَّقُوا فِرَاسَةَ الْمُؤْمِنِ فَإِنَّهُ يَنْظُرُ بِنُورِ اللَّهِ، ثُمَّ قَرَأَ إِنَّ فِي ذَلِكَ لَآيَاتٍ لِلْمُتَوَسِّمِينَ (الحجر: ٧٥) . قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، إِنَّمَا نَعْرِفُهُ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ بَعْضِ أَهْلِ

---
[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٢٢٤)

الْعِلْمِ فِي تَفْسِيرِ هٰذِهِ الْآيَةِ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِلْمُتَوَسِّمِينَ (الحجر :٧٥) . قَالَ: لِلْمُتَفَرِّسِينَ.(١)

**ترجمه** دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دمومن دفراست نه اوويرېږئ ځکه چې دي دالله تعالي دنور په وساطت ليدل کوي او بيا يې دا ايت کريمه " ان في ذلك لايات للمتوسمين" تلاوت کړو يعني بيشکه په دي کي نشانات او علامات دقدرت دي دپوهيدونکو دپاره.

امام ترمذي وايي داحديث غريب دي مونږ يي صرف په دي مذکوره سند پيژنو او بعضي اهل علمو دايت کريمه "ان في ذلك لايات للمتوسمين" دتفسير باره کي وائي چې په دي کي علامات دقدرت داصحاب فراست دپاره دي

****************

## ١٧ـ بَاب وَمِنْ سُورَةِ النَّحْلِ

### دسورة النحل دبعضي ايتونو تفسير

دَ ايت ٦٨ دَ جملي واوحي ربك الي النحل نه په طور د علامي د سورت نوم ماخوذ دی.

دَ نزول زمانه: دَ دی سورة دَ شهادتونو نه دَ دی دَ نزول زمانه معلوميدی شی. مثلاً دَ ايت ۴۱ د فقری وَالَّذِينَ هَاجَرُوا فِي اللهِ مِنْ بَعْدِ مَا ظُلِمُوا نه معلوميږی چې هغه وخت دَ حبشی هجرت شوی وؤ

دَ ايت ١٠٦ دَ جملي من کفر بالله بعد ايمانه نه معلوميږی چې هغه وخت ظلم وستم خه په زور سره جاری وؤ او دا سوال پيدا شوی وؤ چې که چری ظلم دَ برداشت کولو نه وی او څوك په مجبوری سره دَ کفر کلمه او وائی نو دَ هغوی حکم څهٔ دی ؟

ايت ١١٢ ١١۴کي صفا اشاره ده چې دَ نبی صلی الله عليه وسلم دَ بعثت نه پس په مکه کي کوم قحط راغلی وؤ هغه دَ دی سورت دَ نزول په وخت کي ختم شوی وؤ

دَ دی سورت ايت ١١٥ داسی دی چې دَ هغی حواله دَ سورة انعام ايت ١١٩ کي ده او بل آيت ١١٨ داسی دی چې دَ هغی حواله په سورة انعام ١۴٢ کي ده نو دا دَ دی خبری دليل دی چې دَ دوارو سورتونو زمانه يو بل ته نژدی ده .

نو دَ دی شهادتونو نه معلوميږی چې دا سورت دَ مکی په اخری دور کي نازل شوی دی او دَ دی تائيد دَ سورت دَ عام انداز نه هم کيږی

: په دی سورة کي مرکزی مضمون دَ شرك ابطال او دَ توحيد اثبات دی دَ پيغمبر دَ نه منلو په

---

[1] ــ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ۴٢١٤)

خطرناك انجام باندی تنبيه زورنه ده. مضامين دسورت دادي.

١ آفاقي او انفسی دليلونه دَ شرك په ابطال او دَ توحيد په اثبات

٢ دَ منكرينو دَ اعتراضونو شكونو او حيلو او بهانو جوابونه

٣ په باطل باندی كلك پاتی كيدل او دَ حق په مقابله كي دَ استكبار د بد انجام نه يرول

۴ اخلاقي او عملي تبديلي بيان شوی دی كومي چې دَ رسول الله صلی الله عليه وسلم دَ دعوت په وجه باندی دَ انسان په ژوند كي راځی. په دی سلسله كي مشركينو ته خودلی شی چې الله تعالی خپل رب اومنی ځكه چې تاسو هم دَ ربوبيت عقيده لری صرف په ژبه باندی منل كافی نهٔ دی بلكه دَ دی اقرار او عقيدی تقاضی هم پوره كړی چې هغه په خالص عقيده اخلاقو او عملی ژوند كي ښكاره كيدل پكار دی

٥. نبی صلی الله عليه وسلم او صحابه كرامو ته تسلی او زړه ورتيا وركول او ورسره دا هم خودلی شويدی چې دَ كفارو دَ مقابلی او ظلم په مقابله كي دَ مؤمنانو څهٔ رويه پكار ده

٦ ٣١٢٨ _حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَاصِمٍ، عَنْ يَحْيَى الْبَكَّاءِ، حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ، قَالَ: سَمِعْتُ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ، يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " أَرْبَعٌ قَبْلَ الظُّهْرِ بَعْدَ الزَّوَالِ تُحْسَبُ بِمِثْلِهِنَّ فِي صَلَاةِ السَّحَرِ ". قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " وَلَيْسَ مِنْ شَيْءٍ إِلَّا وَيُسَبِّحُ اللَّهَ تِلْكَ السَّاعَةَ ثُمَّ قَرَأَ يَتَفَيَّأُ ظِلَالُهُ عَنِ الْيَمِينِ وَالشَّمَائِلِ سُجَّدًا لِلَّهِ وَهُمْ دَاخِرُونَ (النحل:٤٨) الْآيَةَ كُلَّهَا ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ. لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ عَلِيِّ بْنِ عَاصِمٍ. [1]

٧ **ترجمه** عمر فاروق رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دزوال نه پس دماسپخين دمونځ نه مخكي څلور ركعاتونه دسحر د څلور و ركعاتونو تهجدو برابر ثواب درجه لري او بيايي اوفرمائيل هيڅ يو څيز داسي نشته كوم چې په دغه وخت (يعني زوال) كي دالله تعالي تسبيح نه وائي او بيا يي دا ايت كريمه " يَتَفَيَّأُ ظِلَالُهُ عَنِ الْيَمِينِ وَالشَّمَائِلِ سُجَّدًا لِلَّهِ وَهُمْ دَاخِرُونَ " يعني ايا دوئ دالله تعالي پيدا كړو څيزونو ته نه ګوري چې سوري يې ښي طرف او ګس طرف ته داطاعت كولو په حال كي تيت شوي دي

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٠٥٤٣)

امام ترمذي وايي داحديث غريب دي مونږ يي صرف دعلي بن عاصم په روايت پيژنو

*****************

٣١٢٩ـحَدَّثَنَا أَبُو عَمَّارٍ الحُسَيْنُ بْنُ حُرَيْثٍ، حَدَّثَنَا الفَضْلُ بْنُ مُوسَى، عَنْ عِيسَى بْنِ عُبَيْدٍ، عَنِ الرَّبِيعِ بْنِ أَنَسٍ، عَنْ أَبِي العَالِيَةِ، قَالَ: حَدَّثَنِي أُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ، قَالَ: لَمَّا كَانَ يَوْمُ أُحُدٍ أُصِيبَ مِنَ الأَنْصَارِ أَرْبَعَةٌ وَسِتُّونَ رَجُلًا، وَمِنَ المُهَاجِرِينَ سِتَّةٌ فِيهِمْ حَمْزَةُ فَمَثَّلُوا بِهِمْ. فَقَالَتِ الأَنْصَارُ: لَئِنْ أَصَبْنَا مِنْهُمْ يَوْمًا مِثْلَ هَذَا لَنُرْبِيَنَّ عَلَيْهِمْ. قَالَ: فَلَمَّا كَانَ يَوْمُ فَتْحِ مَكَّةَ فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى: وَإِنْ عَاقَبْتُمْ فَعَاقِبُوا بِمِثْلِ مَا عُوقِبْتُمْ بِهِ وَلَئِنْ صَبَرْتُمْ لَهُوَ خَيْرٌ لِلصَّابِرِينَ (النحل :١٢٦)، فَقَالَ رَجُلٌ: لَا قُرَيْشَ بَعْدَ اليَوْمِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "كُفُّوا عَنِ القَوْمِ إِلَّا أَرْبَعَةً".
قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ حَدِيثِ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ.[1]

**ترجمه** . دابی بن کعب رضي الله عنه بيان دي فرماني چې کله جنګ احد واقع شو نو په دي کي دانصارو ۶۴او دمهاجرينو ۶کسان شهيدان شول او په دوئ کي حمزه رضي الله عنه هم شامل وو چې کافرانو مثله کړي وو، انصارو اووئيل که چري کومه ورځ مونږ په دوئ باندي غالب شو نو مونږ به ددوئ دمړو مثله ددينه زياته اوکړو مګر بيا چې کله دمکي دفتح وخت راغي نو الله تعالي دا ايت کريمه " وَإِنْ عَاقَبْتُمْ فَعَاقِبُوا بِمِثْلِ مَا عُوقِبْتُمْ بِهِ وَلَئِنْ صَبَرْتُمْ لَهُوَ خَيْرٌ لِلصَّابِرِينَ" نازل کړو دي وخت کي يو صحابي اووئيل "لاقريش بعداليوم" يعني دنن نه پس به قريشيان نه پريخودلي کيږي رسول الله اوفرمائيل هيڅ کله نه دڅلورو کسانو نه علاوه بل هيڅوک مه قتل کوئ.

امام ترمذي وايي داحديث دابی بن کعب په سند حسن غريب دي

*****************

## ١٨ـباب وَمِنْ سُورَةِ بَنِي إِسْرَائِيلَ

### دسورة بني اسرائيل دبعضي ايتونو تفسير

### شان نزول

رومبنی آيت په دی خبره نشان دهی کوی. چې دا سورت دَ معراج په موقع نازل شوی دی دَ

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (أخرجه النسائي في الكبرى) (تحفة الأشراف. ١٣)

معراج واقعه دَ هجرت نه یو کال وړاندی ده دَ دی وجی نه دا سورة دَ مکی دور په آخر کي نازل شوی دی
دَ توحید په دعوت باندی دولس کلونه تیر شوی وو مخالفینو دَ نبی صلی الله علیه وسلم دَ لاری دَ بندولو دَپاره هر قسم کوششونو کول لیکن بیا هم د توحید دعوت د عربو هر طرف ته رسیدلی وو په هره قبیله کي دَ دی دعوت په څه کسانو باندی اثر شوی وو په مکه کي دَ مخلصو خلقو یو مضبوطه ډله جوړه شوی وه. هغوی دَ حق دعوت دَپاره هر قسم کوششونه کول. په مدینه کي دَ اوس او خزرج قبیلی دَ مومنانو ملګری وی او هغه وخت نزدی وو چې نبی صلی الله علیه السلام او صحابه کرام مدینی ته هجرت اوکړی او خوارهٔ وارهٔ مومنان دَ اسلام په اصولو باندی یو ریاست قائم کړی په دی حالاتو کي د معراج واقعه شویده او نبی دا پیغام د دنیا خلقو ته واوړولو
په دی سورة کي مخالفینو ته تنبیه ورکړی شویده چې دَ بنی اسرائیلو او نورو قومونو د انجام نه عبرت او سبق واخلی او الله تعالی چې کوم مهلت تاسو ته درکړیدی د هغی نه فائده واخلی او د نبی دا دعوت قبول کړی ګنی نو الله تعالی به تاسو هلاك کړی. او ستاسو په ځائی به نور خلق راولی. د تفهیم په ذریعه خودلی شوی دی چې د نیك بختئ او بدبختئ او کامیابی او ناکامئ مدار په توحید دوباره ژوند. نبوت او په قرآن باندی دی. او په دلیلونو سره نی دا څلور خبری واضح کړی دی.
د تعلیم په ذریعه دَ اخلاقو او تمدن غټ غټ اصول بیان شوی دی. او دَ ژوند نظام قائمول دَ دعوت محمدی په وړاندی وو. نو ګویا چې دا دَ اسلام منشور وو. چې د اسلامی ریاست قائمولو نه یو کال وړاندی عرب ته پیش کړی شو. او په صفا الفاظو سره دا خودلی شوی دی. چې محمد په دی خاکه دَ خپل ملك او بیا د ټول انسانیت ژوند تیارول غواړی د دی تعلیماتو سره نبی ته هدایت کړی شویدی چې د مشکلاتو په دی طوفان کي په خپل دعوت سره کلك اودریږه. او د کفر سره د روغی. جوړی هیڅ خیال په زړه کي مهٔ راوله او دا رنګ مومنانو ته هم وئیلی شویدی چې په پوره صبر او سکون سره دَ حالاتو مقابله کوئ او دَ تبلیغ او دَ اصلاح په کار کي خپل جذبات په قابو کي اوساتی. په دی سلسله کي د نفس د اصلاح او تزکئی دَ پاره دَ مونځ نسخه خودلی شویده. دَ روایاتو نه معلومیږی چې دا ړومبئ موقعه ده چې په دیکي په مومنانو باندی دَ وخت دَ پابندئ سره پنځه مونځونه فرض شویدی

۳۱۳۰_حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ. حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ. أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ. عَنِ الزُّهْرِيِّ. أَخْبَرَنِي سَعِيدُ بْنُ الْمُسَيِّبِ. عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " حِينَ أُسْرِيَ بِي. لَقِيتُ مُوسَى. قَالَ فَنَعَتَهُ. فَإِذَا رَجُلٌ حَسِبْتُهُ. قَالَ: مُضْطَرِبٌ رَجِلُ الرَّأْسِ كَأَنَّهُ مِنْ رِجَالِ شَنُوءَةَ. قَالَ:

وَلَقِيتُ عِيسَى، قَالَ فَنَعَتَهُ، قَالَ: رَبْعَةٌ أَحْمَرُ كَأَنَّمَا خَرَجَ مِنْ دِيمَاسٍ يَعْنِي الْحَمَّامَ. وَرَأَيْتُ إِبْرَاهِيمَ. قَالَ: وَأَنَا أَشْبَهُ وَلَدِهِ بِهِ. قَالَ: وَأُتِيتُ بِإِنَاءَيْنِ أَحَدُهُمَا لَبَنٌ وَالآخَرُ خَمْرٌ. فَقِيلَ لِي: خُذْ أَيَّهُمَا شِئْتَ. فَأَخَذْتُ اللَّبَنَ فَشَرِبْتُهُ. فَقِيلَ لِي: هُدِيتَ لِلْفِطْرَةِ أَوْ أَصَبْتَ الْفِطْرَةَ. أَمَا إِنَّكَ لَوْ أَخَذْتَ الْخَمْرَ غَوَتْ أُمَّتُكَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([1])

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دمعراج په شپه چې زه اسمان ته اوخيژولي شوم نو زما ملاقات دموسي عليه السلام سره اوشو او رسول الله دهغه حليه بيان کړه راوي وائي زما خيال دي چې داسي يې اوفرمائيل موسي عليه السلام يو لوړ قد والا انسان دي چې خړ پړ او غوړو ويختو والاوو او دشنوءه قوم دخلقو پشان ښکاريدو، فرمائي چې بيا زما ملاقات دعيسي عليه السلام سره اوشو او ددوئ وصف يې هم بيان کړو چې هغه يو درميانه قد والاسور سپين رنګ والا انسان وو داسي ښکاريدو لکه چې همدا اوس دغسل خاني نه راوتلي وي او راغلي وي، ما ابراهيم عليه السلام هم اوليدو او زه دهغه په اولاد کي دهغه سره دټولو نه زيات مشابه يم رسول الله اوفرمائيل ماته دوه لوښي راوړلي شول چې په يو کي شوده وو او په بل کي شراب وو ماته اوونيلي شول چې کوم دي خوښ وي هغه واخله نو مادشودو لوښي واخستلو او بيا مي اوڅکل ماته اوونيلي شول تاته دفطرت په طرف رهنمائي اوکړي شوه او که داسي يې اوفرمائيل تا دفطرت طرف ته قدم پورته کړو که چري رسول الله دشرابو لوښي اخستلي وي نو امت به يې ګمراه شوي وي.
امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي.

***************

٣١٣١ـ حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ. أَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ. عَنْ قَتَادَةَ. عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "أُتِيَ بِالْبُرَاقِ لَيْلَةَ أُسْرِيَ بِهِ مُلْجَمًا مُسْرَجًا فَاسْتَصْعَبَ عَلَيْهِ. فَقَالَ لَهُ جِبْرِيلُ: أَبِمُحَمَّدٍ تَفْعَلُ هَذَا فَمَا رَكِبَكَ أَحَدٌ أَكْرَمُ عَلَى اللَّهِ مِنْهُ. قَالَ: فَارْفَضَّ عَرَقًا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. وَلَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ عَبْدِ الرَّزَّاقِ. ([2])

---

[1] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /أحاديث الأنبياء ٢٢ (٣٣٩٤)، و ٤٩ (٣٤٣٧)، وتفسير الإسراء ٣ (٤٧٠٩)، والأشربة ١ (٥٥٧٦)، و ١٢ (٥٦٠٣). صحيح مسلم/الإيمان ٧٤ (١٦٨). سنن النسائي/الأشربة ٤١ (٥٦٦٠) (تحفة الأشراف: ١٣٢٧٠). و مسند احمد (٢/٥١٢)

[2] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٣٣١)

**ترجمه** دانس رضي الله عنه بيان دي فرماني چې په كومه شپه رسول الله صلي الله عليه وسلم ته معراج حاصل شو نو دده دسورلۍ دپاره براق راوستلې شو براق ته واګي اچولې شوي وې او زين ورباندې اچولې شوې وو رسول الله صلي الله عليه وسلم په دې باندې دسوريدو وخت كې تكليف محسوس كړو نوجبرائيل عليه السلام ورته اوونيل ايا دمحمد صلي الله عليه وسلم، سره داسې كوې په براق باندې داوسه پورې درسول الله نه زيات عزتمند كس چرته بل څوك نه دې سور شويد دې خبرې په اوريدو باندې دبراق نه خولې روانې شوې
امام ترمذي وايي داحديث حسن غريب دې او دعبدالرزاق دسند نه علاوه داحديث مونږ ته په بل سند معلوم نه دې.

****************

٣١٣٢_حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ الدَّوْرَقِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو تُمَيْلَةَ، عَنِ الزُّبَيْرِ بْنِ جُنَادَةَ، عَنِ ابْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَمَّا انْتَهَيْنَا إِلَى بَيْتِ الْمَقْدِسِ، قَالَ جِبْرِيلُ: بِإِصْبَعِهِ فَخَرَقَ بِهِ الْحَجَرَ وَشَدَّ بِهِ الْبُرَاقَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.[1]
**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي دمعراج په شپه چې كله مونږ بيت المقدس ته ورسيدو نو جبرائيل عليه السلام دګپلې ګوتې په اشارې په كاڼي كې سورې اوكړو او براق يې ورپورې اوتړلو
امام ترمذي وايي: داحديث حسن غريب دې.

****************

٣١٣٣_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ عُقَيْلٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَمَّا كَذَّبَتْنِي قُرَيْشٌ قُمْتُ فِي الْحِجْرِ فَجَلَّى اللَّهُ لِي بَيْتَ الْمَقْدِسِ، فَطَفِقْتُ أُخْبِرُهُمْ عَنْ آيَاتِهِ وَأَنَا أَنْظُرُ إِلَيْهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.
وَفِي الْبَابِ، عَنْ مَالِكِ بْنِ صَعْصَعَةَ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَأَبِي ذَرٍّ، وَابْنِ مَسْعُودٍ.[2]
**ترجمه** دجابر رضي الله عنهمابيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي كله چې قريشو دمعراج دسفر باره كې زماتكذيب اوكړو نو زه دحجر (حطيم) سره اودريدم او الله تعالي

---

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٩٧٥)

[2] _ اورده البخاري في الجامع الصحيح /مناقب الأنصار ٤١ (٣٨٨٦)، وتفسير الإسراء ٣ (٤٧١٠)، صحيح مسلم /الإيمان ٧٥ (١٧٠) (تحفة الأشراف: ٣١٥١)، ومسند احمد (٣/٣٧٧)

بيت المقدس زما په وړاندي ظاهر کړو او ما ورته دکتلو په حال کي دوئ ته ددي علامات بيانول شروع کړل.

امام ترمذي وايي:داحديث حسن صحيح دي، او په دي باب کي دمالك بن صعصعه، ابوسعيد، ابن عباس، ابوذر او ابن مسعود رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي

****************

٣١٣٤_حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، فِي قَوْلِهِ: وَمَا جَعَلْنَا الرُّؤْيَا الَّتِي أَرَيْنَاكَ إِلا فِتْنَةً لِلنَّاسِ (الإسراء :٦٠)، قَالَ: "هِيَ رُؤْيَا عَيْنٍ أُرِيَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْلَةَ أُسْرِيَ بِهِ إِلَى بَيْتِ الْمَقْدِسِ، قَالَ: وَالشَّجَرَةَ الْمَلْعُونَةَ فِي الْقُرْآنِ هِيَ شَجَرَةُ الزَّقُّومِ"، قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([1])

**ترجمه** : دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه دايت کريمه " وَمَا جَعَلْنَا الرُّؤْيَا الَّتِي أَرَيْنَاكَ إِلا فِتْنَةً لِلنَّاسِ" باره کي مروي دي چې ددينه مراد په سترګو ليدل دي کومه ورځ چې رسول الله صلي الله عليه وسلم دبيت المقدس چکر اولګولي شو نو هغوئ دا هم ونيلي وو چې په "وَالشَّجَرَةَ الْمَلْعُونَةَ فِي الْقُرْآنِ هِيَ شَجَرَةُ الزَّقُّومِ" نه مراد دزقوم ونه ده.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي.

****************

٣١٣٥_حَدَّثَنَا عُبَيْدُ بْنُ أَسْبَاطِ بْنِ مُحَمَّدٍ قُرَشِيٌّ كُوفِيٌّ، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فِي قَوْلِهِ: وَقُرْءَانَ الْفَجْرِ إِنَّ قُرْءَانَ الْفَجْرِ كَانَ مَشْهُودًا (الإسراء :٧٨) قَالَ: "تَشْهَدُهُ مَلَائِكَةُ اللَّيْلِ وَمَلَائِكَةُ النَّهَارِ". قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([2])

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه بيان دي فرماني چې نبي کريم صلي الله عليه وسلم د ايت کريمه " وَقُرْءَانَ الْفَجْرِ إِنَّ قُرْءَانَ الْفَجْرِ كَانَ مَشْهُودًا " متعلق اوفرمائيل په دغه وخت کي دشپې فرشتي او دورځي فرشتي تولي موجود وي.

---

[1] _ اورده البخاري في الجامع الصحيح /مناقب الأنصار ٤٢ (٣٨٨٨)، وتفسير الإسراء (٤٧١٦)، والقدر ١٠ (٦٦١٣) (تحفة الأشراف : ٦١٦٤)

[2] _ سنن ابن ماجه/الصلاة ٢ (٦٧٠) (تحفة الأشراف : ١٢٣٢٢)

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي

****************

وَرَوَى عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَأَبِي سَعِيدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ، حَدَّثَنَا بِذَلِكَ عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ، عَنِ الأَعْمَشِ فَذَكَرَ نَحْوَهُ. [1]

**ترجمه** ابوصالح دابوهريره دابوسعيد خدري رضي الله عنهما نه دماقبل هم معني روايت نقل كړي دي دارنګي علي بن حجر هم دعلي بن مسعود نه داعمش په واسطه دماقبل هم معني روايت نقل كړي دي.

****************

٣١٣٦ـ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، أَخْبَرَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُوسَى، عَنْ إِسْرَائِيلَ، عَنِ السُّدِّيِّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فِي قَوْلِ اللَّهِ تَعَالَى: يَوْمَ نَدْعُو كُلَّ أُنَاسٍ بِإِمَامِهِمْ (الإسراء :٧١) ، قَالَ: " يُدْعَى أَحَدُهُمْ فَيُعْطَى كِتَابَهُ بِيَمِينِهِ وَيُمَدُّ لَهُ فِي جِسْمِهِ سِتُّونَ ذِرَاعًا وَيُبَيَّضُ وَجْهُهُ وَيُجْعَلُ عَلَى رَأْسِهِ تَاجٌ مِنْ لُؤْلُؤٍ يَتَلأْلأُ. فَيَنْطَلِقُ إِلَى أَصْحَابِهِ فَيَرَوْنَهُ مِنْ بَعِيدٍ فَيَقُولُونَ: اللَّهُمَّ ائْتِنَا بِهَذَا وَبَارِكْ لَنَا فِي هَذَا. حَتَّى يَأْتِيَهُمْ فَيَقُولُ: أَبْشِرُوا لِكُلِّ رَجُلٍ مِنْكُمْ مِثْلُ هَذَا. قَالَ: وَأَمَّا الْكَافِرُ فَيُسَوَّدُ وَجْهُهُ وَيُمَدُّ لَهُ فِي جِسْمِهِ سِتُّونَ ذِرَاعًا عَلَى صُورَةِ آدَمَ فَيُلْبَسُ تَاجًا. فَيَرَاهُ أَصْحَابُهُ فَيَقُولُونَ: نَعُوذُ بِاللَّهِ مِنْ شَرِّ هَذَا اللَّهُمَّ لاَ تَأْتِنَا بِهَذَا. قَالَ: فَيَأْتِيهِمْ، فَيَقُولُونَ: اللَّهُمَّ أَخْزِهِ. فَيَقُولُ: أَبْعَدَكُمُ اللَّهُ فَإِنَّ لِكُلِّ رَجُلٍ مِنْكُمْ مِثْلَ هَذَا ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. وَالسُّدِّيُّ اسْمُهُ إِسْمَاعِيلُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ. [2]

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه بيان دي فرمائي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم دا ايت كريمه " يَوْمَ نَدْعُو كُلَّ أُنَاسٍ بِإِمَامِهِمْ " متعلق اوفرمائيل په دوئ كي چې څوك جنتي راوغوښتلي شي هغه ته به عمل نامه په ښي لاس كي وركړي شي او دده جسم به شپيته ګزو پوري غټ كړي شي او مخ به يي پرقيري او په سر به يي دملغلرو پرقيدونكي تاج كيخودلي شي او بيا به خپلو ملګرو ته راشي چې څوك يي دلري نه اوګوري نو وائي به اي الله دداسي نعمتونو نه مونږ ته هم راكړي او مونږ ته هم په دي كي بركت واچوي دي چې ملګرو ته ورسيږي

[1] ـ انظر ماقبله (تحفة الأشراف : ١٢٤٤٢)

[2] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ١٣٦١٢)

نو وائي به تاسو ټول خوشحاله شئ؛ هريوكس ته به همداسي ملاويږي ليكن دكافر معامله به څه وي دكافرمخ به تور كړي شي او جسم به يي شپيته ګزو ته ورسولي شي څومره چې دادم عليه السلام لوړوالي وو او تاج به ورته پسر كيخودلي شي چې خپل ملګري يي اوويني نو وائي به دده دشر نه موږ په الله باندي پناه غواړو او اي الله دده پشان تاج موږ ته رانكړي او بيا به دي خلقو ته ورشي خلق به وائي اي الله ده لره ذليل كړي. دي به وائي الله تعالي دي تاسو زما نه لري اوساتي خكه چې په تاسو كي به هم هر يو كس داسي وي

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي او دسدي نوم اسماعيل بن عبدالرحمن دي

***************

۳۱۳۷_حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ دَاوُدَ بْنِ يَزِيدَ الزَّعَافِرِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: فِي قَوْلِهِ: " عَسَى أَنْ يَبْعَثَكَ رَبُّكَ مَقَامًا مَحْمُودًا (الإسراء :۷۹) سُئِلَ عَنْهَا، قَالَ: هِيَ الشَّفَاعَةُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَدَاوُدُ الزَّعَافِرِيُّ هُوَ دَاوُدُ الْأَوْدِيُّ بْنُ يَزِيدَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ وَهُوَ عَمُّ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ إِدْرِيسَ. ([1])

**ترجمه** . دابوهريره رضي الله عنه بيان دي فرمائي چې درسول الله صلي الله عليه وسلم نه دايت كريمه " عَسَى أَنْ يَبْعَثَكَ رَبُّكَ مَقَامًا مَحْمُودًا " باره كي مي تپوس اوكړو نو ويي فرمائيل ددينه مراد شفاعت دي.

امام ترمذي وايي داحديث حسن دي او داود زعافري نوم داود بن يزيد بن عبدالرحمن اودي دي او دا دعبدالله بن ادريس تره دي.

***************

۳۱۳۸_حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ ابْنِ أَبِي نَجِيحٍ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنْ أَبِي مَعْمَرٍ، عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: " دَخَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَكَّةَ عَامَ الْفَتْحِ وَحَوْلَ الْكَعْبَةِ ثَلَاثُ مِائَةٍ وَسِتُّونَ نُصُبًا، فَجَعَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَطْعَنُهَا بِمِخْصَرَةٍ فِي يَدِهِ وَرُبَّمَا قَالَ بِعُودٍ وَيَقُولُ: " جَاءَ الْحَقُّ وَزَهَقَ الْبَاطِلُ إِنَّ الْبَاطِلَ كَانَ زَهُوقًا (الإسراء :۸۱) جَاءَ الْحَقُّ وَمَا يُبْدِئُ الْبَاطِلُ وَمَا يُعِيدُ (سبأ :٤٩) ". قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ وَفِيهِ عَنِ ابْنِ عُمَرَ. ([2])

---

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ۱۳۸۳۸) ، و مسند احمد (۲/٤٤١، ٤٤٤، ٥٢٨)

[2] _ اورده البخاري في الجامع الصحيح /المظالم ۳۲ (۲٤٧٨) ، والمغازي ٤٩ (٤٢٨٧) ، وتفسير الإسراء ۱۱ (٤٧٢٠) ، صحيح مسلم /الجهاد ۳۲ (۱۷۸۱) (تحفة الأشراف : ۹۳۳۳)

**ترجمه** دابن مسعود رضي الله عنه بيان دي فرمائي چې په کوم کال مکه فتح شوه او رسول الله صلي الله عليه وسلم ورداخل شو نو په کعبه کې ګيرچاپير دري سوه شپيته بتان موجود وو نورسول الله صلي الله عليه وسلم پخپل لاس په چوکه اووهلو ،او عبدالله به کله کله داسي ونيل چي رسول الله پخپل لاس کي يو لرګي نيولي وو چې دوی ته به يي ورورلو او دا کلمات به يي فرمائيل " جَاءَ الْحَقُّ وَزَهَقَ الْبَاطِلُ إِنَّ الْبَاطِلَ كَانَ زَهُوقًا " يعني حق راغلو او باطل ختم شو او باطل واقعي ختميدونکي دي او همدا رنګي " جَاءَ الْحَقُّ وَمَا يُبْدِئُ الْبَاطِلُ وَمَا يُعِيدُ " حق غالب شو او اوس باطل نشي سرګند کيدي او نه راواپس کيدي شي.

امام ترمذي وايي. داحديث حسن صحيح دي او په دي باب کي دابن عمر رضي الله عنهما نه هم حديث وارد دي.

****************

٣١٣٩_حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ قَابُوسَ بْنِ أَبِي ظَبْيَانَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: " كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَكَّةَ ثُمَّ أُمِرَ بِالْهِجْرَةِ فَنَزَلَتْ عَلَيْهِ: وَقُلْ رَبِّ أَدْخِلْنِي مُدْخَلَ صِدْقٍ وَأَخْرِجْنِي مُخْرَجَ صِدْقٍ وَاجْعَلْ لِي مِنْ لَدُنْكَ سُلْطَانًا نَصِيرًا (الإسراء :٨٠) ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** : دابن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي فرمائي چې نبي کريم صلي الله عليه وسلم په مکه کي موجود وو چې دهجرت کولو حکم ورته اوشو نو په دي وخت کي ايت کريمه " وَقُلْ رَبِّ أَدْخِلْنِي مُدْخَلَ صِدْقٍ وَأَخْرِجْنِي مُخْرَجَ صِدْقٍ وَاجْعَلْ لِي مِنْ لَدُنْكَ سُلْطَانًا نَصِيرًا" يعني دعا اوغواړه چې اي زما پروردګاره ما يو ښکلي خاي ته ورسي او په ښه طريقه مي اوباسي ددي خاي نه او دخپل طرفه زما دپاره يو قوي مددګار مهيا کړي.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي.

****************

٣١٤٠_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ زَكَرِيَّا بْنِ أَبِي زَائِدَةَ، عَنْ دَاوُدَ بْنِ أَبِي هِنْدٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: " قَالَتْ قُرَيْشٌ لِيَهُودَ: أَعْطُونَا شَيْئًا نَسْأَلُ هَذَا الرَّجُلَ، فَقَالَ: سَلُوهُ عَنِ الرُّوحِ، قَالَ: فَسَأَلُوهُ عَنِ الرُّوحِ، فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى: وَيَسْأَلُونَكَ عَنِ الرُّوحِ قُلِ الرُّوحُ مِنْ أَمْرِ رَبِّي

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ٥٤٠٥)

وَمَا أُوتِيتُمْ مِنَ الْعِلْمِ إِلا قَلِيلا (الإسراء :٨٥)، قَالُوا: أُوتِينَا عِلْمًا كَثِيرًا، أُوتِينَا التَّوْرَاةُ وَمَنْ أُوتِيَ التَّوْرَاةَ فَقَدْ أُوتِيَ خَيْرًا كَثِيرًا، فَأُنْزِلَتْ: قُلْ لَوْ كَانَ الْبَحْرُ مِدَادًا لِكَلِمَاتِ رَبِّي لَنَفِدَ الْبَحْرُ (الكهف :١٠٩) إِلَى آخِرِ الآيَةِ". قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ.[1]

**ترجمه** عبدالله بن عباس رضي الله عنهما بيان دي فرمائي چې قريشيانو يهوديانو ته اووئيل مونږ ته کوم داسي سوال اوښايئ چې په دې کس (محمد صلي الله عليه وسلم) باندې يې اوکړو هغوئ اووئيل دروح په باره کي ورنه تپوس اوکړئ نو هغوئ درسول الله صلي الله عليه وسلم نه دروح باره کي سوال اوکړو چې دروح حقيقت څه دي ترڅو چې دې باره کي الله تعالي ايت کريمه " وَيَسْأَلُونَكَ عَنِ الرُّوحِ قُلِ الرُّوحُ مِنْ أَمْرِ رَبِّي وَمَا أُوتِيتُمْ مِنَ الْعِلْمِ إِلا قَلِيلا " دوی تپوس کوی ستا نه د روح په باره کښې. ته اووايه چې روح حکم د رب ځما نه دی او نه دی درکړی شوی تاسو ته د علم نه مګر لږ غوندی. ،نازل کړو يعني دوئ درنه دروح باره کي سوال کوي ته ورته اووايه چې روح دالله تعالي حکم دي او تاسو ته ډير لږ علم درکړي شوي دي، هغوئ اووئيل مونږ سره خو ډير علم دي مونږ ته تورات راکړي شوي دي او تورات چې چاته ورکړي شوي وي هغه سره لوي خبر وي نو دي باره کي دا ايت کريمه "قُلْ لَوْ كَانَ الْبَحْرُ مِدَادًا لِكَلِمَاتِ رَبِّي لَنَفِدَ الْبَحْرُ " نازل شو يعني دوئ ته اووايه که چرې زما درب کلماتو او معلوماتو او مقدوراتو دليکلو دپاره سمندر سياهي اوګرځي نو سمندر به ختم شي مګر زما درب حمد او ثناء به ختم نشي.

امام ترمذي وايي: داحديث په دې سند حسن صحيح غريب دي.

**تشريح**: په دې کي د سوال جواب دی. او دا سوال د منکرينو د ضد او په عناد د وجه ؤو. خان پوهول ئې مراد نه ؤو دا سوال يهودو کړی ؤو. عبدالله بن مسعود رضی الله عنه فرمائيلی دی په داسې حال کي چې څه د نبی صلی الله عليه وسلم سره په يو پټی کي روان وم او هغه د کجوری د لختې په مدد سره روان ؤو. څه يهوديان راغلل. نو يو بل ته ئې اووئيل چې د دهٔ نه د روح په باره کي تپوس اوکړی. بيا ئې اووئيل چې داسې څه حاجت دی. او بعضو اووئيل چې داسې جواب درنه کړی چې تاسو پرې بد ګنړئ. (اخر) دوی اووئيل چې تپوس ترينه اوکړی. نو تپوس ئې ترينه اوکړو د روح په باره کښې نو نبی صلی الله عليه وسلم څه جواب ورنهٔ کړو او خاموش شو. نو زه پوهه شوم چې په دهٔ وحی راځی زه په خپل ځای ولاړ ووم چې کله وحی راغله نو نبی صلی الله عليه وسلم دا ايت اولوستلو (متفق عليه). يعنی د حق دين نه مخ ګرځوونکی داسې تپوسونه کوی چې روح څه شی دی د کوم ځای نه ښکاره شويدی نو جواب ورکړی شو. چې دا د الله تعالی د حکم نه دی د دينه زيات په

[1] ـ تفرد به المؤلف (أخرجه النسائي في الكبرى) (تحفة الأشراف : ٦٠٨٣)

تفصيل باندی تاسو پوهیدلی نشئ
دویم قول دا دی چې د روح نه مراد قرآن پاك دی. لکه په سورة نحل ۲ پ ۱۴ کي الله تعالی فرمائی:
ینزل الملائکة بالروح من امر ربه علي من یشاء من عباده. (نازلوی ملائك په روح سره د خپل حکم د وجی نه په چا چې اوغواړی د خپلو بندګانو نه).
نو د دوی سوال دا وو. چې دا قرآن تا د خان نه جوړ کړی دی او که جبرائیل علیه السلام د خان نه جوړ کړی دی نو جواب اوشو چې دا د الله تعالی په حکم سره نازل شویدی
دریم قول دا دی چې د دینه مراد جبرائیل دی ځکه چې قرآن کریم کي هغهٔ ته الروح الامین او روح القدس ونیلی شویدی یعنی دوی سوال کوو چې جبرائیل علیه السلام د څهٔ نه پیدا دی نو جواب اوشو چې د الله تعالی په حکم پیدا شویدی د روح او نفس په باره کي د علماؤ مختلف اقوال دی ځوك وائی چې نفس ساه ته وائی او روح یو قسم مخلوق دی ساه هغی ته وائی چې انسانان او حیوانات په هغی سره ژوندی وی د دی وجی نه د مرګ په وخت د نفس د ایستلو ذکر دی او د روح ذکر نی نه دی کړی. بل قول دا دی چې روح او نفس یو شی دی. خو چې کله په بدن کي وی نو نفس ورته وائی. او روح عام دی که په بدن کي وی او که نهٔ وی.
وما اوتیتم من العلم الا قلیلا ، عام خطاب دی او دا دلیل دی چې د مخلوق علم لږ دی. نو د الله تعالی سره په علم محیط او علم کلی او علم غیب کي شریك نشی کیدی او دا رنګ د کم او لږ علم په وجی سره په متشابه څیزونو باندی هم نهٔ پوهیږی

****************

۳۱٤۱ـ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ خَشْرَمٍ. أَخْبَرَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَلْقَمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: كُنْتُ أَمْشِي مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَرْثٍ بِالْمَدِينَةِ وَهُوَ يَتَوَكَّأُ عَلَى عَسِيبٍ فَمَرَّ بِنَفَرٍ مِنَ الْيَهُودِ. فَقَالَ بَعْضُهُمْ: لَوْ سَأَلْتُمُوهُ. فَقَالَ بَعْضُهُمْ: لَا تَسْأَلُوهُ فَإِنَّهُ يُسْمِعُكُمْ مَا تَكْرَهُونَ. فَقَالُوا لَهُ: يَا أَبَا الْقَاسِمِ. حَدِّثْنَا عَنِ الرُّوحِ. فَقَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَاعَةً وَرَفَعَ رَأْسَهُ إِلَى السَّمَاءِ. فَعَرَفْتُ أَنَّهُ يُوحَى إِلَيْهِ. حَتَّى صَعِدَ الْوَحْيُ، ثُمَّ قَالَ: "الرُّوحُ مِنْ أَمْرِ رَبِّي وَمَا أُوتِيتُمْ مِنَ الْعِلْمِ إِلا قَلِيلا (الإسراء :٨٥)". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه** عبدالله بن مسعود رضي الله عنه بیان دي فرمائي چې یو خل دنبي کریم صلي الله علیه وسلم سره دمدیني په پټو او فصلونو کي روان وو رسول الله صلي الله علیه وسلم به کله کله دکجوري یوخاښ ته ډډه وهله او دیهودیانو په خوا به تیریدو نو په دوئ کي بعضي

[1] ـ اورده البخاري في الجامع الصحيح /العلم ٤٧ (١٢٥) . وتفسير الإسراء ١٣ (٤٧٢١) . والإعتصام ٣ (٧٢٩٧) . والتوحيد ٢٨ (٧٤٥٦) . و ٢٩ (٧٤٦٢) . صحيح مسلم /المنافقين ٣ (٢٧٩٤) (تحفة الأشراف : ٩٤١٩)

یهودیانو ګنګوسي اوکړل کاش چې دده نه مو سوالات کړي وي، بعضو اوویل دده نه دځه خیز تپوس مه کوئ ځکه چې داسي جواب به درکړي چې ستاسو به بیا خوښ نه وي مګر هغوئ اونه منل او تردي چې سوال یي اوکړو اي ابوالقاسم مونږ ته دروح باره کي معلومات راکړه ددي سوال په اوریدو رسول الله یود شیبه خاموش اودریدو او بیا یي سر اسمان طرف ته پورته کړو نو زه پوهه شوم چې په رسول الله باندي وحي راتلونکي ده چنانچې وحي راغله او بیا یي اوفرمانیل "الرُّوحُ مِنْ أَمْرِ رَبِّي وَمَا أُوتِيتُمْ مِنَ الْعِلْمِ إِلا قَلِيلا".
امام ترمذي وایي داحدیث حسن صحیح دي

**************

٣١٤٢ـ حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، حَدَّثَنَا الحَسَنُ بْنُ مُوسَى، وَسُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ زَيْدٍ، عَنْ أَوْسِ بْنِ خَالِدٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " يُحْشَرُ النَّاسُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ثَلَاثَةَ أَصْنَافٍ: صِنْفًا مُشَاةً، وَصِنْفًا رُكْبَانًا، وَصِنْفًا عَلَى وُجُوهِهِمْ ". قِيلَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، وَكَيْفَ يَمْشُونَ عَلَى وُجُوهِهِمْ ؟ قَالَ: " إِنَّ الَّذِي أَمْشَاهُمْ عَلَى أَقْدَامِهِمْ قَادِرٌ عَلَى أَنْ يُمْشِيَهُمْ عَلَى وُجُوهِهِمْ، أَمَا إِنَّهُمْ يَتَّقُونَ بِوُجُوهِهِمْ كُلَّ حَدَبٍ وَشَوْكٍ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَقَدْ رَوَى وُهَيْبٌ، عَنِ ابْنِ طَاوُسٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَيْئًا مِنْ هَذَا. [1]

**ترجمه** دابوهریره رضي الله عنه بیان دي رسول الله صلي الله علیه وسلم فرمانیلي دي دقیامت په ورځ به خلق په دري قسمونو کي راجمع کړي شي یوه ډله به پیدل راروان وي او بله ډله به سوره راروان وي او بله ډله به نسکور په خاپوړو راروان وي، عرض اوکړي شو اي دالله رسوله په خاپوړو به څنګه ځي رسول الله صلي الله علیه وسلم اوفرمانیل، چاچې دوئ پښپو روان کړي دي هغه ذات په دي باندي هم قادر دي چې دوئ لره په مخونو روان کړي واوړئ ،داسي به نه وي چې دوئ به روان وي، بلکه دوئ به په مخ باندي دهري لوړي نه ژوري ته رازغلي او دازغو نه به دبچ کیدو په حالت کي راروان وي
امام ترمذي وایي داحدیث حسن دي ، اهیب دابن طاوس نه او هغه دخپل پلار طاوس نه او هغه دابوهریره په واسطه دنبي کریم صلي الله علیه وسلم نه ددي حدیث څه حصه نقل کړي ده

**************

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ١٢٢٠٣)

٣١٤٣_حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا بَهْزُ بْنُ حَكِيمٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّكُمْ مَحْشُورُونَ رِجَالًا وَرُكْبَانًا وَيُجَرُّونَ عَلَى وُجُوهِهِمْ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. (1)

**ترجمه** دمعاويه بن هيده رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي تاسو به په قيامت كي راجمع كړي شئ څه كسان به پيادل روان وي او څه به سواره روان وي او څه كسان به پرمخي دراښكلي كيدو په حال كي جمع كولي شي
امام ترمذي وايي: داحديث حسن دي.

***************

٣١٤٤_حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، وَيَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، وَأَبُو الْوَلِيدِ، وَاللَّفْظُ لَفْظُ يَزِيدَ وَالْمَعْنَى وَاحِدٌ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ سَلَمَةَ، عَنْ صَفْوَانَ بْنِ عَسَّالٍ، أَنَّ يَهُودِيَّيْنِ قَالَ أَحَدُهُمَا لِصَاحِبِهِ اذْهَبْ بِنَا إِلَى هَذَا النَّبِيِّ نَسْأَلُهُ، فَقَالَ: لَا تَقُلْ لَهُ نَبِيٌّ فَإِنَّهُ إِنْ سَمِعَنَا نَقُولُ نَبِيٌّ كَانَتْ لَهُ أَرْبَعَةُ أَعْيُنٍ، فَأَتَيَا النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَسَأَلَاهُ عَنْ قَوْلِ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ: وَلَقَدْ آتَيْنَا مُوسَى تِسْعَ آيَاتٍ بَيِّنَاتٍ (الإسراء :١٠١)، فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تُشْرِكُوا بِاللهِ شَيْئًا، وَلَا تَزْنُوا، وَلَا تَقْتُلُوا النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللهُ إِلَّا بِالْحَقِّ، وَلَا تَسْرِقُوا، وَلَا تَسْحَرُوا، وَلَا تَمْشُوا بِبَرِيءٍ إِلَى سُلْطَانٍ فَيَقْتُلَهُ، وَلَا تَأْكُلُوا الرِّبَا، وَلَا تَقْذِفُوا مُحْصَنَةً، وَلَا تَفِرُّوا مِنَ الزَّحْفِ شَكَّ شُعْبَةُ وَعَلَيْكُمْ يَا مَعْشَرَ الْيَهُودَ خَاصَّةً أَنْ لَا تَعْدُوا فِي السَّبْتِ، فَقَبَّلَا يَدَيْهِ وَرِجْلَيْهِ". وَقَالَا: نَشْهَدُ أَنَّكَ نَبِيٌّ، قَالَ: فَمَا يَمْنَعُكُمَا أَنْ تُسْلِمَا؟، قَالَا: إِنَّ دَاوُدَ دَعَا اللهَ أَنْ لَا يَزَالَ فِي ذُرِّيَّتِهِ نَبِيٌّ وَإِنَّا نَخَافُ إِنْ أَسْلَمْنَا أَنْ تَقْتُلَنَا الْيَهُودُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (2)

دصفوان بن عسال رضي الله عنه نه منقول دي :يوه ورځ يو يهودي خپل يو ملګري ته اووئيل چی راشه چی دي نبي ته ورشو ملګري يي ورته اووئيل نبي ورته مه وايه كه چري وايي اوريدل

[1] _ انظر حديث رقم ٢٤٢٣

[2] _ :(رواه الترمذي: ٣١٤٤.و النسائي في السنن الكبرى:٨٦٥٦_ وابن ماجة :٣٧٠٥_ انظر حديث رقم ٢٧٣٣. سنن ابن ماجه/الأدب ١٦ (٣٧٠٥) . والنسائى فى الكبرى فى السير (٨٦٥٦) وفى المحاربة (٣٥٢١) (تحفة الأشراف : ٤٩٥١) وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٢٣٩)

چې يهوديان خو هم مانبي گڼري نو سترگي به يي څلور شي يعني دخوشحالئ نه به په جامو کې نه ځايږي. بهر حال دوئ دواړه دنبي کريم صلي الله عليه وسلم په خدمت کې حاضر شول او دنهه واضحو احکامو په باره کې يي ورنه سوال اوکړو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل هيڅوك به دالله تعالي سره نه شريکوئ، غلابه نه کوئ، زنا به نه کوئ او دکوم نفس وژل چې الله حرام کړي دي هغه به په ناحقه نه قتل کوئ او دکوم بې گناه دقتل کولو دپارد به په هغه باندي ددي دپاره الزام نه لگوئ چې حاکم ته يي ورولئ (او سزا ورته ورکړي) جادو به نه کوئ، سود به نه خورئ، او په پاکدامنو ښځو به دزنا تهمت نه لگوئ، او دجنگ په ميدان کې به دشمن ته شا نه ورگرځوئ او اي يهوديانو په تاسو باندي په خصوصيت سره واجب دي چې دخالي دورځي په معامله کې دالله دحکم نه تجاوز اونکړئ ، راوي وائي چې ددي په اوريدو سره دواړو يهوديانو دنبي کريم صلي الله عليه وسلم لاس او خپې خکل کړل او وبي وئيل مونږ گواهي ورکوو چې ته واقعي دالله نبي او رسول يي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل هر کله چې تاسو زماپه رسالت يقين اوکړو نو زما داتباع نه ستاسو دپاره کوم څيز مانع دی ؟ هغوئ اوونيل حقيقت دادی چې داود عليه السلام دخپل رب نه دعا غوښتلي وه چې نبوت دي هميشه زماپه اولاد کې وي لهذا مونږ ويريږو چې که ستا پيروي اوکړو نو يهوديان به مو قتل کړي.

**تشريح** : ددي حديث نه معلومه شوه چې په رسول الله ايمان لرل جدا څيز دی او اتباع رسول جدا څيز دی . خلاصه داده چې دالله تعالي داطاعت سره ځاي په ځاي داطاعت رسول حکم بار بار شوی دی او په مختلفو عنواناتو سره درسول دبيان کړو احکامو دمنلو هدايت شوی دی دا هر څه ددي خطري پيش نظر دي چې څوك احاديث رسول لره دقران نه جدا اونه گڼري او داطاعت الهيه نه يي جدا اونه گڼري او انکار ورنه اونکړي داتباع رسول متعلق احاديث او دعلماؤ اقوال نور هم ډير زيات دي ليکن مونږ په مذکوره بحث اکتفاء کوو.

## دصفوان ابن عسال رضي الله عنه حالات

نوم صفوان دپلار نوم عسال دکوفي اوسيدونکي دي او اکثر يي نقل دروايت داهل کوفه نه کړي دي چې يوڅو روايات ورنه منقول دي.

***************

٣١٤٥_حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ أَبِي بِشْرٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، وَلَمْ يَذْكُرْ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَهُشَيْمٍ، عَنْ أَبِي بِشْرٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ وَلَا تَجْهَرْ بِصَلَاتِكَ (الإسراء :١١٠) قَالَ: نَزَلَتْ بِمَكَّةَ، كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا

رَفَعَ صَوْتَهُ بِالْقُرْآنِ سَبَّهُ الْمُشْرِكُونَ، وَمَنْ أَنْزَلَهُ وَمَنْ جَاءَ بِهِ. فَأَنْزَلَ اللَّهُ وَلا تَجْهَرْ بِصَلاتِكَ (الإسراء :١١٠) فَيَسُبُّوا الْقُرْآنَ وَمَنْ أَنْزَلَهُ وَمَنْ جَاءَ بِهِ وَلا تُخَافِتْ بِهَا (الإسراء :١١٠) عَنْ أَصْحَابِكَ بِأَنْ تُسْمِعَهُمْ حَتَّى يَأْخُذُوا عَنْكَ الْقُرْآنَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** ابن عباس رضي الله عنهما دايت كريمه " وَلا تَجْهَرْ بِصَلاتِكَ " په باره كي وائي دا ايت په مكه كي هغه وخت كي نازل شو كله چې رسول الله صلي الله عليه وسلم په مكه كي پټ دعوت چلولو كله چې رسول الله دخپلو صحابه كرامو سره مونځ كولو نو قران يي په جهري اواز سره لوستلو مشركينو چې به اوريدلو نو قران او دقران نازلونكي او دقران راوړونكي تولو ته به يي كنځل كول نو دي باره كي الله تعالي خپل نبي ته اوفرمائيل "ولاتجهربصلاتك" يعني په جهري اواز سره قرائت مه كوه دكوم په اوريدو سره چې مشركينو كنځلي شروع كړي او نه يي بيهي په خفيه اواز سره وائي (چې ستا ملګري يي هم نشي اوريدلي) بلكه ددي درميانه لاره اختيار كړه

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي

***************

٣١٤٦ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، حَدَّثَنَا أَبُو بِشْرٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، فِي قَوْلِهِ: وَلا تَجْهَرْ بِصَلاتِكَ وَلا تُخَافِتْ بِهَا وَابْتَغِ بَيْنَ ذَلِكَ سَبِيلا (الإسراء :١١٠) ، قَالَ: نَزَلَتْ وَرَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم مختف بمكة. فَكَانَ إِذَا صَلَّى بِأَصْحَابِهِ رَفَعَ صَوْتَهُ بِالْقُرْآنِ فَكَانَ الْمُشْرِكُونَ إِذَا سَمِعُوهُ شَتَمُوا الْقُرْآنَ وَمَنْ أَنْزَلَهُ وَمَنْ جَاءَ بِهِ فَقَالَ اللَّهُ لِنَبِيِّهِ: وَلا تَجْهَرْ بِصَلاتِكَ أَيْ بِقِرَاءَتِكَ فَيَسْمَعَ الْمُشْرِكُونَ فَيَسُبُّوا الْقُرْآنَ وَلا تُخَافِتْ بِهَا عَنْ أَصْحَابِكَ وَابْتَغِ بَيْنَ ذَلِكَ سَبِيلا ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [2]

**ترجمه** دسعيد بن جبير بيان دي چې ابن عباس رضي الله عنهما دايت كريمه " وَلا تَجْهَرْ بِصَلاتِكَ وَلا تُخَافِتْ بِهَا وَابْتَغِ بَيْنَ ذَلِكَ سَبِيلا "باره كي اوفرمائيل دا ايت په مكه كي هغه وخت

---

[1] اورده البخاري في الجامع الصحيح /تفسير الإسراء ١٤ (٤٧٢٢)، والتوحيد ٣٢ (٧٤٩٠)، و ٤٤ (٧٥٢٥) و ٥٢ (٧٥٤٧) صحيح مسلم /الصلاة ٣١ (٤٤٦)، سنن النسائي/الإفتتاح ٨٠ (١٠١٢) (تحفة الأشراف : ٥٤٥١)، و مسند احمد (١/٢٣، ٢١٥)

[2] _ اورده البخاري في الجامع الصحيح /تفسير الإسراء ١٤ (٤٧٢٢)، والتوحيد ٣٢ (٧٤٩٠)، و ٤٤ (٧٥٢٥)، و ٥٢ (٧٥٤٧) صحيح مسلم /الصلاة ٣١ (٤٤٦)، سنن النسائي/الإفتتاح ٨٠ (١٠١٢) (تحفة الأشراف : ٥٤٥١) و مسند احمد (١/٢٣، ٢١٥)

کې نازل شوې دې کله چې به رسول الله پټ اوسیدلو کله چې رسول الله دخپلو صحابه کرامو سره مونځ کولو نو قران یې په جهري اواز سره لوستلو مشرکینو چې به اوریدلو نو قران او دقران نازلونکې او دقران راوړونکې ټولو ته به یې کنځل کول نو دې باره کې الله تعالي خپل نبي ته اوفرمائیل "ولاتجهربصلاتك" یعني په جهري اواز سره قرائت مه کوه دکوم په اوریدو سره چې مشرکینو کنځلې شروع کړې او نه یې بیخي په خفیه اواز سره وانې (چې ستا ملګرې یې هم نشې اوریدلې) بلکه ددې درمیانه لاره اختیار کړه
امام ترمذي وایي: داحدیث حسن صحیح دې.

****************

۳۱۴۷_حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ مِسْعَرٍ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ أَبِي النَّجُودِ، عَنْ زِرِّ بْنِ حُبَيْشٍ، قَالَ: قُلْتُ لِحُذَيْفَةَ بْنِ الْيَمَانِ "أَصَلَّى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي بَيْتِ الْمَقْدِسِ؟. قَالَ: لاَ. قُلْتُ: بَلَى. قَالَ: أَنْتَ تَقُولُ ذَاكَ يَا أَصْلَعُ، بِمَ تَقُولُ ذَلِكَ؟ قُلْتُ: بِالْقُرْآنِ، بَيْنِي وَبَيْنَكَ الْقُرْآنُ. فَقَالَ حُذَيْفَةُ: مَنِ احْتَجَّ بِالْقُرْآنِ فَقَدْ أَفْلَحَ. قَالَ سُفْيَانُ: يَقُولُ فَقَدِ احْتَجَّ وَرُبَّمَا قَالَ قَدْ فَلَجَ. فَقَالَ: سُبْحَانَ الَّذِي أَسْرَى بِعَبْدِهِ لَيْلاً مِنَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ إِلَى الْمَسْجِدِ الأَقْصَى (الإسراء:۱) . قَالَ: أَفَتُرَاهُ صَلَّى فِيهِ؟ قُلْتُ: لاَ. قَالَ: لَوْ صَلَّى فِيهِ لَكُتِبَتْ عَلَيْكُمُ الصَّلاَةُ فِيهِ كَمَا كُتِبَتِ الصَّلاَةُ فِي الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ. قَالَ حُذَيْفَةُ: أُتِيَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِدَابَّةٍ طَوِيلَةِ الظَّهْرِ مَمْدُودَةٍ هَكَذَا خَطْوُهُ مَدُّ بَصَرِهِ، فَمَا زَايَلاَ ظَهْرَ الْبُرَاقِ حَتَّى رَأَيَا الْجَنَّةَ وَالنَّارَ، وَوَعْدَ الآخِرَةِ أَجْمَعَ ثُمَّ رَجَعَا عَوْدَهُمَا عَلَى بَدْئِهِمَا. قَالَ: وَيَتَحَدَّثُونَ أَنَّهُ رَبَطَهُ لِمَ أَيَفِرُّ مِنْهُ وَإِنَّمَا سَخَّرَهُ لَهُ عَالِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه**: زر بن حبیش وائي مادحذیفه بن یمان رضي الله عنه نه تپوس اوکړو ایا رسول الله صلي الله علیه وسلم په بیت المقدس کې مونځ کړې وو؟ هغه اووئیل نه ما ورته اووئیل یقینا چې کړې یې وو هغه اووئیل اې ګنجیه ته څنګه داسې وائې او په څه بنا داخبره کوې ما اووئیل زه یې دقران په دلیل وایم زما او ستا په مینځ کې قران فیصله کونکې دې، حذیفه رضي الله عنه اووئیل چاچې دقران نه استدلال اوکړو هغه کامیاب پاتې شو. اوچاچې قران په دلیل کې پیش کړو هغه په حجت کې غالب پاتې شو زر بن حبیش وائي ما دا ایت " سُبْحَانَ الَّذِي أَسْرَى بِعَبْدِهِ لَيْلاً مِنَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ إِلَى الْمَسْجِدِ الأَقْصَى " په دلیل کې پیش کړو حذیفه

[1] _أخرجه النسائي في الكبرى في التفسير (۱۱۲۸۰) (تحفة الأشراف: ۳۳۲۴)

اوونيل ته ددي ايت نه څنګه ثابتوي چې رسول الله مونځ کړي دي؟ ما اوونيل داسي نه ده هغه اوونيل که رسول الله هلته مونځ کړي وي نو په تاسو هم داسي فرض کيدو لکه څرنګه چې په مسجد حرام کي يي کول فرض کړي شوي دي او بيا حذيفه اوونيل رسول الله صلي الله عليه وسلم ته اوږدي او پلني خيتي والا ځاروي (براق) راوستلي شو دده قدم به دومره خاي کي ايخودل کيدو چرته چې به نظر رسيدو او هغوئ دواړه هغه وخته پوري په براق سواره وو چې څو پوري يي دجنت او جهنم او اخرت دوعدي ټول څيزونه ليدلي نه وو او بيا دواړه واپس شول او ددوئ واپس کيدل د دوئ دشروع کولو په اندازه وو خلق وائي چې جبرائيل عليه السلام براق تړلي وو او ولي يي تړلي وو؟ ايا ددي دپاره چې چرته اونه تختي (داخو غلطه خبره ده) کوم ځاروي لره چې عالم الغيب والشهاده دهغه دپاره مسخر کړي وي ايا هغه تختيدي شي؟ هيڅ کله نه.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي.

***************

٣١٤٨_حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ زَيْدِ بْنِ جُدْعَانَ، عَنْ أَبِي نَضْرَةَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " أَنَا سَيِّدُ وَلَدِ آدَمَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَلَا فَخْرَ، وَبِيَدِي لِوَاءُ الْحَمْدِ وَلَا فَخْرَ، وَمَا مِنْ نَبِيٍّ يَوْمَئِذٍ آدَمُ فَمَنْ سِوَاهُ إِلَّا تَحْتَ لِوَائِي، وَأَنَا أَوَّلُ مَنْ تَنْشَقُّ عَنْهُ الْأَرْضُ وَلَا فَخْرَ، قَالَ: فَيَفْزَعُ النَّاسُ ثَلَاثَ فَزَعَاتٍ، فَيَأْتُونَ آدَمَ، فَيَقُولُونَ: أَنْتَ أَبُونَا آدَمُ فَاشْفَعْ لَنَا إِلَى رَبِّكَ، فَيَقُولُ: إِنِّي أَذْنَبْتُ ذَنْبًا أُهْبِطْتُ مِنْهُ إِلَى الْأَرْضِ، وَلَكِنْ ائْتُوا نُوحًا، فَيَأْتُونَ نُوحًا، فَيَقُولُ: إِنِّي دَعَوْتُ عَلَى أَهْلِ الْأَرْضِ دَعْوَةً فَأُهْلِكُوا، وَلَكِنْ اذْهَبُوا إِلَى إِبْرَاهِيمَ، فَيَأْتُونَ إِبْرَاهِيمَ، فَيَقُولُ: إِنِّي كَذَبْتُ ثَلَاثَ كَذِبَاتٍ، ثُمَّ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا مِنْهَا كَذِبَةٌ إِلَّا مَا حَلَّ بِهَا عَنْ دِينِ اللَّهِ وَلَكِنْ ائْتُوا مُوسَى، فَيَأْتُونَ مُوسَى، فَيَقُولُ: إِنِّي قَدْ قَتَلْتُ نَفْسًا، وَلَكِنْ ائْتُوا عِيسَى، فَيَأْتُونَ عِيسَى فَيَقُولُ: إِنِّي عُبِدْتُ مِنْ دُونِ اللَّهِ، وَلَكِنْ ائْتُوا مُحَمَّدًا، قَالَ: فَيَأْتُونَنِي فَأَنْطَلِقُ مَعَهُمْ، قَالَ ابْنُ جُدْعَانَ: قَالَ أَنَسٌ: فَكَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: فَآخُذُ بِحَلْقَةِ بَابِ الْجَنَّةِ فَأُقَعْقِعُهَا، فَيُقَالُ: مَنْ هَذَا ؟ فَيُقَالُ: مُحَمَّدٌ فَيَفْتَحُونَ لِي وَيُرَحِّبُونَ بِي، فَيَقُولُونَ: مَرْحَبًا، فَأَخِرُّ سَاجِدًا فَيُلْهِمُنِي اللَّهُ مِنَ الثَّنَاءِ وَالْحَمْدِ، فَيُقَالُ لِي: ارْفَعْ رَأْسَكَ سَلْ تُعْطَ، وَاشْفَعْ تُشَفَّعْ وَقُلْ يُسْمَعْ لِقَوْلِكَ وَهُوَ الْمَقَامُ الْمَحْمُودُ الَّذِي قَالَ اللَّهُ: عَسَى أَنْ يَبْعَثَكَ رَبُّكَ مَقَامًا مَحْمُودًا (الإسراء :٧٩)". قَالَ سُفْيَانُ: لَيْسَ عَنْ أَنَسٍ إِلَّا هَذِهِ الْكَلِمَةُ فَآخُذُ بِحَلْقَةِ بَابِ الْجَنَّةِ

فَأُقَعْقِعُهَا. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَقَدْ رَوَى بَعْضُهُمْ هَذَا الْحَدِيثَ عَنْ أَبِي نَضْرَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ الْحَدِيثَ بِطُولِهِ. (1)

**ترجمه** : د ابو سعيد خدري رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي. زه به دقيامت په ورځ دادم عليه السلام داولاد سرداريم او زه په دي باندي هيڅ فخر نه کوم او زما په لاس کي به د حمد جنډه وي او زه په دي باندي هيڅ فخر نه کوم. اوپدغه ورځ به ادم عليه السلام او دهغه نه علاوه چې څومره انبياء دي ټول به زما دجنډي لاندي وي، او زه په دي باندي هيڅ فخر نه کوم او دقيامت په ورځ به اول زمکه زمادخوانه وشلولي شي او زه په دي باندي هيڅ فخر نه کوم او بيا يي اوفرمائيل چې دغه وخت کي به په خلقو دري ويري تيري شي اوبعضي کسان به اووايي راځئ چې ادم عليه السلام ته ورشو نو ټول به ادم عليه السلام ته لاړ شي ورته به اووائي ته ابوالبشر يعنى دټولو بنيادمو پلار يې الله تعالي ته زمونږ سفارش وکړه هغه به ورته اووائي زه ديو بوټي نه منع کړی وم ما نافرماني اوکړه او دهغي په سبب زه ځمکي ته را کوز کړی شوی وم ، تاسونوح عليه السلام ته لاړ شئ هغوئ به نوح عليه السلام ته ورشي هغه به ورته اووائي ما خپل قوم ته خيری اوکړی چې تباه شوتاسو ابراهيم عليه السلام ته تاسو لاړ شئ هغوئ به ابراهيم عليه السلام ته لاړ شي ورته به اووائي ما دری خله دروغ ونيلي دي ، بيا رسول الله اوفرمائيل : هغه کوم حقيقي دروغ نه وو بلکه د الله تعالي ددين حمايت کول يي مقصود وو البته تاسو موسي عليه السلام ته ورشئ خلق به موسي عليه السلام ته ورشي ورته به ووائي ما يو داسي بنده قتل کړی دی چې دهغه دقتل کولو حکم راته نه وو شوی تاسو عيسي عليه السلام ته لاړ شئ خلق به عيسي عليه السلام ته ورشي ورته به اووائي زما خو د الله تعالي نه علاوه بندګي شوي وه، تاسو محمد «رسول الله صلي الله عليه وسلم» ته ورشئ ، په يو روايت کې دي خلق به ماته راشي او زه به ورسره روان شم، ابن جدعان وايي چې انس رضي الله عنه ووئيل ماته داسي ښکاري لکه چې اوس هم زه رسول الله صلي الله عليه وسلم ته ګورم او بيا يي اوفرمائيل زه به د جنت ددروازي خنزير ونيسم او وبه يي ګرنګوم اواز به او شي چې څوك دی؟ په جواب کي به ووئيل شي محمد«صلي الله عليه وسلم» دي نو ماته به ور پرانستلي شي او پخير راغلي به راته ووئيلي شي نو زه به په سجده پريوځم او الله تعالي به ماته په زړه کي د حمد ويلو طريقه واچوي کوم چې يی ددی نه مخکي هيچاته نه دي خودلي بيابه راته حکم اوشي ای رسول الله صلي الله عليه وسلم سر پورته کړه غواړه چې څه غواړی درکولی به شي او سفارش اوکړه منلی به شي او دا به هغه مقام محمود وي د کوم باره

1 ـ سنن ابن ماجه/الزهد ٣٧ (٤٣٠٨) (تحفة الأشراف: ٤٣٦٤)

کي چي الله تعالي فرمائيلي دي: عَسَىٰٓ أَن يَبْعَثَكَ رَبُّكَ مَقَامًا مَّحْمُودًا.
امام ترمذي وايي: سفيان ثوري وائي انس رضي الله عنه په روايت کي صرف دا کلمات دي "فأخذ بحلقة باب الجنة فأقعقعها" امام ترمذي وائي داحديث حسن دي او بعضي راويانو داحديث دابونضره په واسطه دابن عباس رضي الله عنهما نه بطوله نقل کړي دي.
**لغات**: ابواب جمع دباب ده معني دروازه، ، الاعمال، دعمل جمع ده مصدر دي معني د کار اراده کول، عامل معني کار کونکي.
**تشریح**: دقيامت په ورځ به دنبي کريم صلي الله عليه وسلم فضيلت په تمامو انبياؤ باندي ظاهر کړی شي کله چې دقيامت په ورځ دپريشانۍ حالت وي کله چې به هر يو سړی پريشان وي نو په دغه وخت کې به رسول الله دتمام امت شفاعت کوي او درسول الله په شفاعت شروع کولو سره به دالله تعالي غصه کمه شي.
سوال: تمام خلق به يو دبل نه پس يو يو پيغمبر ته راځي ، ترديي چې اخر به رسول الله صلي الله عليه وسلم ته راشي او سفارش به يي اوکړي نو چې وروسته راځي نو داول نه ورته ولي نه راځي؟ جواب: په داسي کولو کې الله تعالي درسول الله فضيلت دتمامو خلقو په وړاندي ظاهرول غواړي.
"كنت كذبت ثلاث كذبات" ابراهيم عليه السلام به اووائي ما دري پيري دروغ وئيلي دي. حالانکه علماء وائي چې هغه دروغ نه وو بلکه تعريض او توريه وه چې ظاهرا دروغ ښکاره کيدل او په حقيقت کې دروغ نه وو په هغه دري خبرو کې يوه دا وه چې زه بيمار يم ستاسو سره تلی نشم او سړی خو څه ناڅه بيمار ضرور وي، دويم دا کاردي غټ بوت کړی دی دده نه تپوس اوکړئ دا يي دددي دپاره وئيلي وو چې خلقو ته دبتانو حقيقت ښکاره شي چې دوئ دڅا عبادت کوي هغه څومره مجبور دي، دريم دخپلي ښځي په باره کې يي وئيلي وو چې دا زما خور ده، نو داسلامي رشتي په اعتبار سره هر مسلمان دبل مسلمان ورور دی او مسلمانه ښځه هم خور وي. خلاصه داده چې هر يو نبي به دخپلو لغزشونو په سبب معذرت کوي ددي وجه دا ده چې انبياء عليهم السلام دايمان او تقوي په اعلي درجه فائض وي خو هغوئ معمولي لعزش هم غلطي ګڼري او په دي وجه بياځان مجرم ګڼړي په همدي وجه وئيلی شوي دي حسنات الابرار سيات المقربين.
واشفع تشفع : سفارش کوه ستا شفاس به قبلولی شي ددي شفارس نه مخکې به رسول الله دالله تعالي حمد او تعريف بيان کړي.

***************